بسم الله الرحمن الرحيم

| إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا وَإِذَا |
|---|
| یقیناً الله حکم کوی تاسو ته چه ادا کړئ امانتونه خپل اهل (مستحقینو) ته او کله |
| حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ إِنَّ اللَّهَ |
| چه فیصله کوئ تاسو د خلقو ترمینځ چه فیصله اوکړئ په انصاف سره یقیناً الله |
| نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا ﴿٥٨﴾ |
| ډیر ښه دے هغه شے چه نصیحت کوی تاسو ته په هغے سره یقیناً الله آوریدونکے لیدونکے دے۔ |

**تفسیر**: اُوس الله تعالیٰ بیرته قوانینو بیانولو ته رجوع وکړه۔

مضمون:

ددے ځای نه تر (۱۳۵) پورے الله تعالیٰ داسے سیاسی قوانین بیانوی چه د ملك د نظام سره تعلق لری، او داسے حقوق دی چه د راعی او د رعیت متعلق دی۔ نو اول آیت کی وائی چه تاسو اهل خلك مشران جوړ کړئ او بیا وائی چه د الله او د رسول او د مشرانو تابعداری وکړئ ځکه چه په چا باندے مشر مقرر نهٔ وی نو بیا افراتفری جوړیږی او که د هغه اطاعت نهٔ وی نو نظام خرابیږی نو اطاعت د اولی الامر او د هغے متعلقات ئے بیان کړیدی، بیا په مینځ کی د (٦٠) آیت نه تر یوه رکوع پورے منافقانو ته زجرونه دی او د هغوی پنځه بد صفتونه ذکر کوی ځکه چه دا هغه خلك دے چه ددے قوانینو مخالفت کوی،

بیا الله تعالیٰ په مختلفو طریقو سره د رسول الله ﷺ اتباع ته ترغیبات ورکړیدی، چه نبی خو دے له راځی چه د هغه اطاعت به کولے شی او د هغه اطاعت سبب د مغفرت دے (٦٤)۔ بیا په (٦٥) کی وائی چه د رسول الله ﷺ د تحکیم نه بغیر انسان مؤمن کیدے نشی، په خپله خو ښه به هغه حاکم جوړوی او د هغه په فیصله به رضا کیږی۔ بیا وائی چه د رسول الله ﷺ اتباع آسانه ده، ځه مرګ او قتل پکی نشته۔

بیا په (٦٦) کی وائی چه د رسول الله ﷺ اطاعت کولو سره بنده ته پنځه فضائل

حاصلیږي خیریت او ایمان په (٦٧) کی، او اجر عظیم په (٦٨) کی، او هدایت د صراط مستقیم په (٦٩) آیت کی، او د انبیاوٴ علیهم السلام او د نیکانو ملګرتیا په جنت کی حاصلیږي.

او پدیے کی به اشاره وي چه په کوم ملك او نظام کی د الله او د رسول خبرے درنے وګنړل شی نو دغه ملك به ودان وي او که هغه سپکے وګنړلے شی نو نظام به ګډوډ کیږي.

بیا د نظام عسکري متعلق یو حکم بیانوي چه هرکله الله او رسول حاکم وګنړلے شی نو اوس به ددے دین او نظام د حفاظت دپاره جهاد او قتال کولے شی نو اول حکم کوي په تیارولو د آلات او وسلے. او بیا زجر دے منافقانو ته چه هغوي پدے کار کی مداهنت کوي په (٧٣) آیت کی بیا بل سیاسي (عسکري) حکم بیانوي چه اعداد المقاتلین دے یعنی مخلصان مجاهدین تیارول ضروري دي. بیا ئے قتال ته ترغیب ورکړیدے چه قتال به د دوه غرضونو دپاره کیږي یو د اعلاء کلمة الله دپاره او بل د کمزور د راخلاصولو دپاره. د هغے نه روستو به بیا حاصل راځي.

مدینه دار الخلافه جوړه شوه نو دے خبرے ته ضرورت دے چه امانتونه دے خپل اهل ته وسپارل شی او په عدل (یعنی کتاب او سنت) باندے دے فیصلے وشی او رشوتونه دے وانخستے شی، او ظلم دے ونشی، تولو عوامو سره دے یو شان عدل وشی نو پدے سره به خلافت باقي پاتي وي او معاشره او نظام به نهٔ خرابیږي.

نو پدے آیت کی الله تعالیٰ مسلمانانو ته دا حکم کړیدے چه دوي دے د امانتونو په سختئ سره حفاظت اوکړي، او د هغے په ادائیګئ کی دے ذره کوتاهي هم نهٔ کوي.

ابو داودؒ (٣٥٣٦)، ترمذيؒ (١٢٦٤) او دارميؒ وغیرهم روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ فرمائي: [أَدِّ الْأَمَانَةَ إِلَى مَنِ ائْتَمَنَكَ وَلَا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ]

((د امانت والا امانت ادا کړه، او څوك چه خیانت کوي د هغه سره خیانت مهٔ کوه)). (وسنده صحیح)

حافظ ابن کثیرؒ لیکلي دي چه د امانت کلمه هر قسم امانتونو ته شامل ده، برابره ده چه د الله حقوق وي لکه مونځ، زکاة او روژه وغیره، او که د بندګانو خپل مینځ کی حقوق وي چه هغوي هغه په دنیا کی ادا نکړي نو د مسلمؒ او احمدؒ د روایت کړي یو صحیح حدیث مطابق هغه به په قیامت کی ادا کوي، تردے چه دے بنکرو چیلئ قصاص به د بنکرو والا چیلئ نه اخستے شی.

## شان نزول

ډیرو مفسرینو لیکلی دی چه دا آیت د عثمان بن ابی طلحه په باره کی د فتح د مکے په موقعه نازل شوے وو، چه د هغه سره د خانه کعبے چابیانے وے۔ او دا ورته په خاندانی طور سره راروانے پاتے وے، رسول الله ﷺ چه کله خانه کعبے ته راورسیدو نو عثمان ئے راوغوختو او چابیانے ئے ترے واخستے او د کعبے دروازه ئے کولاوه کړه وړداخل شو،
او کله چه راووتو نو همدا آیت ئے اُولوستلو او عثمان ئے راوغوختو او چابیانے ئے ورته حواله کړے۔ ورته ئے وویل : (هَاكَ مِفْتَاحَكَ يَا عُثْمَانُ)
اے عثمانه! خپله کنجی بیرته واخله، او نن ورځ د نیکئ او د وفادارئ ورځ ده چه دا ډے همیشه دپاره ستا او ستا په اولادو کی وی۔ سیرتِ ابن هشام٤/٣٢، الدر المنثور٢/٥٧١)
په یو بل روایت کی دی : شیبه بن ابی طلحه او عثمان بن ابی طلحه ته ئے وفرمایل:
(خُذُوْهَا يَا بَنِيْ طَلْحَةَ خَالِدَةً تَالِدَةً لَا يَأْخُذُهَا مِنْكُمْ اِلَّا ظَالِمٌ)
(معجم الصحابة لابی القاسم البغوی٣/١٥١) رقم (١٢٢٨) ومعرفة الصحابة للاصبهانی)
اے د طلحه ځامنو! تاسو دا چابیانی واخلئ چه همیشه به تاسو سره وی او تاسو نه به ئے صرف ظالم اخلی۔
حافظ سیوطیؒ وئیلی دی چه په ظاهره کی داسے معلومیږی چه دا آیت په هغه باندے په هغه وخت نازل شوے وو کله چه هغه په کعبه کی دننه وو۔

## د امانتونو نه څه مراد دے؟

ددے آیت شان نزول اگر که خاص دے لیکن الفاظ ئے عام دی نو دا بیا د حُکامو سره هم لگی او د عوامو سره هم، دواړو ته الله تعالیٰ حکم کوی چه امانتونه هغه خلکوته ورسوئ چه د امانتونو اهل وی،
(۱) پدے کی هغه امانتونه هم شامل دی چه چا د چا سره ایخودی وی چه په هغے کی به خیانت نشی کیدے بلکه هغه به د طلب په وخت واپس کولے شی۔
(۲) دویم : عهدے او مناصب به اهل خلکو ته ورکولے شی، محض په سیاسی بنیاد، یا په نسلی او وطنی او لسانی بنیاد، یا د قرابت او خپلولئ او خاندان په بنیاد باندے عهده او منصب ورکول ددے آیت خلاف دی۔

دارنگه خپلو کشرانو (مامورینو) ته به د هغوی د استحقاق نه زیات امر نهٔ کویٔ چه هغوی په گناه کولو باندے مکلف کړیٔ یا ورته ووایئ: چه ځانونه مړه کړیٔ بلکه هغوی باندے به د خپل وس مطابق امانت او ذمه واری اچولے شی۔

ددے نه دا هم معلومه شوه چه خلافت، وزارتونه، او د مسجد امامت، خطابت او درس او تدریس او تعلیم او تعلم به اهل خلکو ته سپارلے شی او په حدیث د بخاری کی دی:

(فَإِذَا ضُيِّعَتِ الْأَمَانَةُ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ قَالَ: كَيْفَ إِضَاعَتُهَا ؟ قَالَ: إِذَا وُسِّدَ الْأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ)۔ بخاری :۵۹)۔

رسول الله ﷺ نه یو تن د قیامت متعلق پوښتنه وکړه نو هغه ورته وفرمایل: کله چه امانت ضائع شی نو د قیامت انتظار کوه، هغه عرض وکړو: د امانت ضائع کیدل به څنگه وی؟ وے فرمایل: کله چه کارونه نا اهله خلکو ته وسپارل شی نو د قیامت انتظار کوه۔

کله چه غیر اهل ته کارونه وسپارل شی نو پدے سره د ملك نظام خرابیږی۔

(۲) تفسیر: پدے کی د ابی بن کعب ؓ نه نقل دی چه دا خطاب هر مسلمان ته دے چه هغه به امانتونه ادا کوی خپل اهل ته، دا امانتونه عام دی چه د الله امانتونه وی او که د بندگانو لکه د الله امانتونه، مونځ، زکاة، روژه، حج، د غسل جنابت، د حفظ الفرج وغیره دی چه الله دا مونږ ته راسپارلی دی، دا به الله تعالیٰ ته ادا کوو. که څوك دا نهٔ ادا کوی نو هغه به خائن وی۔ د زنانه امانت دا دے چه خپل عورت به خپل خاوند ته حواله کوی نهٔ بل چا ته وغیره وغیره او د بندگانو امانتونو کی امانت د مال هم وی، امانت د خبرے هم وی، او امانت د عهدے هم وی چه کله تا ته یو کار در وسپارلے شو مثلاً د ماشومانو درس نو هغوی سره چل ول باندے به وخت نهٔ تیروے، تدریس در وسپارل شو نو په هغے کی به کوشش کوے او د کتاب مطالعه به کوے، غلط درس به نهٔ کوے۔ دارنگه کاریگرانو او گیلکارانو او مزدورانو ته یو کار وسپارل شی چه دا دیوال جوړ کړیٔ نو هغوی چل ول وکړی او هسے وخت تیر کړی خپله دیری اروی، دا خائنان دی، دارنگه ټهیکیدارانو ته سرك جوړول، د کوهیانو کنستل وسپارل شی هغوی پکی خواری ونکړی دا خیانت دے۔

دارنگه علماء امانت دے د عوامو دپاره، د دوی ضائع کول جائز نهٔ دی بلکه د دوی نه به فائدے اخلی او د دوی خدمتونه به کوی۔ دینی مکتبی او کتابونه امانت دے او د مسلمانانو سرمایه او میراث دے دا به نهٔ ضائع کوی۔

که هر مسلمان پدے یو آیت باندے عمل وکړی نو معاشره به ډیره زیاته برابره شی۔

پدے کی گواهی هم داخل ده چه تهٔ چا گواه کړے نو په خپله موقعه کی به گواهی ادا کوے او د چا نه به یره نکوے۔ او حدیث کی دی چه (لَا اِیْمَانَ لِمَنْ لَا أَمَانَةَ لَهٗ) چا کی چه امانت نهٔ وی هغه کی ایمان نشته۔ (مسند احمد: ١٢٤٠٦، ابن حبان، وابی یعلی: ٢٨٦٣ بسند حسن)

وَإِذَا حَكَمْتُمْ : دا دویم حکم دے چه کله تاسو د خلکو ترمینځ فیصله کوئ نو په عدل او انصاف سره به فیصله کوئ، یو طرف ته به نهٔ مائله کیږئ۔ او د خلکو ترمینځ فیصله کی دا هم داخل دی چه چا باندے فیصله کول چه دا ښه دے او دا بد او ددهٔ قول صحیح دے او ددهٔ غلط، نو پدے کی به هم د انصاف نه کار اخستے شی او د مذهب پرستئ نه به کار نشی اخستے، ډیر ملیان په کتابونو کی د خپل مذهب د تائید دپاره ځان سره جمهور علماء ملګری کوی او د اجماع دعوے کوی۔

إِنَّ اللهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهٖ : یعنی کیدے شی چه تاسو به په امانتونو کی د خیانت او په فیصله کی د بی انصافئ په ضررونو سمدستی پوهه نهٔ یئ خو روسته به پوهه شئ چه الله تاسو ته څومره فائده مند نصیحتونه کوی او په څومره فائده منه لاره مو روانوی۔

او د الله پدے حکمونو باندے عمل کولو سره انسان ته د دنیا او د آخرت فائدے ملاویږی، معاشره پرے برابریږی۔ او آسمان او زمکه په عدل باندے ولاړ دی۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا أَطِيْعُوا اللهَ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَأُولِي |
| اے ایمان والو ! تابعداری اُوکړئ د الله او تابعداری اُوکړئ د رسول (د الله) او د خاوندانو |
| الْأَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ فَرُدُّوْهُ إِلَى اللهِ |
| د حکم ستاسو نه پس که جګړه راغله ستاسو په یو شی کی نو واپس کړئ هغه الله |
| وَالرَّسُوْلِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذٰلِكَ خَيْرٌ |
| او رسول ته، که تاسو ایمان لرئ په الله او په ورځ روستنئ دا کار ډیر غوره دے |
| وَّأَحْسَنُ تَأْوِيْلًا ﴿٥٩﴾ |
| او ډیر ښائسته دے په اعتبار د انجام۔ |

**تفسیر:**

**ربط** : په تیر شوی آیت کی الله تعالیٰ حُکامو او رعیت تولو ته د عدل او د انصاف حکم وکړو نو اُوس پدے آیت کی الله تعالیٰ عوامو (مامورینو) ته څو حکمونه کوی، برابره ده

چه هغه کسان د فوج افراد وي یا عام خلك وي :
(۱) اول حکم دا چه د الله اطاعت وکړئ، که تاسو ته خپل آمران د قرآن کریم مخالف حکم وکړي نو د هغوی اطاعت مهٔ کوئ. (۲) همدارنګه د نبی کریم ﷺ اطاعت وکړئ او ستاسو د مشرانو چه کوم امر د احادیثو نه مخالف وي ذ هغه اطاعت مهٔ کوئ.
(۳) د خپلو هغه اولوا الامر (آمرانو، مشرانو) امر منئ چه هغوی ستاسو نه وي او مسلمانان وي او لکه څنګه چه په تاسو باندے د الله په مخالفت کی د آمر اطاعت نشته نو دغه شان د کافرانو اطاعت درباندے نشته. ځکه ئے مِنْكُمْ لفظ استعمال کړو.
(٤) د اولوا الامر اطاعت په تاسو باندے په هغه حکم کی واجب دے چه اتفاقی وي او ستاسو پکی اختلاف نۀ وي، او هغه حکم ظاهراً د الله او د رسول خلاف نۀ وي.
(٥) که ستاسو او د مشرانو په یو حکم کی اختلاف راغلو نو هغه د الله کتاب او د رسول الله ﷺ سنت ته پیش کړئ، که د چا خبره د الله د کتاب او د رسول الله ﷺ سره برابره وه هغه واخلئ، که د یو مشر خبره د قرآن کریم یا د رسول الله ﷺ د حدیث خلاف راوځی نو د هغے منل په تاسو لازم نۀ دي بلکه د الله د کتاب او د رسول الله ﷺ د حدیث تابعداری به واجب وي.
نو د آیت نه معلومه شوه چه د حُکامو اطاعت په اتفاقی خبرو کی لازم دے مګر دا چه حُکام د الله په نافرمانئ حکم کوي نو د هغوی خبره به نۀ منلے کیږی ځکه چه چرته د خالق نافرمانی کیږی هلته د مخلوق اطاعت نۀ کیږی.
د بخاري روایت دے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل : «چا چه زما اطاعت اُوکړو نو هغه د الله اطاعت اُوکړو او چا چه زما نافرمانی اُوکړه نو هغه د الله نافرمانی اُوکړه او چا چه زما د امیر اطاعت اُوکړو نو هغه زما اطاعت اُوکړو او چا زما د امیر نافرمانی اُوکړه نو هغه زما نافرمانی اُوکړه».

## شان نزول

بخاريؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه دا آیت د عبد الله بن حذافه بن قیس بن عدی السَّهمِی ﷺ په باره کی نازل شوے وو. امام احمدؒ د علی بن ابی طالب ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ د یو انصاري په قیادت کی یوه فوجی دسته اُولیږله، د دستے امیر په څه خبره باندے د خلقو نه ناراضه شو نو هغه د اُور بلولو حکم وکړو او خلقو

تـه ئے هغے ته په دنګلو حکم اُوکړو، د دستے یو ځوان خلقو ته اُووئیل چه مونږ په رسول الله ﷺ بـانـدے ایـمـان پـدے وجه راوړیدے چه مونږ د اُور نه بچ شو، پدے وجه مونږ دے جلتی اُونـکـړو تـردے چـه رسـول الله ﷺ نـه تپـوس اُوکـړو، کله چه دوی واپس راتلو نه روستو د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوکړو نو نبی کریم ﷺ اُووئیل :

[لَوْ دَخَلُوْهَا مَا خَرَجُوْا مِنْهَا اِلٰی یَوْمِ الْقِیَامَةِ، اَلطَّاعَةُ فِی الْمَعْرُوْفِ] [(بخاری۲/۶۲۲]

چه کـه دوی هغـه اُور تـه دانـګلی وے نود هغے نه به هیڅ کله نهٔ وے وتلی، د امیر یا قائد اطاعت په نیک کار کی وی۔

عـلامـه طیبیؒ لیـکلی دی چه ﴿ وَاَطِیْعُوا الرَّسُوْلَ ﴾ کـی د فـعـل اعـاده پـدے خبره باندے دلالت کـوی چـه د رسول اطاعت مستقل دے او﴿ وَاُولِی الْاَمْرِ ﴾ کـی د فـعـل نهٔ اعاده کول پـدے دلالـت کـوی چـه د هـغـوی اطاعـت مشروط دے۔ که د هغوی حکم د قرآن او سنت مطابق وی نو اطاعت به ئے کیږی او که نهٔ وی نو اطاعت ئے نشته۔

## اولی الامر څوك دی؟

پـدے کی د سلفو نه دوه اقوال نقل دی :

(۱) د ابو هریره ﷺ نـه نـقل دی چه ددے نه مراد امراء او والیان دی او د امر نه مراد اختیار د حـکـومـت دے۔ (۲) د ابـن عباس رضی الله عنهما په نیز د (اولی الامر) نه مراد اهل فقه او دین دی۔ او د مجاهدؒ، عطاءؒ او حسن بصریؒ وغیرهم په نیز ددے نه مراد علماء دی۔

لیـکن حقه دا ده چه ددے نه تمام اهل حل وعقد، امیران او علماء مراد دی ځکه چه علماء هـم د الله او د رسول د خبرو بیانونکی دی او شارعان نهٔ دی۔ او د سلفو په زمانه کی به غالباً والیان علماء او فقهاء هم وو۔

نـو ددے نـه مـعـلـومـه شوه چه د الله او د رسول خبره به بغیر د شرط او قید نه منلے شی او د عـلـمـاء او حُکامو خبره به په شرطونو سره منلے شی، که خبره ئے د الله او د رسول سره برابره وه نـو مـنـلے به شی ځکه چه علماء د امت لوی مُحسنین دی چه دین ئے بیان کړیدے او که خبره ئے د آیت او د حدیث سره برابره نهٔ وه (یا ورته حدیث نهٔ وو رسیدلے، یا ئے اجتهاد خطا شوے وی یا بل څه وجه وی) نو سره د اکرام د هغوی نه به د هغوی خبره پریخودلے شی او د الله او د رسـول خبـره بـه اخستلے شی او دا د مسـلـمـانـانـو عـقـیـده ده، ائمه ؒ سره به خپلو شاګردانو بحثونه کول کله به چه ورته د هغوی خبره خطا ښکاره شوه۔

او د باطل پرستو طریقه دا ده چه د الله او د رسول خبره په شرط سره منی، که د خپل مذهب یا امام یا پارتۍ سره برابره وی نو منی ئے، بیا وائی چه په آیت کی یا په حدیث کی داسے راغلی دی او که برابره نهٔ وی، نو بیا ئے منلو ته تیار نهٔ وی او د خپل امام، مجتهد، پیر او مرشد خبره په غیر د شرط نه منی، او دا وائی چه د مجتهد نه به د دلیل تپوس نشی کیدے، اگرکه د هغه خبره به خطا وی، دلیل به ورسره نهٔ وی هم کللك ورپورے انبنتے وی، نو د هغه نه ئے نبی جوړ کړے وی، دا په دین کی غلو ده او مسلمانان ددے کار نه سخت منع شویدی، که څوك د خپل آخرت غم کوی داسے طریقه به نهٔ اختیاروی.

نو کوم خلك چه ددے آیت نه د تقلید په اثبات باندے دلیل نیسی نو د ډیرو وجوهو نه خطاء دے چه د هغے د تفصیل دپاره زمونږ رساله ((د تقلید حقیقت او د مقلدینو اقسام)) ته رجوع کول بهتر معلومیږی.

مختصر دا چه دلته خو الله تعالیٰ د اولی الامر (مشرانو) خبره مشروط کړه په اطاعت د الله او د رسول سره. یعنی د مشرانو اطاعت به هله وی چه د الله او د رسول د طاعت لاندے وی، او مستقل مطلق اطاعت د هغوی نشته، او دا خبره د تقلید بیخ وباسی،

دارنگه الله تعالیٰ د (اولی الامر) اطاعت مشروط کړیدے، چه په وخت د تنازع کی رجوع قرآن او سنت ته لازمه ده او دا خو د تقلید د معنیٰ خلاف ده، ځکه چه تقلید خو د چابی دلیله خبرے منلو ته وئیلے شی، دریم دا چه دلته امر دے په اطاعت، او تقلید غیر دے د اطاعت نه، بلکه دا چه اولی الامر جمع استعمال شویده نو آیا په اولی الامر کی صرف یو عالِم مجتهد داخل دے او که نهٔ د امت ټول حق پرست علماء دی چه کله ئے خبره د دلیل سره موافقه وی؟.

دومره ضد ؟

بیا مقلدینو تقلید د اختلافاتو لویه ذریعه وگرزوله، د دمشق قاضی محمد بن موسی البلاساغونی حنفی به وئیل : [لَوْ كَانَ لِيْ أَمْرٌ لَأَخَذْتُ الْجِزْيَةَ مِنَ الشَّافِعِيَّةِ] (میزان الاعتدال رقم: ۸۲۳۹) که زما اختیار راشی نو زهٔ د شوافعو نه جزیه اخلم (ځکه چه دوی په منزله د اهل کتابو دی) د تقلید د باطل والی دپاره دا یو مثال هم بس دے. د دوی دعوه ده چه څلور مذهبه حق دی آیا دا به د څلورو مذهبونو منل وی؟!.

بلکه دا چه دلته الله تعالیٰ حکم کړیدے چه د اختلاف په صورت کی به خبره الله او رسول

تـه وراندے کـوئ او کـه څـوك ئے د يـو عالم رأى يا مذهب ته وړاندے کړی نو آيا دا به د الله خبـره مـنـونکے وی؟۔ تـفـصـيـل دپـاره رجـوع وکـړئ تفسیـر قـاسمـیؒ محـاسـن التـاويـل (۲۶۵-۲۶۳/۲) او اعلام الموقعين د حافظ ابن قيمؒ ته۔

فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ : كه ستاسو خپل مينځ كې اختلاف راشي يا مو د اولى الامر سره راشي۔ دا هـم دلیـل دے دپاره د رد د تـقـلیـد ځکه چه مقلد کله هم د مجتهد سره تنازع نکوی بلکه هغوی خو وائی : (لَا يُسْئَلُ عَنِ الْمُجْتَهِدِ) (درمختار) د مجتهد نه به تپوس نشی کیدے۔

فَرُدُّوْهُ إِلَى اللهِ وَالرَّسُوْلِ :

مـجـاهـدؒ او مـيـمـون بـن مهـرانؒ او د سلفو نورو علماؤ وئيلى دى چه ((الله او د هغه رسول طرف تـه ئے واپس کړئ)) نه مقصود قرآن او سنت دی۔ د آيت پدے جمله کی مسلمانانو تـه دا حـکـم شـويـدے چه پـه هـره مسئله کی د دوی ترمينځ اختلاف واقع شی نو د هغے فیصله به د قرآن او سنت مطابق کوی۔ په الله او په آخرت باندے د ایمان تقاضا همدا ده۔

حافظ ابن کثیرؒ فرمائی : [فَدَلَّ عَلَى أَنَّ مَنْ لَمْ يَتَحَاكَمْ فِيْ مَحَالِ النِّزَاعِ إِلَى الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ وَلَمْ يَرْجِعْ إِلَيْهِمَا فَلَيْسَ بِمُؤْمِنٍ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ]

یـعنی : معلومه شوه چه هر هغه شخص چه په يوه اختلافی مسئله کی د قرآن او سنت حکم نهٔ منی، نو هغه به په الله او په ورځ د آخرت ایمان لرونکے نهٔ گنړلے کیږی۔

او دا هـم معلومه شوه چه علماؤ سره اختلاف پدے وجه کیږی چه دلیل ورسره نهٔ وی، نو دليـل طرفته به راښکلے شی چه هغه قرآن او حدیث دے۔ (ابن کثیر ۳۴۶/۲)

ذَٰلِكَ : یعنی قرآن او سنت طرف ته رجوع کی هر خیر دے، او د انجام په اعتبار سره هم دا عـمـل بهتر دے، ځکه يو پدے سره الله رضا کیږی، او بل پدے سره لانجے ختمیږی، او خبره يو طرفته کیږی۔

او بل پدے کی عدل او انصاف دے، که بل چا ته ئے پورد نو يو طرفته به ظلم راځی۔

**فائده** : ځـینـی مـفـسـریـنـو يو قول دا ذکر کړيدے چه دا خطاب رعيت ته دے چه د امراؤ سره ئے کـلـه اخـتـلاف راشی، نو هغوی په کتاب او سنت ته راکاری او هرچه د عوامو او د عـلـمـاؤ تـرمـينځ اختلاف دے نو هغے ته نهٔ دے شامل ځکه چه مقلد د مجتهد سره تنازع (جـگـړه) نشـی کـولے؟ مـگـر دا خبـره يو خو د قرآن کريم د الفاظو د عموم خلاف ده، او بل طرفتـه مـحـقـقـينو مفسرينو دا تصـريـحات کړيدی چه دا خطاب عام دے او هرچه د عوامو اختـلاف د عـلـمـاؤ سره دے، نـو هغه هم راتلے شی پدے معنیٰ چه کله يو عالم مجتهد او

مفتی یوه مسئله وکړی او د دلیل خلاف وی، نو په امی باندے واجب دی چه تحقیق به کوی او عالِم به دلیل طرفته راکاږی، که دے امی ته د بل عالِم سره دلیل ملاؤ شو نو دے علم والا وګرزیدو، نو ددهٔ اختلاف د دغه مخکنی عالِم سره صحیح کیږی۔ او الله تعالیٰ عوامو ته هم په علم باندے امر کړیدے ﴿ فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ ځکه چه علم دے ته وائی چه بنده مسئله سره د دلیل شرعی نه زده کړی۔ (احسن الکلام)

| |
|---|
| اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يَزْعُمُوْنَ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا بِمَا |
| آیا تهٔ نهٔ ګورے هغه کسانو ته چه ګمان کوی دوی چه بیشکه دوی ایمان لری په هغه کتاب |
| اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَا اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيْدُوْنَ |
| چه نازل کړے شویدے تا ته او په هغه کتاب چه نازل شویدے مخکی ستا نه، اراده لری دوی |
| اَنْ يَّتَحَاكَمُوْا اِلَى الطَّاغُوْتِ وَقَدْ اُمِرُوْا اَنْ يَّكْفُرُوْا |
| چه فیصله یوسی طرف د شیطان ته او حال دا چه حکم شویدے دوی ته چه کفر به کوی |
| بِهٖ وَيُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّضِلَّهُمْ ضَلٰلًا بَعِيْدًا ﴿۶۰﴾ |
| په دهٔ باندے او اراده لری شیطان چه ګمراه کړی دوی لره په ګمراهئ لرے سره (د حق نه)۔ |

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ منافقانو ته زجرونه ورکوی چه دوی ددے قوانینو مخالفت کوی او مؤمنانو ته تنبیه ورکوی چه د منافقانو په شان جوړ نشئ چه هسے د ایمان دعوه مو کړی وی او چه کله څه مشکل راشی نو بیا خپل ایمان پریدئ د دنیا دپاره، او غیر الله ته فیصله یوسئ، د ایمان تقاضا دا ده چه بنده به هر وخت کی د الله د حکم تابع وی۔

**ربط** : الله تعالیٰ قانون مقرر کړیدے نو منافقان پکی د خپل خان نه قوانین ایږدی او د غیر الله قانون ته فیصلے وړی نو د هغوی بد حال بیانوی۔

## شان نزول

مفسرینو کرامو دلته ځینی تفسیری روایات ذکر کړیدی چه تقریباً څلور یا پنځو ته رسیږی چه هغه زاد المسیر (۲/۱۴۵) التفسیر الکبیر (۱۰/۱۵۳) او اسباب النزول د واحدی ص (۱۰۶) کی ذکر دی مګر مشهور روایت پکی د عبد الله بن عباس رضی الله

عنهما دے چه یوه ورځ د یو منافق (د بِشر په نوم) او د یو یهودي په یو شي باندې جګړه راغله، نو یهودي وویل چه فیصله به رسول الله ﷺ ته وسو (ځکه چه هغه ته معلومه وه چه رسول الله ﷺ رشوت نهٔ اخلي) او منافق وویل چه فیصلې دپاره کعب بن الاشرف یهودي (ملا) ته ورځو (دے دپاره چه هغه ته څه رشوت ورکړي او فیصله دهٔ په حق کې وکړي) خو یهودي ورسره ونهٔ منله، آخر دا چه مجبوراً رسول الله ﷺ ته د فیصلې دپاره ورغلل۔ نو رسول الله ﷺ د یهودي دپاره فیصله وکړه نو پدے باندے منافق راضي نهٔ وو، کله چه بهر راووتل نو منافق پدے کلك شو چه یو ځل عمر فاروق ﷛ ته هم ورځو چه په هغه فیصله وکړو۔

(رسول الله ﷺ په خپله زمانه کې نور هم ډیر قاضیان مقرر کړي وو یو په هغې کې عمر فاروق ﷛ وو، او بل معاذ بن جبلؓ او بل عقبه بن عامرؓ وو ځکه چه رسول الله ﷺ باندے کارزیات وو او لوی امت وربه غاړه وو، د عقبه بن عامر ﷛ واقعه په احکام القرآن للجصاص ۲۱۳/۲ کې ذکر ده)

(یهودي ورته وویل چه ستاسو نبي یو ځل فیصله وکړه بس دغه کافي ده، مګر منافق پدے کلك وو چه عمر فاروق ﷛ ته هم ورځو، مقصد ئے دا وو چه کیدے شي هغه زما ایمان ته وګوري او زما په حق کې فیصله وکړي، یا په نیماني راله فیصله وکړي، نو د منافق خوئي دا دے چه د الله د رسول په فیصله باندے ناراضه وي، کله چه ورله په قرآن او حدیث فیصله وکړے شي، نو که د هغه په حق کې وي خوشحاله وي او چه کله د هغه په حق کې نهٔ وي، نو بیا وائي په شریعت فیصله ونشوه او په قرآن او حدیث ئے بد ګماني پیدا شي)

کله چه عمر فاروقؓ ته ورسیدل نو یهودي ورله خبر ورکړو چه رسول الله (ﷺ) زمونږ فیصله یو ځل کړیده، هغه د منافق نه تحقیق وکړو نو هغه وویل چه آؤ یو ځل شویده) نو عمر فاروق ﷛ کورته ننوتو او توره ئے راوښکله او د منافق څټ ئے پرے ووهلو او وے ویل :

(هٰكَذَا أَقْضِيْ بَيْنَ مَنْ لَمْ يَرْضَ بِقَضَاءِ اللّٰهِ وَقَضَاءِ رَسُوْلِهٖ)۔

(تفسير البغوي ۲۴۲/۲ طبع دار طيبة)

زهٔ دغه شان فیصله کوم د هغه چا ترمینځ چه د الله او د رسول په فیصله باندے نهٔ راضي کیږي۔ (وجه دا وه چه دا پدے وخت کې مرتد شویدے ځکه چه کلمه ئے وئیلے ده او د رسول الله ﷺ په فیصله نهٔ راضي کیږي او مرتد واجب القتل وي) نو پدے کې دا آیتونه نازل

شو او په ځينې روايتونو کې راغلي دي چه جبريل عليه السلام وفرمايل :
[إِنَّ عُمَرَ فَرَّقَ بَيْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ] عمر فاروق رضي الله عنه د حق او د باطل ترمينځ جدائي راوسته نو پدې وجه ورته رسول الله ﷺ د (الفاروق) لقب ورکړو . (روح المعاني ٦٧/٥)
نو د بِشر منافق خپلوان رسول الله ﷺ ته راغلل او شکايت ئې وکړو چه زمونږ يو مؤمن عمر فاروق رضي الله عنه وژلے دے او مونږ ته دِ دے ديت راکړے شي، تپوس وشو چه تاسو هغه ته فيصله ولے ورله ؟ نو هغوی ووئيل چه زمونږ خو احسان او جوړجاړے مقصد وو، او د رسول الله ﷺ مخالفت مقصد نهٔ وو، نو الله پدے آيتونو کې په دغه منافق او د هغه په خپلوانو منافقانو ئې هم رد وکړو. او د عمر فاروق رضي الله عنه د خبرے تصديق ئې وکړو او وے فرمايل چه پدے منافقانو به دغه شان نور مصيبتونه هم راځي.
أَلَمْ تَرَ : پدے کې تعجيب دے (خلك په تعجب کې اچول دي) چه دے خلکو څنګه د متناقضينو ترمينځ جمع والے کړيدے چه دعوه د ايمان لري او بيا فيصلے طاغوت (باطل قانون) ته وړي.
يَزْعُمُونَ : زعم لفظ کله په معنیٰ د مطلق وينا سره، او کله په معنیٰ د باطلے او دروغژنے خبرے سره، او کله په معنیٰ د حقے خبرے سره استعماليږي، ابن دُرَيد وائي ددے په باطل قول کې استعمال زيات دے آه، اکثر استعمال ئې په شکي خبرو کې کيږي او پدے مقام کې ترے بې دليله وينا مراد ده. (روح المعاني ٦٧/٥)
يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ : دلته د ارادے نه مراد عزم (مضبوط اراده) ده او پدے کې اشاره ده چه طاغوت ته د فيصلے وروړلو اراده ګناه ده نو تحاکم خو يقيناً ګناه ده (ابوالسعود، قاسمي)
طاغوت : نه مراد هر معبود من دون الله دے چه د هغه عبادت کيږي يا ئې د الله په خلاف اطاعت کيږي. دلته طاغوت د قرآن او سنت خلاف قانون ته وائي لکه حافظ ابن کثيرؒ وئيلي دي چه (مَاسِوَى الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ مِنَ الْبَاطِلِ) د قرآن او حديث نه په غير چه کوم باطل قوانين دي هغے ته فيصله وروړل طاغوت ته فيصله وړل دي. (ابن كثير ٣٤٦/٢)
لکه دلته مفسرينو طاغوت کعب بن الاشرف او د هغه قانون ته وئيلے دے.
دا پدے خبره دليل دے چه د طاغوت اطلاق په انسان او په بت او شيطان او دغه شان په طاغوتي نظامونو کيږي. او د باطل قيد ځکه لګوی چه کله د قرآن او حديث نه سوی نظام اداری او امور اداريه وی چه د قرآن او حديث خلاف نهٔ وی او څوك ئې د خپل د ژوند

ترتیب کولو دپاره اړدی نو دا طاغوت نۀ دے۔
دغه څیزونو ته طاغوت څکه وائی چه په طاغوت کی معنیٰ د ګمراهئ پرته ده او دا څیزونه او کارونه هم انسان د حقے لارے نه اړوی۔
او دا آیتونه زمونږ ددے زمانے سره ډیر ښه لګیږی چه ډیر خلك دعوه د قرآن او حدیث کوی او بیا فیصلے د لاډمیکالے په قانون کوی او د الله شریعت بدلوی۔
وَقَدْ اُمِرُوْا : یعنی الله تعالیٰ دوی ته دا حکم کړیدے چه په طاغوت به کفر کوی او ددے نه به انکار کوی او د الله شرع ته به تسلیمیږی او دا امر الله تعالیٰ په سورت بقره (۲۵۶) آیت ﴿ فَمَنْ یَّکْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَیُؤْمِنْ بِاللّٰهِ ﴾ او په سورتِ نحل (۳۶) آیت کی کړیدے ﴿ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ ﴾ یواځے د الله بندګیٔ وکړئ او د طاغوت (د غیر الله د بندګیٔ) نه جدا شئ۔ ﴿ وَالَّذِیْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ اَنْ یَّعْبُدُوْهَا وَاَنَابُوْا اِلَی اللّٰهِ ﴾ (الزمر: ۱۷) دا اګرکه جمله خبریه ده لیکن په معنیٰ کی ئے حکم دے۔
**فائده** : دلته تفسیر قاسمیؒ یوه فرع لیکلے ده چه کله د دوه کسانو اختلاف راشی، یو تن ورته ووائی چه دلته یو عالِم او حاکِم د مسلمانانو دے هغه باندے فیصله کوو، او بل انکار وکړی او ووائی چه راځه په یو بل قانون فیصله کوو (چه هغه د انګریزانو قانون وی) نو دا سړے پدے خبره کافر کیږی څکه چه پدے کار کی د کافرانو په شِعار باندے راضی کیدل دی انتهیٰ۔
اَنْ یَّکْفُرُوْا بِهٖ : د کفر نه مراد انکار دے او د طاغوتی قانون نه د انکار صورت دا دے چه د هغے تعظیم به نۀ کوی، په هغے به فیصلے نکوی، البته کله کله د مجبورتیا په صورت کی دوے بل ورته راکاړی نو په هغے باندے بنده نۀ کافر کیږی دا په هغه صورت کی ده چه انسان ته قرآن او حدیث ښه معلوم وی او بیا هغه پریدی او بل نظام او قانون ته فیصله وړی لکه مخکی د قاسمیؒ په عبارت کی معلومه شوه۔
ضَلٰلًا بَعِیْدًا : وجه دا ده چه د هدایت چینه خو قرآن او حدیث دے او کله چه بنده دا قصداً شاته ګوزار کړل نو دے د هدایت نه ډیر ورانده شو۔

| وَاِذَا قِیْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰی مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَی الرَّسُوْلِ |
| --- |
| او کله چه ووئیلے شی دوی ته راشئ هغه څه ته چه نازل کړے دے الله تعالیٰ او رسول ته |

| رَأَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا ﴿٦١﴾ |
|---|
| نو وینې به ته منافقانو لره چه اوړي به ستا نه په اوړېدو سره۔ |

**تفسیر** : د منافقانو بل بد صفت ذکر کیږي۔

وَإِلَى الرَّسُوْلِ : یعني د هغه په ژوند کې رسول الله ﷺ ته راوبللے شي او د هغه د وفات نه روستو د هغه سنت طریقو ته راوبللے شي۔

يَصُدُّوْنَ عَنْكَ: دا خطاب نبي ﷺ ته او بیا هر مخاطب ته دے چه هغه منافقانو ته د حق دعوت ورکوي۔

صُدُوْدًا : دلته لازم دے او د دوي دا اعراض پدے وجه دے چه دوي د خواهشاتو پسے روان دي او د باطل سره اموخته شویدي۔ (المنار)

دا دلیل دے چه چا باندے دلیل د قرآن او حدیث په اختلافاتو او فیصلو کې بد لګي نو دا منافق دے اګرکه ځان ته هرڅومره بزرګ ووائي۔

| فَكَيْفَ إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيْبَةٌ بِمَا |
|---|
| نو څرنګه به وي دوي کله چه اورسیږي دوي ته یو مصیبت په سبب د هغه ګناهونو |
| قَدَّمَتْ أَيْدِيْهِمْ ثُمَّ جَآءُوْكَ يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ |
| چه مخکې لیږلي دي لاسونو د دوي بیا راشي تا ته چه قسمونه کوي په الله تعالیٰ |
| إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا إِحْسَانًا وَتَوْفِيْقًا ﴿٦٢﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ |
| چه اراده نۀ ده کړے مونږ (په دے کار) مګر د نیکۍ او د جوړ جاړي۔ دا هغه کسان دي |
| يَعْلَمُ اللّٰهُ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ |
| چه پیژني الله تعالیٰ هغه څه چه په زړونو د دوي کې دي نو مخ واړوه د دوي نه |
| وَعِظْهُمْ وَقُلْ لَّهُمْ فِيْٓ أَنْفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيْغًا ﴿٦٣﴾ |
| او نصیحت اوکړه دوي ته او وایه دوي ته په باره د ځانونو د دوي کې خبره تاثیر ناکه۔ |

**تفسیر** : پدے کې رسول الله ﷺ ته زیرے ورکړے کیږي چه دے منافقانوته به مصیبتونه راپیښیږي او ستا خوا ته به راځي او د خپل اخلاص او ایمان اظهار به کوي، او

قسمونه به خوری چه د دوی مقصد د دوارو ډلو په مابین کی صلح کول وو.

نو پدے آیت کی الله تعالیٰ د دوی جهالت او بی همتی بیانوی چه دومره خو بیکاره دی چه په خپل اعراض باندے مضبوط پاتے کیدے هم نشی بلکه بیرته تا ته محتاج کیږی. (المنار)

فَكَيْفَ : ددے مدخول پټ دے اَیْ فَكَيْفَ يَحْتَالُوْنَ . یا فَكَيْفَ حَالُهُمْ. نو دوی به څنګه حیلے جوړوی کله چه دوی ته مصیبتونه ورسیږی، یا - د دوی به څه حال وی کله چه دوی ته د دوی د ګناهونو په وجه مصیبتونه ورسیږی.

نو پدے کی د دوی بی عقلی ذکر ده یعنی که دا خلك عقلمند وے نو کوم ایمان ئے چه راښکاره کړیدے هغه به ئے مضبوط نیولے وے، دے دپاره چه د هغے نه ئے پوره فائده اخستے وے څکه چه عاقل انسان ته دا معلومه ده چه دغه حال چه دوی پکی طاغوت ته فیصله وړل غوره کړیدی، دا د دوی دپاره همیشه نۀ پاتی کیږی، او نزدے ده چه دوی به د هغے نه نقل شی او په بل مصیبت کی به واقع شی چه په هغے کی به مجبوره وی چه رسول الله ﷺ ته رجوع وکړی، دے دپاره چه هغه ورله مسئله حل کړی او دوی به بیا د خپل اعراض کولو عذرونه پیش کوی چه مونږ غیر الله ته فیصله څکه وړله چه زمونږ د خیر او د احسان اراده وه. خو دوی دومره بی وقوف دی چه په خپل صدود او اعراض باندے مضبوط نشی پاتی کیدے نو اُوس دوی د لوی سزا مستحق دی دے دپاره چه د بل چا دپاره عبرت وګرځی. (المنار)

نو پدے کی یوه اشاره ده د بِشْر منافق واقعے ته چه هغه ته د عمر فاروق رضی الله عنه په لاس مصیبت ورسیدو، قتل شو. او دویم اشاره ده چه هر مُلك چه په هغے کی طاغوتی نظام موجود وی نو هلته به مصیبتونه ډیر وی، او نظام شرعی کی ټول امن وامان دے، مال او عزت به محفوظ وی، او قتل وقتال به نۀ وی.

اِنْ اَرَدْنَا : اَیْ بِالتَّحَاكُمِ یعنی زمونږ پدے فیصله وړلو سره د احسان اراده وه چه مونږ یهودی سره احسان وکړو، او یهودی ئے مونږ سره وکړی، او احسانی فیصله وشی، او توفیق مو غرض وو چه هغه اصلاح او جوړ جاړے دے. نو دے نه معلومه شوه چه د منافقانو عادت دا دے چه د هغوی په زړه کی یوه خبره وی، او په خُله باندے وائی چه زمونږ بل مطلب وو او ښه اراده مو وه. یعنی د قرآن او د حدیث او د الله د حکم په مخالفت کی ورله باطل عذرونه او بهانے ډیرے ورځی.

## د منافقانو مصیبتونه

منافقانو ته چه په هره موقعه کې کوم مصیبت رسیدلے دے نو رسول الله ﷺ ته ئے په دروغه قسمونه کړیدي چه د هغے په وجه ئے خپل ځانونه پاك کړیدي لکه:

(۱) کله چه دوی مسجد ضِرَار د فساد دپاره جوړ کړو او رسول الله ﷺ د تبوك د غزا نه په واپسئ کې هغه وران کړو، نو دوی راغلل او قسمونه ئے وکړل چه دا خو مونږ د اصلاح دپاره جوړ کړے وو.

(۲) د تبوك غزا ته دوی لاړ نشو نو بیا ئے رسول الله ﷺ ته د دروغو عذرونه کول.

(۳) په بعض غزواتو کې دوی د کفر خبرے کړے وے لکه په سورة التوبه (۷۶) او سورة المنافقون (۸/٦) آیتونو کې د هغے واقعات راځي چه الله تعالیٰ دوی رسوا کړل.

(٤) دوی دا ویلی وو چه مونږ به مسلمانان د مدینے نه وباسو کله چه رسول الله ﷺ ته ددے خبر ورکړے شو نو دوی راغلل قسمونه ئے وکړل چه دا خبرے مونږ نهٔ دي کړي مگر الله تعالیٰ په آیتونو نازلولو سره دوی رسوا کړل. (المنافقون۸/٦)

يَعْلَمُ اللّٰهُ : یعنی دے کسانو خو ځان ته مؤمنان وویل او د احسان او توفیق اراده ئے رابنکاره کړه، لیکن الله پرے رد وکړو چه الله د دوی د زړونو نفاق پیژني، لیکن د مصلحت تقاضا دا ده چه اے نبی! ته دوی ته اُوس څه سزا ورنکړے، او صرف د اشارے په ذریعه په دهمکی او نصیحت باندے اکتفاء اُوکړے، او دوی ته یوه داسے خبره اُوکړے چه د دوی په زړونو باندے اثر گوزار کړي چه دوی غمجن جوړ کړي او د دوی په زړونو کې یره پریوزي مثلًا دا اُووائے چه د نفاق انجام ډیر خراب وي، او کله قتل ته خبره رسیږي، او داسے وویل شي چه د دوی او د مشرکانو ترمینځ هیڅ فرق نشته.

## د اعراض صورتونه

فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ : اَیْ عَنْ عُقُوْبَتِهِمْ، وَلَا تُبَالِ عَلَیْهِمْ. دا د منافقانو بله سزا ده. (۱) یعنی د دوی د عذاب ورکولو نه مخ واړوه، (۲) او د دوی په ایمان نهٔ راوړلو باك مهٔ کوه. (۳) دارنگه په فراخه او کولاؤ تندی ورته مهٔ گوره، دے دپاره چه دوی پو هه شي چه نبی کریم ﷺ رانه خفه دے نو ددے خطره شته چه زمونږ په مقابل کې چرته جهاد اعلان کړي.

وَعِظْهُمْ : یعنی وعظ ورته کوه، اَیْ اِنْهَهُمْ عَمَّا فِیْ قُلُوْبِهِمْ مِنَ الشَّرِّ . یعنی د دوی په زړونو

کي چه کوم شر دے د هغے نه ئے منع کړه چه اے خلکو ! دا کار مهٔ کوئ، د الله حکم مو مات کړو غرق او تباه به شئ.

وَقُلْ لَّهُمْ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيْغًا : بنا په يو تفسير (فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ) متعلق دے د (بَلِيْغًا) پورے يعنى داسے خبره ورته وكړه چه د دوى په نفسونو كى تاثير وكړى. يا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ معنىٰ دا ده چه د دوى د نفسونو او زړونو په باره كى ورته تاثيرناكے خبرے وكړه.

د تاثيرى خبرو يو صورت دا هم دے چه د دنيا د زهد او بى رغبتئ او د مرګ خبرے ورته وشى ځكه چه منافق د دنيا په مينه مست وى او د آخرت او د مرګ نه بيخى غافل وى.

❁ او دارنګه د دنيا شرمونه به ورته ياد كړے شى چه منافقان الله تعالىٰ په دنيا كى هم شرموى لكه په دغه واقعه كى ئے وشرمول.

❁ دارنګه داسے به ورته ووېل شى چه په خپلو ځانونو باندے رحم وكړئ او په لوى لاس خپل ځانونه د دنيا او د آخرت په مصيبتونو باندے مهٔ اخته كوئ.

❁ او داسے به ورته ووېل شى چه الله تعالىٰ ستاسو په زړونو پو هه دے، د نفاق نه لاس واخلئ هسے نهٔ چه ستاسو په باره كى هم د ښكاره كافرانو په شان د جهاد امر وكړى.

دے نه معلومه شوه چه هرچا ته به د خپل شان مطابق بيان كولے شى.

د فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ بله معنىٰ ده يواځے ورته خبره وكړه ځكه چه منافق د خلكو نه ډير متاثره كيږى نو كيدے شى چه په يواځے ځاى كى پرے اثر وشى.

| وَمَا اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ |
|---|
| او نهٔ دے رالېږلے مونږ هيڅ رسول مګر ددے دپاره چه تابعدارى ئے اُوكړے شى |
| بِاِذْنِ اللّٰهِ وَلَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ |
| په حكم د الله سره، او كه چرته دوى كله چه ظلم كړے وے دوى په خپلو ځانونو باندے |
| جَآءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ |
| راغلى وے تا ته او بخنه ئے غوختلے وے د الله نه او بخنه غوختلے وے د دوى دپاره رسول |
| لَوَجَدُوا اللّٰهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا ﴿٦٤﴾ |
| نو خامخا موندلى به وے دوى الله تعالىٰ لره توبه قبلونكے رحم كونكے. |

**تفسیر : ربط** : دا آیت د مخکنی آیتونو دپاره د دلیل په شان دے۔ یعنی څوک چه د الله رسول ﷺ ته فیصلے نهٔ وړی نو بیا الله تعالیٰ خپل رسول د څه دپاره رالیږلے دے. بیا خو مقصد د رسالت خراب شو۔

نو دلته الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ د اطاعت زیات تاکید کړیدے چه مونږ یو رسول ددے دپاره رالیږو چه د هغه اطاعت اُوکړے شی، او هرکله چه د هغه اطاعت ونکړے شی نو بیا ددے رسول د رالیږلو فائده څه شوه، او دا شے بغیر د الله د توفیق نه نهٔ حاصلیږی، معلومه شوه چه د رسول اطاعت فرض دے او د هغه د فرضیت نه انکار کفر دے۔

باذن الله : دا قید ولے لګوی چه دا طاعت په غیر د اذن یعنی توفیق د الله نه نشی کیدے، دارنګه اذن شرعی هم شته چه الله تعالیٰ د پیغمبر په اطاعت باندے حکم هم کړیدے او دا قید پکی ښکاره وائی چه د مؤمنانو د زړونو نه فخر وځی، د دوی د الله د نبی د اطاعت کولو سره په زړه کی فخر او کبر پیدا نشی او خپل کمال ونه ګنړی بلکه ورته وئیلے شی چه دا کار تاسو د الله په توفیق سره کوئ۔ او منافقانو ته هم پکی اشاره ده چه تاسو چه ددے نبی طاعت نکوئ نو تاسو نه د الله توفیق اخستلے شویدے۔

وَلَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْا : پدے کی منافقانو ته د توبی ترغیب ورکوی ښکه چه دے منافقانو د رسول الله ﷺ په ځای کاهنان او طاغوتونه خپل فیصله کونکے منی، نو دوی په خپلو ځانونو ډیر لوئی ظلم اُوکړو چه د نفاق د عذاب سره د الله د یو بل عذاب مستحق هم شو، نو الله اُوس دوی ته د توبی دعوت ورکوی فرمائی : چه ددے عذاب نه د بچ کیدو صرف یوه لاره وه چه د خپل نفاق او ددے لوئی جرم نه د توبی ویستلو دپاره ستا خوا ته راغلی وے، او د الله نه ئے بخښنه طلب کړے وے او تا هم د دوی دپاره بخښنه طلب کړے وے او په خپلو کړو باندے پښیمانه شوی وے، نو الله به د دوی ګناهونه معاف کړی وے۔

ظَلَمُوْا : دلته د ظلم نه مراد د رسول الله ﷺ د تحاکم او اطاعت نه مخ اړول لکه منافقانو دغه کار کړے وو۔

جَآءُوْكَ : د رسول الله ﷺ په زمانه کی دا قانون وو چه یو تن نه به ګناه وشوه او رسول الله ﷺ ته به راغلو چه ما دپاره د الله نه بخښنه وغواړه نو هغه به ورله دعا وغوښته نو الله به معاف کړو ښکه چه د رسول الله ﷺ دعا ډیره تاثیرناکه وه۔ او کله چه رسول الله ﷺ وفات شو نو صرف الله تعالیٰ نه به بخښنه غوښتے شی. او د رسول الله ﷺ خوا ته ورتلل نشته ښکه چه هغه اُوس په دنیا کی ژوندے نهٔ دے۔ البته د هغه نائبان علماء موجود دی، بو تیلک

عالِم ته یو گناهگار انسان ورشي او دا ورته ووائی چه زما دپاره د الله نه بخښنه وغواړه او هغه ورله دعا وغواړی نو امید دے چه الله تعالیٰ به ئے معاف کړی دے ته توسل بِدُعَاءِ الْحَيِّ (د ژوندی په دعا سره وسیله نیول) وائی او دا هم شرعی وسیله ده.

د رسول الله ﷺ د استغفار او دعاگانو حاصلولو یوه بله طریقه هم شته هغه دا چه رسول الله ﷺ کومے دعاگانے او استغفارونه کړیدی هغه تهٔ ووایه نو الله به ئے تا ته هم درکړی، دارنگه کومو کارونو په باره کی چه رسول الله ﷺ دعاگانے کړیدی هغه کارونه ځان کی راولـه نو هغـه فضائل به درته حاصل شی لکه رسول الله ﷺ فرمایلی دی هغه سړے دے الله تعالیٰ تروتازه کړی چه زما خبره واوری او بیا ئے یاده کړی او خلکو ته ئے بیان کړی. دارنگه فرمایلی ئے دی: الله دِ دے په هغه چا رحم وکړی چه د ماز یگر مانځه نه مخکی ئے څلور رکعاتـه وکړل. (الله دے په هغه تن رحم وکړی چه نرم وی کله چه اخستل خرڅول کوی او نرم وی کله چه چا نه قرض غواړی. نو د رسول الله ﷺ دعاگانے خو الله تعالیٰ ضرور قبلوی، نو د هغے نه د فائدے حاصلولو دغه طریقه یاده ساتل پکار دی.

## د بدعتیانو طرز او د اعرابی د قصے نه غلط استدلال

بعض مبتدعین وائی چه د رسول الله ﷺ قبر ته راتلل او د بخنے دعا طلب کول داسے دی لکه چه د هغه په ژوند کی د هغه خوا ته راتلل او بخنه طلب کول وو، ځکه چه دوی رسول الله ﷺ په قبر کی داسے ژوندے گڼړی لکه څنگه چه د مرگ نه مخکی وو. وائی چه صرف یوه پرده حائل شویده او ددے آیت نه دلیل نیسی. په قرآن کریم کی دا تحریف معنوی دے. او د رسول الله ﷺ د وفات په باره کی د قرآن او سنت سراسر خلاف عقیده ده. او کوم روایت چه عتبیؒ ذکر کړیدے او بعض مفسرینو نقل کړے چه یو اعرابی راغے او اُوښه ئے د رسول الله ﷺ د قبر خوا کی وتړله او بیا قبر ته متوجه شو او د قبر نه ئے بخنه وغوښته (يَا خَيْرَ مَنْ دُفِنَتْ بِالْقَاعِ أَعْظُمُهُ - فَطَابَ مِنْ طِيبِهِنَّ الْقَاعُ وَالْأَكَمُ)

اشعار ئے وویل. لکه هغه روایت کی مختلف الفاظ نقل دی چه هغه خوب ولیدو چه ستا بخنه وشوه. او دا روایت بیهقیؒ په شعب الایمان کی په اسناد مظلم سره ذکر کړیدے، نو دغه روایت منکرت او دروغ دی چه هیڅ صحیح سند نهٔ لری، او د یو اعرابی عمل دے چه هیڅ حالت ئے نهٔ دے معلوم. لکه ددے تفصیل په الصارم المنکی ص (۲۷۴) د علامه ابن عبد الهادی المتوفی (٧٤٤) کی وگوره چه هغه په سبکیؒ باندے رد کی لیکلے دے

چه هغه وئیلی دی چه د رسول الله ﷺ قبر خوا ته راتلل او د هغه نه بخښنه غوښتل مستحب دی، مګر دا خبره د هغه سراسر غلطه ده چه دغه کتاب کی ئے پوره تفصیل موجود دے. او فتاوی الدین الخالص (۱) او (۲) تفصیلا وګورئ.

یو خو پدے طرز باندے صحابه کرامؓ هیڅکله داسے عمل نهٔ دے کړے چه د رسول الله ﷺ قبر خوا ته ورغلی وی او د هغه نه ئے دعا طلب کړی وی.

بله دا چه دلته ئے (جاؤوك) وئیلی دے او (جَاؤوا الی قَبرِكَ) (ستا قبر خوا ته راشی) ئے نهٔ دے وئیلے، دا دلیل دے چه دا خبره د رسول الله ﷺ د ژوند پورے خاص وه لکه د منافقانو دغه واقعه پرے دلیل دے. او د رسول الله ﷺ په قبر کی ژوند اګرکه شته لیکن هغه برزخی ژوند دے او د دنیا په لحاظ هغه وفات دے. نو په آیت باندے په داسے طریقه عمل کول چه صحابه کرامؓ پرے نهٔ وی کړے دا ناروا ده لکه وګوره الصارم المنکی ص (۲۷٤)

بله دا چه دلته الله تعالیٰ دعوت ورکړے که د چا نه څه جرم وشی نو هغه دے رسول الله ﷺ ته راشی چه هغه ورله بخنه وغواړی نو څوك چه د رسول الله ﷺ په ژوند کی د هغه د استغفار دپاره ورنشی نو الله تعالیٰ د هغوی بدی بیانوی نو کله چه هغه وفات شو او د هغه قبر خوا ته څوك ورنشی نو آیا هغه به هم د منافقانو سره مشابه وی، نو په امت کی څومره خلك جرمونه کوی او ډیر خلك د هغه قبر خوا ته نهٔ ورځی چه د هغه نه بخښنه طلب کړی، نو آیا هغه به ګنے د الله دا حکم نهٔ وی پرینبے؟ او صرف دا بدعتیان دے پرے عمل کوی؟! دا څومره عجیبه خبره ده، معلومه شوه چه دا آیت د رسول الله ﷺ د زمانے پورے خاص وو او عموم پکی نشته ورنه تول امت به په حرج کی پریوزی.

الصارم المنکی (۳۱۸) طبع مؤسسة الریان بیروت)

بله دا چه پدے آیت کی دغه تفسیر اخستو سره د الله د نبی د حدیث سره تهکراؤ او تضاد راځی څکه چه که د هر ګناهګار دپاره دا خبره مشروع شی چه د بخنے طلب کولو دپاره به د رسول الله ﷺ قبر خوا ته ورځی نو بیا خو به د رسول الله ﷺ قبر ددے مجرمانو دپاره لوی عید (اختر) وګرځی کوم نه چه رسول الله ﷺ پناه غوښتے وه

(اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْ قَبْرِیْ وَثَنًا یُعْبَدُ)

اے الله! زما د قبر نه بت مهٔ جوړوه چه هلته بندګیانی شروع شی. المصدر السابق)

نو معلومه شوه چه قبر نه استغفارونه او مددونه غوښتل بدعت دے او کله په شرك کی داخلیږی، او رسول الله ﷺ ته د عبودیت عاجزی او د هغه سره د عبودیت محبت ساتل

شرك دے، ځکه چه غیر الله ته سر ټکتنه کول او سجده کول او ځان ذلیله کول او عاجزی کول دا په شرك کی داخلیږی، رسول الله ﷺ ته الله تعالیٰ ډیر قدر او مرتبه ورکړیده، د هغه طاعت شته او د هغه سره دینی محبت ساتل فرض دی، او د هغه اکرام او تعظیم کول شته لیکن د هغه عبادت کول شرك دے۔

| فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ |
|---|
| پس داسے نهٔ ده قسم دے زما په رب ستا چه دوی مؤمنان نهٔ دی تر دے چه فیصله کونکے جوړ کړی تا لره |
| فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا |
| په هغه څه کی چه اختلاف راغلے دے د دوی ترمینځ بیا به نهٔ مونده کوی |
| فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا ﴿٦٥﴾ |
| په خپلو زړونو کی تنګسیا د هغه څه نه چه تا فیصله کړے او غاړهٔ کیدی په غاړه کیخودو سره۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی هم د رسول الله ﷺ اطاعت بیانیږی او څوك چه د هغه اطاعت نهٔ کوی د هغوی نحوست (سپیرهٔ والے) بیانیږی چه د ایمان نه خلاصیږی۔

شان نزول

مفسرینو کرامو ددے آیتونو په شان نزول کی دوه روایتونه ذکر کړیدی :

۱ - یو روایت دغه مخکنئ واقعه د منافق او یهودی وه۔ تفسیر الطبری ۱۵۹/٤)

ددے سند اګرکه ضعیف دے لیکن مجاهدؒ ددے تائید کړیدے، او طبریؒ دے ته ترجیح ورکړیده، دے دپاره چه ددے تهولو تعلق د یو سبب سره شی۔ او دغه روایت په اسحاق بن راهویهٔ په خپل تفسیر کی په اسناد صحیح سره د شعبیؒ نه نقل کړیده۔ (قاسمی)

۲ - روایت دا دے چه یوه ورځ د زبیر العوام ؓ د یو انصاری صحابی سره د اوبو په لختی جګړه وه نو اول رسول الله ﷺ د مصالحت په طریقه او احسانی فیصله وکړه چه (اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ اَرْسِلِ الْمَاءَ اِلٰى جَارِكَ) اے زبیره ! خپل باغ ته اوبه ورکړه او بیا ئے د ګاونډی باغ ته ورخوشی کړه نو هغه انصاری ناراضه شو او وے ویل چه تا ددهٔ په حق کی ځکه فیصله وکړه چه دا ستا د ترور ځوی وو۔ بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : چه اے زبیره ! خپل باغ اوبه کړه تردے چه اوبه د پولو سرونو ته وخیژی (یعنی خپل حق پوره واخله) بیا اوبه ګاونډی ته

خوشي كړه. زبير ﷺ فرمائي: زما گمان دے چه دا آيت به په همدغه واقعه كې نازل شوے وي (صحيح بخاري سورة النساء) وسنن النسائي (۳۰۷/۲).
پدے آيت كې ډير تاكيدات دي. يو ئے نفي د ايمان مخكې كړيده فلا اَیْ لَيْسَ الْاَمْرُ كما يَزْعُمُوْنَ اَنَّهُمْ آمَنُوْا) (البحر المحيط ۵۹۶/۳) . داسے نۀ ده څنګه چه دوی ګمان كوی چه دوی مؤمنان دي. خو دوی دروغجن دي. دویم: (وربك) ئے قسم راوړو او اضافت ئے رسول الله ﷺ ته وكړو پدے كې زيات تاكيد دے، او اشاره ده د رسول الله ﷺ شرافت او قدر ته.
لَا يُؤْمِنُوْنَ : دے كې ضمير ټول امت ته راجع دے چه ټول امت مؤمنان نۀ دي ترڅو چه راتلونكې صفات پكې پيدا شوی نۀ وي او دا اجماعي مسئله ده.
حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ : د ايمان د راوړو شرطونه دا دي چه رسول الله ﷺ به حاكم ګرزوي. يعني فيصلے تا له راوړي.

## د فيصلے صورتونه

بيا فيصله كله په اختلافي خبرو كې وي چه دا به رسول الله ﷺ او د هغه سنت ته واپس كولے شي، او فيصله كله دے ته هم وائي چه رسول الله ﷺ يو حكم وكړي چه داسے وكړئ نو د هغے سره به اختلاف نۀ كوی بلكه هغه به په سر سترګو مني.
فِيْمَا : اَیْ مِنْ اُمُوْرِ الدِّيْنِ وَالدُّنْيَا سَوَاءٌ كَانَتْ مُتَعَلِّقَةً بِالْاِيْمَانِ اَوْ بِالْفُرُوْعِ.(بدائع)
يعني هغه كارونه عام دي كه د دين سره متعلق دي او كه د دنيا سره، دارنګه د ايمانياتو سره وي او كه د مسائل شرعيه ؤ سره، په ټولو مسائلو كې به رسول الله ﷺ حاكم او فيصله كونكے مني.
شَجَرَ بَيْنَهُمْ : اَیْ وَقَعَ التَّشَاجُرُ . يعني اختلاف پكې واقع شويدے. شَجَرَ كې معنیٰ د فعل لازم ده. يعني دغه مسئله اختلافي شويده د دوی ترمينځ، يو وائي جائز ده او بل وائي ناروا، يو ورته حلاله او بل ورته حرامه وائي، يو وائي زما ده او بل وائي زما. نو يو شرط دا شو چه فيصله به تا باندے كوی، نۀ په نرخ او رواج او بل قانون باندے، او بل دا چه په هره مسئله كې به ئے كوی. شَجَرَ كې معنیٰ د اختلاط (ګډوډ والی) او اختلاف ده.
دريم شرط :
ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْ اَنْفُسِهِمْ : تا چه كومه فيصله وكړه نو دوی به په سينو كې هيڅ قسم تنګی او شك او تردد نۀ محسوس كوی، يعني باطناً به ورته منقاد كيږي. مثلاً رسول الله

ﷺ وفرمایل: چه داسې کار وکړئ، یا دا شې حلال دې. نو زړه به ورته نۀ راتنګوی چه دا خو زما د غیرت خلاف ده، یا دا فیصله د ظلم ده، په زړه کې به هم دا خبره نۀ راولي. لکه رسول الله ﷺ فیصله وکړه چه جینکو له میراث ورکړئ، نو یو تن باندې دا خبره بده ولګې او زړه ئې راتنګ شي چه خور لور له به څوك میراث ورکړي، نو دا انسان بې ایمانه دې. رسول الله ﷺ فرمائي: کله چه یو تن د یوې جینۍ سره نکاح کوی نو ورته دې وګوری (فَانْظُرْ اِلَيْهَا) نو که دۀ ته وویل شي چه فلانې به ستا خور لور وینی، بیا به ئې په نکاح واخلي یا نۀ نو که د هغه زړه دې خبرې ته راتنګ شو او نفرت ئې وکړو نو پوهه شه چه دۀ کې ایمان نشته څکه چه رسول الله ﷺ اجازه ورکړیده او دې ترې نفرت کوی.

دا داسې آیت دې چه بنده په خپل ځان ویرېږی چه مونږ هم د شریعت په ډېرو مسائلو کې داسې نفرتي انداز اختیاره وو، نو دې خبرې ته به هر مسلمان فکر کوی.

دارنګه که یو حدیث راشي او هغه د رواج، او عادت او د پیسو خلاف وی، یا د پارټۍ او د قاعدې او د اصولو او د مذهب خلاف وی، نو ډېر خلك ورته زړه راتنګ کړي نو مسلمان به دا کار نکوی.

علامه قاسمیؒ وئیلي دی چه ددې نه مراد دا دې چه په زړه کې به ئې جزم او یقین حاصل وی چه کومه فیصله رسول الله ﷺ وکړه هغه حقه او رشتینې ده او هرچه غیر اختیاری نفرت او میلان دې نو هغه د انسان په وسع کې نۀ دې. (محاسن التاویل ۲/۳۷۶)

**فائده**: صاحب د ((المنار)) لیکلي دی چه انسان کله د یوې ګټې امید لري لیکن کله چه د هغه په خلاف فیصله وشي نو په اول وَهلت کې ددۀ زړه ته غیر اختیاری یو درد ورسیږی پدې وجه الله تعالیٰ دا معاف کړو او لفظ د (ثُمَّ) ئې راوړو چه په روستو والي دلالت کوی چه اګر که ددۀ زړه ته درد رسیدلې دې لیکن کله چه فکر وکړي نو نفس ملامته کړي او د ایمان رڼا ورته راواپس شي نو خوشحاله به شي چه د شریعت فیصله حقه او یقیني ده. اګر که کامل مؤمن د اول وهلة نه دې خبرې ته غاړه اږدی.

بله دا چه:

وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا: (تسلیما) مفعول مطلق راوړو کې اشاره ده دوام او ظاهراً ته یعنی د فیصلې نه روستو به پوره منقاد او غاړه ایخودونکې وی ظاهراً او همیشه دپاره به منقاد وی او هره فیصله کې به د رسول الله ﷺ منی، داسې به نۀ وی چه یوه مسئله کې وائی چه (وَلَنَا) دا زمونږ دلیل دې، او چه بل حدیث راشي نو بیا وائي (وَلَهٗ) دا د فلاني مذهب دلیل

دے، زمونږ دپاره نهٔ دے. هر مسلمان دے دا آیت ځان ته متوجه کړی.
ډیر د حدیثو منکرینو ته چه کله یو حدیث راشی نو زړه ورته راتنګ کړی او وائی چه دا څنګه حدیث دے، دا خو د قرآن خلاف دے، او ډیر عقلانیین پکی وائی چه دا حدیث خو د عقل خلاف دے، او ډیرو جامدو مقلدینو ته هم چه کله یو حدیث مخې ته راشی او د مذهب خلاف وی نو خولے پرے راماتے شی چه دے سره به څه کوو، دا خو زمونږ د اصولو او مذهب خلاف دے نو بیا ترے جوابونه شروع کړی. آیا حدیث د جوابونو دپاره راغلی دی که د منلو دپاره ؟!

۱ – علامه فخر الدین رازیؒ وائی : چه د رسول الله ﷺ هر صحیح حدیث دد ے آیت په ضمن کی راځی او هر هغه شخص چه په الله او د هغه په رسول ایمان لری، په هغه واجب دی چه د رسول الله ﷺ هر صحیح حدیث قبول کړی، او د مذهبی تعصب په وجه هیڅ حدیث رد نکړی، ورنه پدے آیت کی ذکر شوے وعید به هغه ته هم شاملیږی.

۲ – امام ابن القیم رحمه الله په «اعلام الموقعین» کی لیکلی دی چه ته به ډیر خلق اُووینے چه کله یو حدیث د هغه د امام د وینا موافق وی د کوم چه دا تقلید کوی او د هغے د راوی عمل د هغے خلاف وی، نو وائی چه دلیل د راوی روایت دے، د هغه عمل نهٔ دے، او کله چه د راوی عمل د هغه د امام د وینا موافق وی او حدیث د هغے مخالف وی، نو وائی چه راوی د خپل روایت مخالفت پدے وجه کړیدے چه دا حدیث د هغه په نیز منسوخ شویدے، ورنه د هغه دا مخالفت د هغه عدالت ساقطوی.
پدے طریقه هغه خلق په خپل کلام کی په یو ځای کی او په یو باب کی د بدترین تناقض ښکار کیږی، لیکن زمونږ ایمان دے چه د صحیح حدیث د راتلو نه روستو د امت دپاره د هغے د پریخودو هیڅ ګنجائش باقی نهٔ پاتے کیږی.

۳ – شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله فرمائی چه د قرآن او سنت او اجماع په ذریعه دا ثابت شوے حقیقت دے چه الله په خپلو بندګانو باندے د خپل ځان او د خپل رسول اطاعت فرض کړیدے، په اوامر او نواهیو کی الله د رسول الله ﷺ نه سوی پدے امت باندے د هیچا اطاعت فرض کړے نهٔ دے. پدے وجه ابوبکر صدیق ؓ (چه هغه د نبی کریم ﷺ نه روستو په امت کی د ټولو نه غوره انسان وو) به وئیل چه ترڅو زهٔ د الله اطاعت کوم نو تاسو به زما اطاعت کوئ او که زهٔ د الله نافرمانی اُوکړم نو تاسو اطاعت مهٔ کوئ. د امت د ټولو علماؤ پدے اتفاق دے چه د رسول الله ﷺ نه سوی هیڅوک معصوم نشته، پدے

وجه ډیرو ائمه کرامو وئیلي دي چه د هر سړي څه خبرے به منلے کیږي او څه به پریخودے کیږي، سوئ د رسول الله ﷺ نه،

او همدا وجه وه چه د فقهي مذاهبو څلورو مشهورو امامانو خلقو لره په هره خبره کې د خپل تقلید نه منع کړي وو. مجموع فتاوی ابن تیمیه ۲۱۱/۲۰) وتیسیر الرحمن)

٤– امام جعفر صادق وئیلي دي چه که چرے یو قوم د الله عبادت کوي، مونځونه، روژے، حج او زکاۃ ادا کوي لیکن چه یو کار نبي ﷺ کړے وي او دا قوم یا شخص په هغه کار باندے اعتراض کوي چه دے نه خلاف کار ئے ولے نۀ کولو، یا په زړه کې په هغے باندے خفه وي نو دغه شخص مشرك دے. (تیسیر)

| |
|---|
| وَلَوْ اَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ اَنِ اقْتُلُوْا اَنْفُسَكُمْ |
| که چرته بیشکه مونږ فرض کړے وے په دوي باندے دا چه قتل کړئ خپل ځانونه |
| اَوِ اخْرُجُوْا مِنْ دِيَارِكُمْ مَّا فَعَلُوْهُ اِلَّا قَلِيْلٌ مِّنْهُمْ وَلَوْ |
| یا اُوځئ د کورونو خپلو نه نۀ به وے کړے دوي دا کار مګر لږو د دوي نه او که چرته |
| اَنَّهُمْ فَعَلُوْا مَا يُوْعَظُوْنَ بِهٖ |
| بیشکه دوي کړے وے هغه څه چه نصیحت کولے شي دوي ته په هغے سره |
| لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاَشَدَّ تَثْبِيْتًا ﴿٦٦﴾ |
| خامخا دا به ډیره غوره وے د دوي دپاره او ډیر سخت به وے په مضبوطولو کې (د دوي ایمان لره). |
| وَّاِذًا لَّاٰتَيْنَاهُمْ مِّنْ لَّدُنَّا اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿٦٧﴾ |
| او په دغه وخت کې به خامخا ورکړے وے مونږ دوي ته د خپل طرف نه اجر لوی. |
| وَّلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿٦٨﴾ |
| او خامخا هدایت به کړے وے مونږ دوي ته د لارے نیغے. |

**تفسیر** : پدے کې هم د رسول الله ﷺ اطاعت ته ترغیب دے چه دا خو دومره ګران کار نۀ دے چه پدے کې قتل وي یا جلاوطني وي بلکه آسان کار دے ځکه که الله تعالیٰ داسے وئیلي وے چه ستاسو دپاره به د رسول الله ﷺ اتباع هله کامليږي چه تاسو به ځان وژنئ،

يا به جلا وطني كوئ نو دا به ډيره گرانه وه، ډير خلك به دے ته نهٔ تياريدلے،
نو معلومه شوه چه په سنت نبوی كې راحت او سكون هم دے او پدے كې امن او فائدے او عبادت هم دی۔
بل طرفته د رسول الله ﷺ په مخالفت كې مالي او صحي نقصانات دی، او ډير لوی بد اثرات دی۔
إِلَّا قَلِيلٌ مِّنْهُمْ : ددے نه مراد صحابه كرامؓ دی چه دوی به د رسول الله ﷺ په تابعدارئ كې ځانونه هم وژل لكه رواياتو كې راغلی دی چه ددے نه مراد عمار بن ياسر، ابن مسعود، ثابت بن قيس بن شمّاس، عبد الله بن رواحه، عمر فاروق او ابوبكر صديق رضي الله عنهم دی چه دوی وئيلی هم وو چه اے د الله رسوله ! كه ته مونږ ته د خپلو ځانونو په وژلو حكم وكړے نو مونږ به ځانونه هم ووژنو۔ (ابن كثير والبغوی)
او دا يقينی رشتينی خبره وه۔ او بلكه دغه صحابه كرامؓ خپل ځانونه د رسول الله ﷺ په تابعدارئ (جهاد) كې وژلو ته وركړی وو۔ نو د (الا قليل) سره منافقان خارج شو چه دوی داسے خلك دی چه كه دوی ته د رسول الله ﷺ په تابعدارئ كې د قتل حكم شوے وے نو دے ته نهٔ تياريدل ليكن الله پرے پرده واچوله او احكام ئے ورته آسان كړل نو اُوس خو پكار ده چه پدے آسانو احكامو كې سستی ونكړی او ځانونه كمال ته ورسوی۔
وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا : يعنی كه دے منافقانو په هغه حكمونو باندے عمل كړے وے د كومو چه دوی ته نصيحت كيږی نو دا به د دوی دپاره ډيره بهتره او د ثابت قدمئ سبب وے ځكه چه ايمان په طاعاتو سره زياتيږی او په ګناه سره كميږی۔
ددے ځای نه الله تعالیٰ د رسول الله ﷺ د اتباع فائدے بيان كړيدی، يو دا چه دے كې خير او فائدے دی۔
دويم پدے كې (أَشَدَّ تَثْبِيتًا عَلَى الْإِيمَانِ وَالْإِسْلَامِ) دے يعنی بنده په ايمان او اسلام باندے مضبوطيږی لكه د ايمان د ډيروالی يوه لاره اتباع د سنت ده، او د استقامت في الدين دپاره ضروری لاره او ركن اتباع د سنت ده۔
وَلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا : يعنی نيغه لاره باندے به مو روان كړی وے كومه چه سيده الله تعالیٰ ته رسيدلے ده۔

| وَمَنْ يُطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ |
| --- |
| او څوک چه تابعداري اُوکړي د الله او د رسول نو دغه کسان به د هغه کسانو سره وي |
| اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ |
| چه انعام کړے الله تعالیٰ په هغوي باندے د پیغمبرانو نه او د صدیقینو نه او د شهیدانو نه |
| وَالصّٰلِحِيْنَ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴿۶۹﴾ ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ |
| او د نیکانو نه او ډیر ښهٔ دي دغه کسان په اعتبار د ملګرتیا۔ دا مهرباني ده د طرفه |
| اللّٰهِ وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ﴿۷۰﴾ |
| د الله نه، او کافي دے الله پوهه (په اعمالو ستاسو)۔ |

**تفسیر** : پدے کي بله فائده د اتباع الرسول ﷺ دا ده چه پدے سره د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو او نیکانو سره معیت او ملګرتیا په جنت او برزخ کي ملاویږي او دا د ټولو نه لویه فائده ده، د خپلو محبوبانو سره یو ځاي کیدل۔

شان نزول

ددے آیت د شان نزول په باره کي ابن مردویه په خپل سند سره د ابن عباسؓ نه روایت راوړیدے چه ۱- یو صحابيؓ راغے عرض ئے وکړو اے د الله رسوله ! زما تا سره ډیر محبت دے کله چه کور کي راياد شے نو کور کي مے وخت نهٔ تیریږي ستا خوا ته راشم، او دا خوښوم چه زهٔ تا سره په درجه (د جنت) کي یو ځاي شم (ځکه چه تهٔ خو به زمونږ نه ډیر پورته یي نو زمونږ وخت به څنګه تیریږي)، رسول الله ﷺ هغه ته هیڅ جواب ورنکړو نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو۔ (ابن مردویه، والمعجم الطبراني ۸۶/۱۲) قال الهیثمي في المجمع ۷/۷) وفیه عطاء السائب وقد اختلط- وتفسیر ابن کثیر)

۲- ابن جریر طبريؒ د سعید بن جبیر رحمه الله نه روایت کریدئے چه یو انصاري صحابيؓ د رسول الله ﷺ خوا کي غمجن ناست وو، نبي کریم ﷺ تپوس اُوکړو : ولے غمجن ئے ؟۔ هغه اُووئیل چه اے د الله نبي ! زهٔ په یوه خبره کي سوچ کوم، نبي ﷺ پوښتنه اُوکړه څه دي ؟ نو هغه اُووئیل چه نن خو مونږ تا ته سحر او ماښام راځو، ستاسو مخ ته ګورو، او ستا سره ناست یو، صبا به په جنت کي تهٔ د انبیاؤ سره ئے، نو مونږ به تاسو ته نشو رسیدلے (او

دا خو ډیر لوی غم دے)۔

نبی کریم ﷺ هیڅ جواب ورنکړو، نو جبریل علیه السلام دا آیت راوړو، نبی ﷺ هغه صحابی راوغوختو او هغه ته ئے زیرے ورکړو۔ دا روایت د نورو ډیرو تابعینو نه نقل شویدے او مختلف الفاظ ئے دی لیکن د سعید بن جبیرؒ والا روایت سند زیات ښه دے۔

او دا صحابی ثوبان رضی الله عنه دے کما فی البغوی واسباب النزول للواحدی (۱۵۸) ومجمع الزوائد وحیاة الصحابة)

په جنت کی د نبی کریم ﷺ سره د ملګرتیا په باره کی ډیر صحیح حدیثو نه راغلی دی۔ په صحیح مسلم کی د ربیعه بن کعب اسلمی رضی الله عنه روایت دے چه زهٔ د رسول الله ﷺ سره اُودهٔ وم نو ما د اودس او د قضاء حاجت دپاره هغه ته اُوبه راوړے نو هغه راته اُوفرمایل چه څه رانه اُوغواړه، نو ما اُووئیل چه زهٔ په جنت کی ستا ملګرتیا غواړم، نبی کریم ﷺ اُوفرمایل : یا بل کوم شے؟ نو ما اُووئیل : بس همدغه۔ نو نبی کریم ﷺ اُوفرمایل :

[فَأَعِنِّي عَلَى نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ)

بیا د سجدو په ډیروالی سره زما پدے سلسله کی مدد اُوکړه)۔

ترمذیؒ په کتاب البیوع کی د ابوسعید رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : (اَلتَّاجِرُ الصَّدُوقُ الْأَمِينُ مَعَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ)

- (رښتینی امانت دار تاجر به د انبیاء علیهم السلام او صدیقین او شهیدانو سره وی۔

وسنده صحیح لغیره، صحیح الترغیب ۱۷۸۲)

ابن کثیرؒ وائی چه ددے ټولو نه لوئی زیرے خو هغه دے چه په صحیح احادیثو کی د صحابه کرامو د یوے ډلے نه ثابت دے چه د رسول الله ﷺ نه د یو داسے سړی په حقله تپوس اُوشو چه هغه د یو قوم سره محبت کوی، لیکن د هغوی سره لا ملاؤ شوے نهٔ وی ؟ نو نبی ﷺ اُوفرمایل : (اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ)

(د قیامت په ورځ) به بنده د هغه چا سره وی چه د چا سره ئے محبت کولو۔ انس رضی الله عنه وائی چه مسلمانان ددے حدیث په آوریدو سره ډیر زیات خوشحاله شو۔

(صحیح بخاری کتاب الادب، باب نمبر ۹۷ ومسلم کتاب البر والصلة رقم الحدیث : ۱۶۴۰)۔

وَالصِّدِّيقِينَ : صدیقیت د کامل ایمان او کامل اطاعت نوم دے، د نبوت نه روستو د صدیقیت مقام دے، چه پدے امت کی د ټولو نه اول دا صفت سیدنا ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته حاصل دے پدے وجه په اتفاق سره د انبیاؤ نه روستو افضل انسان ابوبکر صدیق رضی الله عنه دے۔

امام راغبؒ په مفردات کی لیکی چه صِدّیق د صِدق نه اخستے شویدے او دا د صادق مبالغه ده نو صدیق هغه چا ته وائی چه هیڅکله ئے په خوله باندے دروغ نهٔ راځی او هر عمل او طرز ئے د رشتیا وی۔

ځینی وائی : هغه څوك دے چه په ایمان راوړو کی هیڅ دلیل او برهان ته نهٔ وی محتاج شوے او د نورو مؤمنانو دپاره په ایمان راوړو کی مقتدیٰ جوړ شوے وی۔ (تفسیر کبیر)۔

بعض وائی : صدیق هغه دے چه په ټول دین ئے تصدیق کړے وی او په هغے کی ورته هیڅ قسمه شك نهٔ وی راغلے، لکه آیت کی دی ﴿وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖۤ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ﴾ (الحدید: ۱۹)۔

وَالصّٰلِحِيْنَ : صالح هغه چا ته وائی چه د الله حقوق او د بندګانو حقوق په کامله توګه ادا کوی او په هغے کی هیڅ کوتاهی نهٔ کوی۔

## بیا پدے کی اختلاف دے چه ددے صالحین نه څوك مراد دی؟

(۱) یو قول دا دے چه دا ټول صفات د یو موصوف دی چه هغه انبیاء علیهم السلام دی ځکه چه انبیاء علیهم السلام صدیقین هم دی او څه پکی شهیدان شوی هم دی او صالحین هم دی۔ نو دا صفات د یو بل سره منافات نهٔ لری بلکه جمع کیدلے شی، لیکن دلته تسمیه ده په وصف مشهور سره، په انبیاؤ کی د نبوت صفت مشهور دے او په ځینو کی د صدیقیت صفت مشهور دے او په ځینو کی د شهادت او په ځینو کی د صلاح لکه الله تعالیٰ د بیل بیل نبی سره دغه شان صفتونه په قرآن کریم کی ذکر کړیدی۔ د ابراهیم او ادریس علیهما السلام دپاره صدیقیت صفت ذکر شویدے په سورة مریم (٤١ او ٥٤) کی ﴿اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا﴾ او د یوسف عليه السلام دپاره په سورة یوسف (٤٦) کی استعمال دے، او دارنګه د هر نبی دپاره صفت د شهادت هم شته لکه په سورة نساء (٤١) او (١٥٩) او سورة بقره (١٤٣) او سورة مائده (١١١) کی او په سورة النحل (٨٩) او سورة حج (٧٨) او سورة قصص (٨٥) کی۔ لکه یو عالِم کی صفت د علم مشهور دے اګرکه مونځ به کوی، حج او عمره هم وکړی خو خلك ورته مصلی او حاجی نهٔ وائی بلکه په عالِم مشهور وی۔

(۲) یا دا صفات د بیلو بیلو ذواتو دی او دا څلور قسمه ډلے جنت ته تلونکی دی، اول انبیاء علیهم السلام دی او دویم د صدیقینو لکه ابوبکر صدیق رضی الله عنه وغیره، او دریمه ډله د شهداؤ ده لکه عمر، عثمان او علی رضی الله عنهم وغیره شو او څلورمه ډله د صالحینو

چه باقی صحابه کرامؓ او د امت عام مؤمنان دی. او دا قول فراء بغویؒ د عکرمةؒ نه نقل کړیدے. لیکن پدے کی عموم ظاهر دے.

او د معیت نه مراد دا دے چه د هغوی سره به ملګرے وی لکه روستو ﴿وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا﴾ پرے دلیل دے. او دا ملګرتیا به په مجلس او مکان کی وی.

وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا : یعنی دا خلك په ملګرتیا کی ډیر مزیدار دی، نو دوه نعمتونه شو یو جنت او بل ښائسته ملګری. لکه یو مزیدار سفر وی او بل نیکان او ښه ملګری د ښده سره ملګری شی نو دا ډیر اُوچت سفر وی.

ذَٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللَّهِ : دا جواب د سوال دے چه د الله او د رسول اطاعت کونکی خو په عمل کی د انبیاء علیهم السلام او صحابه کرامو نه کم دی نو دوی به څنګه د هغوی سره په جنت کی یو ځای کیږی؟ نو جواب وشو چه دا د هغوی د عمل د وجه نه نهٔ ده بلکه دا خالص د الله مهربانی ده.

وَكَفَىٰ بِاللَّهِ عَلِيمًا : یعنی الله کافی پوهه دے په اهل د مهربانئ خپلے، چه چاته ئے ورکوی الله تعالیٰ هغه خلك ښه پیژنی.

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا خُذُوا حِذْرَكُمْ فَانفِرُوا ثُبَاتٍ أَوِ انفِرُوا جَمِيعًا ﴿٧١﴾ |
|---|
| اے ایمان والو! ونیسئ یره خپله (یعنی بچاؤ خپل) پس اُوځئ ډلے ډلے یا اُوځئ ټول په یو ځای. |

**تفسیر : مضمون** : د منافقانو د تردید نه روستو اُوس الله تعالیٰ بیرته نظامی او سیاسی حکمونه بیانوئ نو د عدل د قانون د جاری کولو نه روستو اُوس د قتال فی سبیل الله دپاره په تیاریٔ باندے حکم کوی، او د جهاد دوه طریقے بیانوی چه هغه نفیر عام او دویم بَعثُ السَّرَايَا (دستے لیږل) دی، اسلامی نظام کی دا ضروری ده چه جهاد به پکی رائج وی، په کوم خلافت کی چه جهاد نهٔ وو هغه به صحیح اسلامی خلافت نهٔ وی. او جهاد چونکه د بادشاهانو د شان سره لائق شے دے ځکه چه دوی طاقت والا دی، نهٔ د عوامو پدے وجه الله تعالیٰ دلته د خلافت د احکامو په مینځ کی راوړو. البته که خلیفه نهٔ وی نو بیا به مسلمانان خلك جمع کوی او یو طاقت به برابروی او جهاد به کوی.

نو ددے نه روستو الله تعالیٰ بیا په منافقانو باندے رد کړیدے او د جهاد مقاصد ئے ذکر کړیدی، بیا په منافقانو باندے تفصیلی رد دے او د هغوی بد صفات ئے ذکر کړیدی ځکه چه په جهاد سره منافقان راښکاره کیږی، بیا ئے (فقاتل فی سبیل الله) سره ترغیب قتال ته

ورکړیدې سره د اخبار نه پدې خبره چه الله تعالیٰ به د کافرانو جنګ ختموي۔ بیا دیو خاص مناسبت د وجه نه مسئله د شفاعت او مسئله د سلام ذکر ده۔ بیا په (۸۷) آیت کې د جهاد غایه او مقصد نے بیان کړیدې چه جهاد به د توحید دپاره کیږي۔

نو پدې آیتِ کریمه کې مؤمنانو مخلصینو ته خطاب کې وئیلې شي چه د الله په لاره کې د جهاد دپاره وتلو نه مخکې په طریقې سره تیاری کوئ د اسلحه او د جنګ د نورو سامانونو په اعتبار سره هم، او د مجاهدینو د شمیر په اعتبار سره هم۔

مفسرینو لیکلی دي چه دا آیت د مکې د فتح نه مخکې نازل شوې وو، او پدې سره مقصود مسلمانان په هره طریقه سره ددې دپاره تیارول چه د دشمن په مقابله کې کمزوري نۀ شي۔

حِذۡرَكُمۡ : یعني خپل بچاؤ اختیار کړئ په وسله او د جنګ په سامان تیارولو سره۔

حذر: په اصل کې اَلتَّيَقُّظُ لِلۡمَكۡرُوۡه ته وائي یعني یو بد شي ته چه په نفس بد لګی هغې ته ځان ویښ او بیدار ساتل۔ یعني وښیسئ بیداري خپله او دشمن ته بیدار شئ او د هغوی د چالونو نه ځانونه خبر کړئ او د هغوی په مقابله کې وسلې تیارې کړئ۔

او ددې نه معلومه شوه چه وسله تیارول د تقدیر خلاف نۀ دي بلکه دا شرعي اسباب استعمالول دي چه شریعت پرې حکم کړیدې۔

## د جنګي وسائلو زده کول هم ضروري دي

ددې آیت نه معلومیږي چه مسلمانان د هغه تولو وسائلو په جوړولو او استعمالولو باندې د فرض کفائي په توګه مکلف دي چه د زمانې په جنګونو کې استعمالیږي لکه:

(۱) جهازونه، ټینکونه، توپونه، بمونه او نورې سپکې او درنې وسلې جوړول او د هغې ترمیم او استعمالول۔

(۲) مخابراتي سیستمونه جوړول او په کار اچول چه د جنګ دپاره د اعصابو مثال لري۔

(۳) هندسي علوم چه د اهدافو تاکل او د پُرزجاتو صنعت سره مضبوط تعلق لري۔

(٤) ارضي علوم (جغرافیا) زده کول ځکه چه کله مجاهد د دشمن د زمکې او د موقعیت نه خبر نۀ وي نو دشمن ته ډیر نقصان نشي ورکولې۔ (المنار ٥/٢٠٤ وعزیز التفاسیر)

لنډه دا چه پکار ده چه مجاهد د دشمن سره په جنګي وسائلو کې سیالي وکړي۔

فَانۡفِرُوۡا : دا د نَفَرَ يَنۡفِرُ نَفِيۡرًا نه هم دے او د نَفَرَ يَنۡفُرُ نُفُوۡرًا نه هم دے او دغه شان د نفار نه هم

دے چہ پہ معنیٰ د نفرت او بد کنړلو او وړاندے والی سره دے، بیا د دشمن د مقابلے دپاره یا د علم د زده کړے دپاره د بهر وتلو پہ معنیٰ استعمالیږی، او پدے لفظ کی اشاره ده چه د جهاد فی سبیل الله دپاره به د کور کلی او اهل وعیال نه داسے وخی لکه چه د هغوی سره نفرت کونکے وی یعنی د هغوی محبت تاسو لره د سفر نه منع نکړی۔ (قرطبی واحسن الکلام)۔

ثُبَاتٍ : جمع د ثُبَةٌ ده چه په اصل کی ثُوبٌ وو واو حذف شو او په عوض کی ئے په آخر کی گرده (ـة) زیاتـه شوه نو ثُبَة ترے جوړ شو نو ثُبَة پدے تقدیر سره د حوض بیخ ته ویل کیږی چه هلته اُوبه ورتوییږی او جمع کیږی او تصغیر ئے (ثُوَیْبَةٌ) راځی۔ (لسان العرب ١٤/١٠٨)

(٢) یا ثبات جمع د ثُبَة ده چه په اصل کی ثُبُوَةٌ ده لکه د حُطَمَةٌ پـه شان نو واو حذف شو لکه په سِنَةٌ کی چه حذف شوید دے نو ثبة پدے تقدیر سره په معنیٰ د جماعت او ډلے سره دے چه د دریو نه تر لسو پورے کسانو دپاره استعمالیږی۔ او جمع ئے ثُبَات او ثِبِیْنَ راځی۔ (روح المعانی والقرطبی)

او دلته ترے همدا مراد دے۔ نو ددے نه مراد سرایا (دستے د فوج) لیږل شو۔

**فائده** : جهاد دوه قسمه دے یو فرض کفائی وی، نو په هغے کی به سرایا لیږلے شی لکه رسول الله ﷺ بـه داسے سرایا لیږلے، کله یو ځای ته او کله بل ځای ته د دشمن د کمزوری کولو دپاره۔ او دویم فرض عین وی چه دیته نفیر عام وائی لکه په غزا د تبوك کی په تولو مسلمانانو فرض وه چه جهاد ته به ووځی ځکه چه دشمن راغلے وو،

دغه شان د اُحد غزا ته تول وتل لازم وو ځکه چه دشمن کلی ته رانوتے وو، او نفیر عام په هغه وخت کی لازمیږی چه مسلمانان طاقت نهٔ لری، یا دشمن په کلی باندے راوخیژی نو پخوانو علماؤ دا مسئله لیکلے ده چه په داسے وخت کی به زنانه هم په جهاد کی شریکیږی او سړی به حج ته هم نهٔ ځی بلکه په شریکه به دشمن ځوك په وسلو سره او ځوك پـه کانړو ویشتل کوی۔ دا د پخوانے زمانے طرز وو، مگر په اُوسنئ زمانه کی وضع لږه بدله ده نو پدے وخت کی به مسلمانان جهادونه هم کوی او حجونه او عمرے به هم کوی۔

| وَإِنَّ مِنكُمْ لَمَن لَّيُبَطِّئَنَّ فَإِنْ أَصَابَتْكُم |
| --- |
| او یقیناً بعض ستاسو نه خامخا هغه ځوك دی چه روستو روستو کیږی نو که اُورسیږی تاسو ته |

| مُصِيبَةٌ قَالَ قَدْ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيَّ إِذْ لَمْ أَكُنْ |
|---|
| یو مصیبت، دے وائی یقیناً انعام کړے الله په ما باندے په هغه وخت چه زۀ نۀ اُوم |
| مَعَهُمْ شَهِيدًا ﴿٧٢﴾ وَلَئِنْ أَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ اللَّهِ |
| د دوی سره حاضر (په غزا کی) او که ورسیږی تاسو ته مهربانی د طرفه د الله نه |
| لَيَقُولَنَّ كَأَنْ لَّمْ تَكُنْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ مَوَدَّةٌ يَا لَيْتَنِي |
| خامخا وائی دے گویا که نۀ وه په مینځ ستاسو او په مینځ ددۀ کی دوستانه، اے ارمان دے |
| كُنْتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٧٣﴾ |
| چه وے زۀ د دوی سره نو کامیاب شوے به وے په کامیابئ لوی سره۔ |

**تفسیر** : اُوس د منافقانو حال بیانیږی چه د نفاق په وجه به جهاد ته نۀ وتل، او د نورو همت به ئے هم خکته کولو۔ د عبد الله بن اُبی ابن سلول خو دا خاص عادت وو۔ د غزوۀ اُحُد په موقعه هغه خلق راپورته کړی وو او د منافقانو یوه ډله ئے د لارے نه راواپس کړے وه۔ په جهاد کی چه کله یو تکلیف اُورسی نو منافقان وائی چه ښه اُوشو چه مونږ ددے مسلمانانو سره نۀ وو، او کله چه غلبه نصیب شی او مالِ غنیمت لاس ته راشی نو داسے افسوس نه ښکاره کوی لکه چه د مسلمانانو سره ئے د مخکی نه هیڅ آشنائی نۀ وه، او وائی چه ارمان ! مونږ هم د دوی سره وے نو د غنیمت مال به لاس ته راغلے وے۔

لَيُبَطِّئَنَّ : تبطئه او ابطاء لازم او متعدی دواړه استعمالیږی، یعنی خپله هم د جهاد نه سستی کوی او بل څوك هم د وتلو نه پاتے کوی۔ (قرطبیؒ)

قَدْ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيَّ : یعنی په ما باندے الله دا احسان وکړو چه زۀ جهاد ته لاړ نشوم گنے زۀ به هم د دغه مسلمانانو سره په دغه مصیبت کی گرفتار وے، نو منافق د مسلمانانو په مصیبت خوشحالیږی او د جهاد نه ایسار یدل کمال گنړی، او صرف خپل ځان ورته ښکاره کیږی او نور د هیچا پرواه نۀ لری۔

فَضْلٌ مِّنَ اللَّهِ : د فضل نه مراد فتح او غنیمت دے۔

يَا لَيْتَنِي : دا بنا په یو تفسیر د (لَيَقُولَنَّ) دپاره مقوله ده، یعنی داسے وائی چه ارمان چه زۀ هم د مسلمانانو سره حاضر وے نو لویه کامیابی به راته حاصله شوے وے، منافقان د دنیا مال گټلو ته لویه کامیابی وائی، او د الله په نیز دا غټه کامیابی نۀ ده، بلکه لویه کامیابی

ایمان او جنت دے۔ او د منافقانو همت کمزورے دے، صرف د دنیا مال ورته کامیابی ښکاری، او مؤمن د دے خبرو پرواه نۀ لری، بلکه د مسلمانانو په حال خوشحالی کوی چه بنه ده چه الله ورله فتح او مال ورکړو۔

كَأَنْ لَّمْ تَكُنْ : دا په مینځ کی د الله د طرفنه رد دے په خبرو د منافقانو باندے چه د دوی دے تناقض ته وګورئ چه هلته ستاسو د دوستئ دعوه کوی او دلته داسے خبرے کوی ګویا که ستاسو او د هغوی ترمینځ هیڅ دوستی نشته۔

(۲) تفسیر دا دے چه (كَأَنْ لَّمْ تَكُنْ) تر آخره پورے دا تول د (لَيَقُولَنَّ) دپاره مقوله ده، او دا تول وینا د منافق ده لکه همدا تفسیر ظاهر دے، نو مطلب ئے داسے کیږی : چه کله تاسو ته څه فضل او مال او غنیمت ورسیږی نو دا منافق تاسو ته وائی چه تاسو خو دا تول مال ځانله واخستو او مونږ له مو پکی څه رانکړل، ګویا که زما او ستاسو ترمینځ هیڅ دوستی نشته، او بیا د ځان سره وائی چه ارمان چه زۀ ورسره حاضر شوے وے نو مال به راته حاصل شوے وے۔ نو (كَأَنْ لَّمْ تَكُنْ) کی د دوی سوال شو او (يَا لَيْتَنِيْ) کی ارمان شو۔

| فَلْيُقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ الَّذِيْنَ يَشْرُوْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ |
|---|
| پس جنګ دِے اُوکړی په لاره د الله کی هغه کسان چه خرڅوی ژوند دنیوی په آخرت |
| وَمَنْ يُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ |
| او څوك چه جنګ کوی په لاره د الله کی پس اُووژلے شی یا غالبه شی نو زر دے |
| نُؤْتِيْهِ أَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۷۴﴾ |
| چه ورېه کړو مونږ دۀ ته اجر لوی۔ |

**تفسیر** : د دشمن دپاره د تیار وسیدلو او د جهاد دپاره د تیارئ حکم کولو نه روستو اُوس مسلمانانو ته د جهاد ترغیب ورکولے شی چه کوم خلق دنیا ورکولو سره آخرت اخستل غواړی، هغوی دِے د الله په لاره کی جهاد اُوکړی۔ او کوم خلق چه د الله په لاره کی جهاد کوی نو برابره ده چه شهید شی یا غلبه حاصلولو سره کور ته واپس شی، په دواړو حالتونو کی به الله تعالیٰ هغوی ته لوئی اجر ورکوی۔

بخاری او مسلم د ابو هریره ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل :

((څوك چه د الله په لاره کی د جهاد دپاره اُوځی نو الله د هغه ضامن کیږی او وائی چه که دا

زما په لاره كې د جهاد په نيت سره وتلے دے په ما باندے ايمان لرى، او زما د رسولانو تصديق كوى نو زهٔ ددهٔ ضامن يم چه يا خو به دا جنت ته داخلوم او يا به ئے د اجر او غنيمت سره خپل كور ته واپس رسوم))۔

بيا پدے آيت كې دوه تفسيره دى :

(۱) مرجوح تفسير دا دے چه پدے آيت كې په منافقانو باندے رد دے او هغوى ته دعوت دے چه اے منافقانو! ارمانونه ځله كوئ بلكه تاسو هم لاړ شئ د الله په لاره كې قتال وكړئ، تاسو ته به هم غنيمتونه حاصل شى نو (يَشْرُوْنَ) كې شراء په معنىٰ د اخستو سره شوه۔

(۲) غوره تفسير دا دے چه دلته الله تعالىٰ مؤمنانو ته د قتال فى سبيل الله ترغيب وركړيدے او شراء په معنىٰ د بيع سره دے او د فاء راوړو مطلب دا دے چه (اِنْ تَخَلَّفَ الْمُنَافِقُ فَلْيُقَاتِلِ الْمُؤْمِنُ) يعنى كه منافقان د الله په لاره كې د جنگ كولو نه روستو پاتې كيږى نو مؤمنان دِے د الله په لاره كې قتال وكړى، ځكه چه دوى ته آخرت لوى شے ښكاره كيږى نهٔ دنيا، او دنيا په آخرت باندے خرڅوى۔

يَشْرُوْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا : يعنى نهٔ د دنيا د مال پرواه لرى او نهٔ د راحت او نهٔ د بچو بلكه ټول نظر ئے په آخرت لګى۔

وَمَنْ يُقَاتِلْ : اُوس الله تعالىٰ جهاد فى سبيل الله ته ډير كامل ترغيب وركړيدے چه په هر حال كې ددهٔ دپاره لوى اجر تيار دے۔ نو پدے آيت كې الله تعالىٰ شهادت ته هم فتح او اجر عظيم وئيلے دے، د مؤمن دپاره دواړه حالتونه غوره دى كه غالب شو، نو دنيا كې ورته غلبه هم ملاؤ شوه او اجر هم او كله به غنيمتونه هم ملاؤ شى او كه مغلوب شو نو د آخرت اجر خو چرته تلے نهٔ دے۔

او د آيت نه دا خبره هم واضحه شوه چه دا ضرورى نهٔ ده چه په هر قتال فى سبيل الله كې به مسلمانان غالبه كيږى كه په وقتى طور سره مغلوب شو، ليكن انجام د ايمان والو ښه دے۔ او مغلوبه كيدل هم كاميابى ده لكه ډير خلك د مسلمانانو مغلوبه كيدل د جهاد نه د منع كيدو دپاره دليل نيسى۔ نهٔ بلكه الله تعالىٰ دپاره وينه وركول او د هغه دپاره مندے ترړے او سختے برداشت كول الله تعالىٰ ته خوښ دى او پدے باندے ډير خوشاليږى او همدا كاميابى ده، نو هر مسلمان له د جهاد حقيقت پيژندل پكار دى۔

| وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ |
|---|
| او څه وجه ده تاسو لره چه جنګ نۀ کوئ په لاره د الله کې او په (راخلاصولو) د ضعيفانو کې |
| مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا |
| د سړو نه او د ښځو نه او د هلکانو نه هغه کسان چه وائي دوی اے ربه زمونږه ! اُوباسے مونږ |
| مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ |
| ددے کلي نه چه ظالمان دي اُوسيدونکي ددے او اُوګرځوه زمونږ دپاره د خپل طرف نه |
| وَلِيًّا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا ﴿۷۵﴾ |
| دوست او اُوګرځوه زمونږ دپاره د خپل طرف نه مددګار۔ |

**تفسير:** پدے آيت کې هم مسلمانان په جهاد في سبيل الله باندے راپاروله شي او د جهاد دوه مقصده ذکر کوي چه يو د الله د دين غالبه کول او بل کمزوري مؤمنان راخلاصول،

لکه په مکه کې کمزوري مسلمانان سړي، ښځے او ماشومان موجود وو دے دپاره چه هغوي د قريشو د ظلمونو او زياتو نه خلاص شي، کومو چه مشرکانو د هجرت کولو نه منع کړي وو، او نۀ ئے پريخودل، او په هره زمانه کې مسلمانانو باندے داسے قيد وبند شته چه څوك په جيلونو کې وي، او چا باندے مختلف قسم پابندياني وي د خپلو ملکونو نه بهر ئے نۀ پريدي، آزادي نۀ ورکوي او تعليمونو ته ئے نۀ پريدي۔

بخاريؒ د ابو هريره ﷺ نه روايت کړيدے چه په هغه ورځو کې به رسول الله ﷺ چه کله په مانځه کې د رکوع نه سر پورته کولو نو د څه کمزورو مسلمانانو نومونه به ئے اخستل او د مکے د مشرکانو نه د هغوي د نجات دپاره به ئے دعا کوله۔

وَالْمُسْتَضْعَفِينَ : دلته مضاف پټ دے أَيْ فِي إِنْقَاذِ الْمُسْتَضْعَفِينَ۔

يعني په راخلاصولو د کمزورو کې۔

لکه په مکه کې سُهيل بن عمرو خپل ځوی ابوجَندل ﷺ تړلے وو او وهل ئے هم ورکړي وو چه دوي چرته هجرت ونکړي، او دارنګه عمار بن ياسر او صهيب او عبد الله بن عباس رضي الله عنهم او د هغه مور به مشرکانو منع کول لکه بخاري کې دي چه ابن عباسؓ فرمائي زۀ او زما مور په مستضعفينو کې وو۔ (صحيح البخاري کتاب التفسير)

او د الله د محبوب ﷺ لوري زينب رضي الله عنها چه کله د هجرت اراده وکړه نو

مشرکان ورپسے راووتل او هغه ئے په برچه باندے ووهله او د اوښ نه راگوزار شوه او روستو بیا د هغې د وجه نه وفات هم شوه چه د هغې تفصیلي دلسوزه واقعه زمونږ په کتاب ((سیرتِ رسول ﷺ)) کې وگورئ۔

مستضعفین دے ته وائي چه دوی وتل غواړی دے دپاره چه په دین باندے عمل وکړی لیکن کفار ئے نۀ پریدی۔

په آیت کې د ((قریة)) نه اول مراد مکه او د ((الظالم اهلها)) نه مراد د هغه خای مشرکان دی۔ او په ((وَلِيًّا)) کې د ولی نه مراد د الله یو داسے بنده چه د هغه په ذریعه د کمزوری مسلمانانو د دین حفاظت اُوشي، او د ((نصیراً)) نه مراد یو داسے سړے دے چه د دشمنانو نه هغوی راخلاص کړے شي۔ نو الله د هغوی دعا واوریدله، د هغوی نه څه کسان راووتل او مدینے ته په رارسیدو کې کامیاب شو او څه هلته پاتے شو تردے چه نبی کریم ﷺ مکه فتح کړه او الله د هغه ځای باقیمانده مسلمانانو ته د ذلت نه روستو عزت ورکړو۔

اَلَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ : **فائده** : الله تعالیٰ په دے آیت کې مسلمانانو ته دا غیرت ورکوی چه ستاسو ورونه او خویندے او ماشومان د کافرو د لاس د لاندے دی او هغوی پرے ظلمونه کوی، او په بعض ځایونو کې کفار د مسلمانانو زنانو سره بی حیائي هم کوی، نو ځان کې غیرت پیدا کړئ، او دغه مظلومان راخلاص کړئ، پخوانو حُکامو کې دا غیرت وو،

لکه د هارون رشیدؒ په باره کې راځي چه هغه ته یو تن جواب راولیږو چه په اندلس کې یوه زنانه ده چه د کفارو سره په یو جیل کې بنده ده، نو دهٔ ورته ددے ځای نه آواز وکړو چه (لَبَّيْكَ يَا اُخْتِيْ!) - اے خورے زهٔ ستا تابعداریم!۔ او خپله ئے فوج واخستو او خپله ورسره روان شو (عام خلفاء به جنگونو ته نۀ تلل) تردے چه په هغه ځای ئے حمله وکړه او هغه زنانه ئے راخلاصه کړه، داسے غیرتي خلفاء وو۔

د منصور بادشاه په باره کې هم راځي چه هغه په ترکیا باندے حمله کړے وه او د یوے زنانه د راخلاصولو دپاره ئے ډیرے سختے تیرے کړے وے او دا به ئے وئیل چه د مسلمانانو حکومت دے وی او په یوه زنانه دے ظلمونه کیږی۔ ارمان که داسے خلك اُوس پیدا شی خو مره به ښه وی!!۔

| اَلَّذِيْنَ آمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ |
| --- |
| هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے دوی جنگ کوی په لاره د الله کې او هغه کسان |

| كَفَرُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ الطَّاغُوْتِ فَقَاتِلُوْٓا اَوْلِيَآءَ |
|---|
| چه کفرئے کړے جنګ کوی په لاره د شیطان کی نو جنګ اُوکړئ تاسو د دوستانو |
| الشَّيْطٰنِ اِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيْفًا ﴿٧٦﴾ |
| د شیطان سره بیشکه مکر د شیطان ډیر ضعیف دے۔ |

**تفسیر** : دا هم ترغیب دے پدے طریقه چه کافر هم جنګ کوی لیکن د شیطان دپاره نو اے مؤمنه ! ته ئے د الله دپاره ولے نهٔ کوے۔

کافرانو ته اَولیاء الشیطان اُووئیلے شو، ګویا که دا اشاره ده چه مسلمانان د الله اولیاء دی، او پدے کی یو قِسم د مسلمانانو همت پورته کول هم دی۔

او پدے کی دا اشاره هم ده چه مؤمن به دے ته وائی چه د الله په لاره کی به جهاد کوی نو په چا کی چه جهاد نهٔ وی، ګویا که په هغه کی د ایمان یوه شعبه نشته۔

او د فی سبیل الطاغوت نه دا هم معلومه شوه چه کوم انسان د طاغوت (شیطان او د هغه د تابعدارو) دپاره قتال کوی دا به مسلمان نهٔ وی۔

كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيْفًا : پدے کی الله خبر ورکړو چه د شیطان چل او مکر ډیر کمزورے وی، او د الله د کامل قدرت په مقابله کی خو د هغے هیڅ حیثیت نهٔ پاتے کیږی۔

## سوال وجواب

په سورة یوسف کی دی (اِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيْمٌ) اے زنانو! ستاسو مکر ډیر لوی دے نو آیا د زنانو مکر د شیطان نه هم زیات لوی دے؟ جواب دا دے چه دلته نسبتونه جدا جدا دی، د شیطان مکر د الله د کَیْد په مقابله کی ضعیف دے او هلته د سړو په مقابله کی د ښځو مکر سخت وی۔ او د شیطان مکر د الله په مقابله کی ځکه کمزورے دے چه علم ورسره نشته، او دارنګه قدرت ورسره نشته او د الله سره علم او قدرت په کامله طریقه دے۔

نو پدے آیت کی هم اشاره ده مغلوبیت د کفارو ته چه الله تعالیٰ به دوی لره مغلوب کوی۔

| اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ |
|---|
| آیا ته نهٔ کورے هغه کسانو ته چه وئیلے شوی دی هغوی ته بند کړئ لاسونه خپل |

| وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ |
|---|
| او قائموئ مونځ او ورکوئ زکاة نو هرکله چه فرض شو په دوی باندے جنګ (د کافرانو سره) |
| إِذَا فَرِيقٌ مِنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللَّهِ أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً |
| نو دغه وخت یوه ډله د دوی نه ویریدله د خلقو نه په شان د ویریدو د الله نه یا په سخته یره سره |
| وَقَالُوا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ لَوْلَا أَخَّرْتَنَا |
| او وائی دوی اے ربه زمونږ! ولے فرض کړو تا په مونږ باندے جنګ، ولے نهٔ روستو کولو تا مونږه |
| إِلَى أَجَلٍ قَرِيبٍ قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيلٌ وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ لِمَنِ |
| یوے نیټے نزدے ته، اُووایه! فائده د دنیا ډیره لږه ده او آخرت ډیر غوره دے د هغه کس دپاره |
| اتَّقَىٰ وَلَا تُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴿۷۷﴾ |
| چه یریږی (د الله نه) او ظلم به نشی کیدے په تاسو په اندازه د تار د هډوکی د کجورے۔ |

**تفسیر**: پدے آیتونو کی بیا د منافقانو بد صفتونه راجمع کوی او پدے کی ضعیف الایمان خلك هم داخلیږی۔

## شان نزول

ددے آیت د نازلیدو د سبب په حقله وئیلے شی چه دا د صحابه کرامؓ د یو جماعت په سلسله کی نازل شویدے چه هغوی په مکی ژوند کی د مشرکانو د ظلم او زیاتی نه تنګ راغلی وو، او د رسول الله ﷺ نه ئے د قتال اجازت غوختلے وو، نو نبی کریم ﷺ اُوفرمایل چه اُوس ما ته د الله د طرف نه د جنګ کولو اجازت نهٔ دے ملاؤ شوے، اُوس د مونځ او صدقاتو او خیراتونو په ذریعه د غریبانو مسلمانانو په مدد کولو باندے اکتفاء کول پکار دی، (جهاد چه کله فرض نهٔ وی نو خلکو ته آسان ښکاری چه فرض شی نو بیا ګران کار وی نو دوی ته وویل شو چه کوم عمل درباندے لازم دے هغه وکړئ چه مونځ، زکاة او د مسلمانانو مدد کول، او چه کوم درباندے لازم نهٔ دے هغه مهٔ غواړئ، د بنی اسرائیلو په شان مهٔ کیږئ چه هغوی ځان دپاره قتال غوختے وو بیا روستو شول)

لیکن کله چه دوی مدینے ته راغلل نو الله د جهاد اجازه ورکړه چه که څوك جنګ کوی کولے ئے شی، بیا په غزا د بدر کی الله تعالیٰ جهاد فرض کړو نو په بعض کسانو کی

سستي پيدا شوه، د هغوی نه يوه ډله د مرګ د يرې نه د جنګ نه روستو شو، نو پدې خاى کې منافقت او د ايمان کمزوري رابنکاره شوه نو دا آيت نازل شو. (محاسن التاويل ۲/۳۹۵)

چه پدې کې مسلمانانو ته يو دا سبق ورکړے شو چه کوم شے دربانده لازم نهٔ وی هغه به نهٔ غواړئ، بلکه خپله ذمه واري سنبال کړئ. او بله فائده پکې دا ده چه کوم عمل ستا د شان سره لائق دے او تهٔ ئے کولے شے نو هغه عمل ستا دپاره فائده مند دے.

د شيطان طريقه دا ده چه کله يو بنده په يو اُوچت عمل کې مصروف وی، نو هغه ورته وسوسه واچوی چه د دين بل لوی عمل وکړه نو ددے عمل نه چه وځي هغه بل عمل هم پرے سرته نهٔ رسوی، نو بې عمله ئے کړی لکه يو طالب العلم په علم کې مصروف وی هغه ته ووائي چه جهاد فرض دے، نو هغه د علم نه هم وران کړی او چه هلته لاړ شي بيائے هلته هم ساعت نهٔ تيرېږی نو د هيڅ نهٔ شي. دا د شيطان دسيسه ده.

(۲) ځينو وئيلي دی چه دا آيت د مدينے د يهوديانو په باره کې نازل شوے وو،

(۳) او ځينې نور وائي چه دا آيت د هغه منافقانو په باره کې نازل شويدے چه هغوی د جهاد فرض کيدو نه مخکې د اسلام اعلان کړے وو، او کله چه جهاد فرض شو نو په يره سره د هغوی نفس په مصيبت کې پريوتو.

امام شوکانیؒ وائي چه همدا دريم قول د آيت سياق ته زيات نزدے دے ځکه چه هغه خلقو وئيلي وو: اے الله! تا په مونږ بانديے جهاد ولے فرض کړو؟ دارنګه الله د هغه خلقو دا صفت بيان کړو چه ((که دوی ته خير رسيږی نو وائي چه دا د الله د طرف نه دے، او که څه تکليف رسيږی نو رسول الله ﷺ ته وائي چه دا تول ستا په وجه دی)).

او دغسے اقوال د صحابه کرامؓ نه صادريدے نشي.

صاحب د ((محاسن التاويل)) هم همدا رائے غوره کړيده او وئيلي ئے دی چه د ابن عباس رضی الله عنهما نه چه کوم روايت نقل کيږی چه دا په مکي ژوند کې د صحابه کرامؓ د يوے ډلے په باره کې نازل شويدے. نو هغه د سند په اعتبار سره صحيح نهٔ دے،

او په مکي ژوند کې چه کله مسلمانان نهايت درجه کمزوري وو، هغوی د اسلام د ښکاره کولو نه يريدل، نو دا خبره د عقل نه لرے معلوميږی چه هغوی به د جنګ کولو اجازت غوختلے وی. او په آيت کې ددے خلقو دا صفت بيان شويدے چه دوی د خلقو نه داسے يريږی لکه څنګه چه د الله نه يريدل پکار دی، يا د هغے نه هم زيات، دا صفت د کافر يا

منافق کیدے شي. د مسلمان نشي کیدے۔
(٤) او ځینې مفسرین وائي چه پدے آیت کې د پخوانو قومونو نه د یو قوم حال بیانیږي چه هغوی به اول کې جهاد غوښتلو خو چه فرض شو نو ډیر پکې ملا ماتي شو لکه د جالوت او د طالوت په قصه کې تیر شویدی. (البحر المحیط ۷۱۲/۳)۔
كُفُّوٓا أَيۡدِيَكُمۡ : یعنې د قتال کولو نه لاسونه بند کړئ۔
يَخۡشَوۡنَ ٱلنَّاسَ : د انسانانو نه یره کول یواځې د منافقانو کار نهٔ دے، بلکه دا کله په مؤمن هم راځي لیکن خشیت (یره) دے ته وائي چه د کافرانو عظمت او لوئي ئے په زړه کې دومره زیاته شي چه بیا ورته کار هم پریدي، جهاد شا ته گوزار کړي۔
لَوۡلَآ أَخَّرۡتَنَآ إِلَىٰٓ أَجَلٖ قَرِيبٖ : وَهُوَ زَمَانُ الْقُوَّةِ وَالْعَدَدِ ۔ نزدے نیټې نه مراد زمانه د قوت او عدد ده چه طاقت مو زیات شوے او شمیر مو کن شوے وے نو د جهاد قابل شوی به وے۔
قُلۡ مَتَٰعُ ٱلدُّنۡيَا : د جواب حاصل دا دے چه جهاد به تر کومه پورے روستو کوو ؟ د دنیا ټول ژوند او خوندونه لږ دی، ختمیدونکی دی، نو تا باندے به مرگ راشي بیا به څه وخت جهاد فرض کیږي؟!
او پدے جملو کې څلور خبرے راجمع شویدی: یو تزهید في الدنیا (د دنیا بې رغبتي) چه دنیا ډیره معمولي ده، او ددے خوندونه په یو څو ورځو کې ختمیدونکی دی۔ دویم پکې ترغیب دے چه آخرت ډیر غوره کور دے. هغے سره مینه ساتل پکار دی، او هغه په ایمان او نیك اعمالو او جهاد في سبیل الله سره ملاویږي، او دریم په (لِمَنِ اتَّقٰى) کې (اَلْحَثُّ عَلٰى فِعْلِ الْخَيْرِ) دے، یعنې تیزی ورکول دی په کولو د نیك اعمالو، چه تقویٰ وکړه چه الله درله خیر درکړي، او څلورم زجر دے په کولو د بدو اعمالو او شرونو چه د شر کارونه مهٔ کوئ الله به دریاندے ظلم نکوي. (کما في بدائع التفسیر) .
لِمَنِ ٱتَّقَىٰ : اَيِ الشِّرْكَ وَمُخَالَفَةَ الرَّسُوْلِ ۔ یعنې څوك چه د شرك او د رسول الله ﷺ د مخالفت نه ځان بچ کړي، آخرت د هغه دپاره ډیر غوره دے۔
وَلَا تُظۡلَمُونَ فَتِيلًا : یعنې که نیك عمل ډیر وکړو نو د هغے اجر به نهٔ کموی او که بد عمل ئے وکړو، نو د هغے سزا به نهٔ زیاتوی بلکه د عمل مطابق به وی۔ او ظلم په معنیٰ د کمي او زیاتي دواړو سره دے۔
نو په آیت کې ډیرے ذهن سازیانې وشوے،
(١) یو دا چه کوم عمل لازم دے هغه وکړه او چه کوم نهٔ دے هغه پریده۔

(۲) بـل دا چـه د مـخـلـوق نـه داسـې یره کول لکه د الله په شان، دا جائز نهٔ دی چه د الله حکم ورته پریدی.

(۳) بله دا چه د الله په حکم کې تال متبول کول ناروا دی.

(٤) بله دا چه دنیا معمولی ده او آخرت همیشه دے او د متقیانو دپاره بهتر کور دے.

(٥) او بله دا چه د الله په قانون کې ظلم نشته.

| أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ |
|---|
| هر چرته چه یئ تاسو لاندے کوی به تاسو لره مرګ اګرکه یئ تاسو په قلعه ګانو |
| مُّشَيَّدَةٍ وَإِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هَـٰذِهِ مِنْ عِندِ اللَّهِ وَإِنْ |
| مضبوطو کې او که اُورسیږی دوی ته خوشحالی نو وائی دوی دا د طرف د الله نه ده او که |
| تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هَـٰذِهِ مِنْ عِندِكَ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِندِ |
| اُورسیږی دوی ته تکلیف وائی دوی دا د طرفه ستا نه ده، ته اُووایه ! دا ټول د طرفه |
| اللَّهِ فَمَا لِهَـٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا ﴿٧٨﴾ |
| د الله نه دی پس څه شویدی دے خلقو لره چه نزدے نهٔ دی چه پو هه شی په خبره. |

**تفسیر** : دا بـلـه ذهـن سازی ده چـه مـرګ پـه هر ځای کې راځی، یو تن به په مضبوطه قـلـعـه کـې وی مـرګ بـه پرے راشی، نو یواځې جهاد سبب د مرګ نهٔ دے. او دا متعلق ده د (لَوْلَا أَخَّرْتَنَا) سـره یـعـنـی د جهاد د حکم په تاخیر کې هیڅ فائده نشته ځکه چه د مرګ نه خـلاصے نشته، دارنګه د قتال نه د اعراض دوه وجے وے یو د دنیا حرص او محبت نو د هغے تردید ئے په (قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا) سره وکړو او دویم د مرګ نه یره نو د هغے تردید اُوس کوی.

بُرُوجٍ : جمع د برج ده لوی قلعه ته وائی چه په هغے کې څوکیداران ناست وی چه څوك ترے بی اجازته تیریدے نشی خو چه مرګ راځی نو هلته ئے هم څوك نشی منع کولے.

پـه بـروج کـې معنیٰ د ښکاره والی ده، نو لویه قلعه هم د لرے نه ښکاره کیږی، دلته ترے د زمکے قلعه ګانے مراد دی.

مُشَيَّدَةٍ : د تـشـیـیـد نـه دے پـه مـعـنیٰ د مضبوطوالی سره یعنی داسے مضبوطے قلعه ګانے چه هغے ته انسانی قاتل نشی رسیدلے.

قصه

دلتـه ابن جریرؒ او ابن ابی حاتمؒ د مجاهدؒ نه لویه قصه ذکر کړیده چه په پخوا زمانه کې په یوه ښځه باندې درد ولادت راغې نو خپل مزدور ته ئې حکم وکړو چه اُور راوړی نو هغه ووتو نو ناڅاپه په دروازه کې د یو سړی سره ملاؤ شو نو هغه سړی ترې تپوس وکړو چه د ښځې څه پیدا شو؟ مزدور ووئیل : جینۍ. نو هغه سړی ووئیل چه خبردار دا جینۍ به د سلو کسانو سره زنا کوی، بیا به ئې یو مزدور په نکاح اخلی او مرګ به ئې د جولاګې د لاسه وی. نو دغه مزدور راواپس شو او دغه جینۍ ئې په خیټه کې په چاړه باندې ووهله، څیرې ئې کړه، بیا وتښتیدو او دا ګمان وکړو چه جینۍ مړه شوه. مګر مور ئې خیټه وګنډله نو هغه روغه شوه او لویه شوه او په خپل کلی کې ښائسته جینۍ ترې جوړه شوه، او دغه مزدور ډیر سفرونه وکړل او دریابونو ته لاړو تردې چه ډیر مالونه ئې حاصل کړل،

بیا خپل کلی ته راواپس شو او اراده ئې وکړه چه واده وکړی، نو یوې بوډۍ ته ئې ووئیل چه زۀ غواړم چه پدې ښار کې د ټولو نه ښائسته جینۍ سره واده وکړم، هغې ورته ووئیل چه دلته د فلانۍ جینۍ نه ښائسته نشته.

نو هغه ووئیل چه دغه جینۍ باندې ما له جرګه وکړه، نو هغه لاړه او جرګه ئې وکړه نو هغه جینۍ خبره قبوله کړه. نو دۀ ورسره واده وکړو نو دې جینۍ دۀ لره ډیر په تعجب کې واچولو. نو جینۍ ترې د کارونو تپوسونه وکړل او دا چه دا د کوم ځای نه راغلو؟

نو دغه مزدور ورته قصه بیان کړه او د تښتیدو وجه ئې ورته بیان کړه نو جینۍ ووئیل چه هغه جینۍ خو زۀ یم او د چاړې ځای ئې ورته وخودو نو هغه ته یقین وشو، نو دۀ ووئیل که ته هغه جینۍ یې نو ما ته به دوه خبرونه نور راکوې، یو دا چه تا د سلو سړو سره زنا کړیده؟ هغې ووئیل : څه خو شویدی لیکن ما ته د هغوی شمار نۀ دې معلوم. دۀ ووئیل : هغه سل سړی وو. دویم دا چه تۀ به په جولاګې (غڼې) سره مرې.

نو خاوند د هغې دپاره لویه قوی بنګله جوړه کړه دې دپاره چه ددې نه محفوظه شی نو څه موده روستو دوی په بنګله کې ناست وو چه ناڅاپه په چهت کې ئې یو جولاګې ولیدو نو خاوند ښځې ته ووئیل چه دا هغه شے دې؟ نو ښځې ووئیل چه آیا تاسو ما ددې شی نه یره وئ؟ قسم په الله! دا به زۀ وژنم، نو خلکو دغه جولاګې د چهت نه راخکته کړو، ښځه ورغله او خپه ئې پرې کیخوده او هغه ئې مړ کړو نو د هغې په غټه ګوته کې د نوك او د غوښې ترمینځ د هغې څه زهر داخل شو او خپه ئې توره (کینسر) شوه نو ددې په وجه مړه

شوه۔ (ابن کثیر ۲/۳٦۱ والقاسمی ۲/۳۹۷)

ذو القرنین ته سوچ وکړه چه په دنیا باندے ئے بادشاهي کوله لیکن په سفر وتلے وو کله چه بیرته خپل کلي (عراق) ته رسیدو نو په لاره کې پرے مرګ راغلو، خپل کور ته هم ونهٔ رسیدو، د مرګ نه ئے ځان نشو خلاصولے۔

وَإِنْ تُصِبْهُمْ : پدے کې د منافقانو بل بد صفت بیانیږي چه دا هغه خلك دي چه کله دوی ته په مال او اولاد کې څه نعمتونه او فراخي رسیږي، یا سلامتیا، امن او فراخ کالي، خوشحالي، یا فتح او غلبه او مالداري راشي، نو دوی وائي چه دا د الله د طرفنه دے او الله تعالیٰ ته مونږ ښه ښکاره کیږو پدے وجه ئے دا هر څه راکړیدي او را کوي ئے۔

نو مطلب دا چه پدے کار کې د رسول الله ﷺ شکریه نهٔ ادا کوي او دا قانون دے چه (مَنْ لَمْ يَشْكُرِ النَّاسَ لَمْ يَشْكُرِ اللّٰهَ) ځوك چه د انسان شکریه ونکړي هغه د الله شکر نشي کولے۔

دا ښه حالت الله راوستو لیکن د چا په وجه ئے راوستو هغه د الله د رسول د تابعدارئ په وجه۔ دوی له داسے وئیل پکار وو چه الله تعالیٰ مونږ ته څومره ښه نبي او ښه دین راکړیدے چه ددے په وجه مونږ ته داسے ښائسته حالتونه او نعمتونه ملاویږي۔ نو پدے جمله کې د دوی ناشکرئ ته اشاره ده۔

او کله چه دوی ته بد حالت رسیږي لکه مشقتونه، مرضونه، قحط سالي، یره، ګراني، غمونه، شکست، فقیري او مالي یا بدني تکلیف رسیږي نو دوی رسول الله ﷺ ته وائي چه دا ستا په وجه وشو،

(۱) نو د (مِنْ عِنْدِكَ) یوه معنیٰ ده اَیْ تَطَيَّرُوْا بِكَ ۔ یعنی په تا باندے بد فالي نیسي او وائي چه ته کله مدینے ته راغلے نو دا حالت مونږ وینو، لکه دا خبره د یهودیانو هم وه چه وئیل به ئے چه کله نه دا سړے (رسول الله ﷺ) او د هغه ملګري دلته راغلي دي، نو زمونږ په فصلونو او میوو کې کمي راغلے دے۔

او فرعونیانو د موسیٰ علیه السلام او د هغه د قوم په باره کې وئیلي وو ﴿ فَاِذَا جَآءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوْا لَنَا هٰذِهٖ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّطَّيَّرُوْا بِمُوْسٰى وَمَنْ مَّعَهٗ ﴾ (الاعراف: ۱۳۱)

کله چه دوی ته ښه حالت راشي نو وائي چه دا زمونږ دپاره دے (مونږ ددے اهل یو) او کله چه دوی ته بد حالت ورسیږي نو بد فالي نیسي په موسیٰ علیه السلام او د هغه په ملګرو۔

او د صالح علیه السلام قوم هم وئیلي وو ﴿ قَالُوا اطَّيَّرْنَا بِكَ وَبِمَنْ مَّعَكَ ﴾ (النمل: ٤٧)

مونږ په تا او ستا په ملګرو سره سپیره شو۔

او سورة یس کی دی : د بعض انبیاؤ قومونو په انبیاء علیهم السلام باندې بد فالی نیوله او هغوی ته ئې د سپیره والی نسبتونه کول. ﴿ قَالُوْا اِنَّا تَطَیَّرْنَا بِکُمْ ﴾ .

(۲) یا د مِنْ عِنْدِكَ نه مراد دا دی چه هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِكَ اَیْ بِسَبَبِ قِلَّةِ تَدْبِیْرِكَ .

یعنی دا مصیبتونه پدې وجه راځی چه ستا تدبیر او قیادت کمزورې دې لکه په منافقانو باندې به چه کله په جهاد کی څه تکلیف راغلو، بیا به ئې ویل چه دا د رسول الله ﷺ (العیاذ بالله) د قیادت او تدبیر کمزوری ده، لکه رئیس المنافقین د اُحد په غزا کی پدې بهانه باندې ځان سره درې سوه کسان راستانه کړل چه صحیح تدبیر دا وو چه د دشمن د مقابلې دپاره په مدینه کی پاتی شوی وې.

قُلْ کُلٌّ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ : اَیْ بِتَقْدِیْرِ اللّٰهِ وَبِخَلْقِهٖ وَاِیْجَادِهٖ . الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم اُوکړو چه د دوی د باطل گمان د رد کولو دپاره تهٔ اُووایه چه اې منافقانو! د نعمت یا مصیبت ټولو تعلق د الله سره دې او هغه په تقدیر کی خیر هم لیکلی او شر هم، د رسول الله ﷺ په هغې کی هیڅ مداخلت نشته، نو کله چه ښه حالت راولی، دا د الله تعالیٰ خالص احسان وی او چه کله بد حالت راولی، نو دا په سبب د گناهونو د بندگانو چه هغوی ته پرې بعض سزا ورکولې شی. (ابو السعودؒ والقاسمیؒ)

فَمَا لِهٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ : لیکن خبره په اصل کی دا ده چه تاسو په جهالت او عناد کی پراته یئ، ستاسو په پوهه کی هیڅ نهٔ راځی ځکه که تاسو بی وقوف نهٔ وې نو تاسو به ددې نصیحتونو نه فائده اخستې او پدې به پوهه شوی وې چه نعمتونه او تکلیفونه ټول د الله د طرفنه دی. (قاسمیؒ)

لَا یَکَادُوْنَ یَفْقَهُوْنَ حَدِیْثًا: امام بغویؒ وائی چه حدیث دلته د قرآن په معنیٰ سره هم دې یعنی دوی د قرآن کریم په معانی او مقاصدو نهٔ پوهیږی ځکه داسې خبرې کوی، منافق همیشه دنیا پرست وی، نو ځکه ترې الله تعالیٰ فهم اخستې وی، وړاندې ئې نظر نهٔ لگی. او دا قول ابن ابی حاتمؒ د سُدیؒ نه نقل کړیدې.

**فائده** : فقه ژور فهم (پوهې) ته وائی چه په هغې سره د الله د کتاب او د رسول الله ﷺ د سنت نه حکمتونو راویستل کیږی، ددې وجه نه په دین کی مقصود تفقه پیدا کول دی لکه سورة توبه (۱۲۲) آیت پرې دلیل دې ﴿ لِیَتَفَقَّهُوْا فِی الدِّیْنِ ﴾ .

او د منافقانو نه الله تعالیٰ فقاهت نفی کړیدې په طریقه د مبالغه سره چه فقاهت خو لا په ځای پریده چه دوی نزدې هم نهٔ دی چه په خبره پوهه شی او د رسول الله ﷺ د خبرو

رازونه ویبیزنی۔ یعنی د فقاهت استعداد یې ختم شوید ے۔ (احسن الکلام)
او فقه صرف احکام شرعیه ؤ ته یا د علماؤ مسائل جزویه قیاسیه ؤ ته نهٔ وائی، دا د متأخرینو اصطلاح ده۔

| مَا أَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللَّهِ وَمَا أَصَابَكَ |
|---|
| هغه چه اُورسیږی تا ته د خوشحالیٔ نه نو د طرفه د الله نه دی او هغه چه اُورسیږی تا ته |
| مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ وَأَرْسَلْنَاكَ لِلنَّاسِ رَسُوْلًا |
| د تکلیف نه نو دا د طرفه د نفس ستا نه دے او موږ رالیږلے دے تا لره د خلقو دپاره رسول |
| وَكَفٰى بِاللهِ شَهِيْدًا ﴿۷۹﴾ |
| او کافی دے الله تعالیٰ گواه۔ |

**تفسیر**: پدے خطاب کی اختلاف دے (۱) ځینی وائی دا رسول الله ﷺ ته خطاب دے او بیا ترے مراد امت دے۔ (۲) یا دا خطاب هر هغه چا ته دے چه د هغه سره خبرے صحیح کیږی سویٰ د نبی کریم ﷺ نه۔

دلته الله فرمایلی دی چه اے انسانه! که تا ته څه خیر او نیکی ملاویږی نو دا د الله فضل او کرم وی او که کوم تکلیف در رسیږی نو ستا د کومے گناه نتیجه وی۔

پدے کی دفع د وهم دے چه د مخکنی کلام نه پیدا شو چه د نفس دپاره به په مصیبت راتللو کی څه تاثیر نهٔ وی؟ نو الله دلته اصل قانون بیانوی چه هغه دوه قانونه دی:

(۱) یو دا چه الله تعالیٰ نیکی او بدی د مخکی نه په خپل تقدیر کی لیکلے ده۔

(۲) دویم دا چه نیکی او بدی چه راځی نو په هغے کی د انسان د عمل دخل وی، ځکه چه تقدیر الله تعالیٰ همداسے په اټکل سره نهٔ لیکی بلکه هغه ته بهتره معلومه وی چه دے انسان کی به دا دا عمل راځی پدے وجه به ورته دا دا نتیجه ملاویږی، نو پدے کی د انسان د عمل تاثیر شته۔

فَمِنَ اللهِ: یعنی تا ته چه کوم ښه حالت ورسی نو دا خالص د الله نعمت او فضل وکرم او په هغه باندے د بنده هیڅ واجب حق نشته۔ او تا ته چه کوم مصیبت در ورسیږی فَمِنْ نَّفْسِكَ أَیْ بِسَبَبِ ذَنْبِ نَفْسِكَ۔ دا په سبب د گناه د نفس ستا۔ او د ابن عباس په تفسیر سره دلته وقف دے، او هغه ورسره دا عبارت راوياسی: وَأَنَا كَتَبْتُهَا عَلَيْكَ۔ او دا سیئه درباندے ما

لیکلې ده لیکن ستا د عمل دخل او تاثیر پکې شته. (بغويؒ)

نو پدې سره د تقدیر مسئله ډیره مزیداره معلومیږي. یعنی الله ته مخکې نه معلومه وه چه د انسان نه به دا فلانئ ګناه صادریږي نو دا فلانئ سزا به ورته رسیږي، نو بنده چه کله هغه عمل وکړي سزا پرے راشي، نو ددهٔ عمل دپاره پدے کې پوره مداخلت دے، الله تعالیٰ په خپل علم او تقدیر سره په بنده باندے ګناه نهٔ کوي بلکه بنده ئے په خپل اختیار سره کوي نو ځکه د سزا مستحق ګرځي.

نو پدے کې مونږ ته دا سبق پروت دے چه کله تا سره الله احسان وکړي نو د هغه شکر کوه او داسے وایه چه اے الله ! دا ستا مهرباني وه، او کله چه درته مصیبت ورسیږي نو داسے وایه چه اے الله ! دا تا لیکلې وه لیکن پدے کې زما تقصیر او کوتاهي او نقصان او ورانے وو، نو زهٔ تا نه بخښنه غواړم او تا ته توبه وباسم او همدا د اهل سنت والجماعة عقیده ده.

ددے دواړو خلاف قدریه او جبریه ؤ کړیدے، قدریه وائي چه هر څه انسان پیدا کوي نیکي وي که بدي. ددے وجه نه چه کله نیکي وکړي نو تکبر پرے کوي او چه کله ګناه وکړي نو خفه کیږي پرے، او جبریه وائي چه دا دواړه کارونه الله کوي، د انسان پکې هیڅ اختیار نشته، نو چه ګناه ترے وشي نهٔ خفه کیږي ځکه وائي چه دا راباندے الله وکړه مونږ څه وکړو. او چه نیکي وکړي نو خوشحاله وي چه الله راباندے وکړه. دا دواړه عقیدے د قرآن او حدیث خلاف دي.

امام ترمذيؒ د ابو موسیٰ اشعري ؓ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: بنده ته چه وړوکے یا لوئي هریو مصیبت رسیږي نو د هغه د ګناه په وجه رسیږي او الله خو اکثر ګناهونه معاف کوي، بیائے دا آیت ولوستلو.

## سوال وجواب

په مخکې آیت کې الله تعالیٰ د منافقانو دغسے قول رد کړے دے او وئیلي ئے دي چه دا تول د الله د طرفه دي او پدے آیت کې وائي چه اۤؤ، سیئه د انسان د نفس د وجه نه ده نو دا خو بیرته د منافقانو تائید وشو؟

**جواب**: خوشحالي او غمونه د ایجاد په اعتبار سره دواړه الله تعالیٰ ته نسبت کیږي چه دواړه د الله د طرفه موجودیږي، او دواړه د الله په اراده پورے تعلق لري، او دا مطلب د ﴿كُلٌّ مِّنْ عِندِ اللَّهِ﴾ وو یعنی هر شے په اعتبار د پیدائش او تقدیر سره الله تعالیٰ ته منسوب دے، او

په ﴿مِنْ عِندِكَ﴾ سره د منافقانو مقصد نبي کريم ﷺ ته د سپيرۀ والي نسبت وو، نو الله هغه رد کړو چه دا الله په تقدير کي ليکلي دي. او دلته چه د سيئه نسبت نفس ته شويدے نو دا په اعتبار د ظاهري سبب سره دے چه هغه ګناهونه دي، لکه همدا مضمون د مخکني تفصيل نه معلوم شو.

ځيني علماء وائي چه دلته د آيت په سر کي (يَقُوْلُوْنَ) لفظ پټ دے چه دا هم د منافقانو خبره ده، ليکن دا تفسير ضعيف دے.

وَأَرْسَلْنَاكَ لِلنَّاسِ رَسُوْلًا : ددے جملے د مخکي سره مناسبت دا دے چه دا د (هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِكَ) سره لګي يعني لَا تَأْتِيْ بِالْمَصَائِبِ . يعني ته مونږ خلکو ته رسول راليږلے يې، ستا کار دا نۀ دے چه په خلکو به مصيبتونه راولے او الله ستا په رسالت باندے پوره ګواه دے.

(۲) اظهره دا ده : فَإِذَا أَصَابَهُمْ مَا يَسُوْءُهُمْ لَمْ يَكُنْ ظَالِمًا لَهُمْ لِأَنَّهٗ أَرْسَلَ رَسُوْلًا)

کله چه بندګانو ته هغه تکليف ورسي چه دوي پرے خفه کيږي، نو پدے کي به پرے الله تعالیٰ ظلم کونکے نۀ وي، ځکه چه هغه خو رسول راليږلے دے، او هغه خلکو ته ښه او بده لاره واضحه کړيده، او ګناهونه او د هغے سزاګانے ئے بيان کړيدي، نو اوس چه يو تن دغه ګناه کوي او الله سزا ورکوي، نو دا به ظلم نۀ وي، د بندګانو عذر به هله قبليدے چه الله رسول نۀ وے راليږلے، او هغوي ګناهونه کولے او الله پرے رانيولے، نو دوي به عذر کولے چه مونږ ګناه نۀ پيژندله نو سزا څنګه راکړے شي.

وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا : الله پوره ګواه دے ستا په رسالت او رشتينوالي باندے چه ستا په لاسونو ئے معجزات ښکاره کړيدي، نو هرکله چه ستا رسالت ثابت شو نو ستا په طاعت کي يُمن (خير او برکت) دے او ستا نه په مخالفت کي سپيرۀ والے دے. (قاسمي)

د الله ګواهي د رسول الله ﷺ په رسالت باندے په څه طريقه ده ؟ ددے بيان ددے سورت په آخر آيت (۱۶۶) کي راځي ان شاء الله تعالیٰ تفصيلًا.

| مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ أَطَاعَ اللّٰهَ وَمَنْ |
|---|
| څوک چه تابعداري کوي د رسول نو يقيناً هغه تابعداري اوکړه د الله او څوک |
| تَوَلّٰى فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ﴿۸۰﴾ |
| چه واوړيدو نو نۀ ئے راليږلے مونږ ته په دوي باندے ساتونکے. |

**تفسیر** : پدیے آیت کی هم کامل ترغیب دیے اطاعت د رسول الله ﷺ ته، پدیے طریقه چه الله تعالیٰ خپل اطاعت د رسول الله ﷺ په اطاعت کی بند کړیدیے چه څوك د رسول الله ﷺ خبره ومنی نو دا د الله خبره منل دی او څوك چه د رسول الله ﷺ نافرمانی کوی هغه هیڅ کله د الله فرمانبردار نشی جوړیدیے. د رسول الله ﷺ د سنتو خلاف ورزی کولو سره د الله بندگی نشی کیدیے. لکه چه مخکی د (۵۹) آیت د تفسیر په ضمن کی ددیے تفصیل تیر شو. نو پدیے کی د رسول الله ﷺ ډیر لوی شان او د اتباع سنت اهمیت ذکر شو.

فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ : د محمد رسول الله ﷺ هر حرکات او سکنات او خبریے د الله خوښی دی نو د رسول الله ﷺ خبره منلو سره الله راضی کیږی.

وَمَنْ تَوَلّٰی : أَیْ عَنْ طَاعَتِكَ ـ یعنی کوم خلق چه ستا د اطاعت نه مخ اړوی نو دوی په خپل حال باندیے پریده، ستا ذمه واری صرف زما پیغام هغوی ته رسول وو، او هغه تا اوکړل، اوس چه څوك ستا اتباع کوی نو هغه به نیك بخت وی او د جهنم نه به نجات مونده کوی او چه څوك مخ اړوی نو هغه به په دنیا او آخرت کی تاوان مونده کوی.

حَفِیْظًا : أَیْ حَفِیْظًا لِأَعْمَالِهِمْ ـ یعنی د دوی د اعمالو حفاظت کونکے او نگرانی کونکے او څوکیداری کونکے ته نهٔ یی، چه دوی څه فساد او ورانے وکړی گنے د رسول الله ﷺ نه به الله تپوس کوی، داسے نهٔ ده. ځکه چه دا د رسول الله ﷺ په طاقت کی نشته چه د هر چا د عمل نه ځان خبر کړی او خلك په زوره په حق باندیے راولی.

| وَيَقُوْلُوْنَ طَاعَةٌ فَإِذَا بَرَزُوْا مِنْ عِنْدِكَ بَيَّتَ |
|---|
| او وائی دوی کار زمونږ تابعداری ده، پس کله چه اووځی ستا د خوا نه نو شپه تیروی |
| طَآئِفَةٌ مِنْهُمْ غَيْرَ الَّذِيْ تَقُوْلُ وَاللّٰهُ يَكْتُبُ مَا |
| یوه ډله د دوی نه په غیر د هغه خبرو نه چه دوی ئے وائی او الله لیکی هغه خبریے |
| يُبَيِّتُوْنَ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿۸۱﴾ |
| چه دوی ئے د شپے کوی نو مخ واړوه د دوی نه او ځان سپاره په الله تعالیٰ باندیے او کافی دیے الله ذمه وار. |

**تفسیر** : پدیے آیت کی هم الله تعالیٰ د منافقانو د باطنی خباثت خبر ورکړیدیے او په دوی ئے رد کړیدیے چه دوی کله د رسول الله ﷺ په خوا کی وی، نو وائی چه زمونږ کار خو ستا

اطاعت کول دی، لیکن کله چه د رسول الله ﷺ د خوا نه به لاړل نو د شپې په تیاره کی به ئې د منافقانو سردارانو سره خپل مینځ کی د هغه د نافرمانئ او د سرکشئ لوظ تازه کولو، او د رسول الله ﷺ او د سنت خلاف خبرے به ئې کولے او مسلمانانو ته به ئې مکرونه او چلبونه جوړول. نو هرکله چه دوی داسے کارونه کوی، نو د دوی نه خو یره پکار ده نو الله حکم کوی (وَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ) د دوی نه یره مۀ کوه بلکه الله ته ځان وسپاره.

بَيَّتَ : هغه خبرو ته وائی چه انسان پرے شپه تیروی، او توله شپه گپ شپونه او غلطے خبرے کوی، پدے وجه شریعت د ماسخوتن نه روستو فضول خبرے او گپے شپے حرامے کړیدی ځکه چه پدے کی ډیر ضررونه دی، او د کافرانو او منافقانو سره تشبّه ده.

بَيَّتَ لفظ په اصل کی د بَيْت یا د بَيَات نه اخستے شویدے او بَيْت کور ته وائی نو دا هغه خبرے ته وائی چه په شپه کی جدا په یو گوټ کی جوړه کړے شوی وی، یا هغه کار چه په دغسے موقعه کی په ډیر فکر سره ترتیب کړے شوی وی نو د هغے نه په بَيَّتَ سره تعبیر کیږی. (تفسیر القاسمی ۲/۳۹۹)

او په بل تعبیر سره : د دقیق (باریک) پلان نه په بَيَّتَ لفظ سره تعبیر کیږی اگرکه هغه د ورځے جوړ کړے شوے وی، ددے وجه نه منظوم کلام ته اَبْيَات وئیلے کیږی ځکه چه د هغے په ترتیب کی لږ څه دقت (باریکی) وی.

امام رازیؒ د زجاجؒ نه نقل کړیدی چه هر هغه کار چه د هغے په مصالح او مفاسدو کی ډیر فکر او سوچ وکړے شی نو هغے ته مُبَيَّت وئیلے شی. (قاسمی)

تَقُوْلُ : (۱) دا یا صیغه د واحدے مؤنثے ده. او ضمیر (هِيَ) مخکی (طَائِفَةٌ) ته راجع دے. او مطلب دا دے چه دوی شپه تیروی په غیر د هغه خبرو باندے چه دوی ئې دعوه کوی یعنی دعوه د طاعت کوی او بیا خبرے د طاعت خلاف کوی، او د رسول الله ﷺ د اوامرو او نواهیو خلاف کوی.

(۲) یا (تَقُوْلُ) د مخاطب مذکر صیغه ده. یعنی اے نبی! ستا د وینا نه په خلاف خبرو باندے شپه تیروی چه هغه د کفر او شرك او بدعاتو او فسق او فجور خبرے دی.

وَاللهُ يَكْتُبُ : پدے کی الله تعالیٰ منافقانو ته دهمکی ورکړیده چه الله د خپلو ملائکو په ذریعه د دوی تمام اعمال لیکی، او دوی ته به د خپلو منافقتونو او خباثتونو پوره پوره بدله ملاویږی.

**فائده** : امام قرطبیؒ لیکی چه دا آیت دلیل دے چه صرف وینا (بغیر د عمل) نه په

اسلام کې هیڅ فائده نهٔ ورکوي.
فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ : أَيْ لَاتُبَالِ بِهِمْ. پدے کې ئے نبي کریم ﷺ ته فرمایلي دي : چه د دوي سره د عفو او مخ اړولو نه کار واخله، یعني هیڅ باك پرے مهٔ کوه او کار ورته مهٔ پریده، او د دوي سره په بحثونو باندے وخت مهٔ ضائع کوه، بلکه د یو وخته پورے ورسره خبره مه سپینوه، او د دوي حقیقت د خلقو ته پټ اوساته، او د دوي نه یره مهٔ کوه، او په الله باندے بهروسه کوه، ځکه چه څوك په الله بهروسه کوي نو الله د هغه دپاره کافي کیږي، او که دوي هرڅو مره هلے ځلے وکړي نو د الله د ارادے مخه نشي نیولے.
او داسے حالت په هر داعي مؤمن باندے په هر وخت کې راځي.
وَكِيلًا : وکیل هغه چا ته وائي چه هغه ته کار سپارلے شي.

| أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللَّهِ |
|---|
| آیا سوچ نهٔ کوي دوي په قرآن کې او که وے دا د طرفه د غیر الله نه |
| لَوَجَدُوا فِيهِ اخْتِلَافًا كَثِيرًا ﴿۸۲﴾ |
| خامخا به موندلے وے دوي په دے کې اختلاف ډیر. |

**تفسیر** : پدے کې هم رد دے په منافقانو باندے او دوي ته زجر ورکړے کیږي او د دوي قباحت بیانیږي چه دوي په قرآن کریم کې تدبر نهٔ کوي، یعني که منافقانو قرآن کریم په سوچ سره آوریدلے وے، د هغے په مضامینو او معانیو کې ئے تدبر کولے، نو دوي ته به پوره معلومات حاصل شوي وے چه رسول الله ﷺ په حق دے او کوم دین ئے چه راوړیدے هغه هم حق دے، او اطاعت ئے واجب دے، او د هغه نفاق نه به خلاص شوي وے کوم چه د دوي زړونه فاسد کړیدي، او د دوي فکرونه ئے بدبویه کړیدي.
**ربط** : مخکې د رسول الله ﷺ په رشتینوالي باندے د الله شهادت ذکر شو نو سوال پیدا شو چه د الله شهادت څنګه معلومیږي؟ نو ووئیلے شو چه دوي دے په قرآن کریم کې سوچ وکړي نو د رسول الله ﷺ صدق به ورته ښکاره معلوم شي.

## د تدبر څه معنیٰ ؟

أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ : د تدبر نه اخستے شویدے، او تدبر په اصل کې [اَلتَّأَمُّلُ وَالنَّظَرُ فِيْ أَدْبَارِ

الْأَمْرِ وَعَوَاقِبِهِ خَاصَّةً) د یو کار په عاقبت او انجام کی سوچ او فکر کولو ته وئیلے شی، بیا استعمالیږی په معنیٰ د نفس فکر او سوچ سره، برابره ده چه په حقیقت د یو شی کی وی یائے په انجام وغیره کی وی۔ (قاسمی)

## حکمة :

الله تعالیٰ په تدبر باندے حکم وکړو او داسے ئے په سورة مؤمنون (۶۸) آیت کی هم وئیلی دی﴿ أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ﴾ ۔ او داسے ئے ونهٔ وئیل (أَفَلَا يَقْرَءُوْنَ الْقُرْآنَ) دوی قرآن ولے نهٔ لولی؟ وجه دا ده چه منافقان خو د قرآن ډیر قرائتونه او تلاوتونه کوی لکه په حدیث کی د خوارجو په باره کی راغلی دی (يَقْرَءُوْنَ الْقُرْآنَ لَايُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ) قرآن به لولی لیکن د مرو نه به ئے نهٔ پورته کیږی۔ نو اصل مقصد په قرآن کریم کی تدبر او تفکر کول دی۔

(احسن الکلام بتغیر)

ددے وجه نه د مؤمن صفت به دا وی چه په قرآن کریم کی به تدبر کوی، چه دا کتاب ما ته څه وائی او ما کوم طرفته راکاږی او که زهٔ دا خبرے ونهٔ منم نو ما سره به څه کیږی؟ آیا زهٔ به الله ته نهٔ پیش کیږم، هغه به رانه تپوس نهٔ کوی؟!

ددے وجه نه سیدنا علی بن ابی طالب رضی الله عنه فرمائی :

[وَلَا خَيْرَ فِيْ قِرَاءَةٍ لَيْسَ فِيْهَا تَدَبُّرٌ] (اخلاق العلماء للآجری متوفی : ۳۶۰ هـ رقم الاثر : ۴۵)۔

او په هغه قراءت کی هیڅ خیر نشته چه په هغے کی تدبر نهٔ وی۔

حسن بصریؒ وائی : [أُنْزِلَ الْقُرْآنُ لِلتَّدَبُّرِ فَجَعَلُوْهُ لِلتِّلَاوَةِ] ۔ قرآن کریم د تدبر دپاره نازل شوے وو نو خلکو دا صرف د تلاوت پورے خاص کړو۔

او په بل روایت کی دی : [نُزِّلَ الْقُرْآنُ لِيُعْمَلَ بِهِ فَاتَّخَذَ النَّاسُ تِلَاوَتَهُ عَمَلًا]۔

قرآن کریم ددے دپاره نازل شوے وو چه خلك به پرے عمل کوی لیکن خلکو ددے تلاوت عمل جوړ کړو۔

(تفسیر السمعانی ۱۹۹/٤ سورة النمل والانوار الساطعات لآیات جامعات لعبد العزیز السلمان)

وَلَوْ كَانَ :دے نه روستو الله اُوفرمایل چه دا قرآن حق دے، او د الله کلام دے، که د غیر الله کلام وے، نو پدے کی به اختلاف او پریشانی او تعارض وے، په خاص توگه په غیبی اُمورو کی۔ لیکن پدے کی داسے یوه کومه خبره نشته، په سلگونو غیبی امورو سره متعلق تفاصیل دی، او په تیریدو د زمانے سره د هغے تصدیق او تائید کیږی۔ پدے وجه منافقانو لره خپل نفاق پریخودل او پدے قرآن باندے ایمان راوړل پکار دی۔

ابن عاشورؒ لیکی : تدبر د قرآن په دوه قسمه دے :

(۱) [أَنْ يَتَأَمَّلُوا دَلَالَةَ تَفَاصِيلِ آيَاتِهِ عَلَى مَقَاصِدِهِ الَّتِي أُرْشِدَ إِلَيْهَا الْمُسْلِمِينَ اَیْ تَدَبُّرَ تَفَاصِيلِهِ)

اول دا چه د آیتونو په شرعی مقاصدو باندے په تفصیلی دلالت کولو کی تامل او فکر وکړی او په هغے کی احکام او حکمتونه او لطائف الهیه معلوم کړی۔

(۲) [أَنْ يَتَأَمَّلُوا دَلَالَةَ جُمْلَةِ الْقُرْآنِ بِبَلَاغَتِهِ عَلَى أَنَّهُ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ]

دویم دا چه په اجمالی طریقے سره د قرآن کریم په فصاحت او بلاغت کی سوچ وکړی چه دا د الله تعالیٰ د طرف نه نازل شویدے، رشتینی کتاب دے۔ او دا دواړه تدبره صحیح دی لیکن دلته اول قسم تدبر اخستل د سوق د آیتونو په وجه غوره دی او مطلب دا دے چه که دے منافقانو د قرآن کریم په هدایاتو باندے پوره فکر وکړو نو دوی به لوی خیر حاصل کړی او د نفاق نه به بچ شی۔ (التحریر والتنویر ۱۹۹/٤)

وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللَّهِ : دا د تدبر یو صورت دے چه که دا کتاب د غیر الله کلام وے، نو پدے کی به ډیر اختلاف او تناقض وے، او هرکله چه اختلاف نشته نو دا د الله کتاب شو او هرکله چه د الله کتاب شو، نو ددے منل پکار دی او ددے تابعداری پکار ده ځکه چه د یو عاقل دپاره د الله خبره غورزول پکار نهٔ دی۔

## د تدبر صورتونه

(۱) یو تدبر پدے کی کیږی چه دا قرآن د غیر الله کلام نشی کیدے ځکه چه پدے کی داسے کمالات او اعجاز او فصاحت او بلاغت دے چه هغه د الله نه سوئ د بل چا په کلام کی نشی کیدے، او ټول امت ئے مقابله نشی کولے، نو پدے تدبر سره به منافق ایمان ته مجبوره شی او د منافقت نه به خلاص شی۔

(۲) دویم تدبر : اَلنَّظَرُ فِي عَاقِبَةِ الْوَعِيْدِ۔ قرآن کریم کی چه کوم وعیدونه او عذابونه ذکر شویدی چه که منافق په هغے کی سوچ وکړی چه دا خو زهٔ نهٔ منم مگر که دا راشی نو الله به ما ته په قبر کی عذاب راکړی، او جهنم ته به مے بوځی، نو آیا زهٔ به د هغے برداشت وکړے شم ؟ هیڅکله نهٔ، نو ما دپاره ددے کتاب او ددے نبی منل پکار دی، ځکه چه پدے تابعداریٔ کی دومره تکلیف نشته، او هغه عذابونه ډیر سخت دی نو کله چه عذابونو ته سوچ وکړی، نو په قرآن به مؤمن هم شی او عامل به هم شی۔

(۳) اَلتَّدَبُّرُ فِي أَخْبَارِ الْقُرْآنِ : په مخکنی آیت کی الله تعالیٰ د منافقانو پټی خبرے افشاء

کړے چه دوی د نبی اطاعتیٔ پلانونه جوړوی، که دوی د قرآن کریم یواځی په همدغه خبره کی تدبر وکړی (چه د واقع سره مطابقه ده) هم د نبی کریم ﷺ د رسالت تصدیق به ئے کړے وے، کـه بالفرض دغه ذکر شوی اخبار واقعیت نهٔ لرلے نو خامخا به منافقانو اعتراض کړے وے چه دا خبره خطاء ده۔

(٤) په یو کلام یا یوه حادثه باندے چه کله عمر زیات تیر شی او بیا اُوږد کلام هم وی نو په هغے کی ضرور تفاوت او اختلاف پیدا کیږی او قرآن کریم په درویشت کاله ژوند کی په مختلفو واقعاتو او موقعو کی نازل شویدے او په مختلفو علومو او قوانینو باندے مشتمل دے او د اختلافاتو او تناقضاتو نه خالی دے۔ دا تصور هم بنده دے ته مجبوره کوی چه اعلان وکړی چه آؤ دا صرف د الله تعالیٰ کلام کیدے شی، نهٔ د بل چا۔

(٥) د مؤمنانو تدبر هم مختلف صورتونه لری۔ د قرآن کریم په معنیٰ او مقصد کی تدبر کول، او کله تدبر وی دپاره د راویستلو د احکامو او حکمتونو او رازونو، او کله د قرآن کریم په کمالاتو کی تدبر کول وی چه فلانی ځای کی ئے دا لفظ استعمال کړو او دا نهٔ، ددے څه کمال دے؟ دا د ایمان د زیادت سبب ګرځی نو دا تدبر هم ضروری دے۔

## د تدبر طریقه

په تدبر سره په بنده باندے ډیر علمونه راکولاویږی۔ د تدبر طریقه دا ده چه په هر لفظ کی سوچ وکړے شی چه ددے اصلی معنیٰ څه ده او دلته څنګه استعمال شویده؟ دارنګه دلالة الاقتران کی سوچ چه دوه څیزونه په یو ځای ذکر شویدی ددے څه حکمت دے؟، دارنګه تقدیم تاخیر ولے شویدے؟۔ دارنګه دا لفظ پدے سورت کی ولے راوړے شویدے۔ یو لفظ په یو سورت کی بار بار ولے ذکر شویدے۔

کله جمع بین الالفاظ المختلفة من السور المختلفة وی یعنی د بیلو بیلو سورتونو نه مختلف الفاظ راواخله او یو ځای ئے کړه نو ددے نه به بیل حکمة راوځی۔

د تدبر یوه بله طریقه دا هم ده چه کله یو تن د یو آیت نه پوره استنباط نشی کولے نو د علماؤ کتابونه وګوری، په هغے کی به د حکمة یوه خبره وینی نو هغه راواخله، بیا ئے د قرآن کریم په آیتونو کی وګوره، نو په یو آیت کی به درته همغه مقصد راوځی، نو د آیت په مطلب به ډیر ښه پوهه شے چه دا خبره خو د قرآن پدے آیت کی هم شته اګرکه تا ته به دغه خبره د آیت نه اول کی نهٔ ښکاره کیږی۔ نو د علم د ډیر والی د وجه نه په قرآن کریم

کی تدبر ډیریږی. او دا تدبر په علم لغت او سیرت پیژندلو باندے زیاتیږی. نو کوم شخص چه په علم لغت (نحو، صرف او علم معانی، علم بیان او بدیع) کی مهارت لری نو هغه په قرآن کریم ډیر ښه پوهیږی. او پدے تدبر کی وخت تیرول دا بعینهٖ حیاتِ طیبه دے او دا مزیدار علم دے.

| فَتَدَبَّرِ الْقُرْآنَ اِنْ رُمْتَ الْهُدٰی | ❁ | فَالْعِلْمُ تَحْتَ تَدَبُّرِ الْقُرْآنِ |
|---|---|---|

(حافظ ابن القیمؒ)

**فائده** : امام قرطبیؒ وائی : وَفِيْهِ دَلِيْلٌ عَلَى الْأَمْرِ بِالنَّظَرِ وَالْإِسْتِدْلَالِ وَإِبْطَالِ التَّقْلِيْدِ) (تفسیر القرطبی ۵/۲۸۸) پدے آیت کی دلیل دے او امر دے پدے خبره چه په یوه مسئله کی به فکر کولے شی او دلیل به پیش کولے شی، او دا دلیل دے چه تقلید باطل شے دے.

علامه قاسمیؒ د امام رازیؒ نه نقل کړیدی چه هغه فرمائی:

[دَلَّتِ الْآيَةُ عَلَى وُجُوْبِ النَّظَرِ وَالْإِسْتِدْلَالِ وَعَلَى الْقَوْلِ بِفَسَادِ التَّقْلِيْدِ]

دا آیت دلیل دے چه په یوه مسئله کی فکر کول او دلیل ورله پیش کول واجب دی، او په تقلید سره په یوه مسئله کی قول کول فاسد کار دے. (ځکه چه تقلید د تدبر دروازے بندوی) ځکه چه الله تعالیٰ منافقانو ته حکم کړے چه د نبی کریم ﷺ د نبوت په رشتینوالی باندے دغه مخکنے دلیل ونیسی. (محاسن التاویل ۱/۲ ۴۰)

بعض ملیان په تفسیر کی هم د خپل استاذ تقلید کوی که هغه غلط شوے وی بیا هم د هغه ترجمه کوی او خپل کوم سوچ نۀ لری او دا خلك ډیر دی. یو ملا د (صرة) معنیٰ د کڼکی کړے وه، شاګردانو به هم دغه معنیٰ کوله حالانکه (صرة) چغے ته وائی.

لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا :

## د اختلاف اقسام

اخْتِلَافًا كَثِيْرًا : اَیْ تَنَاقُضًا وَتَفَاوُتًا (قاله ابن عباس ﷺ- بغوی، قرطبی)

ابوبکر الجصاصؒ او قرطبیؒ وئیلی دی چه اختلاف په درے قسمه دے

(۱) اختلاف تناقض، چه دیو بل ټکراؤ خبرے پکی وی دا په قرآن کریم کی نشته.

(۲) دویم اختلاف تفاوت، چه په یو آیت کی ئے کمال وی یعنی فصاحت او بلاغت او بل کی هغه شان نۀ وی لکه د انسانانو کلام داسے وی چه یو ځای کمالی عبارت وی او بل ځای نۀ وی، دا هم قرآن کریم کی نۀ دے موجود.

(۳) اختلاف تلاؤم : دا دے تہ وائی چہ ټول کلام پہ فصاحت او بلاغت او کمال او صدق کی سرہ برابر وی لیکن پہ یو ځای کی یو لفظ وائی او بل ځای کی بل. نو دا د قرآن کریم کمال دے چہ یوہ قصہ پہ مختلفو عبارتونو نقل کوی، او ټول د فصاحت او بلاغت والا وی.

**فائده** : مفسر ابوحیانؒ لیکی : دا نظری حجت دے او دلیل د ملازمے دا دے چہ څوك اوږد کلام جوړ کړی او پہ هغے ډیرہ مودہ تیرہ شی نو پہ دغه کلام کی ضرور اختلاف راځی یا پہ وصف او لفظ کی (چہ بعض اعلیٰ فصیح او بلیغ وی او بعض درمیانه وی او بعض بیخی ساقط کلام وی) او یا پہ معنیٰ کی پہ تناقض د خبرونو سرہ، یا پدے طریقه سرہ چہ د مخبر عنه (یعنی د واقع) خلاف وی (چہ هغے تہ کذب یا خطائی وائی) یا پہ داسے څیز باندے مشتمل وی چہ هغه نا مناسبه وی او تطبیق ئے نۀ کیږی. او یا ئے مقابله ممکنه وی او هرچہ قرآن کریم دے نو پہ هغے کی هیڅ قسم لفظی یا معنوی مخالفت کذب او خطائی او غلطی وغیرہ نۀ راځی.

ابن عطیهؒ وئیلی دی : کہ د چا پہ قرآن کریم کی څه شك یا گمان د اختلاف پیدا شی نو لازمه دہ چہ پہ خپل نظر او پوهه باندے ډیے تهمت ولگوی او د هغه چا نه ډیے تپوس وکړی چہ ددۀ نه پہ قرآن ښه پوهه وی. انتهیٰ کلام ابی حیان (البحر المحیط ۷۲۵/۳)

**فائده ۲**: عام مفسرین لیکی چہ دا آیت دلیل دے چہ د قرآن کریم نه ماسوئ پہ هر کتاب کی، خصوصًا هغه کتاب چہ د هغے پہ تصنیف او تالیف باندے ډیر وخت ولگی او لوی کتاب وی ضرور غلطی او تناقض او تفاوت وی او دا بدیهی (ښکارہ) خبرہ دہ.

هر مصنف چہ خپل تصنیف څه زمانه روستو وګوری نو ضرور ورته ډیر داسے ځایونه ملاویږی چہ دا غواړی چہ ما دا عبارت پدے طریقه نۀ وے لیکلے بلکه ددے نه هم ښه وے.

علامه قاسمیؒ وائی چہ پدے آیت کی عذر دے د مصنفینو د کتابونو دپارہ چہ د هغوی نه بہ تناقض او اختلاف واقع کیږی ځکه چہ د خطائی نه سلامتیا د الله تعالیٰ د کتاب خصوصیت دے. (محاسن التاویل ۲/ ۴۰۱).

کثیرًا : دا لفظ ولے وائی؟ آیا کئے قرآن کریم کی لږ اختلاف شته؟

۱ - نو ددے یوہ وجه دا دہ چہ اختلاف ډیر صورتونه لری لکه پہ فصاحت او بلاغت کی، پہ صدق او عدم صدق کی، پہ صحیح او فاسدہ معنیٰ کی، بل پہ تناقض کی او بل پہ تفاوت وغیرہ نو ددے ټولو تہ یو قسم اختلاف هم پہ قرآن کی نشته، پدے وجه ئے

(اختلافًا کثیرًا) وئیلی دي.

۲– صاحب اللباب لیکي چه قرآن کریم لوی کتاب دے او په ډیرو قسمونو د علمونو مشتمل دے نو که بالفرض په دیکي غلطیانی راغلی نو ډیرے به وی خو هرکله چه په کی یوه غلطی هم نشته نو معلومه شوه چه دا کتاب د الله تعالیٰ دے. لهذا دا قید احترازی نهٔ دے.

| وَإِذَا جَآءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ وَلَوْ |
|---|
| او کله چه راشی دوی ته یو کار (یا خبر) د امن یا د ډیرے، خوروی دوی هغے لره او که |
| رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ |
| دوی واپس کړے وے دا خبره رسول ته او خاوندانو د کار ته د دوی نه خامخا پوهه شوی به وے |
| الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ مِنْهُمْ وَلَوْلَا فَضْلُ |
| پدے باندے هغه کسان چه راوباسی تدبیر د هغے خبرے د دوی نه او که نهٔ وے مهربانی د |
| اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطَانَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿۸۳﴾ |
| الله په تاسو او رحمت د هغه نو خامخا تابعداری به کړے وے تاسو د شیطان مګر لږو کسانو. |

**تفسیر :** شان نزول :

(۱) د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه نبی کریم ﷺ به کله یوه سریه (ډله د مجاهدینو) د غزا دپاره ولیږله او هغه به په دشمن غالبه شوه یا به مغلوبه شوه او د هغوی په باره کی به مدینے ته څه افواهی خبر راورسیده نو منافقانو به بغیر د تحقیق نه دغه خبر مشهور کړو او د نبی کریم ﷺ اخبار ته به ئے انتظار نکولو نو دا آیت نازل شو.

کله به منافقانو دا خبره خوره کړه چه دغه مجاهدینو ته خو ډیر سخت تکلیف رسیدلے دے، دومره دومره کسان پکی مړه شویدی، تعیین به ئے د څان نه وکړو، دلته به په مسلمانانو کی پریشانی راغله نو لږے ورځے روستو به هغه خبر دروغ وختو او دغه مسلمانان به روغ راورسیدل، او کله به مجاهدینو ته تکلیف رسیدلے وو نو دوی به خبره خوره کړه چه هغوی بیخی روغ او سلامت دی او غنیمتونه ئے واخستل، نو څه وخت روستو به خبر د هغے په خلاف راورسیدو، نو مسلمانانو باندے به ئے سمدستی پریشانی

راوسته نو پدے کی ډیر نقصانات وو، یو پدے کی دروغ خبره خوره ول دی
(لکه حدیث کی دی : كَفٰى بِالْمَرْءِ كَذِبًا أَنْ يُحَدِّثَ بِكُلِّ مَا سَمِعَ- صحیح مسلم)
د انسان دپاره دا دروغ هم بس دے چه هره خبره واوری هغه بیانوی)
او بل مسلمانان پریشانه کول دی، او بل بی وخته د خلکو ذهنونه په داسے خبرونو مصروفه کول دی چه دا هم لوی جرم دے. نو دلته الله تعالیٰ منع وکړه چه تاسو ته کله یوه خبره راورسیږی نو همداسے به ئے نه خوروے بلکه تهٔ به ځے او رسول الله ﷺ ته به د هغے تحقیق کوے که هغه سره نشے ملاویدے نو ابوبکر او عمر او عثمان او علی رضی الله عنهم سره ملاؤ شه یا په روستو زمانه کی د یو فوج مشر او عالم او امیر ته رجوع وکړه او تحقیق وکړه.
او نن سبا هم د بی تحقیقه خبرو د خوره ولو د وجه نه تول معاشره خرابه ده، یو بل باندے بدګمانیانی او یو بل سره بی محبتیانی د همدے لارے نه پیدا دی. څوك پکی وائی فلانی د کافرو ملګرو دے، فلانی د کافرو نه دومره دومره پیسے واخستے، او فلانے خو جاسوس دے، بی تحقیقه خبرے خوروی، دا لوی مجرمان دی.
او د بی تحقیقه خبرو خورولو نه په اسلامی معاشره کی ډیر قسمه نقصانات راپورته کیږی، څکه چه په عامه توګه په غیر تحقیق شوی خبرو کی ډیر د دروغو خبرے خوریږی. منافقانو به کله د مسلمانانو د غلبے په باره کی خبره خوره کړه او د مبالغے نه به ئے کار واخستو او ددے نسبت به ئے رسول الله ﷺ ته هم وکړو چه هغه داسے وویل، بیا به هغه خبره هغه شان نهٔ راوتله نو ډیرو خلکو ته به د رسول الله ﷺ په رشتینوالی کی شك پیدا کیدو. دا هم لوی نقصان وو.
د هغه خبرونو یو نقصان دا هم دے چه د مسلمانانو د جنګی تیاریانو خبر به په ډیره تیزئ سره کافرانو ته رسیږی چه په هغے سره جنګی پروګرام سر ته نهٔ رسیږی، یا د تاوان سره مخامخ کیږی. او که د یرے او رعب والا خبر وی نو کمزوری مسلمانان به د هغے په وجه یریږی، ددے خرابیانو د وجه نه الله تعالیٰ د خبرو د تشهیر (مشهورولو) نه منع وفرمایله.
(۲) ځینی مفسرینو پدے کی د نبی کریم ﷺ د طلاق خبر هم ذکر کړیدے چه هغه منافقانو خور کړے وو، رسول الله ﷺ د خپلو بیبیانو نه یوه میاشت د جدائی قسم کړے وو نو منافقانو او بی تحقیقه خلکو دا خبره خوره کړه چه رسول الله ﷺ خپلے بیبیانی طلاقے کړیدی پدے کی عمر فاروق رضی الله عنه خبر شو نو هغه د تحقیق دپاره د رسول

الله ﷺ ځو اته راغے، دلته معلومه شوه چه خبره هغه شان نۀ وه. (صحیح مسلم ۱/۴۸۱)
اَذَاعُوْا بِهٖ : اذاعة، خبره خورولو ته وئیلے شي. دا کلمه متعدي بالذات استعمالیږی او کله متعدي بالواسطه. او څینی وائی دا څکه په باء سره متعدي شویدے چه دا متضمن دے معنیٰ د تحدیث (خبرورکولو) لره.
وَلَوْ رَدُّوْهُ : الله اُوفرمایل چه که دے خلقو ددے خبرونو په باره کی د رسول الله ﷺ او د بصیرت والا صحابه کرامو د رائے انتظار کولے، نو هغوی ته به حقیقتِ حال معلومیدلے. او دا به هم معلومیدلے چه کوم خبر مشهورول پکار دی او کوم پټول پکار دی. نو هغوی چه ورته هر قسمه هدایت کړے وے نو دوی به په همغه پروګرام باندے تلی وے او په هغوی باندے به ئے د خبر په باره کی پروګرام نۀ وے خراب کړے.

## د استنباط معنیٰ

يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ : دا کلمه د استنباط نه اخستے شویده او هغه په اصل کی د نَبَط لکه بَشَر نه جوړه شویده او نبط هغه اُوبو ته وائی چه د کوهی د کنستلو په وخت کی اول ځل د کوهی نه راپورته کړے شي. بیا کله د کوهی نه اُوبه راویستونکو او کوهیان کنستونکو ته هم وائی او کله زمیندارو ته هم وائی. نو معنیٰ ئے د راویستلو او د تحقیق ده.
او دلته ئے معنیٰ ده: اَیْ یَسْتَخْرِجُوْنَ تَدْبِیْرَهٗ.
یعنی د هغه خبرے تدبیر راویاسی په خپل عقل او تجربی او فکر سره، چه آیا ددے خبرے خوره ول پکار دی او که نۀ؟ یا دروغجن خبر دے او که رشتینی.
نو معنیٰ به دا وی: که چرته دے منافقانو دا خبره رسول الله ﷺ یا اولی الامر (د رائے والا مشرانو) ته واپس کړے وے کوم چه د دوی د جنس نه دی، نو خامخا پدے خبر باندے به پوهه شوی وے هغه مشران چه راویاسی تدبیر د خبرے چه هغه بعض صحابه کرامؓ دی. او هر کله چه هغوی پوهه شوے وے نو هغوی ته به معلومه شوے وے چه آیا دا خبر د خورولو لائق دے او که نۀ.
او استنباط کله په معنیٰ د حرص کول او تپوس کول د هغے دی (عکرمة)
او ضحاکؒ وئیلی دی چه استنباط تتبع (تفتیش او تالاش) ته وئیلے شي نو پدے معنیٰ باندے به د (الذین) نه مراد منافقان وی او (مِنْهُمْ) ضمیر (اولو الامر) ته راجع دے. یعنی هغه خلک چه تپوسونه د اولو الامر نه کوی. یا بیرته منافقانو ته راجع دے څکه چه

منافقانو کی دوه قسمه وی یو هغه دی چه د خبرے تالاش او تفتیش کوی او د هر څه نه ځان خبروِل غواړی نو منافقان د خپل بی تحقیقه خلکو نه تپوس نه کوی او د هغوی په ذریعه خبره معلوموی۔ نو دوی ته وئیلے شی چه که دوی دا خبره رسول الله ﷺ او اولو الامر (صحابه کرامو) ته واپس کړے وے نو خامخا پدے خبره باندے به پو هه شوی وے دا منافقان کوم چه د خبرے د معلومولو حرص او تتبع او تالاش کوی د منافقانو نه۔

یعنی چه د نورو منافقانو نه ددے خبرے تتبع او تالاش او معلومات کوے نو رسول الله ﷺ او مشرانو ته ئے واپس کړه نو هغه به درله خبر درکړی نو پو هه به پرے شی، یعنی د بی تحقیقه خلکو نه معلومات ته څه ضرورت دے بلکه اهل التحقیق ته رجوع وکړه چه هغه دِ دے په صحیح خبر باندے پو هه کړی، او د هغے تدبیر هم درته وښائی، لیکن دا ظالمان د بی تحقیقه خلکو خبره ښه منی او تحقیق والا ته صبر نکوی، دا د منافق خوئی دے۔

مِنْهُمْ : نه معلومه شوه چه اولی الامر په دوه قسمه دی یو هغه دی چه هغوی کامل عقل او رایه او علم لری، او بعض داسے نهٔ دی۔

**فائده ۱**: ددے آیت د عموم نه دا خبره هم معلومیږی چه کله یوه مسئله راشی او د هغے حقیقت او دلیل نهٔ وی معلوم، نو هغه به د رسول الله ﷺ سنت ته پیش کولے شی تردے چه د هغے صحت او ضعف معلوم شی او که همداسے په اټکل سره مسائل بیانوی او الله او د هغه رسول ته پکی رجوع نهٔ کوی نو دا به ددے آیت د وعید لاندے داخل وی۔

**فائده ۲** : ځینی مفسرینو لیکلی دی چه ددے آیت نه استنباط او اجتهاد ثابتیږی چه احکام شرعیه ؤ کی به دا کیږی او دا په ډیرو نصوصو سره ثابت دے ځکه چه نوی نوی حوادث پیدا کیږی نو د قرآن او حدیث نه به مسائل راویستلے کیږی او دا اُوس هم باقی پاتی دے، نو کومو مقلدینو چه دا لیکلی دی چه اجتهاد په څلورمه صدیٔ کی بند شویدے، دا بی دلیله او خطاء خبره ده۔ لکه شامی رد المحتار (۳) وګوره۔

**فائده ۳**: بیا ځینی مفسرینو لکه جصاصؒ، رازیؒ او قرطبیؒ لیکلی دی چه ددے نه تقلید ثابتیږی ځکه چه یو مجتهد اجتهاد وکړی نو عوام خلك به هغه منی نو دغه خلك د دغه عالِم او مجتهد مقلدین جوړیږی۔ ددے جواب په ډیرو طریقو سره دے :

(۱) پدے آیت کی په تقلید باندے رد دے ځکه چه د آیت مقصد دا دے چه بی تحقیقه او بی دلیله خبره پسے مهٔ روانیږئ او تقلید خو بی دلیله خبرے منلو ته وائی۔

| وَالْعِلْمُ مَعْرِفَةُ الْهُدٰی بِدَلِيْلِهٖ | ❁ | مَاذَاكَ وَالتَّقْلِيْدُ مُسْتَوِيَانِ |
|---|---|---|

| اِذْ اَجْمَعَ الْعُقَلَاءُ اَنَّ مُقَلِّدًا | ۞ | لِلنَّاسِ وَالْاَعْمٰى هُمَا اَخَوَانِ |
|---|---|---|

او علم خو دیته وائی چه هدایت (یعنی مسئله) سره د دلیل نه وپیژندلے شی، دا او تقلید دواړه چرته برابریږی. النونیة لابن القیم ص (۱۲۶)

او ددے آیت نه دا اشاره ملاویږی چه بی تحقیقه خبرو پسے روانیدل د منافقانو کار دے او صحیح مسلمان به هره خبره حقیقت ته رسوی او په دلیل او په بصیرت باندے به په خبره عمل کوی.

۲– دویم دا چه کله یوه مسئله راشی او خلك یکی عالِم ته رجوع وکړی نو آیا عالِم به ورته د کتاب او سنت دلیل ورکوی او که خپله رایه به ورته بیانوی؟ که خپله یا د بل عالِم رایه ورته بیان کړی نو په عوامو د هغے منل نشته، او که آیت او حدیث ورته پیش کړی، نو تقلید ختم شو.

او ددے آیت نظیر بل آیت دے ﴿فَاسْئَلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ﴾ که خپله نهٔ پوهیږئ نو د علم خاوندانو نه تپوس وکړئ. نو هغوی به درته علم (چه قرآن او حدیث دے) وښائی. نو د رد التقلید معنیٰ دا نهٔ ده چه د علماؤ نه به فائده نشی اخستلے کیدے بلکه علماء به د امت رهنمائی کوی او کتاب او سنت ته به ئے رسوی.

۳– دریم دا چه دلته د امور د حرب په باره کی خبر مراد دے ځکه چه دلته امن او خوف لفظ راغلے دے ځکه که شرعی امور مراد وے نو بیا د رسول الله ﷺ او د هغه د سنت نه علاوه بل هیڅ ته نشی پیش کیدے، که عالِم ته هم پیش کیږی نو هغه به ورته د قرآن او سنت مسئله ښائی نو بیا (اوٓالی اولی الامر) کی اختیار ذکر کول بی فائدے کیږی. نو د اولی الامر نه مراد اهل حل او عقد او اهل الشوریٰ دی.

او د احکام شرعیه ؤ په باره کی پدے سورت کی مخکی ذکر شو (فروده الی الله والرسول) صرف الله او رسول ته به واپس کولے شی، دا هم دلیل دے چه دلته امور د حرب مراد دی. او تفصیل دپاره رجوع وکړه تفسیر المنار د محمد رشید رضا ته (۲۴۹/۵) او هغه په امام رازیؒ باندے پدے مقام کی ډیرے ښے نیوکے کړیدی.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ:

دے نه روستو الله اُوفرمایل چه که د نبی کریم ﷺ د بعثت او د قرآن د نزول په ذریعه د الله فضل او کرم نهٔ وے نو اے مسلمانانو! سوئ د یو څو هو ښیارو صحابه کرامؓ نه تاسو ټول به د شیطان تابعدار جوړ شوی وے او ددے دروغو خبرونو تصدیق به مو کولے.

## سوال وجواب

اِلَّا قَلِیۡلًا په استثناء باندے ظاهراً دا اشکال کیږی چه که د الله فضل او رحمت نۀ وے نو د شیطان پسے ورتلل دی مګر لږ کسان د شیطان نه په بچ کیدو کی د الله فضل او رحمت ته محتاج نۀ دی؟ یعنی لږ کسان د الله د فضل او د رحم نه په غیر هم د شیطان تابعداری نۀ کوی او حال دا چه دا خو د صریح نصوصو خلاف خبره ده؟

ددے نو څو جوابونه دی

(۱) جواب : دلته د (فضل الله) نه مراد د قرآن نازلول او د (رحمته) نه د رسول الله ﷺ رالیږل دی۔ (قاله السُدّیّ والضحاك) یعنی که قرآن او رسول نۀ وے نو تاسو به شیطان پسے روان شوی وے، لیکن د قرآن او د رسول په وجه الله د شیطان نه بچ کړیٔ، مګر لږ کسان د قرآن کریم او د رسول الله ﷺ د راتللو نه مخکی هم د شیطان نه د الله په رحم باندے بچ وو چه هغه د جاهلیت زمانے بعض موحدین وو لکه زید بن عمرو بن نفیل، ورقه بن نوفل، قُس بن ساعده، ابوذر غفاري، عمرو بن عبسه وغیره۔ (روح المعانی)

(۲) جواب : دا استثناء د (وَلَوۡ رَدُّوۡهُ) سره لګی۔ اَیۡ وَلَوۡلَا فَضۡلُ اللّٰهِ عَلَیۡکُمۡ وَرَحۡمَتُهٗ فِی الرَّدِّ اِلَی الرَّسُوۡلِ اَوۡ اِلٰۤی اُولِی الۡاَمۡرِ لَاتَّبَعۡتُمُ الشَّیۡطٰنَ اَیۡ لَعَمِلۡتُمۡ بِآرَاءِ الۡمُنَافِقِیۡنَ۔

یعنی که د الله فضل او رحمت په تاسو نۀ وے چه تاسو خبره رسول الله ﷺ ته واپس کړه نو خامخا تاسو به د منافقانو (چه د شیطانانو ورونه دی) د رائے پسے روان شوی وے ځکه چه عام خلك د منافقانو خبری منی، منافقانو ته دهوکے ډیرے ورځی او په عجیب انداز خپلے خبرے ښائسته کوی، مګر لږ خلك بیا هم منافقانو پسے نۀ ورځی او د هغوی په خبرو نۀ دهوکه کیږی چه هغه اولوا الامر دی چه د هغوی عقلونه د مضبوط ایمان په رڼا باندے روښانه دی او په رازونو خبردار دی او د احکامو په پیژندلو کی پوره رسوخ او کلك والے لری۔ نو دا استثناء منقطع ده۔ (روح المعانی ۳/۹۲ والمنار)

(۳) جواب : ابو مسلم الاصفهانیؒ وائی چه د (فضل الله ورحمته) نه مراد پدے مقام کی اَلنَّصۡرُ وَالظَّفَرُ وَالۡمَعُوۡنَةُ) دے یعنی که چرته په تاسو باندے د الله فضل او رحمت (چه مدد او فتح او غلبه ده) نۀ وے نو تاسو به د شیطان پسے روان شوے وے اَیۡ فِیۡمَا یُلۡقِیۡ اِلَیۡکُمۡ مِنَ الۡوَسَاوِسِ یعنی د شیطان په وساوسو کی به اخته شوے وے۔ مطلب دا چه که الله فتح او مدد نۀ رالیږلے نو ډیر کسانو ته به دا وسوسه راتللے چه دا دین او رسول الله ﷺ حق نبی نۀ

دے ځکه چه په یو ځای کی هم ورسره مدد ونشو، سوئ د لږو کسانو نه چه هغه د بصیرت او لوی عزم خاوندان دی چه هغوی به د تکلیف سره سره نبی کریم ﷺ حق نبی منلے او دنیاوی غلبه او فتح یا ناکامی به ئے د حقانیت او غیر حقانیت نښه نۀ ګنړلے۔ امام رازیؒ دا قول د ابو مسلم نقل کریدے او بیائے وئیلی دی چه دا په ټولو کی غوره وجه ده۔ وانظر تفسیر المنار (۵/۲٤٦) واللباب (۲/٥٢٤)۔

(٤) جواب: پدے کی بعید تفسیر دا دے چه (اِلَّا قَلِیْلًا) چا د (لَعَلِمَهُ الَّذِیْنَ) سره لګولے دے یعنی لَعَلِمَهُ الَّذِیْنَ یَسْتَنْبِطُوْنَهٗ اِلَّا قَلِیْلًا مِّنْکُمْ) یعنی دغه خبره به معلومه کړے وے هغه کسانو چه تحقیق د خبرے کوی مګر لږو کسانو به نۀ شوے معلوموله۔ او پدے مقام کی صاحب اللباب لس وجوه بیان کریدی چه اکثر پکی ضعیف دی۔ غوره دا مخکنی تفسیرونه غوره دی۔

| فَقَاتِلْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ لَا تُکَلَّفُ اِلَّا نَفْسَكَ |
|---|
| پس جنګ کوه تۀ په لاره د الله کی، تکلیف نشی درکولے تا ته مګر په اندازه د وسع د نفس ستا |
| وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِیْنَ عَسَی اللّٰهُ اَنْ یَّکُفَّ بَأْسَ الَّذِیْنَ |
| او تیزی ورکړه مؤمنانو ته، نزدے ده چه الله تعالیٰ به بند کړی جنګ د هغه کسانو |
| کَفَرُوْا وَاللّٰهُ اَشَدُّ بَأْسًا وَّاَشَدُّ تَنْکِیْلًا ﴿۸٤﴾ |
| چه کافران دی او الله سخت دے په اعتبار د جنګ او سخت دے په اعتبار د سزا ورکولو۔ |

**تفسیر**: د تیر شوی آیتونو په شان ددے آیت تعلق هم د نبی ﷺ په زمانه کی د جنګی سیاست سره دے۔ الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته اُووئیل چه که منافقان ستا اطاعت نۀ کوی او په جهاد کی سستی کوی نو نۀ دِے کوی، ته د الله په لاره کی جهاد کوه، ته د خپل ځان ذمه وار ئے، الله به ستا مدد کوی نۀ د فوج افراد۔ که الله غواړی نو ته به یوائے ئے او په دشمنانو باندے به تا له غلبه درکړی۔

او مسلمانانو ته په جهاد باندے تیزی ورکړه (لکه چه نبی کریم ﷺ د بدر په میدان کی د مجاهدینو د صفونو برابرولو په وخت اُوفرمایل چه د هغه جنت حاصلولو دپاره پاڅیږئ چه د هغے فراخی د آسمانونو او زمکے برابره ده)۔ (مسلم)۔

فَقَاتِلْ : دا فاء متعلق ده د مخکی ﴿فَلْیُقَاتِلْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ الَّذِیْنَ یَشْرُوْنَ الْحَیٰوةَ الدُّنْیَا﴾ سره او

په مینځ کې د منافقانو خبرې رد شوې۔
د (فاء) د راوړو معنیٰ دا ده: اَیْ اِذَا کَانَ الْاَمْرُ کَذٰلِكَ: کله چه خبره داسې شو چه منافقان په جهاد کې سستي کوي او ستا خبره نهٔ مني نو (فقاتل): تهٔ جنګ کوه او د هغوی هیڅ پرواه مهٔ لره، او د هغوی د کارونو په وجه د جهاد نه مهٔ سستیږه۔ او دا خطاب اول کې نبي کریم ﷺ ته دې او بیا هر شخص ته چه خطاب ورته صحیح کیږي۔
لَا تُکَلَّفُ : دا جمله مستانفه ده یعني ته په خپل عمل مکلف یې، او د بل چا ذمه وار نهٔ یې بلکه د خپل ځان غم وکړه او د خپل رب حکم عملي کړه۔
یا معنیٰ ده: (لَیْسَ عَلَیْكَ ذَنْبُ غَیْرِكَ) (تفسیر مقاتل بن سلیمان)
تا باندې د بل چا د ګناه هیڅ ضرر نشته۔ یعني که یو تن جهاد نهٔ کوي نو الله به تا نهٔ راګیروي کله چه تا خپله ذمه واري سرته رسولې وي۔
البته بله ذمه واري درباندې دا ده چه (وحرض المؤمنین) مؤمنانو ته په جهاد تیزي ورکړه، د جهاد فضائل او اجرونه ورته بیان کړه، او د جهاد نه د کیناستو عذابونه ورته واضح کړه، بیا الله پوهیږه او هغوی پوهه شه. ستا ذمه واري به فارغه وي۔ او رسول الله ﷺ پدې دواړو حکمونو باندې په ډیر تاکید سره عمل وکړو چه خپله هم په غزواتو کې شریك شو، او په هره موقعه کې ئې مسلمانانو ته د جهاد ترغیبات ورکړل لکه د احادیثو او د سیرت کتابونه پدې ګواه دي۔
ځیني وائي د نفسك نه مخکې مضاف پټ دې اَیْ وُسْعَ نَفْسِكَ۔
یعني تهٔ ذمه وار ئې موافق د وسع د خپل ځان۔ یعني ستا چه څومره طاقت وي په هغه اندازه به تهٔ مکلف یې۔
وَحَرِّضِ : تحریض په اصل کې ازالة الحَرَض ته وئیلې شي او حَرَض بې فائدې او بې کاره او بې اهمیته شي ته وئیلې شي یعني بیکاره او بې فائدې کارونو او مشاغلو نه د خلکو توجه جهاد طرفته راواړه وه۔ (مفردات الراغب ص۱۱۲)
یعني مؤمنانو ته د جهاد اهمیت او خیر او فائدې بیان کړه چه په منافقانو رد وشي چه هغوی خلکو ته وسوسې اچوي چه جهاد کې خیر نشته او خالص خپل ځان هلاکول دي او بې اهمیته شې دې۔ او دا تحریض (تیزي ورکول) به کله په ژبه سره وي او کله په قلم سره او کله به په تربیت ورکولو سره وي۔ (احسن الکلام)
**فائده**: آیت کې خو دا راغلل چه ستا ذمه واري دا ده چه جهاد به کوې، جهاد په تا فرض

دے او دبل چا غم مکوه، لیکن ددے سره نور شرطونه شته چه جهاد به هله فرض وی چه مشروط بالقدرة وی، او دا قدرت هله حاصلیږی چه سړی سره ملګری پیدا شی، ځکه چه د اجتماعیت نه بغیر جهاد کولو کی نقصان دے، د جهاد ثمره نهٔ ملاویږی، او د اجتماعیت نه مراد دا دے چه دومره ملګری پیدا کړی چه د هغوی په وجه په دشمن کی زخم کولے شی، د هغوی نه پټیدلے شی او د هغوی دفاع کولے شی او د خپل زخمی یا شهید حفاظت او سنبالښت کولے شی، که دا نشے کولے نو بیا درباندے جهاد فرض نهٔ دے۔

نو کوم علماء چه ددے نه دا دلیل نیسی چه یو مجاهد په یواځے تن هم جهاد کولے شی چه د کافرو یو ملك ته ورشی او په ځان پورے بم وتړی او د کافرانو مینځ ته ننوزی او ځان والوزوی نو دا استدلال ددے آیت نه بعید دے ځکه که دا مطلب واخستے شی نو بیا به د روستو (وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْن) څه مطلب وی۔

او بله دا چه هیڅ مفسر او عالِم دا معنیٰ نهٔ ده کړے چه په یواځے تن به بنده جهاد کوی، د سیرت نه ددے هیڅوك مثال نشی پیش کولے چه نبی کریم ﷺ یا یو صحابی یواځے تن په کفارو حمله کړی وی البته کومو ځایونو کی چه بعض صحابه کرامؓ یواځے جنګ کړے نو د هغه به دا فکر وو چه ما پسے روستو مسلمانان راروان دی لکه د سلمه بن اکوع رضی الله عنه واقعه پرے دلیل ده۔

او ددے مثال داسے دے چه د کافرانو په یوه پوسته باندے دوه یا درے مسلمانان حمله وکړی، کولے ئے شی ځکه چه روستو ورپسے طاقت شته چه هغے ته رجوع وکړی۔

عَسَى اللّٰهُ أَنْ يَّكُفَّ : پدے کی الله وعده اُوکړه چه هغه به په مسلمانانو باندے د مکے د کافرانو د ظلم او زیاتی سلسله ختمولو دپاره خپل رسول او مسلمانان په هغوی باندے مسلط کوی او هغوی ته به شکست ورکوی، او هغوی به تس نس کیږی۔ نو د الله وعده پوره شوه او جزیره د عربو او د وخت په تیریدو د فارس او روم په زمکه باندے د اسلام جنډه ورپیده۔

نو پدے جمله کی مؤمنانو ته تشجیع (بهادری) ورکول دی چه تکړه شئ ددے کفارو سره جنګونه وکړئ، او کافرانو ته دهمکی ده چه الله به ستاسو بیخ وباسی۔

تَنْكِيْلًا : د نکل نه دے چه په اصل کی قید ته وئیلے شی او په قید سره منع کول راځی پدے وجه تنکیل منع ته هم وئیلے شی او په عرف کی هغے سزا ته وئیلے شی چه په هغے کی د عبرت معنیٰ پرته وی۔ او دلته ترے مراد سخت عذاب او سخته سزا ده۔ او سختوالے ئے داسے دے چه هیڅوك د هغے نه خلاصول نشی کولے او هغه به همیشه وی چه فناء او

زوال ئے نشته.

| مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا وَمَنْ |
|---|
| چا چه سفارش اُوکړو سفارش ښائسته وی به دده دپاره برخه د هغے نه او چا |
| يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا |
| چه سفارش اُوکړو سفارش بد، وی به د هغه دپاره برخه د هغے نه (یعنی سزا به خوری) |
| وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيْتًا ﴿۸۵﴾ |
| او دے الله په هر شی باندے قدرت لرونکے (یا جزا ورکونکے). |

**تفسیر**: پدے کی نیک شفاعت ته ترغیب او د بد شفاعت نه منع کول دی.

۱ - مناسبت ئے دا دے چه مسلمانانو لره د کافرانو په خلاف د جهاد ترغیب ورکول د الله په نیز د مسلمانانو په حق کی خیر خواهی او نیک سفارش دے.

۲ - دارنگه د جهاد په باب کی انسان د خپل ځان ذمه وار دے لیکن په باب د جهاد کی بل دپاره سفارش کول هم یوه ذمه واری ده او په جهاد کی سفارشونو ته ډیر ضرورت راځی مثلاً یو سړے دے چه هغه سره د جهاد وسله (توره او توپک) نشته نو ته امیر یا بل مالدار ته د هغه په باره کی سفارش وکړه، دارنگه د جهاد دپاره چنده کول هم شفاعت دے، او د یو ملګری نه وسله اخستل او بل له ورکولو سفارش او امیرانو ته د ملګرو سفارش کول چه یو ملګری ته امیر د وتلو حکم کړے وی او د هغه په کور کی ضرورت وی، نو امیر ته ویل چه دا دِے پاتی شی دده کور کی ضرورت دے.

نو دلته د سفارش نه دنیاوی سفارش مراد دے.

پدے مناسبت سره دلته د ښه او بد سفارش بیان راغلو. د ښه سفارش صفت اُوکړے شو او د الله وعده ذکر شوه چه سفارش کونکو ته به هم الله نیکه بدله ورکوی، او بد سفارش یعنی چه د وخت حاکم ته ورشی او هغه ته د خلقو شکایتونه وکړی نو دهٔ ته به دده د عمل بده بدله ضرور ملاویږی.

## د شفاعت څه معنیٰ ؟

شفاعت څه ته وائی : كُلُّ مَنْ أَعَانَ غَيْرَهٗ بِقَوْلٍ أَوْ فِعْلٍ فَقَدْ صَارَ شَفِيْعًا لَهٗ . هر هغه څوك چه

د بل چا سره په خبره یا په عمل سره مدد وکړي نو دا د هغه دپاره شفاعت کونکے شو.
مثلاً یو تن چا ته وؤائي چه فلانی ته ورشه څه به درکړي، دائے سفارشي شو، یا ورسره خپله لاړ شي. یا عملاً د یو سړي خدمت وکړي چه جهاد ته روان وي، او دے ئے په سورلئ باندے یو ځای پورے ویسي. او شفاعت حسنه دیته وائي چه څوك یو نیك کار کوي، مثلاً جهاد کوي، یا طلب د علم کوي، یا بل نیك کار کوي او ته ورسره په هغے کی ملګرے شے یا تعاون ورسره وکړے.

د نیك سفارش د فضیلت په باره کی ډیر صحیح احادیث راغلی دی:
په صحیحینو کی د ابو موسیٰ اشعري ﷺ نه روایت شویدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : [اِشْفَعُوْا تُؤْجَرُوْا] چه سفارش کوئ، ددے به تاسو ته اجر ملاویږي.
مجاهدؒ، حسنؒ، کلبيؒ او ابن زیدؒ وئیلی دی چه دا آیت د خلکو خپل مینځ کی د سفارشاتو په باره کی نازل شویدے، جائز سفارش ښائسته سفارش وی او ناجائز سفارش شفاعتِ سیئه وی. (القرطبی)

## د شفاعت حسنه نور مصداقات

شفاعت کی معنیٰ د یو ځای والی ده نو پدے اعتبار سره ددے لاندے مصداقونه کیدے شي
(۱) د خپل ایمان سره د کفارو سره قتال جمع کول.
(۲) د یو مؤمن دپاره د قتال د آلاتو او سامانونو سفارش کول.
(۳) جهاد ته دعوت ورکول. (٤) توحید او سنت ته دعوت ورکول.
(٥) د یو مسلمان د بل مسلمان دپاره دعا کول. (٦) د چا د نفعے یا د ضرر د دفع کولو دپاره سفارش کول لیکن شرط دا دے چه په هغے کی به رشوت نهٔ وی لکه روستو راځي.
(۷) د خلکو ترمینځ اصلاح او جوړ جاړے کول.
(۸) حُسْنُ الْقَوْلِ فِي النَّاسِ. د خلکو په باره کی نیکی خبرے کول چه په هغے سره اجر او ثواب حاصل کړي. (قرطبی وابن کثیر والبغوی)

## د شفاعت سیئه مصداقات

(۱) د کفر سره د کافرانو دوستانه جمع کول. (۲) د انفاق في سبیل الله (جهاد) نه خلك منع کول. (۳) د خلکو د منع کولو او متنفر کولو دپاره د جهاد بدی بیانول.

(٤) شرك، بدعت، فحاشي او گمراهئ ته دعوت ورکول.
(٥) د مؤمن غیبت کول، بهتان تړل او چغلي کول.
(٦) په غیر شرعي کار سفارش کول. (٧) یو مؤمن ته ښیرے کول وغیره. (المصادر السابقة)

## فائده

د سفارشانو په بدله کې د هدیه قبلولو ډیره لویه بدي راغلے ده. د ابوداودؒ حدیث دے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ((چا چه د خپل مسلمان ورور دپاره سفارش وکړو چه د هغے په بدله کې هغه هغه ته هدیه ورکړه او هغه قبوله کړه نو هغه د سود د دروازو نه په یوه لویه دروازه داخل شو)). (ابوداود: ٣٥٤١) والصحيحة رقم: (٣٤٦٥) باسناد حسن)

## د نصیب او کفل ترمینځ فرق

(١) نصیب مطلق برخے ته وائي برابره ده چه د بلے برخے سره مساوي وي او که ترے زیاتي وي او کفل فقط په مساوي برخه کې استعمالیږي، نو د نیکیانو اجرونه الله تعالیٰ د خپل اصل اجر نه زیاتوي پدے وجه ئے د هغے دپاره (نصیب) لفظ استعمال کړو او په بدیو کې برابره جزا ورکوي نو ځکه پکې کفل استعمال شو.
(٢) نصیب په نیکه برخه کې استعمالیږي او د کفل کلمه اګرکه په لړه توګه په نیکه برخه کې استعمال شوے ده مګر اغلب استعمال ئے په بده برخه کې دے.
مُقِيْتًا : عبد الله بن عباس رضي الله عنهما معنیٰ کوي په مقتدراً سره، یعنی الله په هر شي باندے قدرت لرونکے دے. (الطبري وزاد المسير)
٢- یا د اَقَاتَهٗ نه دے، قوت ورکولو ته وائي، یعنی الله هر انسان ته قدرت ورکونکے دے. (القرطبي) (٣) مقیت: د قُوْت نه اخستے شویدے چه رزق ته وائي. (ابوعبيدةؒ) (المنار والقرطبي) نو په معنیٰ د رازق سره دے یعنی الله هر شي ته رزق رسونکے دے. قرطبي وائي: قول د ابوعبيدةؒ ډیر غوره دے.
(٤) مقیت: حفیظ او شاهد (ساتونکي او ګواه او کتونکي) ته هم وائي. او تولے معانی دلته صحیح دي. ابن کثیرؒ د عبد الله بن رواحه ﷺ نه نقل کړیدي چه د هغه نه یو تن د (وكان الله علی كل شيء مُقيتًا) مطلب تپوس وکړو نو هغه وفرمایل: (يُقِيْتُ كُلَّ اِنْسَانٍ عَلٰى قَدْرِ عَمَلِهٖ) (هر انسان ته د هغه د عمل په اندازه خوراك ورکوي).

| وَإِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا |
|---|
| او کله چه سلام وا چولے شی په تاسو باندے په سلام سره نو جواب ورکړئ تاسو |
| بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا إِنَّ اللَّهَ |
| په ښائسته د هغے نه یا واپس کړئ هغے لره. (یعنی د هغے په مثل) یقیناً الله تعالیٰ |
| كَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا﴿۸۶﴾ |
| په هر شی باندے حساب کونکے دے. |

**تفسیر** : د سلام مسئله ئے پدے مقام کی ځکه راوړے ده چه کله مسلمانان د جهاد سفر ته وځی نو یو شخص پرے سلام اچوی نو مجاهد ګمان وکړی چه دا کافر دے نو د هغه سلام ته هیڅ توجه او التفات ونکړی لکه روستو آیت (۹٤) کی واقعه ذکر کیږی، نو پدے آیت کی ذکر کوی چه د هر سلام کونکی حق دے ځکه چه سلام کول یو قسم اکرام دے، او د اکرام مقابله په اکرام سره بلکه د هغے نه په زیات سره پکار ده، نو که کافر سلام واچوی نو وژنی به ئے نۀ ځکه چه ضرر نشی ورکولے او که مسلمان وی نو د هغه وژل خو ډیره لویه ګناه ده.

او د سلام مسئله ئے پدے وجه هم راوړه چه په هغه زمانه کی سلام اچول د مسلمان شعار وو، کافرو به سلام نۀ اچولو، لکه اذان په هغه زمانه کی د اسلام نښه وه، اوس پدے زمانه کی بعض کافرانو هم دا سلام زده کړیدے، نو اوس پوره نښه د اسلام نۀ ده، هر څوك سلام اچوی.

وَإِذَا حُيِّيْتُمْ : یعنی کله چه په تاسو باندے سلام وا چولے شی.

امام راغبؒ وائی : تحیه په اصل کی دعاء کول دی په ژوند او د هغے په اوږدوالی باندے (یعنی الله دے ژوندے وساته او اوږد ژوند دے درکړے شی) بیا په هره دعاء کی استعمالیږی او عرب چه به کله یو د بل سره ملاویدل نو (حَيَّاكَ اللهُ) لفظ به ئے وئیلو بیا شریعت تحیه لفظ په سلام کی استعمال کړو چه هغه السلام علیکم لفظ دے.

او السلام علیکم لفظ د (حَيَّاكُمُ اللهُ) نه ډیر غوره دے، ځکه چه په (حَيَّاكُمُ اللهُ) کی صرف د ژوند د اوږدوالی دعا ده، اګرکه د غمونو نه ډك وی او په السلام علیکم کی د ټولو آفتونو او غمونو نه د سلامتیا دعا ده، سره د اوږدوالی د ژوند نه هم ځکه چه مرګ هم یو آفت او

مصیبت دے۔

(۲) او تحیه کله په معنیٰ د هدیه او تحفه سره هم استعمالیږی، نو څینی علماؤ دا آیت د تحفے سره لګولے دے یعنی کله چه تاسو ته تحفه او هدیه درکړے شی نو تاسو د هغے نه ښائسته بدله ورکړئ یا بعینه هغه شان واپس ورکړئ۔ لکه نبی کریم ﷺ ته به چه چا څه هدیه ورکړه نو هغے ته به ئے زیاتی بدله ورکوله لکه یو اعرابی رسول الله ﷺ ته یوه اوښه تحفه کړه نو رسول الله ﷺ ورته شپږ ورکړے مګر اعرابی پدے هم خفه وو، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: (وَأَيْمُ اللّٰهِ لَا أَقْبَلُ بَعْدَ يَوْمِيْ هٰذَا مِنْ أَحَدٍ هَدِيَّةً إِلَّا أَنْ يَّكُوْنَ مُهَاجِرًا، قُرَشِيًّا أَوْ أَنْصَارِيًّا أَوْ دَوْسِيًّا أَوْ ثَقَفِيًّا) (ابوداود ۳۵۳۹ والترمذی ۳۹٤٥) وسنده صحیح– البانی واحمد شاکر– ومسند احمد) قسم په الله! زۀ به د خلکو د نن نه پس تحفے نۀ قبلوم سویٰ د مهاجر، قریشی یا انصاری یا دوسی یا ثقفی نه (ځکه چه دا خلك په ښه نیت هدیه راوړی)

دا معنیٰ هم جائز ده مګر دلته مراد نۀ ده۔ امام قرطبیؒ وائی چه صحیح دا ده چه دا آیت د سلام په باره کی دے، او سلام یو قسم تحفه او ډالئ ده۔ او تحیه په قرآن کریم کی د سلام په معنیٰ استعمال ده لکه ﴿تَحِيَّةً مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُبٰرَكَةً طَيِّبَةً﴾ (النور: ٦١) او سورة المجادله (۸) آیت کی دی: ﴿وَإِذَا جَآءُوْكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ﴾۔

څینی علماؤ به ددے نه د توحید مسئله ثابتوله او داسے معنیٰ به ئے کوله چه کله تۀ په مسئله د توحید باندے ژوندے کړے شے، نو بیا ئے ښه بیانه کړه، یا ئے د هغے په شان بیانه کړه۔ دا معنیٰ دلته د تحریف مشابه ده، د توحید دپاره نور ډیر آیتونه دی، دلته دا معنیٰ هیڅ سلفی مفسر نۀ ده کړے، او دا قسم تفسیرونه د مرجئه ؤ او د غُلاتو دی۔

## د سلام بعض مسائل

۱– مسئله: قرطبیؒ لیکلی دی چه په اتفاق د علماؤ د سلام ابتداء کول سنت دی او ددے جواب ورکول فرض دی ځکه چه دلته امر راغلے دے (فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا) آه۔

حافظ ابن کثیرؒ وائی: ددے سبب دا هم دے چه د سلام په جواب نۀ ورکولو کی د مسلمان اهانت (سپکاوے) دے چه هغه حرام دے۔

د حسن بصریؒ او سفیان ثوریؒ وغیرهما هم دغه قول دے۔ آه

لیکن صحیح خبره دا ده چه سلام اچول هم واجب دی ځکه چه په هغے باندے هم په احادیثو کی امر راغلے دے (إِذَا لَقِيْتَهُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ)

کله چه د مسلمان سره ملاویږي نو سلام پرې واچوه۔ (صحيح مسلم : ۵۷۷۸)
۲- : د سلام ښائسته جواب ورکول دا دي چه سلام کونکے (السلام عليكم) ووائي نو تهٔ ورته (وعليكم السلام ورحمة الله) زيات کړه که هغه (ورحمة الله) زيات کړي، تهٔ ورسره (وبركاته) زيات کړه که هغه (وبركاته) زيات کړي، تهٔ ورسره (وَمَغْفِرَتُهٗ) زيات کړه او بس۔ ددې نه زيادت په صحيح احاديثو کې نهٔ دے ثابت كما في الصحيحة رقم: (۱۴۴۹)۔
يا هغه صرف (السلام عليكم) ووائي نو تهٔ دا ټول کلمات زيات کړه، دا د ټولو نه ښه جواب دے۔
د (وَمَغْفِرَتُهٗ) والا روايت امام بخاريؒ په التاريخ الكبير (۱/۳۳۰) کې راوړيدے او شيخ البانيؒ په ((صحيحه)) کې ورته صحيح وئيلے دے، اګرکه د بعض علماؤ په نيز د (مَغْفِرَتُهٗ) والا روايت هم ضعيف دے وتفصيله في اعلام الانام بما انتهى اليه السلام (ص: ۳) لابی محمد ابراهيم بن شريف الميلی) ځکه چه د هغې په سند کې محمد راوی دے چه بخاريؒ مطلق ذکر کړيدے،
شيخ البانيؒ وائي چه دا محمد بن سعيد الاصبهاني دے چه د بخاري د شيوخو نه دے نو سند متصل دے او علامه ميلي وائي چه دا محمد بن حميد الرازی دے چه متهم بالكذب والسرقه دے، او روستو راوی ابراهيم بن المختار الرازی دے،
ابن حبانؒ وائي چه کله محمد بن حُميدؒ د ابراهيمؒ نه روايت وکړي نو دده د روايت نه به ځان ساتے۔
شيخ البانيؒ وائي : اګرکه محمد بن سعيد او محمد بن حُميد دواړه د ابراهيم بن المختار شاګردان دي ليکن د محمد بن سعيد روايت قوي دے ځکه چه دا د امام بخاري استاذ دے او محمد بن حميد د بخاري په استاذانو کې هيڅ نهٔ دے شمارلے۔ او هرچه ابراهيم بن المختار دے نو دده په باره کې کلام دے ليکن البانيؒ وائي چه ما دده په باره کې په قول د ابوحاتمؒ اعتماد کړيدے چه هغه وائي صالح الحديث دے او د هغه سره پدے خبره ابوداوُدؒ او ابن شاهينؒ او ابن حبانؒ موافقه کړيده آه۔
لهذا خبره د البانيؒ قوي ده او تفصيل ئے په الضعيفة رقم (۵۴۳۳) کې وګوره۔
۳- که يو يهودي يا کافر صحيح سلام واچوي نو د هغه جواب به هم ورکولے شي ځنګه چه هغه وئيلي وي مثلًا هغه (السلام عليكم) ووئيل نو تهٔ به هم ورته (وعليكم السلام) وائے او که هغه (السلام عليكم ورحمة الله) ووئيل نو مسلمان به هم ورته (وعليكم السلام

ورحمة الله) وائي خکه چه مسلمان به د کافر نه په اخلاقو کي خکته نهٔ وي۔ لکه همدا خبره د عبد الله بن عباسؓ نه ابن المنذرؒ، ابن ابی حاتمؒ، قرطبیؒ او سیوطیؒ په الدر المنثور کي نقل کړيده۔

د حسن بصريؒ نه نقل شويدي چه هغه به د کافر د سلام جواب په (وعلیکم السلام) سره ورکولو۔ او د (رحمة الله) لفظ به ئے نهٔ زياتولو۔ او شعبيؒ د يو نصراني د سلام په جواب ورکولو کي (وعلیکم السلام ورحمة الله) اُووئيل۔ نو د هغه نه دے باره کي تپوس اُوشو، هغه جواب ورکړو چه آيا هغه د الله د رحمت د سوري لاندے ژوندے نهٔ دے۔ (قاسميؒ)

بلکه په صحيحه کي د ابو موسىٰ اشعري ﷺ نه روايت دے چه هغه يو کافر ته صحيح جواب ورکړے وو۔

او ځيني علماؤ (اَوْ رُدُّوْهَا) د اهل ذمه ؤ سره متعلق کړيدے چه هغوي ته به جواب بالمثل ورکولے شي، او مسلمان ته به احسن جواب ورکولے شي۔

مگر صحيح دا ده چه مسلمان ته هم جواب بالمثل ورکول جائز او زيادت پرے غوره دے۔ ٤– صحيح حديث کي راغلي دي: (السلام عليکم) لس نيکئ او (ورحمة الله) لس او (وبرکاته) لس دي، ټولے ديرش شوے۔

(ابوداود في الادب باب کيف السلام) وصحيح الترغيب والترهيب للالباني ٢٧١٠)

٥– که د يوے ډلے نه يو کس سلام وکړي هم جائز ده او د يوے ډلے نه د يو کس جواب ورکول هم کافي کيږي، حديث کي دي:

(يُجْزِئُ عَنِ الْجَمَاعَةِ اِذَا مَرُّوْا اَنْ يُّسَلِّمَ اَحَدُهُمْ وَيُجْزِئُ عَنِ الْجُلُوْسِ اَنْ يَّرُدَّ اَحَدُهُمْ) (سنن ابی داود عن علي مرفوعا) واسناده صحيح– صحيح الجامع ٨٠٢٣ والصحيحة: ١١٤٨ و ١٤١٢)۔

کله چه يوه ډله تيريږي د دوي د طرفنه دا کافي ده چه يو تن پکي سلام واچوي او د ناستو خلکو نه دا کافي ده چه يو تن پکي جواب ورکړي۔

٦– سلام په هر چا اچول جائز دي سويٰ د هغه شخص نه چه په قضاءِ حاجت (بول وبراز) ناست وي، نو په اذان کونکي، تلاوت کونکي او درس او تدريس کونکي ټولو باندے سلام په احاديثو کي ثابت دے، حديث کي دي: اَفْشُوا السَّلَامَ۔ (صحيحين)

سلام عام کړئ او په پابنديانو باندے صحيح دليل نشته۔

د سلام په باره کي تفسير قرطبيؒ مسائل ليکلي دي، او علامه قاسميؒ پدے باره کي ډير احاديث راجمع کړيدي چه هغے ته رجوع کول فائده ورکوي، که څوک تفصيل غواړي۔

حَسِيبًا : يعني هر كله چه د الله حساب حق دے، نو ددے وجه نه احتياط وكړئ چه مسلمان مو دلاسں نه قتل نشي او نۀ ورته ضرر ورسي۔

| اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ |
|---|
| الله تعالىٰ نشته لائق د بندګۍ سوئ د هغه نه خامخا به راجمع كوى تاسو لره ورځ |
| الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا ﴿۸۷﴾ |
| د قيامت ته چه نشته هيڅ شك په هغے كي او څوك ډير رشتينى دے د الله نه په خبره كي۔ |

**تفسير** : ربط دا دے چه جهاد او قتال به د توحيدد مسئلے دپاره كولے شي چه د تمامو مخلوقاتو معبود صرف يو الله دے۔

او پدے كي نتيجه او عاقبت د قتال ذكر دے چه قتال به د توحيد پورے او د توحيدد پاره كيږي چه خلك يو ائے د الله بندګي شروع كړي۔

لَيَجْمَعَنَّكُمْ : دا دويمه عقيده د بعث بعد الموت ده چه دا هم وپيژنئ چه تاسو ټول به د قيامت په ورځ راجمع كوى او حساب به درسره كوى او هر يو ته به د هغه د عمل بدله وركوي، او اول حساب به په توحيد وى ځكه دا مقصودى مسئله ده۔

وَمَنْ اَصْدَقُ : يعني د الله د خبرے نه زياته د بل چا خبره رشتيني كيدے شي۔ هيڅوك نشته نو ددے خبرے پوخ يقين وكړئ چه تاسو به د الله سره ملاويږئ۔

د الله نه هيڅوك په خبره كي ډير رشتيني نشته، وجه دا ده چه انسان كله په خبره كي مبالغه كوى، او كله بے حقيقته خبره كوى، او كله خطاء شي او كله ترے غير اختيارى دروغ راوځي، او د الله خبرے ددے نه پاكي دى۔

| فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ |
|---|
| پس څه وجه ده تاسو لره (چه اُوګرځيدئ تاسو) په باره د منافقانو كي دوه ډلے او الله تعالىٰ |
| اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ |
| ذليله كړيدى دوى لره په سبب د عملونو د دوى، آيا اراده لرئ تاسو چه هدايت والا اُووايئ هغه چا ته |
| اَضَلَّ اللّٰهُ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ﴿۸۸﴾ |
| چه ګمراه كړى دى الله او چا له چه ګمراه كړى الله پس هيچرے به تۀ مونده نه كړے هغه لره لاره۔ |

**تفسیر**: پدے راتلونکی رکوع کی د منافقانو د اقسامو بیان دے مخکی ئے صفات بیان شو اُوس ئے انواع بیانوی (۱) یو هغه منافقین دی چه غیر مهاجرین دی (۲) دویم هغه دی چه حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ والا دی (۳) دریم هغه دی چه (یَاْمَنُوْكُمْ وَيَاْمَنُوْا قَوْمَهُمْ) والا دی. او ددے هر یو بیل بیل حکم ئے ذکر کړیدے او دا د هغه زمانے منافقان وو لیکن زمونږ د زمانے سره هم ډیر ښه لګیږی چه تفصیل ئے راروان دے۔

## شان نزول

ددے آیت په شان نزول کی تقریباً دولس اسباب خودلے شویدی چه هغه واحدیؒ په اسباب النزول کی او سیوطیؒ په الدر المنثور او ابن الجوزیؒ په زاد المسیر کی او ابن عاشورؒ په التحریر والتنویر کی او ابن عادلؒ په اللباب کی ذکر کړیدی، بعض قریب قریب ذکر کوو:

(۱) بخاریؒ، مسلمؒ، احمدؒ او ترمذیؒ د زید بن ثابت ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ کله د اُحد غزا دپاره ووتلو نو څه کسان چه د هغه سره وتلی وو، د لارے نه راواپس شول. د هغوی په باره کی د صحابه کرامؓ دوه رائے شوے، ځینو خلقو اُووئیل چه مونږ له ددے کسانو قتلول پکار دی، (دا کافر دی د کافرو ملګری دی، ځکه چه رسول الله ﷺ ئے په عین موقعه کی کافرانو ته پریخودو) او ځینو اُووئیل چه نهٔ، بلکه دوی مسلمانان دی۔ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو او د هغه منافقانو نفاق ئے ښکاره کړو، او رسول الله ﷺ هم دا اُوفرمایل چه ((دا طیبه ښار دے، زنګ او ګندګی داسے جدا کوی لکه څنګه چه د لوهار بټئ د اُوسپنے زنګ جدا کوی))۔ (بخاری: ۱۸۸۳) واللفظ لاحمد)

نو الله پدے آیت کی د دوی منافقت راښکاره کړو چه تاسو د دوی دے ګمراهئ ته نهٔ ګورئ (وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا) چه دوی ستاسو کافر کول غواړی او د خوږ نبی ملګرتیا پریدی، او د کافرانو عمل اختیاروی نو آیا دا به منافق نهٔ وی۔

۲– قول: كَانَ بَعْضُ الْمُؤْمِنِيْنَ يُدَافِعُ عَنْ بَعْضِ الْمُنَافِقِيْنَ لِعَدَمِ عِلْمِهِمْ بِهِمْ)

بعض مؤمنانو به د بعض منافقانو نه دفاع کوله ځکه چه د هغوی په منافقت باندے خبر نهٔ وو (ځکه چه هغوی به په ظاهره کی کلمه هم وئیله او مونځونو ته به حاضریدل، لکه په معاشره کی دغسے ډیر منافقان شته چه ډیرے لوی لوی دعوے د بزرګئ، دعوت الی الله او ایمان هم کوی، لیکن ډیرو خلکو ته د هغوی منافقت نهٔ معلومیږی) نو الله دا آیت نازل

کړو چه ددے خلکو بد عمل نه وکوریٔ، نو دفاع ترے مهٔ کویٔ، نو ځوك چه د منافقانو صفات بیانوی او د هغوی نه دفاع کوی، نو پدے کی په هغوی باندے رد شویدے۔ د گنده خلکو صفت بیانولو سره الله تعالیٰ ناراضه کیږی.

لکه زمونږ بعض اسلامی جماعتونه د طواغیتو په باره کی ډیر ښه گمان لری او دفاع ترے کوی چه ددے سره ایمان ته ډیر نقصان رسیږی، دوی چه کله د هغوی په انکار باندے قادر نهٔ وی نو بهتر دا ده چه د هغوی د دفاع نه غلی کینی۔

۳- قول: د آیت د الفاظو سره زیات موافق دا دے چه دا آیت د هغه کسانو په باره کی نازل شویدے (رِجَالٌ أَسْلَمُوْا بِمَكَّةَ ظَاهِرًا) په مکه کی ځینو خلکو ظاهراً ځانونه مسلمانان ښکاره کړی وو حال دا چه د زړه نه کافر وو او د مشرکانو په مینځ کی وسیدل، د دوی د منافقت نه مقصد دا وو چه که مونږ چرته سفر ته لاړ شو، د مسلمانانو د حملو نه به په امن کی یو۔ نو کله چه د دوی په سفر باندے صحابه کرامؓ خبر شو نو ځینو وویل چه دوی وژنو، او ځینو وویل چه نهٔ ئے وژنو ځکه چه دوی مسلمانان دی، زمونږ په شان کلمه وائی او نبی کریم ﷺ هم غلے ناست وو، نو پدے کی دا آیتونه نازل شو۔ (تفسیر الطبری والمنار)

او ځینی روایاتو کی دی چه دوی مؤمنانو ته خبر راولیږو چه مؤنږ ستاسو په شان اسلام راوړیدے، لیکن په پټه به ئے د مشرکانو مدد کولو، نو دوی د مکے نه د تجارت دپاره ووتل، صحابه کرامؓ پرے خبر شو، نو ځینو ملگرو وویل چه دے خبیثانو پسے ووځو او وژنو ئے ځکه چه دوی ستاسو په خلاف د دشمنانو سره مدد کوی،

او بلے ډلے د مؤمنانو وویل چه سبحان الله! تاسو هغه خلك وژنئ چه هغوی ستاسو په شان کلمه وائی صرف پدے وجه چه هجرت ئے نهٔ دے کړے، او کورونه ئے نهٔ دی پریښی، نو آیا پدے باندے تاسو د هغوی وینه او مالونه حلال گنړئ (یعنی دوی صرف گنا هگار دی) او رسول الله ﷺ به یوه ډله هم نهٔ منع کوله نو دا آیتونه نازل شو۔ (تفسیر الطبری ۲۸۱/۷ طبع دار هجر وتفسیر المنار)۔

نو پدے آیتونو کی وویل شو چه دا اعتقادی منافقان دی، او په حکم د کافرانو کی دی نو مفسرین دلته د (أَرْكَسَهُمْ) معنیٰ کوی: أَيْ رَدَّهُمْ إِلَى حُكْمِ الْكُفَّارِ (ابن القيمؒ والقاسمیؒ)

الله دوی په حکم د کفارو کی گرځولی دی چه د دوی سره قتال او د دوی نه غنیمتونه اخستل هم جائز دی، اگر که کلمے والا وی ځکه چه ناقض الایمان پکی موجود دے چه هغه کفر اختیارول دی، او د کافرانو ملگرتیا کوی او د کفر غلبه غواړی۔

صاحب المنار د خپل استاذ نه نقل کوي وائي چه دلته د منافقانو نه مراد یوه ډله د مشرکانو ده چه کار ئې د منافقانو په شان کړے وو چه مسلمانانو ته ئې خپله مینه او دوستانه ښکاره کړے وه او په مینځ کې دروغجن وو، د کافرانو ملګري وو، او دوی به د مسلمانانو سره په دوستانه ښکاره کولو کې د احتیاط نه کار اخستو، کله چه به ئې د هغوی قوت ولیدو، مګر کله چه به دوی ته د مسلمانانو ضعف ښکاره شو، نو بیرته به ترے واوړیدل او دوی سره به ئې دشمني راښکاره کړه، نو مؤمنان د دوی په باره کې دوه ډلو ته تقسیم شو، یوے ډلے ووېل چه دا زمونږ دوستان دي، او د ښکاره مشرکانو په مقابله کې به د دوی نه مدد اخلو،

او ځینو ووېل چه د دوی سره به د ښکاره دشمنانو په شان معامله کولے شي۔ نو الله د دوی پدے اختلاف رد وکړو چه تاسو څنګه د دوی په باره کې تقسیمیږئ حال دا چه الله دوی د هغه حق نه اړولي دي کوم بانده چه تاسو روان یئ په سبب د کارو د شرك او د ګناهونو، او دوی تاسو ته د دشمنانو په نظر ګوري او ستاسو د مصیبتونو په انتظار کې دي، آه۔

٤– ددے آیت د نازلیدو د سبب په باره کې په مسند احمد کې د عبد الرحمن بن عوف ﷺ نه هم یو روایت نقل شویدے چه څه عرب خلك د رسول الله ﷺ خوا ته مدینے ته راغلل، او مسلمانان شول، لیکن هغوی د مدینے منورے په مشهور بخار کې اخته شول، نو د اسلام نه واوړیدل او د هغه ځای نه اُووتل۔ په لاره کې څه صحابه کرامو د هغوی نه پوښتنه اُوکړه چه تاسو ولے واپس کیږئ؟ نو هغوی اُووئیل چه د مدینے د بیمارئ نه مونږ تنګ واغلو، صحابهٔ اُووئیل: آیا رسول الله ﷺ ستاسو دپاره غوره نمونه نهٔ وه؟

بیا د هغوی په باره کې د صحابه کرامو اختلاف شو، ځینو اُووئیل چه دا منافقان شول، ځا اُووئیل چه نهٔ۔ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو۔ (مسند احمد وقال شعیب الارناووط: اسناده ضعیف) لیکن ممکن ده چه د مدینے منافقانو او د عربو نورو منافقانو د ټولو حالاتو په باره کې د صحابه کرامو اختلاف واقع شوے وي او دا اختلاف سختئ ته رسیدلے وي نو دا آیت نازل شوے وي۔ (القاسمي، تیسیر الرحمن)

علامه قاسميؒ وائي چه که د آیت په الفاظو کې ژور او رښتینی نظر واچوے نو دا سبب د نزول ډیر قریب ښکاره کیږي لکه دا خبره فاضل مهایميؒ په خپل تفسیر کې غوره کړیده۔ اګرکه دا به د زید بن ثابت روایت ته هم شاملیږي لیکن اصل سبب د نزول ئې نهٔ دے۔ ځکه چه دلته (حَتّٰى يُهَاجِرُوا) الفاظ ورسره پوره سمون نهٔ خوري۔ او روستو (فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ

حَيْثُ وَجَدْتُمُوْهُمْ) نـه هم معلومیږي چه دا بهرتني منافقان مراد دي ولے چه د مدینے منافقان خو د صحابه کرامو سره شپه او ورځ ملاویدل. فتدبر.

فِي الْمُنَافِقِيْنَ فِئَتَيْنِ : اَيْ صِرْتُمْ فِيْ بَابِ الْمُنَافِقِيْنَ فِئَتَيْنِ . یعنی تاسو د منافقانو په باره کې دوه ډلے وګرځیدلئ. یعنی دوه ډلے مه جوړیږئ بلکه ټول ورته منافقان ووایئ.

وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا : یعني الله دوی لره د دوی ددے بد عمل په وجه ذلیله کړیدي. نو عمل ته ئے وګورئ چه څرنګ دے، په دے سره به د دوی کفر او ایمان ښکاره کیږي، اوس چه کوم اختلاف د مسلمانانو د طواغیت په باره کې دے، دغه مسئله هم په دے آیت حل کیږي، راځئ چه عملونو او کردار ته ئے وګورو او په قرآن او سنت ئے وتلو چه آیا دوی مسلمانان دي او که کافر؟ نو هر عقل والا چه خواهش پرست، تنظیم پرست نۀ وي د دوی په حال پوهیږي چه ایماني غیرت ورسره وي.

قتادة وائي : اَهْلَكَهُمْ. الله دوی لره هلاك کړیدي. یعني د دوی بد اعمالو ته کتل پکار دي او سره د بد عمل نـه دوی تـه ښه وئیل نۀ دي پکار، اسلامي غیرت پکار دے البته کومو خلکو چه دوی تـه ښـه وئیلي دي نو دوی پدے خبره ګناهګار نۀ دي لیکن په خطاء کې ضرور واقع دي.

اَرْكَسَهُمْ : د رَكْسٌ نه دے په زور د راء سره د باب نصر نه رَدُّ الشَّيْءِ مَقْلُوْبًا ته وائي یعنی یو شے الټه راواپس کول. او رِكْسٌ په زیر د راء سره ګندګئ ته وائي. پدے وجه رکس او ارکاس د اړولو او واپس کولو بد ترین قسم دے هغه دا چه یو شے سرخکته راواپس کړے شي یا یو شے د یو حالت نـه بـل ډیر ردي حالت ته راواپس کړے شي لکه طعام او ګیاه نه ګندګي او خوشیان جوړ کړے شي، دلته ترے مراد غدر (دهوکے)، قتال او شرك ته واپس کول دي.

او دلتـه پـه معنوي واپس کولو کې استعمال شویدے چه هغه د مسلمانانو نه اړول او د مشرکانو نه شمیرل دي. ګویا که دا خلك سرکوزي شویدي او سرخکته کونه پورته روان دي او دا حالت ډیر بد تر او ناکاره منظر دے نو د چا چه دا حالت وي نو پکار ده چه د مؤمنانو نه هیڅ یو تن هم دا امید ونۀ ساتي چه دوی به د حق ملګرتیا وکړي او مؤمنان به خپل مینځ کې د دوی په حالت کې اختلاف وکړي آه. (المنار ٥/٢٦٢)

اَنْ تَهْدُوْا : اَيْ اَنْ تُسَمُّوْهُمْ مُهْتَدِيْنَ . (ابن الانباري) یعني چه تاسو ورته د مهتدینو (هدایت والا) نـوم ورکـړئ. اودا ډیره بده خبره ده چه الله تعالیٰ یو تن ته کافر وائي او یو بنده ورته مسلمان وائي، او دا هم بده ده چه الله یو تن ته مسلمان وائي او یو بنده ورته کافر وائي، نو

دے دواړو خبرو کې به د ډیر زیات احتیاط نه کار اخستلے شي. نو فیصله به په ظاهر کولے شي چه کله ظاهره کې د کافرانو ملګرے وو، او د کفر کارئے کولو که زړه کې هر څنګه وي نو کافر به ګنړلے شي. او ددے دپاره په اسلام کې اصول او ضوابط موجود دي نو هر چا ته د فتوے لکولو اختیار نشته.

فَلَنْ تَجِدَ لَهُ سَبِيْلًا : یعنی چا لره چه الله تعالیٰ د خپل دین نه واړوي نو د هغه دپاره به هیڅ لاره د هدایت مونده نکړے.

| وَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ كَمَا كَفَرُوْا |
|---|
| خوښوي دوي ارمان چه کافران شئ تاسو لکه څنګه چه کفر کړیدے دوي |
| فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ اَوْلِيَآءَ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا |
| پس شئ تاسو (او دوي) برابر نو مهٔ نیسئ تاسو د دوي نه دوستان تردے چه هجرت اوکړي |
| فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ |
| په لاره د الله کې، پس که دوي واوړیدل نو اونیسئ دوي لره او قتل کړئ دوي هر ځاي کې |
| وَجَدْتُّمُوْهُمْ وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿٨٩﴾ |
| چه موندهٔ کړل تاسو دوي لره او مهٔ نیسئ د دوي نه دوست او نهٔ مددګار. |

**تفسیر** : پدے کې بل سبب د کفر د دوي ذکر دے چه دا کسان خو خپله کفار دي نو دا غواړي چه تاسو هم د دوي په شان کافران شئ، او په کفر او ګمراهئ کې د هغوي برابر شئ، پدے وجه تاسو هغوي په دوستانه مهٔ نیسئ، تردے چه هغوي د الله په لاره کې د دار الکفر نه هجرت اوکړي. او تاسو ته د هغوي د ایمان یقین اوشي. او که هغوي د هجرت کولو نه انکار اوکړي، نو اګرکه هغوي اسلام ښکاره کړي، د هغوي سره د کافرانو په شان سلوك کوئ، ځکه دار الکفر ته د تللو نه روستو د هغوي کفر راښکاره شو، پدے وجه دوي اونیسئ او په حِل او حَرَم هر ځاي کې چه مو موندهٔ کړل نو قتل ئے کړئ، او دوي خپل دوستان او مددګاران مهٔ نیسئ. (قاسمیؒ)

**فائده** : دا آیت دلیل دے چه کوم انسان د بل چا کفر خوښوي چه هغه کفر وکړي نو دا هم مسلمان نشي کیدے.

Scanned by CamScanner

فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ اَوْلِيَآءَ : یعنی د دوی نه په مدد او نصرت کی دوستان مهٔ نیسئ دے دپاره چه تاسو ورسره کفر ته ونهٔ رسیږئ، اګرکه دوی تاسو ته ایمان ښکاره کریدے دے دپاره چه ستاسو دوستانه طلب کړی۔

فَاِنْ تَوَلَّوْا : اَیْ عَنِ الْهِجْرَةِ۔ یعنی که د هجرت نه واوړیدل۔

**فائده** : دلته دا خبره معلومه شوه چه د داسے شخص په باره کی به دوه شرطونو ته ګورے، یو نهٔ هجرت او بل په کارونو د کفر کی نهٔ شریکیدل نو هله به منافق ګنړلے شی۔ که یو داسے مسلمان وی چه هغه هجرت نهٔ کوی او د کافرانو ملګرتیا هم نهٔ کوی نو دا به ګناهګار وی او منافق به ورته نشی وئیلے۔

| |
|---|
| اِلَّا الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ اِلٰى قَوْمٍۭ بَيْنَكُمْ |
| مګر (مهٔ وژنیٔ) هغه کسان چه یوځای شی دوی د یو قوم سره چه په مینځ ستاسو |
| وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ اَوْ جَآءُوْكُمْ حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ اَنْ |
| او په مینځ د هغوی کی وعده وی او یا راشی دوی تاسو ته چه تنګے وی سینے د دوی ددینه |
| يُّقَاتِلُوْكُمْ اَوْ يُقَاتِلُوْا قَوْمَهُمْ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ |
| چه جنګ اُوکړی تاسو سره یا جنګ اُوکړی د خپل قوم سره او که د الله اراده شوے وے |
| لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ فَلَقٰتَلُوْكُمْ ۚ فَاِنِ |
| خامخا به ئے مسلط کړی وی په تاسو نو خامخا جنګ به ئے کړے وے تاسو سره نو که |
| اعْتَزَلُوْكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ وَاَلْقَوْا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ ۙ |
| دوی جدا شو ستاسو نه پس جنګ ئے اُونکړو تاسو سره او ګوزار ئے کړو تاسو ته صلحه |
| فَمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيْلًا ﴿۹۰﴾ |
| نو نهٔ دے مقرر کړے الله تعالیٰ ستاسو دپاره په هغوی باندے هیڅ لاره (د قتال)۔ |

**تفسیر** : د منافقانو په باره کی چه کوم حکم مخکی بیان شو نو د هغے نه الله تعالیٰ دوه قسمه خلک پدے آیت کی مستثنیٰ کړیدی او وئیلی ئے دی چه دوی مهٔ قید کوئ او نهٔ د دوی سره قتال کوئ۔

۞ یو خو هغه منافقان چه د یو داسے قوم خوا ته پناه واخلي چه د هغوی سره د مسلمانانو د صلح او امن معاهده وي، نو دوی به د هغوی په حکم کی وي، ځکه په اسلام کی د وعدے دومره پابندي راغلے ده چه د یو کافر سره وعده وي نو د هغوی ملګرے به هم نهٔ وژنے۔

۞ او دویم هغه خلك دي چه د خپل صلح طلب کولو د وجه نه نهٔ د مسلمانانو سره جنګ کول غواړي او نهٔ د مسلمانانو سره په یو ځای کیدو د خپل قوم سره جنګ کول غواړي، بلکه د جنګونو نه تنګ راغلي وي او غلي ناست وي، او په خپل کفر باندے روان وي، نو د داسے خلکو سره هم جنګ نشته ځکه چه په اسلام کی نفس کافر سره جنګ نهٔ کیږي بلکه خاص کافرانو سره به قتال کولے شي چه هغه تا ته لاره نیسی او تا سره جنګونه کوي او دین ته دِے نهٔ پریدی او جزیه نهٔ مني۔ او دا کافران جزیه هم مني نو د دوی سره بهٔ جنګ نهٔ کیږي۔

## شان نزول

ابن ابی حاتمؒ او حافظ ابن مردویهؒ د حسن بصریؒ نه موقوفاً روایت کړیدے چه د بدر او د اُحد د غزواتو نه روستو سُراقه بن مالك مُدْلَجی رسول الله ﷺ خوا ته راغلو، او وے وئیل چه ماته معلومه شویده چه ته خالد بن ولید زما په قوم (بنی مدلج) باندے د حملے کولو دپاره لیږل غواړے - زما رائے ده چه ته د هغوی سره صلح اُوکړے، او کله چه ستا قوم اسلام راوړي نو هغوی به هم اسلام راوړي۔ او که هغوی اسلام نهٔ راوړي نو مناسب نهٔ ده چه ته خپل قوم په هغوی باندے غالب کړے۔ رسول الله ﷺ د هغه خبره واوریده او د خالد بن ولیدؓ لاس ئے ونیولو او وے وئیل چه ددهٔ سره لاړ شه او څنګه چه دا غواړي هغه شان اُوکړه۔ نو خالد ﷛ د هغه سره په دے شرط باندے صلح اُوکړه چه هغوی به د رسول الله ﷺ په خلاف د دوی د دشمنانو سره مدد نهٔ کوی۔ او کله چه قریش اسلام راوړي نو هغوی به هم اسلام راوړي، نو الله تعالیٰ ﴿ اِلَّا الَّذِیْنَ یَصِلُوْنَ اِلٰی قَوْمٍ ﴾ الآیة نازل کړو۔

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ : پدے کی الله تعالیٰ خپل امتنان او احسان بیانوی په مؤمنانو باندے چه وګوره چه الله تعالیٰ دا کافران تقسیم کړل او تول ئے داړه مار ونهٔ ګرځول، بلکه څه ئے نرم کړل او څه سخت، ولے که دا تول په یو ځل سخت شوی وے، او تول په یو ځل په مسلمانانو راتاو شوی وے او جنګ ئے ورسره شروع کړے وے نو د مسلمان نام ونشان به پاتے نهٔ وے، که

تول ملکونه د کافرانو مسلمان ته یو شوی وي، نو یو مجاهد ته به هیچرته د پناهئ ځای نهٔ ملاویدلے، نو ځینې کافران او منافقان الله تعالیٰ نرم کړل هغوی مسلمانانو ته پناهی ورکړي او په هغوی کې به د دوی فائدے هم وی مګر مسلمان ته پکې آزادي ملاو وی، نو الله فرمائي که دوی تاسو سره جنګ نهٔ کوی او د صلح لاس در اوږد کړی نو دوی سره جنګونه مهٔ کوئ او مهٔ ئې قید ته اچوئ ځکه چه اسلام ته د دوی نه نقصان نشته، او د هغوی سره قتال کول د هغوی قوت رابنکاره کول دی۔

سَبِيْلًا : أَيْ سَبِيْلَ الْقِتَالِ وَأَخْذِ الْأَمْوَالِ۔ یعنی د داسے کافرانو سره به قتال هم نشی کولے او نهٔ به ترے مالونه اخستلے شي۔

| |
|---|
| سَتَجِدُوْنَ آخَرِيْنَ يُرِيْدُوْنَ أَنْ يَّأْمَنُوْكُمْ |
| زردے چه مونده به کړئ تاسو نور کسان چه اراده به لری چه ځان په امن کی کړی ستاسو نه |
| وَيَأْمَنُوْا قَوْمَهُمْ كُلَّ مَا رُدُّوْا إِلَى الْفِتْنَةِ أُرْكِسُوْا |
| یا په امن کړی ځانونه د خپل قوم نه هرکله چه دوی واپس کړے شی فتنے (شرك) ته دوی ذلیله شی |
| فِيْهَا فَإِنْ لَّمْ يَعْتَزِلُوْكُمْ وَيُلْقُوْا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوْا |
| په هغے کی نو که جدا نهٔ شو دوی ستاسو نه او ګوزارئے نهٔ کړه تاسو ته صلحه او بندئے نکړل |
| أَيْدِيَهُمْ فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ |
| لاسونه خپل نو اونیسئ دوی لره او قتل کړئ دوی لره کوم ځای چه مونده کړل تاسو دوی لره |
| وَأُولٰٓئِكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا مُّبِيْنًا ﴿٩١﴾ |
| او همدا کسان مونږ ګرځولے تاسو لره په دوی باندے دلیل ښکاره۔ |

**تفسير** : پدے آیتِ کریمه کی د یو دریم قسم خلقو حال بیان شویدے چه ډیر بدترین قسم منافقان وو او د هغوی نیت د مخکی ذکر شوی منافقانو او کافرانو نه جدا وو، او د دوی کار صرف د خپل ځان ساتل وو۔

دے خلکو به د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامؓ په مخکی اسلام ښکاره کولو، دے دپاره چه د مسلمانانو د طرف نه د هغوی ځانونه، مالونه او د هغوی اولاد محفوظ پاتے شي، او په پټه به ئے د کافرانو سره دوستی ساتله او د هغوی د بتانو عبادت به ئے کولو، دے دپاره

چه د هغوی مخالفت کې واقع نۀ شي. دا خلك د تهامه (مکې) نه بعض بنی عبد الدار او څه د غطفان او بنو اسد قبیلو نه وو چه د مدینې په خواوشا کې وسیدل.
دوی نـه چـه بـه کـلـه څـپـل قـوم تپوس وکړو چـه تاسو څو ایمان راوړیدے ؟ نو دوی به مسخرې کولے او دا به ئې وئیل :آمَنَّا بِالْعَقَارِبِ وَالْخُنْفُسَاءِ وَالْقِرَدَةِ)
مـونـږ پـه لـړمـانـو او کونګټانو او شادوګانو ایمان راوړیدے، او کله چه به د صحابه کرامؓ سره ملاؤ شو ورته به ئې وئیل چه مونږ ستاسو په دین یو.
(تفسیر مقاتل بن سلیمان والقاسمي والقُرطبي والبغوي والمنار والتحریر والتنویر).
بلـه دا چـه کـلـه بـه د مسـلـمـانـانو او د کافرانو جنګ شروع شو نو دوی به د کافرانو سره مـلګرې کیدل، او هغوی ته به ئې وسله هم ورکوله. نو الله د دوی په باره کې فیصله صادره کړه چه دا یقیني کافر دي او د جنګ لائق دي.
ددے او د دویـم قسم خـلـکو فرق دا دے چه دویم قسم خلك د مؤمنانو سره قتال نۀ کوي د وجه د احترام د مؤمنانو نه، او پدے وجه چه د قتال نه ستړي شویدي، او دا قسم منافقان په خپـلـو ځـانـونـو یـریږيْ پدے وجه قتال نکوي او که موقعه ورته ملاؤ شي نو بیا د کافرانو ملګرتیا کوي او د مؤمنانو مقابلے ته راوځي. (السعديؒ)
ابـن جـریـرؒ د مـجـاهدؒ نه روایت کړیدے چه دا آیت د مکے والو نه د هغه خلکو په باره کې نـازل شوے وو چه دُوغله (دوه مخیزه) پالیسي به ئې چلوله. رسول الله ﷺ ته به راغلل نو د ریاء دپاره به ئې اسلام قبول کړو، بیا چه به قریشو ته واپس شو نو هلته به بیرته د بتانو په عبادتـونو کې ننوتل او پدے پالیسئ کې د دوی مقصد دا وو چه ژوند تیر کړي او د هیڅ‌ا د طرفـنـه ورتـه څه تکلیف پیښ نشي نو الله د دوی په قتل او قید کولو باندے حکم وکړو کله چه دوی ددے کار نه لاس وانخلي یا صلح ونکړي. (محاسن التاویل للقاسمي ۴۱۹/۲)
امـام رازيؒ لیـکـلـي دي : د ډیـرو پـه نیز دا آیت دلیل دے چه کوم کافران د مسلمانانو سره جنګ نـکوي او د صلح خواهش ښکاره کوي او مسلمانانو ته ضرر نۀ رسوي نو د هغوی سره قتال کول جائز نۀ دي. (قاسمي)
سَتَجِدُونَ : دا د وِجْدَان نه دے په معنیٰ د اطلاع موندل، خبریدل او پیژندلو سره دے او یو مفعول ته متعدي دے. (ابن عاشور)
كُلَّمَا رُدُّوٓا إِلَى الْفِتْنَةِ أُرْكِسُوا فِيهَا : یـعـنـي هر کله چه شرك ته یا د مسلمانانو قتال کولو ته واپس شي او دعوت کړے شي.

ارکسوا : یعنی واړولے شی شرک ته او یا د مؤمنانو د عهد نه واوړی۔
فَإِنْ لَّمْ يَعْتَزِلُوْكُمْ : یعنی که ستاسو د قتال نه په ډډه نشی او تاسو سره صلح نکوی او ستاسو د هر قسم ضرر او تکلیف رسولو کوشش کوی۔
وَيُلْقُوْا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ : دا د (لَمْ) د لاندے دے اَیْ لَمْ يُلْقُوْا۔
وَيَكُفُّوْا : دا هم د (لَمْ) د لاندے دے۔ اَیْ لَمْ يَكُفُّوْا۔
وَاقْتُلُوْهُمْ : دلته دا خبره پیژندل پکار دی چه هر حکم شرعی مشروط بالقدرة والاستطاعة وی یعنی کله به یو حکم راشی چه قتل ئے کړئ، او د قتل لائق دے او واجب القتل دے لیکن ستا به قدرت نهٔ وی نو تا باندے ددے حکم ذمه واریٔ نشته، او دا خبره تفصیل غواړی۔

## د ثقف معنیٰ

ثَقِفْتُمُوْهُمْ : د ثقف نه اخستے شویدے او ثقف د یو شی موندلو ته وائی، خو چه موندل ئے لږ باریکیٔ او هوښیارتیا ته ضرورت لری۔ (مفردات راغب: ۷۶) او دا لفظ ئے ځکه استعمال کړو چه د منافقانو چلونه ډیر زده وی او د لاس بر کیدل پرے باریکی او هوښیارتیا غواړی، او دا قسم منافقان هم ډیر چالاك وو پدے وجه ئے دلته د تاکید لفظ استعمال کړو او مخکی ئے صرف (وَجَدْتُّمُوْهُمْ) وئیلے وو ځکه چه هغه ښکاره کافران وو۔

بسم الله الرحمن الرحيم

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلَّا خَطَأً وَمَنْ قَتَلَ

او نهٔ دی جائز مؤمن لره چه قتل کړی یو مؤمن مگر په خطا سره او هر هغه چا چه قتل کړو

مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ

مؤمن لره په خطا سره نو په دهٔ باندے لازم دی آزادول د مریی مؤمن، او دیت دے چه اُوسپارلے شی

إِلٰى أَهْلِهٖ إِلَّا أَنْ يَّصَّدَّقُوْا فَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ

وارثانو د مقتول ته مگر که هغوی معاف کړو، پس که وو دا د یو داسے قوم نه چه دشمنان وو

لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ

ستاسو او هغه مؤمن وی نو لازم دی آزادول د مریی مؤمن او که دا وو د داسے قوم نه

| بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهُمۡ مِّيۡثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ |
|---|
| چه په مینځ ستاسو او په مینځ د هغوی کې لوظ وی نو لازم دے دیت چه وسپارلے شی |
| إِلَىٰٓ أَهۡلِهِۦ وَتَحۡرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤۡمِنَةٍ فَمَن لَّمۡ يَجِدۡ فَصِيَامُ |
| د هغه وارثانو ته او آزادول د مریې مؤمن دی پس که څوك نۀ مونده کوی (دا) نو (نیول د) روژو دی |
| شَهۡرَيۡنِ مُتَتَابِعَيۡنِ تَوۡبَةً مِّنَ اللّٰهِ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيۡمًا حَكِيۡمًا ﴿۹۲﴾ |
| دوه میاشتے پرله پسے، دا آسانی ده د طرفه د الله نه او دے الله پو هه حکمتونو والا۔ |

**تفسیر:** مضمون:

د رعیت د احکامو نه بل حکم دا دے [اَلنَّهۡيُ عَنۡ قَتۡلِ الۡمُؤۡمِنِ وَحُكۡمُ قَتۡلِ الۡخَطَاِ] چه مؤمن به په قصد سره نۀ وژنی مګر که په خطاء سره وشو نو د هغے حکم بیانوی بیا په (۹۳) کی وائی چه چا مؤمن په قصد سره قتل کړونو د آخرت ډیره لویه سزا به ورته ورسیږی۔
بیا په (۹٤) کی وائی چه ایمان والا به د قتل په باب کی انتهائی احتیاط او تفتیش او تالاش کوی چه آیا دا شخص مسلمان دے او که کافر؟ او په قتل کی به جلتی نکوی۔
بیا د وهم د د فع د وجه نه ئے په (۹٦) آیت کی ترغیب جهاد ته ورکړیدے او د مجاهدینو فضائل ئے بیان کړیدی او مجاهدین ئے تقسیم کړیدی یو هغه دی چه یو ے درجے والا دی او بل ډیرو درجو والا۔ بیا په یوه رکوع کی بیان د هجرت دے تر (۱۰۰) آیت پورے چه اسلامی حکومت ډے د مهاجرینو دپاره د استوګنے انتظام وکړی۔

ربط:

مخکی ئے وویل چه ښکاره کفار او منافقان ووژنئ نو ددے دپاره چه څوك ددے حکم نه یده فائده وانخلی او یو ایماندار شخص د کافر یا د منافق په نوم ونۀ وژنی نو ددے د وجه نه د مؤمن د قتل د حکم لوی والے بیانوی۔
پدے آیت کی د قتل خطاء حکم بیانوی۔
نو د ټولو نه اول خو الله تعالیٰ دا بیان کړل چه د مسلمان دپاره په هیڅ شان دا مناسب او جائز نۀ دی چه هغه خپل مسلمان ورور قتل کړی، آؤ که په خطائی سره بغیر د قصد نه قتل کړے شی نو هغه بیله خبره ده، او دا قتل خطاء په دوه قسمه دے، یو خطاء فی الفعل

ده لکه يو تن يو كافر ولی يا ښکار ولی او په خطائی سره تر یے يو مسلمان اُولګی، دویم خطاء فی القصد ده یعنی په یو تن باندے د کافر ګمان اُوکړی او مړ ئے کړی، او مينځ کی هغه مسلمان اُوخیژی، یعنی اراده ئے د همدغه سړی د وژلو کړیده لیکن په ګمان کی خطاء شو۔

## شان نزول

ددے آیت د شان نزول په باره کی د رسول الله ﷺ په زمانه کی ګنړ واقعات راپیښ شوی وو چه په هغے کی په خطاء سره څیني مؤمنان وژل شوی وو :

(۱) ابن جریرؒ، ابن ابی حاتمؒ او ابن المنذرؒ وغیرهم د مجاهدؒ نه روایت کړیدے چه دا آیت د عیاش بن ابی ربیعه ﷺ په باره کی نازل شویدے، چه هغه حارث بن یزید کافر اُوګنړلو او په مدینه کی ئے قتل کړے وو۔ حارث او ابوجهل به په مکه کی عیاش ته سزا ورکوله۔ روستو حارث مسلمان شو او مدینے ته راغلو۔ عیاش چه هغه په مدینه کی اُولیدو نو ګمان ئے اُوکړو چه لا تر اُوسه کافر دے، نو هغه ئے په خپله توره سره قتل کړو، کله چه هغه ته د هغه د اسلام پته اُولګیده نو د رسول الله ﷺ نه ئے پوښتنه اُوکړه، نو پدے باندے دا آیت نازل شو چه پدے کی د قتلِ خطاء حکم بیان شو۔

(۲) د اُحد په غزا کی د حذیفه بن الیمان ﷺ پلار (الیمان ﷺ) د جنګ په میدان کی د مسلمانانو دلاسه شهید شو پدے ګمان چه دا کافر دے، صحابه کرامؓ ته حذیفه ﷺ ډیرے نارے وکړے چه دا زما پلار دے خو د جنګ د سخت والی د وجه نه هیچا د هغه خبره وانهٔ وریده (صحیح البخاری)

## د قتل خطاء احکام

که یو شخص په خطائی سره مسلمان قتل کړی او د مقتول ورثه دیت معاف کوی نو دیت ساقطیږی، لیکن د الله حق یعنی یو مسلمان غلام یا وینځه آزادول به واجب وی، دے دپاره چه د هغه د هر اندام په بدله کی د قاتل هر اندام د جهنم د اُور نه آزاد شی. کما فی حدیث الصحیحین وغیرهما)

که د مقتول وارثان معافی نهٔ کوی نو دیت ورکول به واجب وی، چه د هغے مقدار د عمرو بن حزمؓ او د جابرؓ نه په روایت شوی صحیح احادیثو کی سل اُوښان، یا دوه سوه غواګانے، یا دوه زره چیلئ، یا زر دیناره یا دولس زره درهم دی، چه هغه به د قاتل د پلار د طرف نه چه

کوم خپلوان دي هغوی به ئے ادا کوي۔ (چه لږ لږ به پرے مقرر کړے شي او ټول چه راغونډ شي نو دیت به پرے ادا شي) او ټول به د قاتل د مال نه نهٔ ادا کیږي ځکه چه د قتل خطاء د بار بار راتللو نه امن نشته نو بیا به پدے طریقه سره د قاتل ټول مال ختم کړي، او که همداسے پریخودے شي نو د مقتول وینه ضائع کیږي۔ (نیل الاوطار باب العاقلة ۷/۱٤۰)

(رواه النسائی فی کتاب القسامة وابوداود فی الدیات رقم (٤٥٤٤) والموطأ فی کتاب العقول، وابن خزیمة وابن حبان والحاکم وغیرهم بسند صحیح)

او که مقتول د یو داسے قوم فرد وي چه هغوی د مسلمانانو دشمنان وي لیکن هغه خپله مسلمان وو نو یو مسلمان غلام یا وینځه آزادول به وي او دیت به ساقطیږي ځکه چه ددهٔ د قوم خلق کافران او د مسلمانانو دشمنان دي، ځکه چه ددهٔ او ددهٔ د خپلوانو په مابین کي وراثت نهٔ ثابتیږي، لهذا حربي کافران د مال ورکولو لائق نهٔ دي۔

او که مقتول د یو داسے قوم فرد وي چه د هغوی د مسلمانانو سره معاهده وي او دا مقتول مسلمان وي او قوم ئے کافران وي نو د مقتول وارثانو ته به دیت ورکول وي، او یو مسلمان غلام یا وینځه به هم آزادول وي۔ او که غلام یا وینځه نهٔ ملاویدل چه هغه آزاد کړي نو د توبې په توګه به مسلسل دوه میاشتو پورے روژے نیول وي۔

او رسول الله ﷺ د بني عامر قبیلو د دوه کافرانو دیت ورکړے وو کله چه هغه سیدنا عمرو بن اُمَیه الضَّمري ﷺ قتل کړي وو ځکه چه د هغوی د رسول الله ﷺ سره معاهده وه او عمرو بن امیه الضمري ﷺ د هغے نه خبر نهٔ وو۔ (ترمذی کتاب الدیات باب رقم ۱۲ وفی اسناده ابوسعد البقال ضعیف)

دلته ئے دیت مخکي راوړو پدے وجه چه چرته قاتل دا ګمان ونکړي چه ددے مقتول قوم خو کافران دي، دوی ته ولے دیت ورکړم؟ نو الله وفرمایل چه دیت به ورکوي ځکه چه په اسلام کي د وعدے ډیره سخته پابندي راغلے ده۔

**فائده** : دا حکم د هغه چا هم دے چه په خپل بچي یا پردي بچي باندے په خوب کي وروا وړي او په خطاء سره ئے قتل کړي چه دا هم ګناهګار نهٔ دے مګر کفاره او دیت به ورکوي، البته که د دیت مطالبه کونکے نهٔ وي نو صرف کفاره به ورکړي ځکه چه د نفس انساني ډیر احترام دے، دے دپاره چه دا وینه همګداسے ضائعه لاړه نشي۔ او دے ته په اصطلاح د علماؤ کي قتل شبه خطاء وئیلے شي۔

بعض جاهلان وائي : رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثٍ نه معلومیږي چه دیت او کفاره نشته لیکن

صحیح خبره دا ده چه گنهگار نهٔ دے او دیت او کفاره پرے شته لکه تفصیل ئے په خپل مقام کی ذکر کیږی. او دا اجماعی مسئله ده، د سلفو نه په کی اختلاف نشته. انظر فتاوی الدین الخالص جلد (۳).

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ : دا ماکان نفی ده په معنیٰ د نهی او تحریم سره ده یعنی دا کار مؤمن لره جائز نهٔ دے لکه پدے قول د الله تعالیٰ کی دی: ﴿ وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ ﴾ (احزاب:۵۳)

إِلَّا خَطَأً : خطأ منصوب دے مفعول له دے اَیْ لَایَجُوْزُ لَهٗ اَنْ یَّقْتُلَهٗ لِعِلَّةٍ مِنَ الْعِلَلِ اِلَّا لِلْخَطَأِ وَحْدَهٗ) (زمخشری) دا جائز نهٔ دی مؤمن لره چه مؤمن قتل کړی په یو سبب د اسبابو سره مگر په خطاء سره. (قاسمیؒ)

یا خطأ : مفعول مطلق دے اَیْ اِلَّا قَتْلًا خَطَأً. یعنی نهٔ دی جائز چه مؤمن قتل کړی مگر که قتل ئے کړی په قتل خطاء سره نو په هغے باندے گناهگار نهٔ دے مگر کفاره به پرے راځی.

یا دا استثناء منقطع ده. اَیْ لٰکِنْ اِنْ وَقَعَ خَطَأً فَحُکْمُهٗ مَا سَیَاْتِیْ.

لیکن که هغه قتل په خطاء سره واقع شی نو د هغے حکم روستو راروان دے.

رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ : دلته دا قید راغلو چه خامخا به مؤمن غلام آزادوی ځکه چه مؤمن ئے وژلے دے، دے دپاره چه د هغه د اندامونو سره برابر شی، لکه مخکی حدیث ذکر شو.

وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ : دا دیت فی الحال ته هم شاملیږی او مؤجل (نیتی والا) ته هم، مگر د امت د علماؤ پدے خبره اتفاق دے چه د قتل خطاء دیت به په عاقله ؤ باندے وی او په نیته کی اختلاف دے (۱) اکثر اهل علمؒ وائی چه دغه نیته به درے کاله وی یعنی په درے کاله کی به دغه دیت پوره کوی. او پدے باندے علی ﷺ فیصله کړیده او دا قول د عمر فاروق او ابن عباس رضی الله عنهما دے او د دوی مخالف نهٔ دے موجود.

(۲) ځینی (ربیعة الرأیؒ) وائی چه پنځه کاله دی لیکن خبره ئے ضعیفه ده. (قاسمیؒ)

إِلَّا أَنْ يَصَّدَّقُوا : یَصَّدَّقُوْا په اصل کی یَتَصَدَّقُوْا دے یعنی که د مقتول وارثان صدقه وکړی په دیت باندے او قاتل ته ئے معاف کړی نو بیا به دیت ساقط وی، ځکه چه دوی خپل حق معاف کړو. او تعبیر ئے په صدقه سره وکړو پدے کی ترغیب او تیزی ورکول دی په معافی کولو، او ددے په فضیلت باندے تنبیه ده.

شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ : یعنی که میاشت د نهه ویشتو حساب کړے شی نو اته پنځوس

روژے به ونیسی او د روژو نیول تعبدی حکم دے چه غیر معقول المعنیٰ دے، ځکه چه د قتل په بدله کی د روژو نیولو مناسبت په ظاهره کی نهٔ ښکاره کیږی، کیدے شی چه په دے کی په قاتل باندے یو مشقت راوستل مقصود وی چه آینده کی د روژو په یره سره د قتل نه احتیاط وکړی، یا دهٔ نفس وژلے دے نو ده لره خپل نفس وژل پکار دی، او هغه په روژو سره وژل کیږی، یا ددهٔ په نفس کی قوت غضبی او سبُعی زیات شوے وو نو په روژو سره به ددهٔ دغه نفس کنټرول شی، او آینده کی به احتیاط کوی۔ هره وجه چه وی خو د الله تعالیٰ حکم دے، عمل به پرے کوی۔

تَوْبَةً : دا مفعول له دے أی شَرَعَ اللّٰهُ ذٰلِكَ لِلتَّوْبَةِ ۔ یعنی الله دا حکم مشروع کړو دپاره د توبه ویستلو۔ او قاسمیؒ وائی چه توبه دلته رحمت ته وائی یعنی دا د الله رحمت دے چه تاسو ته ئے داسے حکم راولیږلو، ولے که پدے کی ئے په هر صورت قصاص یا خامخا دیت وئیلے وے نو دا به ډیره گرانه وے۔ او توبه تخفیف او آسانئ ته هم وائی۔

یعنی دا د الله د طرفنه ستاسو دپاره آسانی ده۔

او خپله لغوی معنیٰ ئے دا ده چه پدے کار سره به ستاسو رجوع وشی الله طرفته ځکه چه په قتل سره بنده د الله نه وړاندے کیږی۔ یعنی پدے حکم کی د الله د طرفنه ستاسو رجوع ده الله طرفته۔

## سوال وجواب

سوال : هرکله چه په قتل خطاء کی د آخرت سزا نشته نو پکار ده چه په دنیا کی پرے کفاره هم رانشی، وجه دا ده چه حدیث کی دی : [إِنَّ اللّٰهَ تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِي الْخَطَأَ وَالنِّسْيَانَ وَمَا اسْتُكْرِهُوا عَلَيْهِ] (ابن ماجه: ۲۰۴۳) الله تعالیٰ زما د امت نه خطاء او هیره او هغه شے چه په هغوی باندے په زوره وکړے شی معاف کړیدی۔

**جواب** : د آخرت سزا پرے نشته ځکه چه نیت د قتل ئے نهٔ وو او د دنیا سزا پرے شته د ډیرو وجو نه (۱) قاتل بی احتیاطی کړیده، نو دلته د قتل خطاء په صورت کی قاتل د بی احتیاطئ په وجه نیول کیږی، ولے که دهٔ احتیاط کړے وے نو قتل به ترے نهٔ وے واقع شوے، مثلاً که مور خپل ماشوم خپل ځان ته نزدے نهٔ وے اچولے نو د اړخ نه به ئے نهٔ وے لاندے کړے۔ (۲) د مؤمن د وینے احترام دے۔ (۳) دریم دا چه دیت او کفاره د باب د خطاب الوضع نه دے نهٔ د باب د سبب نه او قانون دا دے چه احکام وضعیه دا د خپل علت سره

کرخی راکرخی برابره ده که هغه په قصد سره صادر شوی وی او که بغیر د قصد نه انظر الوجیز باب الحکم)

په یو بل حدیث کی دی:

[رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثٍ، عَنِ النَّائِمِ حَتّٰى يَسْتَيْقِظَ وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتّٰى يَحْتَلِمَ وَعَنِ الْمَجْنُوْنِ حَتّٰى يَعْقِلَ] (ابوداود: ٤٤٠٠) قلم د دریے کسانو نه پورته دیے د اُوده نه تردیے چه راپیدار شی او د ماشوم نه تردیے چه بالغ شی او د لیونی نه تردیے چه عقلمند شی۔ او په اتفاق د علماؤ سره د اُوده سړی چه کله احتلام وشی نو هغه به غسل کوی او که لیونی قتل وکړو نو د هغه نه به دیت اخستلے کیږی لکه سیدنا معاویه ﷺ دا فیصله کړیده۔

أَنْ اعْقِلْهُ وَلَا تَقُدْ مِنْهُ فَإِنَّهُ لَيْسَ عَلٰى مَجْنُوْنٍ قَوَدٌ (الموطأ: ١٥٤٩) یعنی ددیے شخص نه دیت واخله او قصاص تریے مهٔ اخله ځکه چه په لیونی قصاص نهٔ وی۔

وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيْهَا وَ

او چا چه قتل کړو مؤمن په قصد سره نو بدله ددهٔ جهنم دیے همیشه به وی په هغے کی او

غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهٗ وَأَعَدَّ لَهٗ عَذَابًا عَظِيْمًا ﴿٩٣﴾

غضب کړیے الله په هغه باندیے او لعنت ئے کړیے په هغه او تیار کړیے دیے هغه له عذاب لوئی۔

**تفسیر** : پدیے آیت کی د قتل عَمْد (قصداً) حکم بیان شویدیے چه یو شخص یو مسلمان په قصد سره قتل کړی نو د هغه ځای د اُوسیدو به جهنم وی الخ

قتلِ عَمْد دومره لویه ګناه ده چه الله تعالیٰ دا په ګنړو آیتونو کی د شرك سره یوځای بیان کړیده، لکه چه سورة الفرقان (٦٨) آیت کی دی: ﴿وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ﴾ او دا هغه خلك دی چه د الله سره هیڅوك شریك نهٔ رابلی او هیڅ نفس نهٔ قتلوی چه الله د هغه قتل حرام کړیے وی مګر په حق سره)۔

او په احادیثو کی هم ددیے ډیر لوی وعید راغلے دیے۔ لکه چه ترمذیؒ د ابوسعید خدری ﷺ او د ابو هریره ﷺ نه روایت کړیے چه [لَوْ أَنَّ أَهْلَ السَّمَاءِ وَأَهْلَ الْأَرْضِ اشْتَرَكُوْا فِيْ دَمِ مُؤْمِنٍ لَأَكَبَّهُمُ اللّٰهُ فِي النَّارِ] (ترمذی: ١٤٥٩ بسند صحیح) که د آسمان او زمکے ټول اُوسیدونکی د یو مؤمن په قتل کی شریك شی نو الله به هغه ټول جهنم ته ګوزار کړی۔

او په حدیث د نسائیؒ، ترمذیؒ او ابن ماجهؒ کی دی:

[ لَزَوَالُ الدُّنْيَا أَهْوَنُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ قَتْلِ رَجُلٍ مُسْلِمٍ ] (وسنده صحيح)۔

د الله تعالیٰ په نیز د دنیا ختمیدل د مسلمان سړی د وژلو نه معمولی او سپك دی۔

او په حدیث د احمدؒ او ابوداودؒ کې دی: [ لَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ مُعْنِقًا صَالِحًا مَا لَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا فَإِذَا أَصَابَ دَمًا حَرَامًا بَلَّحَ ] (واسناده صحيح)

همیشه وی مؤمن (چه په نیکیٔ کی) جلتی کونکے وی، نیکی کونکے وی ترڅو چه ئے حرامے وینے ته رسیدل نهٔ وی کړی نو کله چه حرامے وینی ته رسیدل وکړی (یعنی مؤمن ووژنی) نو بند شی (او د خیر په کارونو کی مخ په وړاندے نشی تلے او توفیق نشی موندلے او دین ئے وخت په وخت کمیږی تردے چه ارتداد ته نزدے شی)۔

## شان نزول

د مقیس بن صُبابه الکنانی ورور هشام بن صبابه په بنی النجار قبیله کی وژلے شوے وموندل شو نو نبی کریم ﷺ مقیس او یو بل فِهری صحابیؓ دواړه بنی النجار ته ورولیږل چه بنی النجار ته ووایه چه مقیس ته د هغه د ورور قاتل ورکړیٔ او که قاتل ئے درته معلوم نهٔ وی، نو بیا د مقتول دیت ورکړیٔ نو بنی النجارو وویل چه مونږ خو قاتل نهٔ پیژنو، البته دیت به ورکړو، نو مقیس د خپل ورور دیت (سل اُوښان) راروان کړل او د خپل ملګری سره بیرته راستون شو نو شیطان راغلو او مقیس ته ئے وسوسه واچوله چه دا خو به په تا پاندے د ورور لوی پیغور پاتی وی، نو راشه دا مسلمان قتل کړه او دیت هم وتښتوه نو هغه دغه خپل ملګرے (فِهری) قتل کړو او اُوښان ئے وتښتول او مکے ته لاړو مرتد شو،

او دا اولنے سړے وو چه د اسلام نه مرتد شو ددهٔ نه مخکی هیڅوك د اسلام نه نهٔ وو مرتد شوی (بیا د مکے د فتح په زمانه کی رسول الله ﷺ د څلورو کسانو سره ددهٔ وینه هم هدر اعلان کړه نو صحابه کرامو د مکے په بازار کی قتل کړو)

(شعب الایمان للبیهقی رقم: ۲۹۲) والدر المنثور والطبری والبغوی ۲/۲٦٦)

نو دا آیت د هغه په باره کی نازل شو، او الفاظ ئے عام دی۔

## مسئله

یو مؤمن لره د قصداً قتلونکی توبه قبلیږی او که نهٔ؟ دے باره کی د صحابه کرامو اختلاف وو۔ سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما وائی چه ددهٔ توبه نهٔ قبلیږی۔

بخاري د سعيد بن جبيرؒ نه د ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کړيدے چه دا آيت په آخري ورځو کې نازل شويدے. او بل کوم آيت دا نۀ دے منسوخ کړے. مسلمؒ، نسائيؒ او ابوداوۜد پدے معنیٰ باندے يو بل حديث د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت کړيدے چه د هغے په آخر کې دي چه ددے آيت نه روستو بل کوم آيت نۀ دے نازل شوے چه هغه دا منسوخ کړي. د زيد بن ثابتؓ، ابو هريرةؓ، عبد الله بن عمروؓ، حسنؒ او قتادةؒ وغيرهم همدا رائے ده. نو دا به ئے د کافر په شان ګڼړلو.

او د امت د عامو علماؤ قول دے چه د قصداً قاتل د هغه او د هغه د رب ترمينځ توبه شته. که توبه اُوباسي او د نيك عمل په ذريعه خپل حالات صحيح کړي، نو الله تعالیٰ به د هغه ګناهونه په نيکيانو سره بدل کړي او مقتول ته به د هغه د مظلوميت په وجه ښائسته بدله ورکړي او خوشحاله به ئے کړي، او د عام کافر او مشرك توبه شته نو د قاتل به څامخا وي، د سورة الفرقان چه کوم آيت اُوس تير شو، په هغے کې د الله سره د شرك، قتلِ عمد او زنا په شان لوئي جرمونو ذکر کولو نه روستو الله فرمايلي دي: ﴿ اِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَاُولٰئِكَ يُبَدِّلُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِهِمْ حَسَنٰتٍ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴾ چه څوك توبه وباسي او ايمان راوړي او نيك عمل کوي نو الله به د هغوي ګناهونه په نيکيانو سره بدلوي او الله بخونکے رحم کونکے دے. الله تعالیٰ د سورة الزمر په آيت (۵۳) کې فرمايلي دي: ﴿ قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا ﴾ ته ووايه! چه اے زما بندګانو! کومو چه په ځانونو ظلم کړيدے، د الله د رحمت نه مۀ نا اُميده کيږئ، يقيناً الله ټول ګناهونه معاف کوي. پدے دواړو آيتونو کې د ټولو ګناهونو په باره کې عام حکم دے چه د رښتينې زړۀ نه توبه کولو سره الله هغه معاف کوي.

نو هغه آيتونه مقيد کونکي دي دے آيت لره او دلته ئے مطلق ولے وئيلے دے؟ جواب: دپاره د يره ورکولو خلکو ته.

دلته يو بل سوال پاتے کيږي چه د امت اجماع ده چه د توبې په وجه د هيڅا حق نۀ ساقطيږي، پدے وجه د توبے نه روستو به هم د مقتول حق د قاتل په ذمه باقي پاتې وي، او هغه به د قيامت په ورځ د خپل حق مطالبه کوي. نو ددے جواب دا دے چه کله الله تعالیٰ د قاتل توبه قبوله کړه، نو ممکن ده چه الله تعالیٰ به مقتول ته د هغه د مظلوميت دومره ښائسته بدله ورکړي چه هغه به خوشحاله شي، او د قاتل د توبے قبليدو په وجه به هغه هم د الله په فضل او کرم سره جنت ته اُوليږلے شي.

## بله مسئله :

که څوك قتل وکړی او توبه ونهٔ باسی نو آیا همیشه به جهنم کی وی؟ د اهل سنتو مذهب خو دا دے چه قاتل مسلمان دے، یو وقت د اوقاتو کی به د جهنم نه راوځی نو ددے آیت څه تحقیق کیدے شی؟

نو ددے جواب دا دے چه دلته د قتل سزا بیانول مطلب دے چه د قتل سزا دومره ده چه دے مستحق دے چه جهنم ته همیشه دپاره داخل شی، او غضب او لعنت دے پرے راشی او عذاب عظیم دے ورکړے شی، لیکن دے سره دا مراد دے چه مَا لَمْ يَمْنَعْ مَانِعٌ مِنَ الْخُلُوْدِ، یعنی چه په جهنم کی د همیشه پاتے کیدو نه مانع نهٔ وی موجود او که هغه موجود وو لکه ایمان او نور نیك اعمال دی نو بیا به همیشه پکی نهٔ پاتی کیږی.

امام بیهقیؒ په شعب الایمان کی د ابومجلز (لاحق بن حُمَیدؒ) نه داسے تعبیر نقل کړیدے : [هِیَ جَزَاؤُهٗ فَإِنْ شَاءَ اللّٰهُ أَنْ يَّتَجَاوَزَ عَنْ جَزَائِهٖ فَعَلَ] (شعب الایمان رقم: ۲۹۲)۔

یعنی دا ئے سزا ده لیکن که الله وغواړی چه سزا ورته معاف کړی نو کولے ئے شی)

او دلته نور ډیر جوابونه دی چه مفسرینو پرے ښه خانوته ستړی کړیدی لیکن هغه ټولو باندے اعتراضونه واردیږی چه څوك وائی چه دا آیت په هغه قاتل حمل دے چه حلال گنړونکے وی یا کافر وی لکه شان نزول پرے دلیل گنړی، او یا د خلود نه مراد مکث طویل (اوږده زمانه ایساریدل) دی او څوك ئے د سورة الفرقان په ﴿ إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا﴾ آیت سره منسوخ گنړی، دا ټول جوابونه دلته پوره نهٔ لگیږی.

**فائده :** په دنیا کی د مقتول اولیاؤ ته اختیار دے، که غواړی نو قصاص دِے واخلی او که غواړی نو معاف دِے کړی، او که غواړی نو دیتِ مغلظه دِے واخلی، یعنی سل اُوښان. ددے اجمال تفصیل د حدیث فقه په کتابونو کی موجود دے.

لیکن که د مقتول اولیاء هغه معاف کړی یا د دیت په اخستو راضی شی نو آیا قاتل به کفاره ورکوی؟ نو ډیر علماء وائی چه آؤ، قاتل به کفاره ورکوی ځکه چه هرکله چه قتل خطاء کی کفاره واجب ده، نو په قتل عمد کی به په درجه اولیٰ واجب وی.

او دلیل کی حدیث پیش کوی چه امام احمدؒ د واثله بن الاسقع ﷺ روایت راوړیدے چه رسول الله ﷺ ته د بنو سُلیم څه کسان راغلل عرض ئے وکړو چه زمونږ یو تن ځان له اُور واجب کړیدے (یعنی په قتل سره). نو هغه وفرمایل : [فَلْيُعْتِقْ رَقَبَةً يَفْدِي اللّٰهُ بِكُلِّ عُضْوٍ

مِنْهَا عُضْوًا مِنْهُ فِي النَّارِ] مريبی دے آزاد کړی نو الله به د هغه په هر اندام سره ددهٔ هر اندام د اُور نه آزاد کړی۔ (ابوداود والنسائی) (محاسن التاويل ۲/ ۴۳۸)

وجود اسناده حسين سليم اسد في تحقيق مسند ابي يعلى رقم: ٧٤٨٤) وضعفه الالباني في الضعيفة: ٩٠٧) وقال في اسناده الغريف بن عياش مجهول لم يوثقه غير ابن حبان وقال الحافظ عن ابن حزم: مجهول – و كذا ضعفه شعيب الارناووط والراجح ضعفه)

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا ضَرَبْتُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ فَتَبَيَّنُوا وَلَا تَقُولُوا |
|---|
| اے ایمان والو! کله چه سفر کوئ تاسو په لاره د الله کی نو تحقیق کوئ او مهٔ وایئ |
| لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيَاةِ |
| په باره د هغه چا کی چه واچوی تاسو ته سلام چه تهٔ نهٔ یے مؤمن، لټوئ تاسو سامان د ژوند |
| الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ كَذَٰلِكَ كُنْتُمْ مِنْ قَبْلُ فَمَنَّ اللهُ |
| دنیوی پس دی د الله تعالیٰ سره غنیمتونه ډیر، همدغه شان وئ تاسو مخکی ددے نه نو احسان اُوکړو |
| عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوا إِنَّ اللهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿٩٤﴾ |
| الله په تاسو نو بنهٔ تحقیق کوئ یقیناً الله دے په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ خبردار۔ |

**تفسير** : پدے آیت کی بل حکم بیانوی د قتل خطاء متعلق او د آیت مطلب دے اَلتَّبَيُّنُ وَالتَّثَبُّتُ فِي قَتْلِ النَّاسِ یعنی د خلکو د وژلو په باره کی به د پوره تفتیش او تحقیق او یقین او احتیاط نه کار اخستے شی او په معمولی گمان سره به هغوی نشی وژلے۔

## شان نزول

مفسرینو پدے مقام کی د آیت د نزول په باره کی ګڼړ واقعات ذکر کړیدی:

(۱) مشهوره واقعه دا ده چه عبد الله بن ابی حدرد ﷺ قصه بیانوی چه رسول الله ﷺ یوه سریه ولیږله بطن اِضم علاقے ته چه په هغے کی ابوقتاده (الحارث بن ربعی) انصاری ﷺ او مُحلّم بن جثامه اللیثی هم وو (او دے پکی خپله هم وو) کله چه مونږ بطن اضم ته ورسیدو نو مونږ باندے عامر بن الاضبط الاشجعی راتیر شو چه په اُوښ باندے سور وو او د هغه سره نور سامانونه هم وو، نو کله چه په مونږ راتیر شو نو مونږ باندے ئے سلام واچولو۔ او ځینی روایاتو کی دی چه کلمه (لا اله الا الله) ئے هم وویله نو مونږ د هغه نه بند

شو لیکن مُحلم بن جثامه پرے حمله وکړه او قتل ئے کړو پدے وجه چه ددهٔ او د عامر بن الاضبط په مابین کی په جاهلیت کی دشمنی وه او د هغه نه ئے اُوښ هم واخستو او محلم وویل چه دا کافر دے او هسے زمونږ نه ځان خلاصوی او مطلب ئے دا وو چه دا به هم قتل کړم او ګلوے بزے به هم ترے واخلم۔

عبد الله وائی : بیا مونږ چه کله رسول الله ﷺ ته راغلو او قصه مو ورته بیانه کړه نو دا آیت نازل شو۔ او رسول الله ﷺ هغه ته ښیرے وکړے چه الله دِے تا هلاك کړی او زمکه دے تا قبول نکړی (پدے وجه چه دهٔ د دغه شخص ضد کړے وو) او د کلمے احترام ئے نهٔ وو کړے۔ نو روایاتو کی دی چه اُوه ورځے پس مړ شو او خلکو دفن کړو لیکن زمکے راګوزار کړو بیا ئے دفن کړو بیا ئے راګوزار کړو، درے کرته داسے وشو نو خلکو نبی کریم ﷺ خبر کړو نو هغه وفرمایل: [اِنَّ الْاَرْضَ تَقْبَلُ مَنْ هُوَ شَرٌّ مِنْهُ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ اَرَادَ اَنْ يُّعَظِّمَ مِنْ حُرْمَتِكُمْ] وَفِىْ رِوَايَةٍ : وَلٰكِنَّ اللّٰهَ اَحَبَّ اَنْ يُّرِيَكُمْ تَعْظِيْمَ حُرْمَةِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ] (ابن ماجه) وسنده حسن – البانی) ۔ زمکه ددهٔ نه زیات بد تر مړے هم قبلوی لیکن الله غواړی چه تاسو ته د بنده د وینی لوی والے وښائی۔ او په یو بل روایت کی دی چه الله غواړی چه تاسو ته د لا اله الا الله کلمے د احترام لوی والے وښائی۔ (چه دے انسان بی احتیاطی وکړه او د کلمے احترام ئے ونهٔ ساتلو ورنه زمکه لوی لوی کافران قبلوی لکه د ابوجهل او فرعون په شان او دا انسان مسلمان دے مګر د بی احتیاطئ په وجه ورته دا سزا ورکړے شوه چه زمکے قبول نکړو) بیا ئے وفرمایل : دا په یوه کنده کی وارتوئ او کانړی پرے دپاسه واچوئ۔ او ددهٔ په باره کی دا آیت نازل شو۔ (ابن جریر عن ابن عمر، القاسمی ۲/ ۴۴۰ والقرطبی وابن کثیر وغیره)

۲– ځینی مفسرینو دا هم لیکلی دی چه دا آیتونه د اسامه بن زید رضی الله عنهما په باره کی نازل وو چه د هغه د توری لاندے یو کافر راغلو نو هغه لا اله الا الله وویله نو اسامه ﷛ ددے دپاسه هم قتل کړو، رسول الله ﷺ ته دا خبره بیان شوه نو هغه اسامهٔ راوغوښتو او دا ئے ورته وفرمایل: اَقَتَلْتَهٗ وَقَدْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ؟] آیا تا ووژلو حال دا چه هغه لا اله الا الله وویله؟ نو اسامه وویل اے د الله رسوله : [اِنَّمَا قَالَهَا مُتَعَوِّذًا] هغه دا کلمه د ځان خلاصولو دپاره وویله۔ رسول الله ﷺ وفرمایل: [فَهَلَّا شَقَقْتَ عَنْ قَلْبِهٖ]

تا د هغه زړه ولے نهٔ څیری کاوه چه کتلی دے وے چه آیا د زړه نه ئے ویلے ده او که په دروغو۔ یعنی تا خو د هغه په خوله باندے باور ونکړو او د هغه په زړه باندے دِے علم نهٔ وو۔ او مطلب ئے دا وو چه تهٔ به د یو انسان ظاهر ته ګورے او د زړه علم ئے د الله سره دے۔ او

رسول الله ﷺ به دا خبره بار بار کوله او دا ئے هم وفرمایل: ته به د لا اله الا الله سره څه کوے کله چه د قیامت په ورځ راشي نو اسامهؓ فرمائي: ما ارمان وکړو چه دا کار ما د اسلام نه مخکې کړے وے نو ښه به وه او په اسلام کې مے نهٔ وے کړے. (دغه وژلے شوے مسلمان مِرْدَاس بن نَهِيك الفزاري من اهل فدك وو).

(ابن جرير الطبريؒ والدر المنثور والبغويؒ وغيرهم) والروض الانف ٤/٤٠٥)

٣- امام احمدؒ او بخاريؒ د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت کړیدے چه د هغې خلاصه دا ده چه د بنو سليم یو سړی خپلے چیلۍ څرولے څه صحابه کرام د هغه په خوا تیر شو نو هغه سلام وکړو، لیکن صحابهؓ وویل چه دا شخص د خپل ځان او چیلو ساتلو دپاره مونږ ته سلام کوی نو هغه ئے قتل کړو او د هغه چیلۍ ئے رسول الله ﷺ ته راوستے نو الله دا آیت نازل کړو. (صحيح البخاری ٢/٦٦٠ والترمذی٢/١٣٢)

دا سړے د مخکې نه مسلمان وو لیکن د صحابه کرامؓ پرے علم نهٔ وو او دا گمان ئے وکړو چه دا گنے د ځان خلاصولو دپاره کلمه وائي.

○ حافظ ابوبكر البزارؒ د ابن عباس رضي الله عنهما نه یو بل روایت نقل کړیدے چه رسول الله ﷺ مقداد بن اسودؓ په یو فوجي دسته باندے امیر مقرر کړو او په یو قوم باندے د حملے دپاره ئے اُولیږل، کله چه مسلمانان هلته اُورسیدل، نو ټول خلك وتختیدل صرف یو سړے پاتے شو چه د هغه سره ډیر مال وو. هغه د شهادت کلمه وویله لیکن ددے سره مقدادؓ هغه قتل کړو. یو صحابي اُووئیل چه تا یو داسے سړے قتل کړو چه هغه د شهادت کلمه وئیلے وه، زهٔ به دا واقعه رسول الله ﷺ ته ضرور بیانوم. نو رسول الله ﷺ مقداد راوغوختو او تپوس ئے ترے اُوکړو او وے وئیل چه د قیامت په ورځ به د (لا اله الا الله) سره ته څه کوے؟ نو دا آیت نازل شو. په دے روایت کې راځي چه نبي ﷺ مقدادؓ ته اُووئیل چه تا هم په مکه کې خپل ایمان پټ ساتلو.

دے ټولو ته دا آیت شاملیږي.

بیا دا حکم د کافر او مشرك دے چه په جنگ کې ایمان راوړي نو قبلیږي به او د مرتد دا حکم نهٔ دے هغه چه کله دین پریخودو او بیا په جنگ کې ونیولے شو نو که هر څومره کلمے ووائي نو د هغه وژل جائز دي. (مَنْ بَدَّلَ دِيْنَهٗ فَاقْتُلُوْهُ) (بخاری: ٣٠١٧). آؤ توبه ئے په مابین د الله او ددهٔ کې قبوله ده چه اخلاص سره وي.

إِذَا ضَرَبْتُمْ: ضرب سره چه ارض لفظ ذکر شي مراد ترے نه سفر کول وي.

سفر نے څکه ذکر کړو چه په کلی کی د مؤمن او غیر مؤمن معلومات کیږی لیکن په سفر کی دا معلومات نۀ کیږی اګر که دا حکم حضر ته هم شامل دے۔

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ: پدے کی هم د تبین او د تحقیق تاکید دے چه تاسو خو د الله د کلمے د اوچتوالی دپاره راوتلی یئ نو چا نه چه دغه کلمه واورئ نو پکار ده چه تحقیق ئے وکړئ او د دغه کلمے اکرام وکړئ۔

تَبْتَغُوْنَ : یعنی تاسو د هغه په وژلو د دنیا سامان طلب کوئ، او اکثر انسانان داسے بی احتیاطی د دنیا دپاره کوی، نو الله فرمائی چه د الله سره غنیمتونه زیات دی د بل طرفنه به الله تعالیٰ غنیمتونه درکړی، د مشکوك مسلمان نه ئے ولے اخلئ۔

كَذٰلِكَ كُنْتُمْ : دا ډیره د عقلمندئ خبره ده چه تۀ خپل ځان ته هم وګوره چه تۀ هم مخکی دغه شان حالت کی وے چه ذهن دے د حق نه بند وو او کمزوری ایمان والا وئ که تاسو نبی کریم ﷺ وژلی وے او ستاسو کلمه ئے نۀ وے قبوله کړی نو ستاسو به څه حال وے، دا خو روستو درله الله تعالیٰ په دین باندے پوهه درکړه، او ایمانونه ئے درله قوی کړل نو دغه شان د بل مسلمان په باره کی هم صرف کلمه وئیل قبول کړئ، هغه به ساده وی، پوره تعبیر به نشی کولے، نو د هغه حالت قبول کړئ۔ او دا خبره د داعی دپاره ډیره فائده منه ده۔ او د مجاهد دپاره هم۔ بعض خلك په شبهاتو نور مسلمانان قتلوی او صرف بدګمانی وی چه دا به د کفارو ملګرے وی انا لله وانا الیه راجعون۔

فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ : اَیْ بِالتَّثَبُّتِ ۔ یعنی الله په تاسو احسان وکړو چه په دین ئے مضبوط کړئ او ایمانونه ئے درله قوی کړل۔

سعید بن جبیرؒ وئیلی دی چه په اول کی تاسو هم د قوم (کافرانو) د ویرے د وجه نه ایمان پټ ساتلو په شان د دغه مقتول شخص نو الله تعالیٰ په تاسو احسان وکړو چه قوت او عزت ئے درکړو تردے چه تاسو خپل ایمان راښکاره کړو۔

او مقاتل بن حیانؒ وئیلی دی چه تاسو د هجرت کولو نه مخکی د کافرانو په مینځ کی وئ نو د صحابه کرامو په مخکی به تاسو د خپل امن دپاره کلمه د اسلام وئیله نو الله د هجرت توفیق درکړو۔

كَذٰلِكَ كُنْتُمْ : کی تولو صحابه کرامو ته خطاب نۀ دے بلکه بعض مراد دی چه د هغوی اول کی دغسے حال وو۔ او اکثر مفسرین وائی چه دلته د تشبیه نه مراد دا دے چه اول وخت کی چه تاسو په اسلام کی داخل شوئ نو صرف په کلمه وئیلو سره ستاسو مالونه

او وينه محفوظ شو، ددے خبرے تحقيق نۀ وو چه ستاسو په زړونو كې ايمان شته او كه نه ؟ نو اوس هم د اول داخليدونكي سره داسے كار كوئ چه ظاهري اقرار باندے ئے اكتفاء وكړئ.

| لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ أُوْلِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ |
|---|
| برابر نۀ دي ناست خلق د مؤمنانو نه چه نۀ دي تكليف والا او هغه كسان چه جهاد كوي په لاره |
| اللّٰهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجَاهِدِيْنَ بِأَمْوَالِهِمْ |
| د الله كي په مالونو خپلو او نفسونو خپلو غوره كړيدي الله تعالىٰ جهاد كونكي په مالونو خپلو سره |
| وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِيْنَ دَرَجَةً وَكُلًّا وَعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى |
| او نفسونو خپلو سره په ناستو باندے يوه درجه او ټولو سره وعده كړے ده الله تعالىٰ د جنت |
| وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجَاهِدِيْنَ عَلَى الْقَاعِدِيْنَ أَجْرًا عَظِيْمًا ﴿٩٥﴾ |
| او غوره كړي دي الله تعالىٰ جهاد كونكي په ناستو خلقو باندے په اجر لوئي سره. |
| دَرَجَاتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿٩٦﴾ |
| چه درجے دي د طرفه د الله نه، او بخنه ده او رحمت دے او دے الله بخنه كونكے رحم كونكے. |

**تفسير** : پدے كي فضائل د مجاهدينو او د هغوی انواع بيانيږي.

۱- ربط : مخكې الله تعالىٰ د مؤمن د قتل په باره كې ډير كلك وعيدونه نازل كړل نو څه لرى نۀ ده چه د چا ذهن ته د جهاد پريښودل او په كور كې كيناستل بهتر ښكاره شي ځكه چه په جهاد كې د مؤمن د وژلو خطره شته، چه يا په قصد سره او يا په خطائي سره پكې سرے واقع شي نو پدے آيتونو كې دغه وهم او خيال رد كوي چه مجاهدين او د جهاد نه ناست خلك په هيڅ شان برابر نۀ دي او په جهاد كې ډير درجات دي چه هغه ناستو خلكو ته حاصل نۀ دي نو پدے وهمونو سره جهاد پرينږدئ.

۲- ربط : په تير شوو آيتونو كې مؤمنانو ته د جهاد ترغيب وركړے شويدے، اُوس د هغوی درجات بيانيږي. او دلته د آيت د نزول په زمانه كې هغه مجاهدين مراد وو چه هغوی په جنګِ بدر كې شركت كړے وو او هغه خلق چه د څه مجبوريا په وجه په هغے كې نۀ وو شريك شوي. بيا ئے حكم عام دے.

غیر اولی الضرر : بخاریؒ د براء بن عازب ﷺ نه روایت کړیدے چه کله دا آیت نازل شو نو رسول الله ﷺ زید بن ثابت ﷺ راوغوختو او هغه ته ئے ددے د لیکلو حکم وکړو نو عبد الله بن ام مکتوم ﷺ نابینا صحابی د رسول الله ﷺ شا ته ولاړ وو، نو هغه اُووئیل اے د الله رسوله ! قسم په الله که ما جهاد کولے شوے نو ضرور به مے کولے، نو فوراً ((غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ)) نازل شو۔

لکه ددے وضاحت د انس بن مالك ﷺ په حدیث کی راغلے دے چه هغه احمد، بخاری رقم (٤٤٢٣) او ابو داودؒ روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ د تبوك غزا نه په واپس کیدو کی په لاره کی اُوفرمایل [إِنَّ بِالْمَدِينَةِ أَقْوَامًا مَا سِرْتُمْ مَسِيرًا وَلَا قَطَعْتُمْ وَادِيًا إِلَّا كَانُوا مَعَكُمْ (وَفِي رِوَايَةٍ إِلَّا شَرَكُوكُمْ فِي الْأَجْرِ، قَالُوا: يَارَسُولَ اللَّهِ ! وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ ؟ قَالَ وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ حَبَسَهُمُ الْعُذْرُ] چه په مدینه کی څه داسے خلق پاتے شویدی چه تاسو سره په سفر کی شریك دی، او په بل روایت کی دی چه تاسو سره په اجر کی شریك دی۔ صحابهؓ تپوس اُوکړو چه اے د الله رسوله ! اګرکه هغوی په مدینه کی پاتے شویدی ؟ نبی ﷺ وفرمایل چه آؤ، هغوی لره څه عذر د راتللو نه بند کړیدی۔

## اشکال او جواب

په ظاهره کی دا اشکال راځی چه په آیت کی ئے یو ځل وویل چه مجاهدین په ناستو خلکو په یوه درجه غوره دی او روستو وائی چه په ډیرو درجو غوره دی؟

۱ – ددے یو جواب دا دے چه ناست خلك دوه قسمه دی یو اولی الضرر (معذورین) دی او بل غیر معذور دی او مجاهدین یو قسم دی، نو مجاهدین د معذرو خلکو په مقابله کی په یوه درجه غوره دی لکه مخکی حدیث د انس بن مالكؓ پرے دلیل دے۔ او د غیر معذورو خلکو نه په ډیرو درجو غوره دی بلکه په بعض اوقاتو کی به ناست خلك ګناهګاروی نو مجاهد ته نشی رسیدلے دے۔ او په حدیث د مسلم وغیره کی دی : صحابه کرامؓ تپوس وکړو : [مَا يَعْدِلُ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ؟] د الله په لاره کی د جهاد سره کوم عمل برابر دے ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : د هغه (عمل) طاقت تاسو نشئ لرلے، صحابه کرامؓ بیا عرض وکړو، رسول الله ﷺ دویم ځل هم وفرمایل : تاسو ددے طاقت نشئ لرلے، په دریم ځل ئے وفرمایل : [مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ الصَّائِمِ الْقَائِمِ الْقَانِتِ بِآيَاتِ اللَّهِ لَا يَفْتُرُ مِنْ صِيَامٍ وَلَا صَلَاةٍ حَتَّى يَرْجِعَ الْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ]

د مجاهد في سبيل الله مثال په شان د هغه روژه دار دے چه په مانځه ولاړ وي او د الله آيتونه لولي (او هميشه روژه وي) او د روژے او مانځه نه نهٔ ستړے کيږي تردے چه مجاهد راواپس شي)۔ (مسلم : ۴۹۷۷)

(۲) جواب : ناست خلك دوه قسمه دي (۱) يو هغه دي چه د امام او امير په اجازه ناست وي، او بل هغه دي چه په خپله خوښه ناست وي نو د اول قسم په مقابله کې مجاهد په يوه درجه غوره دے، او د دويم قسم په مقابله کې په ډيرو درجو غوره دے۔ لکه سيدنا عثمان ﷺ رسول الله ﷺ د بدر د غزا نه پاتے کړو چه زما د لور خدمت وکړه ځکه چه هغه بيماره وه۔ او سيدنا علي بن ابي طالب ﷺ ئے په غزا د تبوك کې ډزنانو د حفاظت دپاره پريخودو۔ هغه عرض وکړو : ما تاسو ښځو ته پريدئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: آيا تهٔ پدے خوشحاله نهٔ ئے چه تهٔ زما دا سے خليفه جوړ شے لکه هارون ﷺ چه د موسیٰ ﷺ خليفه جوړ شوے وو۔ صرف زما نه روستو نبي نشته۔(بخاري: ۳۷۰۶ ومسلم: ۶۳۷۰)

علامه قاسميؒ د ابو السعودؒ نه نقل کړيدي (او دا رايه د سيوطيؒ هم ده په خپل کتاب ((الاکليل)) کې ئے ذکر کړيده او آلوسيؒ هم دے ته ترجيح ورکړيده) چه مجاهدين او ناست معذورين دواړه په اجر او درجاتو کې شريك دي، او د عمل زيات اجر لره اعتبار نشته ځکه چه بل طرفته د نيت شان هم ډير اوچت دے لکه مخکنے حديث د انس بن مالكؓ پرے دليل دے چه په مدينه کې ناست خلك (معذورين) د ټولو مجاهدينو سره په اجر او درجاتو کې شريك وو [اِلَّا شَرَكُوْكُمْ فِي الْاَجْرِ]

او په آيت کې دواړه ځايونو کې صرف د مجاهدينو اجر ذکر دے په مقابله د ناستو خلکو کې چه معذورين نهٔ دي په دوه طريقو سره يو ځل ئے (دَرَجَةً) لفظ ذکر کړو او بيا ئے (دَرَجَات) ددے حکمة دا دے چه اول ځل دَرَجَةً (نکره) کې اجمال وو او په دويم ځل ئے په (دَرَجَاتٍ مِنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً) سره د هغے تفصيل وکړو ۰

(لکه په حديث کې دي چه په جنت کې سل درجے دي او د هرے درجے نه تربلے درجے پورے دومره فاصله ده لکه د زمکے نه آسمان پورے) (صحيحين)

يعنې (دَرَجَةً) جنس دے او درجات سره ئے د هغے مبهم افراد ذکر کړل۔ او دائے ددے دپاره وکړل چه د اجمال او ابهام نه روستو تفصيل په ذهن کې ښه کيني او دے دپاره چه د مجاهدينو فضيلت ته خلك ښه متوجه شي۔

(۲) يا په اول ځل کې دنياوي درجه مراد ده چه هغه مدحه او تعظيم او بيا د غنيمتونو

اخستلو درجه ده او په مینځ کی ئے د جنت وعده د دواړو قسمه خلکو سره ذکر کړه دے دپاره چه د ناستو خلکو هم تسلی وشی، او په دویم ځل کی د جنت درجات مراد دی چه دا به صرف مجاهدینو ته ورکولے شی۔

(محاسن التاویل ۴۴۵/۲) وروح المعانی (۱۱۹/۳) وابی السعود ۱۴۲/۲)۔

لَا يَسْتَوِى : دا عدم مساوات او برابر والے په ثواب او فضیلت او درجاتو کی دے۔

غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ : دا په پیښ د راء سره صفت د القاعدون دے یا بدل دے۔

د اولی الضرر : (تکلیف والا) نه مراد مریض، ړوند، ګوډ یا دا چه مال او سورلی ورسره نهٔ وی چه جهاد ته پرے لاړ شی، یا علم او عقل ئے نهٔ وی لکه لیونی وغیره۔ (مفردات راغب)

وَالْمُجَاهِدُونَ : دا عطف دے په (القاعدون) باندے او د (لایستوی) دپاره دا هم فاعل دے۔

بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ : یعنی هغه مالونه چه مجاهدین ئے په جهاد کی په خپلو ځانونو ولګوی، یا ئے په بل مجاهد ولګوی یعنی مجاهد به خپل مال لګوی او که هغه ورسره نهٔ وی نو د بل په مال هم تللے شی۔ او نفس به هم لګوی که څوك صرف په مال لګولو اکتفاء کوی او پدے باندے ځان بری ګنړی نو دا هم نقصان دے،

او که څوك په نفس سره جهاد کوی لیکن مال نهٔ لګوی بلکه په جهاد سره د خلکو مالونه راجمع کوی نو دا هم نقصان دے۔

وَكُلًّا : کُلًّا په معنیٰ د كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُجَاهِدِينَ وَالْقَاعِدِينَ سره دے یعنی هر یو د مجاهدینو او ناستو خلکو سره الله تعالیٰ د جنت وعده کړیده۔ او د ناستو خلکو دپاره ئے د جنت وعده ذکر کړه، نو ددے نه مراد هغه ناست خلك دی چه جهاد فرض کفائی وی نو د هغے په پریخودو به ګنهګار نهٔ وی۔ یا مخکی تیر شو چه معذور خلك مراد دی۔

الْحُسْنَىٰ : ددے نه مراد یا جنت دے یا ترے الْجَزَاءَ الْحُسْنَىٰ مراد ده۔

(یعنی ښائسته بدله چه هغه جنت دے)

أَجْرًا عَظِيمًا : دا منصوب دے په نزع الخافض سره اَیْ فَضَّلَهُمْ بِأَجْرٍ عَظِيمٍ۔ غوره کړی ئے دی په اجر عظیم سره۔ یا أَجْرًا منصوب دے مفعول ثانی دے د فَضَّلَ دپاره او فَضَّلَ متضمن دے معنیٰ د اعطاء لره اَیْ أَعْطَاهُمْ زِيَادَةً عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا) ورکوی به دوی ته د ناستو خلکو په نسبت زیات اجر عظیم۔ (ابو السعودؒ)

دَرَجَاتٍ مِنْهُ : دا بدل دے د (أَجْرًا عَظِيمًا) نه او (مِنْهُ) لفظ د درجات دپاره په اعتبار د متعلق سره صفت دے چه دلالت کوی په فخامت او اُوچته مرتبه ددغه درجاتو چه دا به د

عظیم ذات د طرفنه ملاویږی۔
وَمَغْفِرَةً : ددے نه مراد تول گناهونه معاف کیدل دی۔
وَرَحْمَةً : ددے نه مراد اول جنت ته داخلیدل او د عذابونو نه بچ کیدل دی۔

| إِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه روحونه اخلی د هغوی نه ملائك په داسے حال کی چه ظلم کونکی وی |
| أَنْفُسِهِمْ قَالُوْا فِيْمَ كُنْتُمْ قَالُوْا كُنَّا |
| د نفسونو خپلو سره وائی دوی ته ملائك په کوم کار کی وئ تاسو نو وائی دوی وو مونږه |
| مُسْتَضْعَفِيْنَ فِي الْأَرْضِ قَالُوْا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةً |
| ضعیفان کړے شوی په زمکه کی، وائی ورته ملائك آیا نهٔ وه زمکه د الله فراخه |
| فَتُهَاجِرُوْا فِيْهَا فَأُولٰٓئِكَ مَأْوٰهُمْ جَهَنَّمُ وَسَآءَتْ |
| پس چه هجرت کړے وے تاسو په هغے کی نو دا کسان ځای د دوی جهنم دے او ډیر بد دے دا |
| مَصِيْرًا ﴿۹۷﴾ إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ |
| ځای د ورګرځیدو۔ مګر کمزوری د سړو نه او د ښځو نه او د بچو نه چه طاقت نهٔ لری |
| حِيْلَةً وَّلَا يَهْتَدُوْنَ سَبِيْلًا ﴿۹۸﴾ فَأُولٰٓئِكَ عَسَى |
| د هیڅ تدبیر (او چل د وتلو) او نهٔ پیژنی لاره (د هجرت کولو)۔ نو دغه کسان نزدے دے ده |
| اللّٰهُ أَنْ يَّعْفُوَ عَنْهُمْ وَكَانَ اللّٰهُ عَفُوًّا غَفُوْرًا ﴿۹۹﴾ |
| چه الله به معافی وکړی دوی ته او دے الله معافی کونکے بخونکے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی ترغیب الی الهجرة دے او زجر دے هغه چا ته چه هجرت پریدی او پدے کی ئے هغه خلق ذکر کړیدی چه هغوی د دار الکفر (مکے) او د هغے د ماحول نه دار الاسلام (مدینے) ته هجرت نهٔ دے کړے، د دشمن د طرف نه ئے هر ظلم او زیاتے برداشت کړو، او د الله چه څنګه عبادت کول پکار وو هغه شان عبادت ئے اُونکړو، نو الله تعالیٰ دوی ته په خپل ځانونو باندے ظلم کونکی اُووئیل۔ ملائك به د داسے خلقو نه د روح د اخستو په وخت کی تپوس کوی چه تاسو دلته نه هجرت ولے نهٔ دے کړے؟ نو دا خلق به دا عذر

پیښ کړی چه مونږ کمزوری وو، ملائک به وائی چه آیا د الله زمکه ستاسو دپاره فراخه نهٔ وه چه هلته تاسو هجرت کړے وے او د الله عبادت مو په آزادئ سره کړے وے؟ الله پدے آیت کی د هغوی د اُوسیدو ځای جهنم خودلے دے نو دا انسان کبیره گناه والا دے۔

## شان نزول

ددے آیت شان نزول او سبب نزول د ابن عباس رضی الله عنهما د روایت مطابق کوم چه بخاریؒ، ابن المنذرؒ او ابن جریرؒ وغیره د څه الفاظو په اختلاف سره بیان کړیدے، دا دے چه د رسول الله ﷺ او د مهاجرینو مدینے ته د هجرت کولو نه روستو په مکه کی څه داسے خلق باقی پاتے شول چه د زړهٔ نه مسلمانان وو لیکن د کافرانو د یرے نه ئے خپل اسلام نشو ښکاره کولے، او د تکلیف او امتحاناتو د یرے نه ئے هجرت هم اُونکړو، کله چه د بدر جنګ اُوشو نو د کافرانو سره دغسے خلق هم راغلل، نو د هغوی نه څه کسان د مسلمانانو په غشو او نیزو اُووژل شو، مسلمانانو د هغوی په باره کی اُووئیل چه دا خلق خو مسلمانان وو، او مجبوراً د جنګ میدان ته راغلی وو، او د هغوی دپاره ئے د مغفرت دعا هم اُوکړه نو دا آیت نازل شو۔ او په آخرت کی د هغوی انجام اُوخودلے شو، البته د هغه انجام نه ئے هغه سړی، ښځے او ماشومان مستثنیٰ کړل چه واقعی معذور وو، لکه څوک ړوند وو، څوک ګوډ وو، څوک بوډا ضعیف وو، او د هغوی ښځے او د هغوی ماشومان د هجرت کولو نه مجبور وو، د هغوی په باره کی الله وفرمایل چه الله به دوی ته معافی اُوکړی۔

- توفی : په اصل کی تَتَوَفّٰی دے مضارع دهٔ۔ او توفی په معنیٰ د روح قبض کولو سره دے۔ یعنی د زنکدن په وخت به ورته ملائک دغه خبره کوی۔

ظالمی انفسهم : اَیْ بِتَرْکِ الْهِجْرَةِ ۔ یعنی د هجرت په پریخودو سره ئے په ځانونو ظلم کړے او د الله حکم ئے مات کړے۔

(۲) بخاریؒ کی د ابن عباس رضی الله عنهما نه دا هم نقل دی چه ظَالِمِیْٓ اَنْفُسِهِمْ بِتَکْثِیْرِ سَوَادِ الْمُشْرِکِیْنَ ۔ په خپلو ځانونو ظلم کونکی دی چه د مشرکانو ډله ئے ډیره کړیده او د هغوی سره راوتلی دی لکه بعض مسلمانان د مشرکانو سره وو، او کله چه به هغوی د رسول الله ﷺ مقابلے ته راتلل نو مسلمانانو به ورله ډله ډیره وله، نو پدے کی به غشے راغلو هغه به پکی ولګیدو، یا به په توره ووهل شو نو قتل به شو، نو دا آیت د هغوی په باره کی نازل شو۔ (بخاریؒ)

او ابن مردویة په خپل روایت کی د هغوی نومونه هم اخستی دی لکه قیس بن الولید بن المغیرة، ابو قیس بن الفاکه بن المغیرة، ولید بن عتبة بن ربیعة، عمرو بن امیه بن سفیان، او علی بن امیة بن خلف او د دوی په باره کی ئے ذکر کړیدی چه دوی کله بدر ته راووتل نو دوی د مسلمانانو کموالے ولیدو، نو شك ورته راپیښ شو او دائے وویل چه دا خلك خو خپل دین غولولی دی نو دوی په بدر کی قتل شول. او ابن ابی حاتمؒ پکی حارث بن زمعة بن الاسود او عاص بن منبه بن الحجاج ذکر کړیدی. (قاسمیؒ)

او پدے کی عباس ﷺ هم راغلے وو چه په مکه کی وسیدو نو مشرکانو ځان سره په زوره بدر ته راروان کړو او زړه ئے بیخی نهٔ وو لیکن د کلی والیٔ نه مجبوره دے نو په قیدیانو کی ونیولے شو او سخت وتړلے شو او بیا د فدیه خبره راغله نو عباسؓ وویل زهٔ مسلمان یم، ما نه ولے فدیه اخلئ. رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

[أَمَّا ظَاهِرُ أَمْرِكَ فَكَانَ عَلَيْنَا] (مسند احمد: ۳۳۱۰ ودلائل النبوة)

هرچه ستا ظاهری حالت وو نو دا زمونږ په خلاف وو، نو فدیه ترے واخستے شوه.

نو د اسلام قانون دا دے چه څوك په ظاهره کی د کفر او د کافرانو ملگرے شو د هغوی سره ئے توره او توپك واخستو او د مسلمان مقابلے ته راووتو نو دا به په حکم د کافرانو کی وی اگرکه ددهٔ نیت به صحیح وی یا مجبوره وی لیکن ددهٔ قتل به جائز وی او مال به ئے اخستل جائز وی. ظاهر دا ده چه پدے آیت کی هغه مسلمانان مراد دی چه صرف هجرت ئے نهٔ وو کړے، ولے که د دوی گناه ارتداد یا په اسلام کی شك وے نو بیا به ورته ملائکو ضرور داسے وئیلے چه آیا تاسو د اسلام نه بیرته نهٔ وئ واپس شوی؟.

## مسئله:

۱- هجرت د یو ملك او علاقے نه هله فرض کیږی چه کله د کافرانو داسے غلبه او زور راشی چه مسلمانان مونځونو، اذانونو او نورو عبادتونو ته نهٔ پریږدی، او په زوره پرے گناهونه کوی، او که په حدیث د جبریل علیه السلام باندے عمل کولے شو نو هجرت لازم نهٔ دے. او په حدیث د جبریل کی څلور ارکان د اسلام ذکر دی.

۲- دویم: هجرت په هغه وخت لازمیږی چه فتنے او گناهونه دومره زیات شی چه انسان د هغے نه په هیڅ شان ځان نشی ساتلے او کفار ئے دریاندے په زوره کوی.

حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری کی لیکلی دی چه په اسلام کی دوه قسمه هجرتونه واقع

شویدی. یو خو د دار الکفر نه دار الامن ته لکه د مکې د مصیبت زده خلقو حبشو ته دوه ځل هجرت، او د مکې نه مدینې ته د مسلمانانو په ابتداء د اسلام کې هجرت. دویم د دار الکفر نه دار الایمان ته هجرت یعنې کله چه نبي کریم ﷺ او نور ډیر مسلمانان په مدینه منوره کې اُوسیدل، دے نه روستو د نورو مسلمانانو مدینې ته هجرت اُوشو. په هغه وخت هجرت صرف د مدینې پورے خاص وو، کله چه مکه فتح شوه نو دا خصوصیت ختم شو او د هر دار الکفر نه دار الاسلام ته د هجرت حکم تر قیامته پورے باقي پاتے شو.

إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ : بعض رشتینی مستضعفین (ضعیف کړے شوو) خلکو حالت بیانوي.

حِيلَةً : یعنې چل نهٔ ورځي چه دار الایمان یا دار الامان ته لاړ شي او د مکې نه په کومه طریقه وځي، او سبیل دا چه لاره هم ورته نهٔ ده معلومه او څه ذریعه د رسیدلو هم ورسره نشته.

عَسَى اللَّهُ : مفسرینو وئیلي دي چه عسیٰ د الله د طرفنه د وجوب او یقین دپاره وي.

| وَمَنْ يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا |
|---|
| او هغه څوك چه هجرت اُوکړي په لاره د الله کې مونده به کړي په زمکه کې ځایونه د آرام (یا فائدے) |
| كَثِيرًا وَسَعَةً وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ |
| ډیرے او فراخي او څوك چه اُوځي د خپل کور نه چه هجرت کونکے وي الله او د هغه رسول ته بیا |
| يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا ﴿۱۰۰﴾ |
| لاندے کړي دهٔ لره مرګ نو یقیناً واقع شو اجر د هغه په الله باندے او دے الله بخښنه کونکے رحم کونکے. |

**تفسیر** : مخکې آیت کې د هجرت نهٔ کولو سزا بیان شوه، نو پدے آیتِ کریمه کې هجرت ته ترغیب ورکړے شویدے چه دا مهٔ وایه چه زه هجرت وکړم، پوله پټے او کور به رانه پاتې شي، نو اُوسیږم به چرته او خوراك به د کوم ځای نه کوم؟ الله فرمائي چه مؤمن کله د خپل کور نه د خپل دین د حفاظت د خاطره د هجرت په نیت سره راوځي، نو د الله په زمکه به هغه ته د سر پټولو ځای ملاویږي او رزق به هم ملاویږي او که د هجرت کولو سره منزلِ مقصود ته د رسیدو نه مخکې دهٔ ته مرګ راغلو نو د هغه دپاره به د هجرت اجر او ثواب لیکلے شي لکه چه په حدیث کې راغلي دي چه د عمل دارومدار په نیت دے.

## شان نزول

ددے آيت د سبب نزول په باره کې ابن ابی حاتمؒ او ابو يعلیٰؒ وغيره په جيّد سند سره د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت کړيدے چه ضَمْرَه بن جُنْدَب د خپل کور نه د هجرت په نيت را ووتو او رسول الله ﷺ ته د رارسيدو نه مخکې په لاره کې وفات شو نو دا آيت نازل شو۔ او مفسرينو ددهٔ قصه داسے ليکلے ده، کله چه مخکې (۹۷ او ۹۹) آيتونه نازل شو او په هغے کې چه کوم وعيدونه ذکر وو د هغے نه هغه مسلمانان خبر شو چه په مکه کې وسيدل او لا هجرت ئے نهٔ وو کړے نو يو صحابی (چه حَبِيب بن ضَمْرَه يا ضَمْرَه بن جُنْدَب) ډير بوډا وو مزل ئے نهٔ شو کولے) خپلو زامنو ته ئے ووېل چه ما مدينے منورے ته بوځئ، نو زامنو ئے مدينے ته په اُوږو باندے سور روان کړو خو کله ئے چه تنعيم (چه اُوس ورته مسجد عائشهؓ هم وائی) ته ورساوه نو هلته وفات شو نو ځينی صحابه کرامؓ وفرمايل : که دا مونږ ته رارسيدلے وے نو اجر به ئے پوره شوے وے، نو زامن ئے رسول الله ﷺ ته راغلل او دا قصه ئے ورته بيان کړه نو دا آيتونه نازل شول۔

(القرطبی واسباب النزول للواحدی، والتحرير والتنوير لابن عاشور)۔

او په بعض رواياتو کې دی چه مشرکانو ورپورے خندا شروع کړه چه نهٔ په خپل کور کې پاتے شو او نهٔ مقصد ته ورسيدو۔ (بغوی)

امام احمدؒ د عبد الله بن عَتِيك ؓ نه روايت کړيدے چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چه څوك د خپل کور نه د هجرت په نيت اُوځی او د خپلے سورلئ نه راپريوتو مړ شو، نو د هغه اجر د الله په نيز ثابت شو۔ (وفيه عنعنة محمد بن اسحاق وبقية رجاله ثقات)۔

مُرَاغَمًا : د رُغَام نه دے او رُغَام په اصل کې ډيرے نرمے خاورے ته وائی (مفرداتِ راغب) او رَغِمَ الْاَنْفُ (په خاورو باندے د پوزے ککړ کول) د خجالته کولو او ذليله کولو نه کنايه وی او مُرَاغَم هغه فائدو ته وائی چه دشمن په هغے سره ذليله کيږی، نو معنیٰ ئے دا جوړيږی څوك چه د الله دپاره هجرت وکړی نو په زمکه کې به دومره فائدے مونده کړی چه د هغے په سبب به دشمن خړ او خجالته کړی۔

امام بخاریؒ حاصل معنیٰ کړيده اَیْ مُهَاجَرًا۔ يعنی ځايونه د هجرت به مونده کړی۔

سُدیؒ وائی: مُبْتَغٰی لِلْمَعِيْشَةِ۔ يعنی ځای د طلب کولو د ژوند۔ (طبریؒ)

مجاهدؒ وائی : مُتَزَحْزَحًا عَمَّا يَكْرَهُ۔ د مکروه (ناکاره) څيزونو نه د خلاصئ ځای۔ (بغویؒ)

## د هجرت فائدې

صحابه كرامو هجرت وكړو نو الله تعالىٰ ورته په مدينه كې ځايونه وركړل او په آسانۍ ئې ورته رزقونه وركړل او بيا په جهادونو كې د غنيمتونو په وجه الله تعالىٰ فراخه رزقونه وركړل او جائيدادونه ورته ملاؤ شول.

او په هر دور كې چه څوك هجرت وكړي نو الله تعالىٰ ورته صحيح عقيدې ورنصيب كړي، علمونه او عقل ئې زيات شي او په هر ملك كې ورته د وسيدلو موقعه ملاؤ شي، مختلفه دنيا ويني او يو مجاهد مړ شي نو د هغې په بدله كې ورته الله تعالىٰ ډير بچي وركړي. ځكه د الله تعالىٰ قانون دا دې: مَنْ تَرَكَ شَيْئًا لِلّٰهِ عَوَّضَهُ اللّٰهُ خَيْرًا مِنْهُ ـ (رواه احمد باسناد صحيح) چا چه د الله دپاره څه شې پريخودو نو الله به ورته په عوض كې د هغې نه غوره وركړي.

## د هجرت حكمة او د مشروعيت اسباب

د آيتونو او احاديثو نه داسې معلوميږي چه هجرت د درې حكمتونو او اسبابو په وجه مشروع شوې وو (١) اول دا چه د مسلمان دپاره دا جائز نهٔ دى چه په يو داسې وطن كې وسيږي چه هلته ذليله او پابند وي او ديني او شخصي آزادي هغه ته حاصله نهٔ وي نو هر مسلمان چه كله په ديني فتنو كې اخته كيږي يا ئې څوك نهٔ پريدي نو هغه باندې هجرت لازميږي.

(٢) تَلَقِّي الدِّيْنِ وَالتَّفَقُّهُ فِيْهِ ـ يعني دين زده كول او په دين كې مهارت حاصلول. او دا په زمانه د رسول الله ﷺ كې ګران وو ځكه چه په ابتدائي دور كې د مشركانو قوت زيات وو نو رسول الله ﷺ نشو كولې چه علاقو ته مُعلمين او داعيان وليږي چه خلكو ته دين بيان كړي نو په خلكو لازم وه چه رسول الله ﷺ ته به هجرت كوي.

نو هر هغه ځاى چه په هغې كې علماء نهٔ وي چه خلك ترې دين ياد كړي نو د هغې نه د مسلمان دپاره هجرت لازم دې.

(٣) مسلمانانو دپاره يو حكومت ضروري دې چه د اسلام دعوت عام كړي نو كله چه يو اسلامي حكومت ضعيف وي نو په نورو مسلمانانو لازم دي چه دلته راشي او هجرت وكړي دې دپاره چه اسلامي حكومت او د مسلمانانو جماعت مضبوط شي. او دا درې واړه اسباب په فتح د مكه كې موجود شو نو رسول الله ﷺ وفرمايل:

[لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ] چه د مکے د فتح نه روستو هجرت نۀ کیږی۔ (تفسیر المنار ٥/٢٩٤)۔
إِلَى اللهِ : یعنی د الله د رضا دپاره به وی او (وَرَسُوْلِهٖ) په هغه زمانه کی مدینے ته هجرت فرض وو، او اوس چونکه رسول الله ﷺ وفات دے نو د هغه د سنت مطابق هجرت به کوی۔ او مهایمیؒ وئیلی دی چه ددینه مراد هغه ځای دے چه الله تعالیٰ او د هغه رسول په هغے کی حکم ورکړیدے۔
او ابو حیانؒ او زمخشری وئیلی دی چه هر هجرت چه د دینی غرض او مقصد دپاره وی لکه طلب د علم، جهاد، حج، یا داسے ښار ته سفر کول چه په هغے کی د الله ډیر عبادت او د رسول الله ﷺ ډیر طاعت کیږی او د حلال رزق د طلب دپاره دا ټول په هجرت الی الله والرسول کی داخل دی او که په لاره کی مړ شو نو اجرئے په الله باندے واقع دے۔ (قاسمی)۔
فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهٗ عَلَى اللهِ : یعنی الله په ځان باندے ددۀ اجر لازم کړو او دا د الله د طرفنه تفضل او احسان دے او استحقاقی وجوب نۀ دے۔

| وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوْا |
|---|
| او کله چه تاسو سفر کوئ په زمکه کی نو نشته په تاسو باندے گناه چه کوتاه والے وکړئ تاسو |
| مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| د مانځه نه که یریدلئ تاسو چه په فتنه کی به واچوی تاسو لره کافران |
| إِنَّ الْكَافِرِيْنَ كَانُوْا لَكُمْ عَدُوًّا مُبِيْنًا ﴿١٠١﴾ |
| یقیناً کافران دی ستاسو دپاره دشمنان ښکاره۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ د صلاة الخوف او صلاة السفر حکم بیانوی،
**ربط** : چونکه هجرت بغیر د سفر نه ممکن نۀ وو پدے وجه د هجرت د احکامو سره په سفر کی د مانځه حکم بیانول مناسب شو، چه مسلمانان کله په سفر کی وی نو د څلورو رکعاتو والا مونځ دِ دوه رکعاته اوکړی۔ او د مانځه حکم څکه کوی چه مشرکانو د مانځه په وخت په مسلمانانو د حملے اراده کړے وه۔
٢– ربط : مخکی هجرت ذکر شو نو اوس وائی چه هجرت خو خامخا سفر غواړی او سفر سره مشقتونه راجمع کیږی نو په هغے کی د مانځه د قصر حکم بیانوی۔
او پدے سورت کی د مسلمانانو دپاره امور انتظامیه بیانیدل نو دا هم د امور انتظامیه ؤ

نـه ده چـه د مسـلـمانانو سفرے به څنګه وی او کوم کوم کارونه به کوی او مسلمانان دے د سفر د وجه نه په مانځه کی سستی ونکړی۔

۳– مخکی د جهاد او هجرت احکام بیان شول او ښکاره ده چه د جهاد سره په اکثرو وختونو کی خوف أو یره ملګری وی نو پدے آیتونو کی د خوف او د سفر په مانځه باندے حکم کوی چه امت ته آسانی ورکړی۔

ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ : پـه عـربیٔ کی ضرب په معنیٰ د وهلو سره استعمالیږی مګر چه کله زمکے سره ذکر شی نو بیا ترے مراد مزل او سفر کول وی، او په مزل کی هم زمکه په خپو سره وهلے کیږی۔ او دلته ترے د کلی نه بهر مزل کول دی یعنی سفر۔

فی الارض : دا لفظ تولو سفرونو ته شامل دے چه هغه دنیاوی سفرونه وی او که دینی، پدے وجه ئے (فی سبیل الله) تکے نهٔ دے وئیلے۔

أَنْ تَقْصُرُوا :

مسئله

په سفر کی د قصر څه حکم دے ؟ (۱) نو اهل ظواهر او احناف وائی چه قصر واجب دے او دا قول د عمر، علی او ابن عمر، جابر او ابن عباس رضی الله عنهم دے او دا قول د حسنؒ، عمر بن عبد العزیزؒ او قتادهؒ دے او دا مذهب د امام مالكؒ هم دے۔ (۲) څینی اهل علمٔ وائی چه قصر رخصت دے او اتمام افضل دے، او دا قول د عثمان او سعد بن ابی وقاص رضی الله عنهما نه نقل دے او دا مذهب د امام شافعیؒ دے، او هغه دلیل نیسی په عمل د عثمان او عائشه رضی الله عنهما سره چه هغوی به په سفر کی اتمام کولو۔ (بغویؒ وتحفة الاحوذی ۲/۸۲) او امام نوویؒ د امام شافعیؒ نه نقل کړیدیٔ چه د هغه مشهور صحیح قول دا دے چه قصر افضل دے او اتمام جائز دے۔ (شرح النووی علی مسلم) صحیح دا ده چه قصر سنت دے او اتمام جائز دے او پدے باندے اته دلیلونه په فتاوی الدین الخالص (٦) او الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح کی وګورئ۔

او بله دا چه دلته الله تعالیٰ فرمایلی دی : ﴿ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ ﴾ یعنی ستاسو دپاره په قصر کی ګناه نشته۔ مګر راجح دا ده چه په سفر کی قصر سنت عمل دے او افضل دے او اتمام جائز دے۔ مسلم، احمد، ابوداود او ترمذی د یعلیٰ بن اُمیه نه روایت کړیدے چه عمر ﷺ د رسول الله ﷺ نه ددے آیت په باره کی تپوس اُوکړو : چه آیا د امن کیدو نه روستو به

هم د قصر مونځ کولے شي؟ نو نبي ﷺ اُوفرمايل : دا د الله صدقه ده، مسلمان دِے دا قبوله کړي. او د رسول الله ﷺ عمل هم دا وو چه په سفر کي به ئے په غير د حالت د يرے نه قصر کولو.

اَنْ تَقْصُرُوْا : دلته قصر په اعتبار د کميت سره او قصر په اعتبار د کيفيت سره دواړه مراد کيدل صحيح دي، يعني د ځلور رکعاتي مونځ په ځاى دوه رکعاته وکړي، لکه دا هم په احاديثو کي راغلے دے، او روايت د يعلى بن اميّة پرے دليل ذے. او په اعتبار د کيفيت سره قصر دا دے چه د مانځه ترتيب بدل کړي لکه په صلاة الخوف کي چه کومو طريقو سره کيږي نو دا آيت دواړو ته شامليږي.

## د قصر طريقے

کله قصر پدے طريقه کيږي چه قراء ت لنډ وکړي لکه رسول الله ﷺ د سهار مونځ په آخري دوه سورتونو سره وکړو. او کله قصر کيږي په پريخودو د سنن رواتبو سره. او بله آساني هم پکي په احاديثو کي راغلے ده چه جمع بين الصلاتين پکي وکړے شي.

## سوال وجواب

سوال دا دے چه ﴿اِنْ خِفْتُمْ﴾ که تاسو يريږئ نو قصر کوئ)) دا خو دلالت کوي چه په حالت د امن کي قصر نهٔ دے جائز؟

جواب دا دے چه دا قيد په هغه زمانه کي د مسلمانانو د حال بيانولو دپاره وو يعني په طريقه د عادت سره وئيلے شويدے چه په هغه زمانه کي عادت دا وو چه په سفرونو کي به د کافرانو د طرف نه يره وه. نو دا قيد واقعي دے احترازي نهٔ دے.

دويم دا چه زمونږ دين په قرآن او حديث دواړو کي دے نو په آيت کي د يرے حالت ذکر شو او په احاديثو کي بغير د يرے د حالت نه هم قصر ثابت دے نو دواړه به منلے شي لکه :

ترمذيؒ، نسائيؒ او ابن ابي شيبةؒ د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت کړيدے چه نبي کريم ﷺ د مدينے منورے نه د سفر دپاره اُووتو او هغه سره د رب العالمين نه سوئ د هيچا نه يره نهٔ وه. او هغه دوه دوه رکعته مونځ اُوکړو. او بخاريؒ او نورو محدثينو د انس ؓ نه روايت کړيدے چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د مدينے نه مکے ته روان شو او هغه به دوه دوه رکعاته مونځ کولو تردے چه مونږ مدينے ته راواپس شو.

ان يفتنکم الذين کفروا : دلته فتنه په معنیٰ د حملے کولو دے په مانځه کي. يا په مانځه

کې د خشوع نه اړول او منع کول دي۔

**فائده:** امیه بن خالدؒ د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه تپوس وکړو:

[إِنَّا نَجِدُ صَلَاةَ الْحَضَرِ وَصَلَاةَ الْخَوْفِ فِي الْقُرْآنِ وَلَا نَجِدُ صَلَاةَ السَّفَرِ فِي الْقُرْآنِ]

مونږ په قرآن کریم کې د حضر او د خوف مونځ مومو لیکن د سفر مونځ په قرآن کریم کې نۀ مومو (ځکه چه په ظاهره کې د سفر لفظ پکې نشته او د خوف لفظ شته) نو هغه ډیر ښه ایماني جواب ورکړو: [يَا ابْنَ أَخِي! إِنَّ اللّٰهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا ﷺ وَلَا نَعْلَمُ شَيْئًا فَإِنَّمَا نَفْعَلُ كَمَا رَأَيْنَا مُحَمَّدًا ﷺ يَفْعَلُ آه]۔

اے وراره! یقیناً الله تعالیٰ محمد ﷺ راولیږلو او مونږ په هیڅ نۀ پو هیدو نو مونږ به هغه عمل کوو کوم باندے چه مونږ هغه لیدلے دے چه هغه کړیدے۔ یعنی نبی کریم ﷺ د قرآن خلاف نۀ کوی بلکه د رسول الله ﷺ عمل د قرآن کریم تشریح ده۔ (تفسیر المنار ۵/۳۰۲) ومحاسن التاویل (۲/۴۵۷) وتفسیر المراغی)

| |
|---|
| وَإِذَا كُنْتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ فَلْتَقُمْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ مَعَكَ |
| او کله چه تۀ یے په دوی کې او اُودروے دوی ډپاره مونځ نو ودې دریږی یوه ډله د دوی نه ستا سره |
| وَلْيَأْخُذُوا أَسْلِحَتَهُمْ فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِنْ وَرَائِكُمْ وَلْتَأْتِ |
| او ودې نیسی وسله خپله نو کله چه دوی سجده وکړی نو شی دے روستو ستاسو نه او رادِے شی |
| طَائِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ |
| ډله بله چه مونځ یے نۀ وی کړے نو مونځ دِے وکړی ستا سره او ودِے نیسی یره خپله او وسلے خپلے، |
| وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ |
| خوښوی کافران ارمان چه تاسو غافله شئ د وسلو خپلو نه او سامانونو خپلو نه نو حمله به وکړی |
| عَلَيْكُمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ كَانَ بِكُمْ |
| په تاسو باندے حمله یوه (په یو ځل) او نشته ګناه په تاسو باندے که وی په تاسو باندے |
| أَذًى مِنْ مَطَرٍ أَوْ كُنْتُمْ مَرْضَىٰ أَنْ تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ وَخُذُوا حِذْرَكُمْ |
| تکلیف د وجے د باران نه یا یئ تاسو ناجوړه چه کیږدئ وسلے خپلے او ونیسئ یره خپله |

إِنَّ اللّٰهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴿۱۰۲﴾

یقیناً الله تعالیٰ تیار کړیدے کافرانو لره عذاب سپکونکے۔

**تفسیر** : پدے کی او ددے نه روستو آیت کی د یرے په حالت کی د مانځه ادا کولو کیفیت بیان شویدے۔ نو دا قصر په اعتبار د کیفیت سره دے۔

## شان نزول

احمدؒ، ابوداودؒ، او نسائیؒ وغیرهم روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ او صحابه کرام مکے ته روان وو چه د عُسفان په مقام کی ئے پړاؤ اچولے وو (چه دا د مکے نه اتیا کیلو میټره وړاندے خای دے د مدینے په لاره دے- المعالم الاثیرة ۱۶۵/۱) نو مشرکانو خپل مینځ کی اُووئیل (پدے وخت کی د دوی مشر خالد بن ولید دے چه لا د ایمان توفیق ورته نهٔ دے ملاؤ شوے) چه دا خلك به لږ وخت روستو یو بل مونځ کوی چه دوی ته د پیغلو جینکو نه هم ډیر محبوب دے (یعنی د خپلو پیغلو دومره حفاظت او اهتمام نکوی څومره چه ددے مونځ کوی) نو موږ به په دوی باندے حمله اُوکړو، نو جبریل علیه السلام دا آیت راوړو او رسول الله ﷺ ته ئے خبر ورکړو چه دا خلك دوه تقسیمه کړه، نو رسول الله ﷺ او صحابه کرامؓ د یرے په حالت کی د (مازیګر) مونځ اُوکړو۔ او الله تعالیٰ د دشمن د حملے نه محفوظ کړل، کله چه خالد بن ولید دا حالت ولیدو نو د رسول الله ﷺ په قیادت باندے ئے تعجب وکړو۔

امام ابویوسفؒ او اسماعیل بن عُلیّهؒ وئیلی دی چه د یرے مونځ د رسول الله ﷺ پورے خاص وو ځکه چه الله د یرے د مانځه دپاره د رسول الله ﷺ کیدل شرط ګرځولی دی، او د هغه نه روستو به د خوف په وخت دوه جُمعے کول پکار وی، او مُزَنی شافعیؒ وئیلی دی چه صلاة خوف منسوخ شویدے لیکن دا دواړه قولونه صحیح نهٔ دی، ځکه چه د رسول الله ﷺ نه روستو صحابه کرامؓ په یره کی مونځونه کړیدی او د رسول الله ﷺ په سنت ئے عمل کړیدے۔ او د (کُنْتَ) خطاب اول نبی کریم ﷺ ته وو، او بیا د هغه نائبانو امیرانو ته دے۔

## د صحابه کرامو رضی الله عنهم صلاة خوف

۱- عبد الرحمن بن سمره ﷛ د مجاهدینو سره په کابل کی صلاة خوف ادا کړیدے

(سنن ابی داود ۱/۱۷۷) دے صحابیؓ په یو دیرشم (۳۱) هجری کال کې کابل فتح کړو (چه اُوسیدونکي ئے بت پرستان وو) او هلته ئے داسے یو بُت هم مات کړو چه مُجسمه ئے د سرو زرو او سترګي ئے د یاقوتونو نه جوړے وے۔ (تاریخ ابن خلدون ۲/۱۳۳)
دغه صحابي د فتح نه روستو بیرته ستون شو او تقریباً په پنځوستم (۵۰) هجری کې په بصره کې وفات شو او هلته دفن شو (الاستیعاب لابن عبد البر ۲/۳۹٤)
۲– سعید بن العاص ﷛ د طبرستان په غزا کې د خپلو ملګرو مجاهدینو نه پوښتنه وکړه چه په تاسو کې چا د نبي کریم ﷺ سره صلاة خوف ادا کړیدے؟ نو حذیفه ﷛ جواب ورکړو چه ما ادا کړیدے نو حذیفه مخکي شو او مجاهدین ئے په دوه ډلو تقسیم کړل او صلاة خوف ئے ورته وکړو او هیچا ورباندے اعتراض ونکړو۔ (سنن النسائي : ۱۵۲۹) واحمد وسنده صحیح – الباني وشعیب)

## د صلاة الخوف کیفیتونه

د رسول الله ﷺ نه صلاة خوف په پنځه ځایونو کې نقل دے لکه ۱– د ذات الرقاع غزا، ۲– د عُسفان غزا ۳– د نجد غزا ٤– د بطن نخلے غزا ٥– د ذي قَرَد غزا۔
(البحر المحیط ٤/٥٠)
او امام قرطبي وئیلي دي چه د رسول الله ﷺ نه په لسو ځایونو کې صلاة خوف نقل دے پدے وجه په صلاة خوف کې ډیر زیات کیفیات او طریقے نقل دي چه ځیني مفسرینو ځلیریشتو ته رسولي دي، او ابو حیانؒ په البحر المحیط کې (٤/٤٩) کې یولس کیفیتونه ذکر کړیدي او صاحب د المنار (٥/٣٧٥) شپږ کیفیتونه اصول ګنړلي دي۔ او امام ابوداودؒ پکې ډیر کیفیتونه روایت کړیدي۔ زاد المعاد کې اته کیفیات خودل شویدي او همدا په فتاوی الدین الخالص (٦) کې هم ذکر دي۔
امام شوکانيؒ وائي چه په احادیثو کې د صلاةِ خوف ډیر صورتونه راغلي دي۔ او ټول صورتونه صحیح دي۔ په هر صورت باندے عمل کول جائز دي۔ چا چه یو صورت اختیار کړیدے او باقي صورتونه ئے پریخي دي دوی غلطي کړیده۔
کُنتَ فِیهِم : **فائده** : دا ښکاره دلیل دے چه رسول الله ﷺ په امت کې په هر ځای کې موجود نهٔ دے او حاضر ناظر نهٔ دے ځکه چه که هغه حاضر ناظر وي نو بیا خو ضروري ده چه رسول الله ﷺ جمعے ته مخکي شي، د هغه په موجودګئ کې د بل هیچا د امامتئ

حق نهٔ کیږي، نو دا عقیده د شرك ده چه څوك رسول الله ﷺ هر ځای حاضر ناظر ګنړي.
فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ : د مانځه دومره اهتمام دے چه په جهادونو او سختو وختونو کې به هم نشي پریخودلے.
فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِنْهُمْ مَعَكَ : د صلاة خوف طریقې

(۱) په احادیثو کې ددے مونځ یو صورت دا راغلے دے چه د مسلمانانو فوج به په دوه ډلو تقسیم شي، یوه ډله به د دشمنانو مخے ته ودریږي او یوه ډله به د فوج د امیر سره یو رکعت اُوکړي، دے نه روستو به امام په خپل ځای ودریږي او مونځ کونکے ډله به دویم رکعت کولو سره سلام نه روستو د دشمنانو مقابلے ته ودریږي،
او دویمه ډله به راشي د امام شا ته به ودریږي امام به هغوی ته خپل دویم رکعت اوکړي او سلام به واړوي او دویمه ډله به خپل دویم رکعت ځانله اُوکړي اوّ سلام به واړوي، په دواړو حالتونو کې به د مسلمانانو سره وسله وي، دے دپاره چه دشمنان پرے د خالي لاس ګنړلو سره حمله ونکړي.
فَإِذَا سَجَدُوا : د سجدے نه مراد یو رکعت دے ځکه چه رکعت په سجده سره پوره کیږي. نو ددے نه بیا دوه طریقے معلومیږي (۱) یو دا چه د امام دوه رکعاته شي او د مقتدیانو صرف یو یو رکعات وشي او بس، او دا هم په احادیثو کې ثابت دے او پدے باندے عطاءؒ، جابرؓ، حسنؒ، مجاهدؒ، حکمؒ، قتادهؒ، حمادؒ قول کړیدے او دا مذهب د ضحاكؒ او طاووسؒ دے، او امام اوزاعیؒ، اسحاق بن راهویهؒ، ابن حزم ظاهريؒ او امام مسلمؒ او عام اهل الحدیث پرے قول کړیدے او دا د ابن عباسؓ نه هم منقول دے. (قاسمی ۲/۴۶۹) ورواه مسلم في صحيحه : وفي الخوف ركعة)
(۲) دویمه طریقه پکې دا ده چه دوه ډلے به د امام سره یو یو رکعت وکړي او بیا به ځانله یو یو رکعت وکړي لکه مخکې ئے طریقه ذکر شوه.
(۳) دریمه طریقه ترے اشارةً معلومیږي هغه دا چه (فَإِذَا سَجَدُوا) نه مراد پوره مونځ دے لکه په بعض احادیثو کې د ذکر د سجدے نه مراد مونځ وي لکه د تحية المسجد په باره کې راځي (فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ) یعنې دوه رکعاته دے وکړي. نو طریقه دا شوه چه امام به یوے ډلے ته پوره دوه رکعاته وکړي، بیا به بله ډله راشي هغوی ته به هم پوره دوه رکعاته وکړي نو پدے کې د امام دوه رکعاته فرض او دوه نفل شو او د مقتدیانو فرض، نو ددے نه

ثابتـه شوه چه اقتداء د مفترض (فرض مونځ کونکی) د متنفل (نفل مونځ کونکی) پسے جائز ده. او دا هم د رسول الله ﷺ نه په احادیثو کی نقل ده.

فَلْيَكُونُوا مِنْ وَرَآئِكُمْ : یعنی دغه سجده کونکی دِے لاړ شی او د دشمن مقابلے ته دِے ودریږی خو کله چه دویمے ډلے یو رکعت وکړو نو هغوی به راشی او یو رکعت به ځانله وکړی. او ددے نه معلومه شوه چه په مانځه کی دننه تلل راتلل او صفونه برابرول یا د دشمن مخے ته ودریدل جائز دی، او په مینځ کی به خبرے اترے نهٔ کوی ځکه چه دوی د مانځهٔ په حالت کی دی. دا پکی څلورمه طریقه شوه.

وَلْتَأْتِ طَآئِفَةٌ : یعنی دویمه ډله به د امام خوا ته راشی کومو چه مونځ نهٔ دے کړے او پدے وخت کی بـه امام ورته انتظار کی وی چه کله دویمه ډله راورسیدله او نیت ئے وتړلو نو امام به د خپل دویم رکعت قراءت شروع کړی، جهری وی او که سری.

فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ : ددے نه مراد یا پوره مونځ دے لکه په یوه طریقه کی ذکر شو یا یو رکعت دے چه دا ددے دویمے ډلے اول رکعت دے او د دویمے دپاره دویم دے.

دلته د مقتدیانو د دویم دویم رکعت ذکر ونشو ځکه چه رسول الله ﷺ هغه په خپل عمل سره بیان کړیدے، نو په بعض احادیثو کی داسے طریقه هم راغلے ده چه کله دویمه ډله راشی او د امام سره خپل اول رکعت وکړی نو امام به ورته په تشهد کی په انتظار کی کینی او دوی به پاځیږی او خپل دویم رکعت به وکړی بیا به د امام سره په تشهد کینی او د امام سره به په شریکه سلام وګرځوی. او اولنۍ ډله به خپل دویم رکعت ځانله وکړی. (قاسمیؒ). او پدے حالت کی چه امام به دویم رکعت ته پاځیږی او دوی به تر‌ے مخکی شی ځان له به یو رکعت وکړی، سلام به وګرځوی او لاړ به شی. (دا پنځمه طریقه شوه).

وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ : یعنی په مانځه کی به بیدار وسیږی او وسله به هم ځان سره ونیسی او دا حکم ئے ددے دویم رکعت په مقام کی ذکر کړو ځکه چه په اول رکعت کی چه کله دوی ولاړ وی نو دشمن به ګمان کوی چه دوی جنګ ته ولاړ دی خو چه کله دوی دویم رکعت ته راپاځیږی نو دشمن ته به ښکاره شی چه دوی په مانځه کی دی نو هغوی به د حملے فرصت مونده کړی نو پدے وجه حکم وشو چه بیدار وسیږئ او وسله ځان سره ونیسئ.

او دا دلیل دے چه په مانځه کی د خشوع سره بل طرف ته فکر وړل هم جائز دی او دا د ډورو زړونو والا دپاره آسانه ده. (واحدیؒ)

وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا : د آیت دا جمله د مخکښی شان نزول سره متعلق ده. مګر په الفاظو کې ئے عموم دے چه ټول کافران دا غواړی چه مسلمانان دے په غفلت کې ژوند تیر کړی او هیڅ وسله دے ورسره نهٔ وی. نهٔ دے جوړه کړی او نهٔ دے ئے لاس کې راواخلی او نهٔ دے پرے پوهه شی لکه اوس هم د ټولو کفارو دا ارمان او هدف دے. یهود او نصارا او زر کاله مخکښی د مسلمانانو په خلاف وسله جوړول شروع کړل او مسلمانان ئے په خواهشاتو مشغول او غافل کړل او دا ئے ورته ووېل چه مونږ درله وسله جوړه وو او خپله ئے مختلف قسمه وسلے جوړے کړے چه عام اسلامی ملکونه اوس هغوی ته محتاج دی حال دا چه ټول طاقتونه، د تیلو ذخائر، جواهرات، هر قسم خوراکی مواد او نور وسائل په مشرقی ممالکو کی زیات دی. او حال دا چه کافران د مسلمان د وسلے نه یریږی، او هغه د مسلمانانو سره نشته، حکامو پدے قول د الله تعالیٰ عمل ندے کړے ﴿وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ﴾ - (الانفال: ٦٠)

وَأَمْتِعَتِكُمْ : یعنی هغه سامانونه او وسائل چه تاسو پرے مقصد ته رسیږئ.

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ : د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه عبد الرحمن بن عوف ﷺ زخمی شو او د وسلے د پورته کولو طاقت ئے نشو لرلے نو الله دا جمله نازله کړه چه ولا جناح علیکم الخ (بخاری ٢/٦٦١) یعنی په تاسو ګناه نشته چه څه تکلیف لرئ لکه باران وی یا مریضان یئ چه خپلے وسلے کیږدئ مګر بیا هم (وَخُذُوا حِذْرَكُمْ) د خپل بچاؤ او د بیدارئ سامان څان سره یاد ساتئ. یا دا چه وړه وړه وسله څان سره واخلئ.

**فائده** : آیا په مانځه کی د وسلے اخستل واجب دی؟ نو د احنافو په نیز دا حکم د وسلے اخستلو مستحب دے (تفسیر المدارک ١/٣٤٤)

لیکن راجح دا ده چه دا حکم واجب دے څکه چه دلته الله تعالیٰ صرف معذورو خلکو ته د وسلے کیښودلو اجازه ورکړه نهٔ نورو ته لکه دغه شان نزول پرے دلیل دے.

| فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَاةَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ |
|---|
| پس کله چه تاسو ادا کړو مونځ نو یادوئ الله تعالیٰ لره په ولاړه او په ناسته او په |
| جُنُوبِكُمْ فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ إِنَّ الصَّلَاةَ |
| اړخونو خپلو نو کله چه په آرام شئ تاسو نو پابندی کوئ د مانځه یقیناً مونځ |

كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا ﴿۱۰۳﴾

دے په مؤمنانو باندے فرض کړے شوے وخت په وخت.

**تفسير**: دا د مخکې آيت دپاره تتمه ده او پدے آيت کې دوه تفسيرونه دي:

(۱) يو دا چه د قضاء نه مراد د مانځه نه فارغه کيدل او د مونځ پوره کول دي، او د ذکر نه مراد د مانځه نه روستو اذکار کول دي سره د نورو حالتونو نه يعنې کله چه تاسو د مانځه نه فارغه شئ نو بيا د الله په ذکر کې مشغوله شئ. او عام حالت کې هم ذکر کوئ.

(۲) تفسير: يا دا چه قضاء په معنىٰ د ادا سره دے او د ذکر نه مراد مونځ ادا کول دي په دغه درے حالتونو کې او دا مونځ په سخته يره کې مراد دے چه په دغه حالت کې په جماعت سره مونځ نشي کيدے نو معنىٰ دا ده چه کله تاسو په سخته يره کې مونځ ادا کوئ نو که په هر حالت کې يئ، په ولاړه يا ناسته يا اړخ باندے يئ نو ادا ئے کړئ لکه دا حالت په سورة بقره آيت (۲۳۸) کې ﴿فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا﴾ سره ذکر شويدے.

او په داسے وخت کې قبلے ته مخ کرځول هم فرض نۀ دي.اول تفسير ددے مقام سره ډير مناسب دے.

**قِيَامًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِكُمْ**: پدے آيت کې مؤمنانو ته په هر حال کې د الله د يادولو حکم شويدے او خاصکر کله چه هغوی په حالت د جنګ کې وی، ځکه چه روحانی قوت به په مادی قوت باندے په هر حالت کې غالبه کيږی، پدے وجه د اسلام مجاهدين دے صرف په مانځه کې په ذکر باندے اکتفاء نۀ کوی بلکه په هر حال کې دے ژبه د الله په يادولو لمده ساتي. (تيسير الرحمن)

**فَاِذَا اطْمَاْنَنْتُمْ**: اَىْ سَكَنَتْ قُلُوْبُكُمْ بِالْاَمْنِ) يعنې کله چه ستاسو زړونه په آرام شي او په امن کې شي نو بيا په خپل اصلي حالت سره مونځ ادا کړئ، او هيڅ هيئت ورله مۀ بدلوئ (قاسمی) نو که حالت د سفر وی نو مسافرانه مونځ به کوی او که حالت د حضر وی بيا به پوره مونځ کوی.

**كِتَابًا مَّوْقُوتًا**: اَىْ فَرْضًا مُؤَقَّتًا. يعنې فرض کړے شويدے په خپل خپل وخت سره.

او دا جمله ددے دپاره وويل شوه چه که څوک دا وَهم وکړی چه هر کله د جنګ حالت دے او سخت مشقت دے نو دا مونځ دے بلے ورځے ته روستو کړے شي يا دے بيخي پريخودے شي نو الله فرمائي چه مونځ په خپل خپل وخت مقرر کړے شويدے، او الله پدے راضی

کیږي چه د مونځ اهتمام دې وکړے شي او په خپل وخت دې ادا کړے شي، پدے وجه ئې په حالت د مشقت کې هم معاف نکړو، او نۀ ئې ددے په روستو والي حکم وکړو بلکه د هر حالت دپاره ئې خپله خپله طریقه راوليږله. او پدے وختونو کې کمال دے پدے وجه که يو تن د ماسپښين مونځ په لسو بجو کې وکړي، يا د سهار مونځ نمرخاته کې وکړي، نو اګرکه ډير په خشوع سره وي ليکن د الله په نيز مقبول نۀ دے ځکه چه د وخت نه وتلے دے.

ځيني ناپوهه خلك دا آيت په سفر کې د جمع بين الصلاتين د رد دپاره پيش کوي، دا قرآن پيش کول دي د احاديثو د رد کولو دپاره، او دا د اهل زيغو طريقه ده، دا مسکين پدے خبره نۀ پوهيږي چه د مانځه د وختونو بيان چا کړيدے؟، قرآن کې خو د هغے تفصيلي بيان نشته، دا رسول الله ﷺ بيان کړيدی

نو دغه شان رسول الله ﷺ په سفر کې د جمع بين الصلاتين رخصت هم ورکړيدے، لکه پدے باندے ګڼږ احاديث دليل دي او جمع حقيقي پکې ذکر ده چه په کتابونو د حديث کې ئے کتلے شئ او زمونږ ((الحق الصريح شرح مشکاة المصابيح)) کې ئے تفصيل وګورئ.

او ددے وجه نه چه دا په احاديثو کې بيان کړے شويدي نو اهل الحديث د سهار او ماسخوتن مونځ نۀ يو ځای کوی ځکه چه ددے ثبوت نشته صرف د ماسپښين او ماز يګر يا د ماښام او ماسخوتن جمع والے جائز ګڼږي.

**فائده** : حافظ ابن کثيرؒ فرمائي : ددے آيت کريمه نه د هغه خلکو دليل نيول هم ډير ښائسته ښکاره کيږي چه هغوی جماعت ته فرض وائي ځکه چه د جماعت د وجے نه ډير کارونه معاف شو نو که جماعت فرض نۀ وے نو دا کارونه به جائز نۀ وے. (قاسميؒ)

| وَلَا تَهِنُوْا فِي ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ إِنْ تَكُوْنُوْا تَأْلَمُوْنَ |
|---|
| او سستي مۀ کوئ په لټولو د قوم (کافرانو) کې (دپاره د جنګ) که يئ تاسو درمند |
| فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُوْنَ كَمَا تَأْلَمُوْنَ وَتَرْجُوْنَ |
| (صبر کوئ) ځکه چه دوی درمند کيږي لکه څنګه چه تاسو درمند کيږئ او اميد لرئ تاسو |
| مِنَ اللّٰهِ مَا لَا يَرْجُوْنَ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿١٠٤﴾ |
| د الله تعالیٰ نه د هغه ثواب چه اميد نۀ لري دوی (د هغے) او دے الله پوهه حکمتونو والا. |

**تفسير** : پدے کې په قتال کولو باندے تيزي او تشجيع بيانوی او فرمائي چه د دشمنانو

په طلب کولو کې کمزورتیا او سستي مهٔ ښکاره کوئ، ځکه که تاسو ته تکلیف رسي نو هغوی ته هم تکلیف رسي، دا تکلیف تاسو پورې خاص نهٔ دے، دواړه انسانان دي، او مؤمنانو له په جنګ کې زیات صبر ښکاره کول پکار دي ځکه چه دوی د الله د نزدیکت او د هغه د جنت امید ساتي چه کافر هغه امید نهٔ ساتي۔

د مسلمانانو نظر په الله او د هغه په رضا او په شهادت او په آخرت او د الله په وعدو او د اسلامي حکومت په ترقئ باندے وی او د کافرانو نظر صرف په دنیا او خپله تنخواه او نوکرئ او د خپلو مشرانو په حکمونو باندے وی، نو هرکله چه هغوی د دنیا دپاره دومره سختنه تیره وی، نو ستاسو خو ډیر لوی هدف دے او لوی همت دے نو د هغے دپاره خو ډیره قرباني پکار ده۔

وَلَا تَهِنُوا : د وهن معنیٰ مخکې ذکر شویده چه دنیا سره مینه لرل او مرګ بد ګنړل۔

ربط : فَاذْكُرُوا وَأَقِيمُوا وَلَا تَهِنُوا۔ یعني الله یادوئ او مونځونه ادا کوئ او د کافرانو د قتال په لټولو کې سستي مهٔ کوی۔

| |
|---|
| إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ |
| یقیناً مونږ نازل کړے په تا باندے کتاب په رښتیا سره دے دپاره چه ته فیصله وکړے په مینځ |
| النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ وَلَا تَكُن لِّلْخَائِنِينَ خَصِيمًا ﴿١٠٥﴾ |
| د خلقو کې په هغه طریقه چه خودلے ده تا ته الله تعالیٰ او مهٔ کیږه خیانت لره ګرو جګړه کونکے |
| وَاسْتَغْفِرِ اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١٠٦﴾ |
| (طرفدار)۔ او بخنه غواړه د الله تعالیٰ نه، یقیناً الله تعالیٰ دے بخنه کونکے رحم کونکے۔ |

**تفسیر** : ددے ځای نه بل حکم بیانوی چه یو مقصد پدے کې [تَحْكِيمُ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ] دے یعني خپلے ټولے فیصلے کتاب او سنت ته وړل لازم دي۔

دویم پدے کې [اَلنَّهْيُ عَنِ الْوَكَالَةِ فِي الْمَعَاصِيْ] دے یعني په ګناهونو کې د چا د طرفنه وکالت جائز نهٔ دے، دا ډیر لوی جرم دے لکه د قاتل او غل او زنا کار نه دفاع کول پکې داخلیږي۔ لکه عام وکالت والا خلك په همدے طریقه وی چه په غلط قانون فیصلے هم کوی او د مجرمانو نه دفاع هم کوی۔

نو دلته د راتلونکې واقعے مطابق فرمائي چه دا مخکنی احکام شرعیه به نافذ کیږي نو

منافقان به ددې خلاف کوي او څه ساده مؤمنان به د دغه کسانو نه دفاع کوي نو الله فرمائي چه پدې سره نظام خرابيږي، دا کار چرته ونکړئ، ځان بيدار کړئ. که په يوه علاقه کې يو نظام شرعي نافذ شو نو دا به په ټولو باندې يو شان نافذ کيږي، نو پدې کې به د چا د طرفنه دفاع نکوئ، که مجرم ستا خپلوان وي، هم دفاع به نۀ کوئ نو الله پدې آيتونو کې قانون ماتونکي مجرم ته هم د سزا اعلان کړے او د هغوی دفاع کونکو ته هم. او ټولو ته دعوت ورکوي چه د رسول الله ﷺ اطاعت وکړئ او رسول الله ﷺ ته هم وائي چه ته هم احتياط کوه.

## شان نزول

د تفسير او د احاديثو په کتابونو کې لکه امام ترمذیؒ اوږد روايت راوړيدے او شيخ البانیؒ ورته حسن وئيلے دے، خلاصه ئې دا ده چه قتاده بن النعمان ﷺ قصه نقل کوي چه په مونږ کې يوه کورنۍ وه چه د اُبيرق ځامن وو بِشْر، بَشِيْر او مُبَشِّر نومونه ئې وو چه بشير پکې ډير لوی منافق وو، دوی په جاهليت او اسلام دواړو کې فقر او فاقے والا وو، کله چه به د شام نه چا غنم راوړل نو صرف مالداره سړي به ترې ځانله واخستل او د نور کور والو خوراك به ئې کجورے او وربشے وے (نو غنم په هغه زمانه کې د بسکټو په شان وو) نو زما تره رفاعه بن زيد يوه بوره د وړو واخسته او په کور کې ئې په يوه کوټه کې کيخوده او د هغې سره ئې وسله او زغره او توره هم کيخوده، نو دا کسان د شپې راغلل او دغه کور کې ئې سورے وکړو او دغه وړه او وسله او زغره او توره ئې غلا کړل، نو کله چه سهار شو، ما ته زما تره (رفاعه) وويل چه اے وراره! بيګاه شپه زما نه غلا وشوه، نو ته تالاش وکړه، نو مونږ په محله کې تالاش شروع کړو، چا وويل چه مونږ بيګاه شپه د اُبيرق ځامن ليدلي وو چه په کور کې ئې اُور بل کړے وو او ستاسو په طعام باندے اخته وو، (هغوی راوغوښتے شو) نو پدے کې هغوی د غلا پړه په لبيد بن سهل (ﷺ) باندے وروا چوله چه دا زمونږ نه يو نيك او مسلمان سړے وو چه دا کار مونږ نۀ دے کړے هغه کړے دے (او مونږ ځکه بيګاه شپه په خپل کور کې رڼا کړے وه چه څه ضرورت مو لرلو، رڼا خو د غلا دليل نۀ دے) خو کله چه لبيد خبر شو توره ئې راوستله چه پدے توره مو وهم يا به غلا ښکاره کوئ نو دوی د خپلے خبرے نه منکر شو چه مونږ ته غل معلوم نۀ دے.

بيا بشير د خپل ځان د برئ کولو دپاره خپل يو قومي ته ورغلو چه د هغه أسير بن عُرْوَه

نوم وو ډیر چالاکه او خوله ور سرېے وو نو هغه د خپل قوم څه کسان راجمع کړل (چه پدیے کی ډیر مؤمنان هم وو لیکن تحقیق ئے نهٔ وو کړیے او ددیے منافق ظاهری خبرو باندیے دهوکه شوی وو) او یوه جرګه ئے رسول الله ﷺ ته ولیږله او فریاد ئے ورته وکړو چه رفاعه بن زید او د هغه وراره قتاده (رضی الله عنه) په مونږ باندیے بی دلیله د غلا دعوه کوی او تهمتونه رابانديے لګوی او دا کسان نیکان او صحیح مسلمانان دی، او دوی ورته ددیے قبیح کار نسبت کوی، قتاده وائی ما ته خپل تره وویل چه ته رسول الله ﷺ ته ورشه او شکایت ورته وکړه، نو کله چه زهٔ د رسول الله ﷺ خوا ته راغلم نو هغه ما ته تندیے تریو کړو او ویے فرمایل: تا بد کار کړیے او ډیره بده منډه تړه دیے وهلے ده چه یوه شریفه او نیکه کورنئ باندیے تهٔ په غیر د ګواه نه د غلا تهمت لګویے، نو زه په ډیر خفګان واپس شوم ما ته ترهٔ وویل چه څه دیے وکړل؟ ما ورته وویل چه ارمان چه زما مال ختم شویے ویے خو چه د رسول الله ﷺ خوا ته پدیے باره کی نهٔ ویے ورغلے او قسم په الله چه بیا به (پدیے معامله کی ورنشم) نو ترهٔ ئے وویل: والله المستعان۔ (د الله نه به مدد غواړو)۔

نو دا آیتونه نازل شو او غل ئے وخودو چه دغه بشیر وو۔ (او ددیے بشیر کنیه ابوطعمه بن ابیرق وو او څینی راویانو تریے (ابو) کلمه هم لریے کړیده نو طعمه بن ابیرق ذکر کوی)۔

بیا دهٔ وسله بیرته راوړه او رفاعه ته ئے واپس کړه، دهٔ ته وویل شو چه راشه د الله نه بخنه وغواړه نو دیے مکے ته لاړو مرتد شو او د مشرکانو سره یو ځای شو او د سُلافه بنت سعد په کور کی دیره شو نو حسان بن ثابت وریسے څه شعرونه ورولیږل نو سلافه پریے غصه شوه او د طعمه سامان ئے په سر کړو د کور نه ئے ویستلو او خوړ کی ئے ګوزار کړو او دائے ورته وویل چه تا ما ته خیر نهٔ دیے راوړیے اُوس ستا په وجه په ما پسے حسان شعرونه وائی۔ (او څه موده روستو د اسلام نه محروم وفات شو)۔

(الترمذی: ۳۰۳٦ و الحاکم: ۸۱٦٤ وصححه)

او څینی مفسرین او اهل سِیَر ددیے قصے خلاصه داسے بیانوی چه ابو طعمه بن ابیرق چه کله وره پټ کړل نو د تلاش نه روستو معلومه شوه چه د وړو آثار ددهٔ کور ته تلی وو نو په هغوی باندیے دعوه وشوه چه تاسو غلا کړیے ده، نو دوی زر زر د غلا د پټولو دپاره دغه زغره او وره د یو یهودی کور ته ګوزار کړل۔ او څینی وائی چه امانت ئے د هغه سره کیخودل، خلکو تلاش کولو نو دغه مال د یهودی په کور کی وموندیے شو نو په هغه باندیے ئے د غلا دعوه وکړه او طعمه خپل قومیان او څه انصار مسلمانان نبی کریم ﷺ ته

بوتلل چه کار خو په یهودي کي راووتو او دا خلك موثر بدناموي، او طعمه او د هغه ورونو ورته قسمونه وکړل، نو رسول الله ﷺ اراده وکړه چه د یهودي نه لاس پریکړي، ځکه چه سامان هلته موجود شوید ے، لیکن یهودي ددے کار نه بیخي بري وو، نو الله تعالیٰ دا آیتونه نازل کړل او رسول الله ﷺ ته ئے ادب ورکړو چه ددے خیانتګرو ملګرتیا مهٔ کوه او یهودي بري دے (اګرکه کافر دے لیکن الله تعالیٰ د عدل والا ذات دے، د هغه په قانون کي په هیچا باندے ظلم نشي کیدے) او ددے منافقانو بد بد صفات ئے راوړل او په مینځ کي ئے د توبې ترغیب هم ورکړو او الله خپل فضل او امتنان په نبي کریم ﷺ باندے بیان کړو چه نزدے وه چه دے خلکو تهٔ خطا کولے خو د الله په احسان سره بچ شوے او بعض ایمان والو ته ئے هم تنبیه ورکړه چه په غیر د تحقیق نه د خیانتګرو ملګرتیا مهٔ کوئ۔

نو پدے کي چه کله د طعمه دروغ راښکاره شول، نو هغه خپل کفر راښکاره کړو او مرتد شو او مکے طرف ته اُوتختیدو چه هلته هغه د یو کور نه غلا کوله نو دیوال پرے راپریوتو او د کفر په حالت کي مړ شو۔ او ځیني وائي چه په دیوال کي ګیر شو مګر مکے والو راوییستو، بیا د شام د یوے قافلے سره ملګرے شو نو د هغوي نه ئے غلا وکړه هغوي پرے راجمع شو او رجم ئے کړو او پدے طریقه د دنیا نه کافر لاړو۔

او چونکه دا سړے مشرك شوے وو نو الله به دلته د شرك قباحت هم بیان کړي او خلکو پدے مینځ کي جرګے مرکے هم زیاتي کولے، نو الله به په ډیرو جرګو هم رد وکړي۔ نو دا ټوله رکوع تر (۱۲۶) آیتونو پورے ددے موضوع د بحث لاندے ده مګر آیتونو کي د ټول امت دپاره ښائسته قوانین پراته دي او د یوے واقعے پورے خاص نهٔ دي۔

بِمَا أَرَاكَ اللهُ: یعني الله چه کوم علم تا ته د وحي په ذریعه درکړیدے چه هغه سنت نبوي دے، او بل رسول الله ﷺ به کله په خپل صوابدید باندے فیصلے کولے خو هغه به د الله تعالیٰ د مرضئ مطابق وے یعني اجتهاد به ئے وو نو دا دواړه د رسول الله ﷺ په سنت کي داخل دي۔ نو په (الکتاب) کي قرآن مراد شو او په (بِمَا أَرَاكَ اللهُ) کي حدیث مراد شو۔

((وَلَا تَكُنْ لِلْخَآئِنِيْنَ خَصِيْمًا)) أَيْ مُخَاصِمًا : یعني جګړه کونکے۔

خائنین ئے جمع راوړه ځکه چه دا عام دے چه غلا ئے کړي وي او که د غلا ملګرتیا ئے کړي وي یا ئے بله ګناه کړي وي۔

دا دلیل دے چه ترڅو د چا په رشتیني او حق کیدو یقین نهٔ وي شوے د هغه سره ملګرے کیدل نهٔ دي پکار۔ پدے کي رسول الله ﷺ ته یو قسم عتاب (ملامتیا) ده چه تا له د

خیانت کونکو د طرف نه دفاع نهٔ دی کول پکار۔ پدے وجه الله تعالیٰ هغه ته اُوفرمایل چه د الله نه بخښنه طلب کړه چه تا د بې گناه یهودی لاس پریکول غوختل۔ په آیت کې د هغه خلقو په خلاف سخته دهمکی ده چه بغیر د تحقیق نه د بل چا سره ملګرتیا کوی۔

ډیر خلك د خپلے ژبې او قومیت او پارټئ والا د طرف نه مدافعتونه کوی، بعض د بچو یا د ښځے یا د ورور د طرفه مدافعت کوی اګرکه هغه په باطله باندے وی والله المستعان۔ او دے نه دا هم معلومه شوه چه خیانتګر اګرکه مسلمان وی او د یو کافر په مقابله کې وی نو هم د هغه ملګرتیا به نشی کیدے۔

## سوال وجواب

وَاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ : سوال دا دے چه آیا د رسول الله ﷺ نه ګنے ګناه شویده چه هغه ته د استغفار امر کوی؟ مفسرینو ددے ډیر جوابونه کړیدی (۱) چا وئیلی دی دلته استغفار د مؤمنانو دپاره مراد دے چه رسول الله ﷺ ته ئے په خپله ساده ګئ سره غلطه مشوره ورکړے وه چه طعمه بری وګرځوی او یهودی ملامته کړی۔

(۲) ځینی وائی چه د استغفار حکم امر تعبدی دے، دا د الله تعالیٰ حق دے چه بنده به د هغه نه بخښنه غواړی لکه رسول الله ﷺ به د ورځے اویا او سل کرته بخښنه غوښتله نو آیا هغه ګنے اویا ګناهونه کول؟!، لهٰذه دا چه استغفار ګناه لره مستلزم نهٔ دے۔

(۳) رسول الله ﷺ په مخکنئ معامله کې مجتهد وو او مجتهد که خطاء هم شی نو په هغه باندے ګناه نهٔ وی بلکه یو اجرئے کیږی، لکه دا خبره د حدیث نه ثابته ده، نو دلته الله د استغفار حکم هغه ته وکړو پدے کې تنبیه ده هغه چاته چه په غیر د تحقیق او په غیر د دلیل نه د خیانتګرو ملګرتیا کوی او غلطه مشوره ورکوی، او تر قیامته پورے د امت حاکمانو ته وائی چه په داسے معامله کې د غلطو خبرو د منلو نه استغفار وغواړی او په فیصلو کې صرف د مسئلے حقانیت په نظر کې ونیسی او د خپلولئ او د نورو تعلقاتو د تاثیر لاندے رانشی۔

(٤) ځینی وائی چه کیدے شی چه د هغه سختے لهجے او غصے نه استغفار مراد وی چه نبی کریم ﷺ پورے قتادهٔ ته خبرے کړے وے، اویا به د نبی کریم ﷺ په خیال کې تیره شوی وی چه همدا یهودی ملامته دے۔ (روح المعانی ۱٤۰/٥ وعزیز التفاسیر بتصرف)۔ او دا یو خلافِ اولیٰ کار وو چه استغفار ته محتاج دے۔ او د حسنات الابرار سیئات المقربین په

درجه کې دے۔ یعنې د نیکانو خلکو نیکیانې د مقربینو گناهونه شمارلے کیږي۔

وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَهُمْ

او جګړه مهٔ کوه د طرفه د هغه کسانو نه چه خیانت کوي د خپلو ځانونو سره

اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا ﴿۱۰۷﴾

یقیناً الله مینه نکوي د هغه چا سره چه وي ډیر خیانتګر ګنهګار

**تفسیر**: پدے کې بیا منع ده د خیانتګرو د ملګرتیا او د هغوي د طرفنه د مدافعت او وکالت کولو نه او په صیغه د خطاب ئے راوړه ځکه چه پدے کې پوره طریقے سره یره ورکول دي نورو حاکمانو ته چه چرته ددوي نه داسے خصلت صادر نشي۔

سوال: مخکې هم ذکر شو چه د خیانتګرو د طرف نه جګړه مهٔ کوه او دلته بیا واٸي ددے دواړو څه فرق دے؟

(۱) جواب: مخکې جمله کې د خائنینو سره صرف د ډله بازئ او د هغوي د طرفدارئ نه منع وه او پدے جمله کې د هغوي نه د سزا دفعه کول او بچ کولو نه منع ده یعنې چه کله په یو مجرم باندے شرعي سزا ثابته شي نو بیا د هغوي نه حدود، تعزیر او سزا اړول منع دي۔ (تفسیر السعدي)

(۲) جواب: مخکې خاص خیانتګر مراد وو چه د هغوي په باره کې دغه آیتونه نازل شوي وو او دلته د (اَلَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ) نه عام خیانتګر مراد دي چه هغه هر قسم مجرم وي۔

(۳) یا مخکې جمله کې د هغوي طرفداري مراد وه چه هسے په ډله کې ورسره شریك شي او دلته د هغوي د طرفنه بحث کول او وکالت کول مراد دي۔ (احسن الکلام)

يَخْتَانُوْنَ: اختیان او خیانة دواړه په یوه معنٰی دي مګر په اختیان کې مبالغه زیاته ده۔ اَىْ يَظْلِمُوْنَ اَنْفُسَهُمْ بِالْخِيَانَةِ وَالسَّرِقَةِ۔ یعنې په خپلو ځانونو باندے په خیانت او غلا سره ظلمونه کوي۔ (بغوي) اَىْ يُوْقِعُوْنَهَا فِى الْهَلَكَةِ بِالْعِصْيَانِ فِيْمَا اُؤْتُمِنُوْا عَلَيْهِ مِنَ الْاُمُوْرِ الْخَفِيَّةِ (نظم الدرر للبقاعي) یعنې ځانونه په هلاکت کې اچوي پدے وجه چه په کومو پټو څیزونو باندے دوي امانتګر ګڼرلے شویدي په هغے کې خیانت کوي)۔

اَنْفُسَهُمْ: په خیانت کې اچوي ځانونه خپل ځکه چه څوك د بل سره خیانت کوي داسے ده لکه ځان سره خیانت کول ځکه چه ددے ضرر هم دوي ته راواپس کیږي۔

﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِیْمًا﴾ خوان : د مبالغې صيغه استعمال شویده ځکه چه الله تعالیٰ ته بنه معلومه وه چه طعمه ډیر لوئی خائن او ډیر لوئی گناهگار دے۔ او حالانو هم د هغې تصدیق اُوکړو چه هغه مرتد شو او مکے ته اُوتختیدو او په کفر باندے مړ شو۔

او ددے ځای نه د منافقانو قبیح صفتونه شروع کیږی۔

خوان هغه چا ته وائی چه هغه بار بار خیانتونه کوی او د خیانتونو او گناهونو سره عادت شوے وی۔

خَوَّانًا فِیْ دِیْنِهٖ اَثِیْمًا بِرَبِّهٖ ۔ یعنی چه په خپل دین کی خیانتکروی او د خپل رب گناهگار وی۔ (تفسیر مقاتل)

| |
|---|
| یَسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ وَلَا یَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ |
| پټوی دوی ځانونه د خلقو نه او نشی پټیدلے د الله تعالیٰ نه او هغه د دوی سره دے |
| اِذْ یُبَیِّتُوْنَ مَا لَا یَرْضٰی مِنَ الْقَوْلِ |
| په هغه وخت چه دوی د شپے وائی هغه څه چه نۀ خوښی الله تعالیٰ د خبرو نه |
| وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا یَعْمَلُوْنَ مُحِیْطًا ﴿۱۰۸﴾ |
| او دے الله په هغه عملونو چه دوی ئے کوی راگیرونکے |

**تفسیر** : پدے کی د منافقانو نور بد صفتونه ذکر کیږی او د منافقانو د باطن د بد والی عکاسی شویده چه دوی د شرم نه د بچکیدو دپاره د خلقو نه خپل بد اعمال پټول خوښوی او الله ته ئے ورښائی، یعنی د الله مخامخ ښکاره گناهونه کوی او د انسانانو نه خپل بد عملونه پټ ساتی، او دا د منافقانو مرکزی صفت دے چه (تَرْجِیْحُ جَانِبِ الْمَخْلُوْقِ عَلٰی جَانِبِ الْخَالِقِ) چه دوی مخلوق طرفته د خالق په نسبت ډیره ترجیح ورکوی، د مخلوق ډیر رعایت کوی نۀ د خالق، د مخلوق نه شرمیدل او د خالق نه نۀ شرمیدل او د مخلوق مخامخ گناهونه نۀ کول او د خالق مخامخ کول، نو دا صفت دے هر انسان خپل ځان ته متوجه کړی والله المستعان ولا حول ولا قوة الا بالله۔

۲ - حاصل تفسیرئے دا دے : اَیْ یَسْتَحْیُوْنَ مِنَ النَّاسِ ۔ یعنی دوی د خلکو نه حیاء کوی او د الله نه حیاء نۀ کوی۔ (پدے وجه د غلا کولو نه په دروغو قسم سره انکار کوی او په بل چا باندے بهتان لگوی) او دا تفسیر د ابن عباسؓ نه یو روایت دے۔

وَلَا يَسْتَخْفُونَ : خانو نه نهٔ پټوی د الله نه یعنی ځانونه نشی پټولے۔
وَهُوَ مَعَهُمْ : یعنی الله د دوی په ټولو کارونو خبردار دے او هغه وینی۔
امام قرطبیؒ وائی چه ددے نه مراد معیت دے په اعتبار د علم او لیدلو او آوریدو سره، او دا مذهب د اهل سنتو دے او جهمیه، قدریه او معتزله وائی چه الله تعالیٰ په هر مکان کی دے، او ددے آیت نه دلیل نیسی نو دا خطاء ده ځکه چه پدے کی لویه بی ادبی د الله تعالیٰ راځی چه الله تعالیٰ د هغے نه پاك او اُوچت دے، آه۔ (قرطبی ۳۷۹/۵)
إِذْ يُبَيِّتُونَ : یعنی دوی د شپے داسے غلطے خبرے کوی چه الله په هغے باندے راضی نهٔ دے چه هغه د اسلام او د مسلمانانو په خلاف سازشونه جوړول او دروغجن قسمونه کول او د دروغو ګواهی او په پاکدامن انسان باندے بدنامه لګول دی۔ او د اسلام او د رسول الله ﷺ او د مسلمانانو پورے توقے کول دی، او د شپے به ځکه جمع کیدل چه مسلمانان به ورسره خوا کی نهٔ وو، لیکن الله تعالیٰ د هغوی دغه حال راښکاره کړو او دوی ئے وشرمول۔ دا وجه ده چه رسول الله ﷺ د ماسخوتن نه روستو د لایعنی خبرو نه منع کړیده ځکه چه پدے کی تشبه بالمنافقین والکفار راځی۔
وَكَانَ اللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطًا : یعنی د دوی مشورے او جرګے اګرکه د خلکو نه پټے وے لیکن د الله تعالیٰ نه هیڅ نهٔ دی پټ، ددے سزا به ورکوی۔

| هَا أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَمَن يُجَادِلُ |
|---|
| خبردار تاسو اے دا خلقو! جګړه کوئ د طرفه د دوی نه په ژوند دنیوی کی نو څوك به جګړه وکړی |
| اللَّهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَم مَّن يَكُونُ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا ﴿۱۰۹﴾ |
| د الله سره د طرفه د دوی نه په ورځ د قیامت یا څوك دے هغه چه شی به د دوی ذمه وار۔ |

**تفسیر** : پدے کی توجه خیانتګرو او د هغوی مددګارو طرفته راړولے شویده او مطلب ئے دا دے چه هر شخص دِے د خپل ځان غم وکړی او په دنیا کی دِے د ګناه نه توبه وباسی، که تاسو د مجرمانو نه په دنیا کی مدافعت وکړئ نو د قیامت په ورځ به ئے د الله د عذابونو نه څوك بیچ کړی۔ نو هرکله چه تاسو د قیامت په سخته ورځ کی د دوی دفاع نشئ کولے نو په دنیا کی هم د دوی دفاع مهٔ کوئ، نو پدے کی مقصد زجر دے چه تاسو له د خیانتګرو مدافعت نهٔ دے پکار۔

یعنی اول خو تاسو د دوی جنایت نشئ پټولے، الله به ئے رسوا کړی. او که بالفرض الله ئے په دنیا کی رسوا نکړی نو د آخرت د عذاب نه خو نشی خلاصیدلے، او دا څه دوستی نهٔ ده چه د دنیاوی لنډ عذاب او لږ خجالت نه ئے وساتئ خو د آخرت د لوی عذاب او غټے رسوایئ سره ئے مخامخ کړئ. او د قیامت په ورځ لکه څنګه چه تاسو د هغوی په کار نهٔ راځئ نو هغوی هم ستاسو په کار نهٔ راځی.

جَادَلْتُمْ : جَدل په اصل کی د رسئ (پړی) کلک وودلو ته وائی، او په عرف کی جګړے ته وائی نو ګویا که هر جګړه کونکے خپل مقابل لره د مقصد نه اړوی او دا قول د زجاج دے.

یا دا د جَدَالَةٌ نه دے په مخ د زمکه باندے راغورځولو ته وئیلے شی او په جګړه کی هم هر یو خپل مقابل ذلیله کول او زمکے ته راغورځول غواړی. یعنی اے خلکو! تاسو ددے خیانتګرو مقابل کسان په زمکه راغورځول غواړئ.

د وکیل اصل معنیٰ ده هغه شخص چه هغه ته کار وسپارلے شی. او دلته ئے معنیٰ ده د عذاب نه بچ کونکے.

او د (یُجَادِلُ او وکیل) مطلب دا دے چه دغه مجرمان تاسو د الله نه نهٔ په بحث سره خلاصولے شئ، او نهٔ ئے په زوره سره. بلکه په قیامت کی به مدافعین د منافقانو او خیانتګرو سره یو ځای راپاخیږی.

أَمْ مَّنْ : دلته ام په معنیٰ د بَلْ سره دے.

| وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ |
|---|
| او چا چه عمل وکړو بد یا ئے ظلم وکړو د خپل ځان سره بیا بخنه وغواړی د الله تعالیٰ نه |
| يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۱۰﴾ |
| وبه مومی الله تعالیٰ لره بخونکے رحم کونکے |

**تفسیر** : اُوس ترغیب ورکوی توبی او استغفار ته. او دا هغه آیت دے چه ددے امت دپاره د دنیا او ما فیها نه غوره دے (ابن عباسؓ)

یعنی بنده چه هر څومره او هر قسمه ګناه کړی وی او په دنیا کی د الله نه بخنه طلب کړی نو الله به ورته بخنه وکړی او دا د الله تعالیٰ وعده ده.

د یَجِدِ الله نه معلومیږی چه د توبی او استغفار سره سمدست د الله مغفرت او رحمت به

دۀ ته حاضرېږي۔

## د سوء او ظلم فرقونه

(۱) سوء هغه ګناه ته وائي چه متعدي ګناه وي چه ضررئے نورو خلکو ته هم رسيږي لکه غلا او غصب او کنځلے وغيره۔ او ظلمٌ علی نفسهٖ هغه دے چه لازمي وي چه ضررئے صرف په ګناهګار پورے خاص وي لکه د روژے خوړل وغيره۔

(۲) سوء د شرك نه علاوه ګناه ده، او يَظْلِمْ نَفْسَه نه مراد شرك کول دي۔

(۳) سوء: صغيره ګناه ده او ظلم کبيره ګناه ده۔

(٤) سوء غلا کول دي، يا هره ګناه ده، او ظلم په چا باندے تهمت او بهتان لګول دي۔

د سيدنا علي ﷺ نه نقل دي چه ما ته ابوبکر صديق ﷺ حديث بيان کړيدے او هغه رشتيا وئيلي دي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: کوم بنده چه يوه ګناه وکړي او بيا اودس وکړي او دوه رکعاته مونځ وکړي او د الله نه بخنه وغواړي نو الله به ورته خامخا بخنه کوي او بيائے دا آيت ولوستلو ﴿وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ﴾ الآية۔

(ابوداود: ۱۵۲۳ والترمذی: ٤٠٦ ومسند احمد مسند ابی بکر الصديق رقم ۲: واسناده صحيح)

## نکته

په (يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا) کې ئے په وجدان سره تعبير وکړو، پدے کې نکته دا ښکاره کيږي چه څوك توبه وباسي او بخنه وغواړي نو هغه به په خپل نفس کې د مغفرت اثر مونده (محسوس) کړي چه ګناه به ورته بدې ښکاره شي، او د هغے داعي به ئے ختم شي، او د رحمت اثر به محسوس کړي په نيکو اعمالو کې چه په هغے سره نفس پاکيږي او دغه خيرے ترے صفا کيږي نو کوم سوء او ظلم چه بنده کړے وي نو پدے سره به ئے الله ته عاجزي او ذلت زيات شي او تکبر به ئے ختم شي۔ (تفسير المنار ۳۲٦/۵)

| وَمَنْ يَّكْسِبْ اِثْمًا فَاِنَّمَا يَكْسِبُهٗ عَلٰى نَفْسِهٖ |
| --- |
| او چا چه وکړه ګناه يقيناً کوي ګناه (چه ضرر به ئے) په خپل ځان (وي) |
| وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۱۱﴾ |
| او دے الله پوهه حکمتونو والا۔ |

**تفسير**: پدے کې الله تعالیٰ بل قانون بيانوي چه د هر چا ګناه خپله خپله ده، او يو تن

به د بل په گناه کې نهٔ نیولې کیږي، پلار به د ځوی او ځوی به د پلار په گناه نهٔ نیولې کیږي، او دغه شان نور خلك واخله. او دا ددې دپاره وائي چه چرته یو مؤمن دا گمان ونکړي چه زمونږ په معاشره کې دا گناه وشوه مونږ به پدې باندې راګیرېږو نو الله فرمائي چه کله تهٔ په گناه کې شامل نهٔ یې نو تا نهٔ راګیروي.

یا مطلب دا دې چه څوك گناه وکړي او ددهٔ دا گمان وي چه دهٔ فائده واخسته، نو دا گمان ئې خطاء دې څکه چه ددې وبال او ضرر ئې په نفس باندې راوستو څکه چه د هرې گناه سره الله تعالیٰ په دنیا او آخرت کې مصیبتونه او ضررونه تړلي دي. د دنیا ضرر ئې دا دې چه کله به ئې گناه رابښکاره شي او ورته شرمیږي لکه په قصه د طعمه کې. (المنار)

يَكْسِبُ : کسب هر هغه قول او عمل ته وائي چه مقصد په هغې کې ځان دپاره فائده رابښکل وي، یا د ځان نه ضرر دفع کول وي، پدې وجه د الله کارونو ته کسب نشي وئیلې.

إِثْمًا : اثم هرې گناه ته وائي، صغیره وي او که کبیره، نو پدې کې خیانت او د خیانتګرو د طرف نه جدال او خصومت کول هم داخل دي.

عَلٰى نَفْسِهٖ : (علی) دلته د ضرر دپاره دې، او د غلبې دپاره دې یعنی دا گناه به په دهٔ باندې غلبه کړې وي او دپاسه به پرې راغلې وي.

وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا: یعنی الله د هر چا په گناه باندې پوهه دې لیکن في الحال چه سزا نهٔ ورکوي یا معافي کوي نو په هغې کې ئې حکمتونه دي چه کیدې شي بنده توبه وباسي، یا ورته آخرت کې زیاته سزا ورکړي.

او که دویم مطلب سره ولګې نو علیما یعنی الله تعالیٰ په خپل علم سره خلکو ته د شریعت او احکامو حدود مقرر کړیدي چه د هغې نه تجاوز د هغوی دپاره ضرر دې او په خپل حکمت سره ئې د هغې دپاره سزاګانې مقرر کړیدي چه هغه تجاوز کونکي ته رسیږي نو مجرم بنده په گناه سره خپل ځان ته ضرر ورکوي نهٔ الله ته. (المنار)

| وَمَنْ يَّكْسِبْ خَطِيْٓئَةً اَوْ اِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهٖ بَرِيْٓئًا فَقَدِ احْتَمَلَ |
|---|
| او چا چه وکړه وړه گناه یا لویه گناه بیا ولې په هغې سره پاکدامن لره نو یقیناً دهٔ بار کړه |
| بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا﴿۱۱۲﴾ |
| (په خپل ځان) بهتان (بدنامه) او گناه ښکاره. |

**تفسیر :** د خطیئة او اثما فرقونه

خطیئة عامه گناه ده چه په قصد سره یا په غیر د قصد نه وی، او اثم هغه دے چه په قصد سره وشی۔ (ابن جریر الطبریؒ)

(۲) خطیئة صغیره گناه ده، او اثم کبیره ده۔

(۳) خطیئة هغه گناه ده چه په خطائی سره وشی او اثم هغه گناه ده چه په قصد سره وشی۔

ثُمَّ یَرْمِ بِهٖ بَرِیْٓــًٔا : یعنی دغه خطیئه او اثم باندے بل څوك ولی او په بل چانے وروتپی چه دا فلانی کړیده نو پدے کی اشاره ده د طعمه په واقعه کی کړے شوو گناهونو ته۔

بِهٖ : (ه) ضمیر یا هر یو د خطیئه او اثم ته راجع دے یا کسب ته راجع دے۔ (روح المعانی)

برِیئا : بریٔ هغه انسان ته وائی چه جرم ئے نهٔ وی کړے او نسبت ورته کیږی، او دیته بهتان او تهمت هم وئیلے شی۔ لکه بنو ابیرق په نیك سړی (لبید بن سهل رضی الله عنه) باندے د غلا تهمت ولگولو۔

بُهْتَانًا : او د صحیح مسلم د یو حدیث نه معلومیږی چه په یو شخص کی یو کار نهٔ وی او څوك ئے هغه ته نسبت کوی، نو دا بهتان دے۔ او که په یو تن کی یو بد صفت وی او څوك ئے ذکر کړی نو دا غِیبت دے۔

وَّ اِثْمًا مُّبِیْنًا : دا ښکاره گناه ده چه په هغه اوه گناهونو کی شمار ده چه هلاکونکی دی۔

| |
|---|
| وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَیْكَ وَرَحْمَتُهٗ |
| او که چرته نهٔ وے فضل د الله په تا او رحمت د هغهٔ (نو دوی به تهٔ خطا کړے وے) |
| لَهَمَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ یُّضِلُّوْكَ وَمَا یُضِلُّوْنَ |
| خامخا کلکه اراده کړے وه یوے ډلے د دوی نه چه خطا کړی تا (په فیصله کی) او نهٔ گمراه کوی دوی |
| اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا یَضُرُّوْنَكَ مِنْ شَیْءٍ وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَیْكَ |
| مگر ځانونه خپل او ضرر نشی درکولے تا ته هیڅ شے او نازل کړے دے الله تعالیٰ په تا باندے |
| الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ عَلَیْكَ عَظِیْمًا ﴿۱۱۳﴾ |
| کتاب او سنت او دروښودو تاته هغه څه چه تهٔ پرے نهٔ پو هیدلے او دے فضل د الله په تا باندے لوئی۔ |

**تفسیر** : پدې آیت کې الله تعالیٰ په خپل رسول باندې احسانات ذکر کوي چه که الله په خپل فضل او کرم سره د وحې په ذریعه تا ته خبر نهٔ وې درکړې چه غل یهودي نهٔ دې بلکه ابن ابیرق دې نو تا به د بې ګناه سړي لاس پریکړې وې، لیکن ددې دروغو خبرو وبال به د دغه دروغجنو په سر وي، رسول الله ﷺ ته به د هغې هیڅ نقصان نهٔ رسیږي ځکه چه رسول الله ﷺ ته د هغې د حقیقتِ حال هیڅ علم نهٔ وو۔

سوال وجواب

**وَلَوْلَا فَضْلُ** : ددې شرط جزاء پټه ده۔ لَاَضَلُّوْكَ۔ خامخا دې خلکو به تهٔ خطا کړې وې۔ یا (لَهَمَّتْ) ئې جزاء ده۔ نو پدې باندې سوال دا دې چه بیا خو د آیت مطلب دا جوړیږي چه که د الله فضل نهٔ وې نو دوی به د نبی کریم ﷺ د خطا کولو قصد کړې وې حال دا چه دوی خو قصد کړې وو لیکن ناکام شو؟

(۱) جواب دا دې چه د دوی د قصد ناکامی داسې وګنړلې شوه لکه چه د سره ئې قصد نهٔ وی کړې یعنی هرکله چه دوی پدې قصد سره رسول الله ﷺ خطا نکړې شو او دې ته نتیجه ورکړه نو ګویا که خائنانو د نبی کریم ﷺ د بې لارې کولو قصد نهٔ وو کړې بلکه صرف خپل ځانونو ته ئې نقصان ورکړو۔

(۲) او څه لرې نهٔ ده چه مطلب ئې دا وي چه که په تا باندې د الله فضل نهٔ وې او د خائنانو دسیسه ئې نهٔ وې شنډه کړې، نو په راتلونکې زمانه کې به دوی ستا د خطا کولو ډیر پلانونه جوړ کړي وې خو چه کله د دوی ذکر شوې پلان ناکام شو نو ترڅو پورې چه دا شرم د دوی یاد وي بیا به دغسې د شرم پلان ته لاس وانچوي۔ (عزیز التفاسیر)

ظاهر دا ده چه هم (قصد) دوه قسمه دې (۱) یو هم اضرار دې یعنی دوی دا اراده لری چه رسول الله ﷺ ته ضرر ورکړي۔ (۲) او بل هم د خطراتو دې نو اول د الله د فضل په وجه مدفوع دې، او دویم همیشه دپاره موجود دې۔ یعنی د دوی په زړونو کې همیشه دپاره دا اراده راپیښیږي او دوی قصد کوي چه رسول الله ﷺ خطاء کړي لیکن نهٔ ئې شي۔

او د فضل نه مراد دا چه وحی ئې راولیږله چه په هغې سره مجرم معلوم شو او د رحمت نه مراد رسول الله ﷺ لره د غلطې فیصلې نه بچ ساتل دي۔ (ابوحیانؒ)

یا د (فضل) نه مراد وحی د قرآن ده او د رحمت نه وحی خفی (وحی د سنت) ده۔

**وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ** : ځکه چه دا قانون دې چه څوك د بل د ګمراه کولو کوشش

کوی نو الله تعالیٰ هغه لره گمراه کوی، او د حق نه ئې وخت په وخت جدا کوی، نو دا په اصل کې خپل ځان گمراه کول دی۔

وَمَا يَضُرُّونَكَ مِنْ شَيْءٍ : پدې کې الله تعالیٰ خپل رسول ته تسلي ورکوی چه د دوی پلانونه به الله شنډوی او تا ته به ئې هیڅ تکلیف نهٔ رسی ځکه چه الله تعالیٰ تا د کتاب او سنت په وجه د دوی د پلانونه وخت په وخت خبروی۔

وَعَلَّمَكَ : د الله په خپل رسول دا احسان هم دے چه الله تعالیٰ هغه ته د قرآن او سنت په شان نعمت ورکړو او د دین او شریعت هغه کارونه ئې ورؤخودل چه هغه رسول الله ﷺ ته مخکې بالکل نهٔ وو معلوم۔

نو د ﴿عَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ﴾ نه مراد د شریعت کارونه او احکام دی چه د قرآن کریم د نازلیدو نه مخکې پرے رسول الله ﷺ نهٔ پو هیدو، لکه دا د ابن عباس رضي الله عنهما نه ابو حیانؒ په ((البحر المحیط)) کې نقل کړیدی۔

(۲) یا د (مَا) نه مراد خپله کتاب او سنت دی یعنی الله تعالیٰ تا ته کتاب او سنت نازل کړل او دد ے علم ئې درکړو چه مخکې پرے نهٔ وے پو هه۔

(۳) یا تر ے رازونه او حکمتونه د کتاب او سنت مراد دی چه تهٔ پر ے مخکې نهٔ وے پو هه نو په آینده کې به هم منافقان تا نشي گمراه کولے۔(قفال)

(٤) یا مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ مِنْ أَخْبَارِ الْقُرُوْنِ السَّالِفَةِ فَكَذٰلِكَ يُعَلِّمُكَ مِنْ حِيَلِ الْمُنَافِقِيْنَ وَكَيْدِهِمْ مَا لَا يُقْدَرُ عَلَى الْاِحْتِرَازِ مِنْهُ) (قفال– ابو حیان) یا دد ے نه مراد د مخکنو پیړو (قومونو) خبرونه دی چه په هغے باند ے تهٔ نهٔ پو هید ے او بیا ئې پر ے پو هه کړ ے، نو دغه شان به تا د منافقانو په هغه حیلو او چلونو پو هه کړی چه د هغے نه ځان ساتل ډیر گران دی۔

(۵) ابو سلیمان الدمشقیؒ وائی : أَخْبَارُ الْأَوَّلِيْنَ وَالْآخِرِيْنَ ۔ تهٔ ئې پو هه کړ ے په اخبارو او قصو د پخوانو او روستنو خلکو باند ے۔ (٦) یا د (مَا) نه مراد مرتبه ده۔ اَیْ مِقْدَارَ نَفْسِكَ النَّفِيْسَةِ ۔ یعنی تا ته ئې وخودو اندازه (مرتبه) د غوره نفس ستا۔ (البحر المحیط ۲۸۳/۳)

(۷) د ما نه مراد دا قصه د طعمه بن ابیرق هم ده۔

ظاهر دا ده چه آیت د ے ټولو ته شامل د ے۔

بعض ناپو هه خلك دد ے نه دلیل نیسی چه رسول الله ﷺ په مَا كَانَ او مَايَكُوْنُ باند ے عالِم د ے، دا د الله تعالیٰ حق رسول ته ورکول دی چه د ے ته شرك وائی، او دا اهل زیغو طریقه دا ده چه متشابهات رانیسی او محکمات پریدی، رسول الله ﷺ فرمائی : ﴿ وَلَا

﴿أَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ زهٔ په غیبو نهٔ پوهیږم. حال دا چه دلته (مَا) کلمه د عموم دپاره نهٔ ده بلکه د خصوص دپاره ده، ځکه که عموم مراد شی نو بیا به نورو آیتونو سره ټکراؤ راشی، الله فرمائی: ﴿وَيُعَلِّمُكُمْ مَا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ﴾ (البقره: ۱۵۱) ﴿وَعُلِّمْتُمْ مَا لَمْ تَعْلَمُوا أَنْتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ﴾ (انعام: ۹۱) او ﴿عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ (العلق: ۵)

نو که دلته ما د عموم دپاره شی نو بیا به د ټول امت دپاره، بیا د بنی اسرائیلو دپاره، او بیا د جنس انسان دپاره به علم کلی ثابت شی. والتالی باطل فالمقدم مثله.

**وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ عَظِيمًا**: یعنی په تا باندے د الله همیشه دپاره لوی لوی احسانات دی، چه هغه د ټول عالم دپاره نبی کړځول او نبوت په دهٔ باندے ختمول، او ډیر معجزات او ددهٔ امت تر قیامته پورے باقی پریخودل دی.

فخر الدین رازیؒ لیکلی دی: دا آیت دلیل دے چه د علم نه لوئی بل هیڅ نعمت، هیڅ شرافت او هیڅ منقبت نشته. (قاسمیؒ)

| لَا خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِنْ نَجْوَاهُمْ إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ |
|---|
| نشته هیڅ خیر په ډیر جرګو د دوی کی مګر جرګه د هغه چا چه حکم کوی په صدقے سره |
| أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ وَمَنْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَاءَ |
| یا په نیک کار یا په صلح کولو سره په مینځ د خلقو کی او چا چه وکړو دا کار دپاره د طلب |
| مَرْضَاتِ اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا﴿۱۱۴﴾ |
| د رضا د الله تعالیٰ نو زر دے چه ورېه کړو مونږ هغه ته ثواب لوئی. |

**تفسیر**: پدے آیت کی الله تعالیٰ د ډیرو جرګو، مرکو او مشورو نه منع کړیده سوئ د یو څو جرګو نه.

مناسبت دا دے چه کله داسے یوه واقعه راپیښه شی نو خلك ډله ډله په حجرو کی جرګے او بحثونه او تبصرے کوی، او خپل عملنامے بربادوی، نو الله تعالیٰ ددے نه منع وکړه چه پدے کار کی هیڅ خیر نشته ددے نه ځان وساتئ. او دارنګه د بنی اُبیرق د اصل غل د سزا او شرم نه د بچ کولو دپاره د هغوی حمایت کونکو خپل مینځ کی جرګے کولے، لیکن د تفسیر د قاعدے مطابق د آیت حکم او معنی عامه ده چه په عامه توګه د خلقو په جرګو کی څه خیر او نیکی نهٔ وی.

## د جرګو درې قسمونه

لَا خَيْرَ : الله تعالىٰ عجيب لفظ استعمال کړو، داسې ئې ونهٔ ويل چه لَا تَنَاجَوْا۔ (جرګې مهٔ کوئ مګر دغه درې قسمه)۔ بلکه خير ئې ترې نفي کړو، پدې کې حکمة دا دې چه جرګې په درې قسمه دي (۱) کله به پکې خير وي لکه دغه راتلونکې درې قسمه جرګې او نور د خير کارونو دپاره جرګې شوې۔ او کله به پکې خير نهٔ وي نو يا به پکې شر وي لکه د ګناه جرګې، او کله به پکې شر نهٔ وي بلکه مباحې به وي لکه عامې خبرې اترې چه د ګناه نهٔ وي۔

نجواهم : نجوى په اصل کې مصدر يا اسم مصدر دې د نَجْوَةٌ يا د نَجَاءٌ نه، هغه پټو خبرو او ويناګانو ته وائي چه سړې ئې د خلکو نه د راز په شکل ساتي،

او کله نا کله دوه يا ډير کسان چه جرګه کوي هغوي دپاره هم استعماليږي لکه

﴿وَإِذْ هُمْ نَجْوَىٰ﴾ (الاسراء: ۴۷)

يعني الله تعالىٰ ته د هغه کسانو حال هم معلوم دې چه کله دوي جرګه کونکي وي۔

**فائده :** دا هم هغه آيت دې چه ددې امت دپاره ډير بهتر دې چه الله تعالىٰ په دغه درې کارونو باندې چه کله د الله د رضا دپاره وشي لوي اجر ورکوي چه هغه جنت دې۔

## د درې څيزونو د تخصيص حکمة

مخلوق ته فائده ورکول به يا په جلب المنفعة (فائده راښکلو) سره وي يا په دفع د مضرة (ضرر دفع کولو) سره، که د جلب المنفعة سره وي نو يا به منفعة بدني وي، دا صدقه شوه او يا به روحاني وي، دا معروف (نيکي) شوه، او يا به دفع د مضرة (تکليف) وي دا اصلاح بين الناس شوه۔ دارنګه په صدقه او اصلاح کې حقوق العباد دي او په معروف کې حقوق الله ته اشاره ده۔

أَمَرَ بِصَدَقَةٍ : که يو انسان خپله صدقه کوي دا خو لوي فضيلت دې، ليکن که صرف په صدقه باندې بل ته حکم کوي، او ددې دپاره جرګه کوي، او پدې کې ئې مقصد د الله رضا وي نو جنت ورته ملاويږي۔

## سوال وجواب

که څوك ووائي چه معروف خو هر شرعي او نيك کار ته وئيلې شي، نو دا صدقې ته هم شامل ده، او اصلاح بين الناس ته هم، نو بيا ولې صدقه او اصلاح دواړه جدا هم ذکر شو؟

جواب دا دے چه په عامو نیکیانو کی د صدقے او د اصلاح دواړو په اسلام کی ډیر لوی اهمیت او ډیر فضیلت دے نو ځکه ئے جدا ذکر کړل لکه حدیث کی دی :

((څوك چه د حلال مال نه د یوے کجورے برابر هم صدقه وکړی نو د اُحُد د غر هومره به جوړه شی))۔ (صحیح بخاری: ۱٤۰۱ وصحیح مسلم، ۲۳۹۰ کتاب الزکاة)

او په یو حدیث کی دی : [أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَفْضَلَ مِنْ دَرَجَةِ الصِّيَامِ وَالصَّلَاةِ وَالصَّدَقَةِ؟ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ ! قَالَ إِصْلَاحُ ذَاتِ الْبَيْنِ وَقَالَ : وَفَسَادُ ذَاتِ الْبَيْنِ هِيَ الْحَالِقَةُ]

(ابوداود کتاب الادب والترمذی کتاب البر والصلة ومسند احمد ٦/٤٤٤، ٤٤٥)

آیا زهٔ تاسو په یو داسے عمل نهٔ خبروم چه هغه د نفلی روژو، نفلی مونځونو او نفلی صدقات او خیرات نه ډیر غوره وی ؟ صحابه کرامو عرض وکړو : ولے نهٔ اے د الله رسوله ! وے فرمایل : هغه عمل په خپل مینځ کی اختلاف ختمول او جوړ جاړے راوستل دی، او دا ئے هم وفرمایل : او په خپل مینځ کی اختلاف (د نیکیانو) خریونکے (یعنی ختمونکے) دے۔

تردے چه د صلح کونکو دپاره د دروغو جوړولو اجازه هم ورکړے شویده، دے دپاره چه یو بل ته نزدے کړی نو که ضرورت داسے خبرو ته راپیښ شو چه هغه د دروغو سره مشابه وی نو هم ډیر روائی : حدیث کی دی :

[لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِيْ يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ فَيَنْمِيْ خَيْرًا أَوْ يَقُوْلَ خَيْرًا]

(بخاری : ۲٦۹۲ ومسلم والترمذی واحمد :۷۳۱۳)۔

هغه څوك دروغژن نهٔ دے (نهٔ ګنهګاریږی) چه د خلکو په مینځ کی اصلاح کوی نو (یو طرفته د بل طرفنه) یوه د خیر خبره ورسوی، او یا ورته د خیر خبره وکړی (حال دا چه هغه ئے د بل طرف نه نهٔ وی آوریدلی)۔

**فائده** : ددے واقعے سره ئے نزدے د صدقے او اصلاح خبره نزدے راوړه، وجه دا ده چه غلا او خیانت د حرص چینه ده، او ددے مرض دپاره صدقه ښه دوائی ده چه د حرص بیخ وباسی او همدارنګه د ابن اُبیرق د قصے دا نتیجه ورکړه چه خبره په خپل مینځی فساد باندے تمامه شوه، نو دلته ووېل شو چه د دوی ترمینځ اصلاح ډیر غوره عمل دے۔

﴿ اِبْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ﴾ دا دلیل دے چه ددے اعمالو د اجر او ثواب موندلو دپاره شرط دا دے چه پدے کارونو سره به مقصد د الله رضا حاصلول وی، که اخلاص یعنی د الله رضا حاصلول مقصود نهٔ وی، نو لوی نه لوی عمل به نهٔ صرف ضائع کیږی، بلکه د انسان دپاره به بوج تمامیږی۔

ترمذیؒ، ابن ماجهؒ او حافظ ابن مردویهؒ د ام حبیبه رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : د بنیادم هره خبره د هغه په سر بوج وی، د هغه دپاره فائده منه نهٔ وی سوئ د هغے نه چه الله یاد کړی، یا د کومے نیکئ حکم اُوکړی یا د کومے بدئ نه منع وکړی۔ (الترمذی ومسند ابی یعلی : ۷۱۳۲ وسنده حسن)

او دا قید (ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ) پکی ځکه وائی چه اکثر انسانان چه نیك عملونه کوی نو خپل نفس پکی لوی لوی کوی، او وائی چه ما دا جرګه وکړه، فلانی کسان زما په وجه روغ شو، او ما فلانی ته وویل چه دومره دومره مال صدقه کړه،

نو پدے کی خلك نوم او شهرت او ریاء کوی، نو وویل شو چه دا لوی عملونه دی لیکن شرط به پکی د الله رضا وی۔

| وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى |
|---|
| او څوك چه خلاف وکړی د رسول (ﷺ) نه پس د هغے نه چه ښکاره شو هغه ته هدایت |
| وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى |
| او روان شو په غیر د لارے د مؤمنانو نو وابه روؤ لره هغه طرف ته چه دے ورته واوړیدو |
| وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ﴿۱۱۵﴾ |
| او داخل به کړو دے جهنم ته او بد دے ځای د ورتللو (دا جهنم)۔ |

**تفسیر :** پدے کی تخویف دے هغه چا ته چه د رسول الله ﷺ مخالف وی او ددے تعلق هم د بنی اُبیرق د واقعے سره دے ځکه چه دطعمه پدے خبره یقین وو چه محمد (ﷺ) د الله رسول دے او اسلام حق دین دے۔ خو ددے سره سره هغه د صحابه کرامؓ په ځای د کافرانو لاره اختیاره کړه او مرتد شو، او کافرانو سره ملاؤ شو۔

لیکن ددے آیت حکم هم عام دے لکه چه د مخکنی آیت په باره کی ووئیلے شو۔

نو هر څوك چه د حق ښکاره کیدو نه روستو د رسول الله ﷺ مخالفت کوی، او د مسلمانانو لاره یعنی دین اسلام نه سوئ د بل چا لاره خپلوی، نو الله تعالیٰ به هغه لره په همدے مخالفت د رسول او د اسلام د نهٔ تابع کیدو په لاره پریدی، بلکه ددهٔ په سترګو کی به ددهٔ کار ښائسته او غوره اُوګرځوی تردے چه جهنم ته به داخل شی۔

**فوائد الآية :**

وَمَنْ يُّشَاقِقِ : مشاقة د شِق نه دے، يو طرفته وائي۔ نو مشاقه ديته وائي چه د رسول الله ﷺ په مخالفت كې داسے راشي چه د هغه په مقابل طرف كې ودريږي، د مسلمان نه كله كناه كيږي ليكن هغه ځان كناهګار ګڼړي او په مقابله كې نۀ ودريږي۔

مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ : د مخالفت دوه قسمونه

د رسول الله ﷺ نه مخالفت دوه قسمه دے (۱) يو قبل العلم چه يو سړي ته د يو بے خبرے او د يوے سنت طريقے علم نۀ وي، او د رسول الله ﷺ خلاف كوي، نو دا پدے كار كناهګار نۀ دے۔ (۲) بعد العلم۔ دا چه سنت ورته راورسيدو او بيا هم د څه وجو هو نه د هغے مخالفت كوي، يا دنياوي لالچ وي، يا مداهنت وي يا يره وي، يا ضد او عناد وي، يا تنظيم پرستي او تقليد وي۔ نو دا انسان لوي مجرم دے۔

دا آيت دليل دے چه د رسول الله ﷺ مخالفت بنده كفر ته رسوي۔

اَلْهُدٰى : هدايت دلته سنت نبوي ته وويل شو۔

سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ : د مؤمنين نه مراد صحابه كرام رضي الله عنهم اجمعين دي چه د دين اسلام اولني تابعدار او د اسلام د تعليماتو كامله نمونه وه، او ددے آيتونو د نازليدو په وخت كې د دوي نه سِوئ نور مؤمنان په مخ د زمكه نۀ وو موجود چه هغه مراد شي۔ پدے وجه د رسول الله ﷺ مخالفت او د غير سبيل المؤمنين اتباع دواړه په حقيقت كې د يو شي نومونه دي۔

سوال وجواب

سوال دا دے چه څوك د رسول الله ﷺ مخالفت وكړي نو هغه هسے هم تباه دے كه د مؤمنانو په لار ځي او كه نۀ، نو بيا دا قيد ولے وائي چه (ويتبع غير سبيل المؤمنين)؟

جواب : ددے قيد ډيره مزيداره فائده ده هغه دا چه په بعض اوقاتو كې يو سړے د رسول الله ﷺ خلاف كوي په باطن كې، او په ظاهره كې د رسول الله ﷺ حديث پيش كوي، نو هغه هم د حديثو دشمن دے ځكه چه دغسے معنىٰ او مطلب د حديث صحابه كرامو نۀ ده كړے، مؤمنان په دغه لاره نۀ دي تللي، نو ددے نه دا فائده هم راووتله چه د آيت او حديث داسے معنىٰ كول چه صحابه كرامو پرے تلل نۀ وي كړي، او د ځان نه معنىٰ ايجاد شوي وي او د هغوي فهم ورته نۀ وي رسيدلے، نو دا هم د رسول الله ﷺ مخالفت دے، بلكه آيت او حديث به په فهم د سلفو روانوي. لكه عام مبتدعين او مشركين د خپل بدعت او شرك

دپاره د آیت او حدیث نه دلیل نیسی حال دا چه په دغه آیت او حدیث کی د هغوی په بدعت او شرك باندے رد وی۔

ددے مثال : لکه یو تن د تحیة المسجد د فرضیت دپاره حدیث د بخاریؒ پیش کړی حال دا چه دے ته په امت کی هیڅ عالِم فرض نهٔ دی وئیلی لکه دا اتفاق حافظ ابن حجرؒ په ((فتح الباری)) کی نقل کړے۔ نو دے شخص د حدیث داسے فهم وکړو چه هیڅ صحابی او عالِم نهٔ دے کړے نو دهٔ د حدیث خلاف وکړو او په دین کی ئے غلو وکړه۔

۲– ځینی خلك ځان ته د جماعة المسلمین نوم کیږدی او بیا حدیث پیش کوی چه (تَلْزَمُ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِيْنَ وَإِمَامَهُمْ) یعنی جماعة المسلمین او د هغوی د امام سره یو ځای شه۔ نو دا معنیٰ په امت کی هیچا نهٔ ده کړے بلکه د سلفو په زمانه کی چه د جماعة المسلمین څه معنیٰ وه هغه به مراد وی، او په سلفو کی ددے دوه معانی مراد وے،

(۱) یو : سیدنا ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی: [اَلْجَمَاعَةُ مَا وَافَقَ الْحَقَّ وَإِنْ كُنْتَ وَحْدَكَ] جماعة د حق تابعداریٔ او صحیح عقیدے ته وائی۔ (شرح اصول الاعتقاد (۱/۱۰۸/۱۶۹) تاریخ دمشق لابن عساکر (۱۳/۳۲۲و ۳۲۳) والبیهقی والوجیز واغاثة اللهفان واسناده صحیح)

او په بل روایت د ابن عساکرؒ کی په حسن سند سره داسے الفاظ دی : [وَيْحَكَ إِنَّ جُمْهُوْرَ النَّاسِ فَارَقُوْا الْجَمَاعَةَ، إِنَّ الْجَمَاعَةَ مَا وَافَقَ طَاعَةَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ] جماعت هغے ته وائی چه د الله د طاعت موافق وی۔ (السنة النبوية مکانتها واثرها لاحمد بن عبد الكريم نجيب)۔

دویم جماعة المسلمین خلافت ته وائی لکه دغه حدیث کی (وَإِمَامَهُمْ) ورسره ذکر دے او خلافت ډیر شرطونه لری۔ لکه ددے تفصیل د سورة آلعمران آیت (۱۰۳) لاندے وګوره۔

او اکثر مقلدین د خپلو امامانو د تائید دپاره ضعیف روایتونه پیش کوی، یا د صحیح حدیثونو غلطے معانی کوی، او دهٔ دا ګمان وی چه مونږ ګنے د دین لوی خدمت وکړو۔

۳– شامیؒ لیکی : په احادیثو کی په مانځه کی د لاسونو کیخودل او تړل (یعنی رانیول) دواړه راغلی دی، نو داسے وکړه چه په دوه ګوتو باندے مروند ونیسه او درے ګوتے ورله په مینځ کی خورے کړه نو په دواړو حدیثونو به عمل وشی حال دا چه دا په یو حدیث هم عمل نهٔ دے بلکه یو بل دین جوړ شو ځکه چه صحابه کرامؓ نه دا طریقه نقل نهٔ ده۔

لنډه دا چه اُوس زمانه کی د آیت یا حدیث نه چا یوه مسئله راویستله چه هغه صحابه کرامؓ کی هیچا نهٔ وه وئیلے نو دا به خطاء وی۔ لکه د امام احمدؒ ددے وینا : [إِيَّاكَ أَنْ تَتَكَلَّمَ فِيْ مَسْئَلَةٍ لَيْسَ لَكَ فِيْهَا إِمَامٌ] (اعلام الموقعین ۱/۲۹/۳۲) مجلة البحوث الاسلامیة ۱۷/۱۴۰)

په یوه مسئله کې خبرې مهٔ کوه چه ستا دپاره په هغې کې امام نهٔ وی) مطلب هم دا دے، چه داسے مسئله د ځان نه مهٔ ایجاد کوه چه په سلفو کې هیچا نهٔ وی وئیلی۔

او ددے آیت معنیٰ په هغه حدیث کې هم راغلے ده چه رسول الله ﷺ فرمائی : فرقه ناجیه هغه ده [مَا أَنَا عَلَيْهِ وَأَصْحَابِيْ] چه په هغه دین روان وی چه زهٔ او زما صحابه کرام برے روان دی۔ وَأَصْحَابِيْ لفظ ورسره ځکه وائی چه دین به د سلفو په فهم باندے اخستے شی۔ (الترمذی : ۲٦٤١ باسناد حسن)

او دا آیت پدے خبره باندے هم دلیل دے چه د مسلمانانو د اجماع مخالفت هم کبیره گناه ده، او دا چه اجماع د قرآن او سنت په شان دلیل دے۔

امام شافعی رحمه الله ددے آیت نه د اجماع په حجت کیدو باندے دلیل نیولے دے۔

او وئیلی ئے دی چه چونکه د مؤمنانو د طریقے د مخالفت انجام جهنم خودلے شویدے پدے وجه دا آیت دلیل دے ددے خبرے چه د هغوی اتباع کول فرض دی۔

بله فائده دا راووتله چه فهم د کتاب او سنت به هله مقبول وی چه د سلفو صالحینو د فهم موافق وکرے شی نهٔ د اهواء او آراؤ موافق۔

**فائده عجیبه :** علامه قاسمیؒ په خپل تفسیر کې د شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله نه نقل کوی چه هغه په کتاب ((الفرقان بین اولیاء الرحمن واولیاء الشیطان)) کې یوه ناشنا مقاله لیکلے ده چه حاصل ئے دا دے چه په قرآن او سنت کې د دین تمام کارونه بیان شویدی، اصول وی او که فروع، او د هغے د اثبات دپاره ئے ډیر آیتونه پیش کړیدی لکه سورة مائده (۳)، سورة یوسف (۱۱۱)، سورة نحل (۸۹)، سورة توبه (۱۱۵)، سورة انعام (۱۱۹) او سورة نساء (۵۹) آیتونه شول،

او د امت اجماع پخپله حق دے، ځکه چه امت په گمراهئ باندے نشی جمع کیدے۔ هغوی د قرآن کریم د گنړو آیتونو نه دلیل نیولے دے او په آخر کې ئے وئیلی دی چه امام شافعیؒ ددے آیت نه د اجماع په حجت کیدو باندے دلیل نیولے دے۔

دے نه روستو ئے وئیلی دی چه دا آیت دلالت کوی چه د مؤمنانو د لارے اتباع نهٔ کونکے د وعید مستحق دے لکه چه د رسول الله ﷺ مخالفت کونکے د وعید مستحق دے، ورنه ددے صفت جدا بیانولو نه به هیڅ فائده نهٔ وی۔

بیا لیکی چه هیڅ یوه مسئله هم داسے نهٔ موندے کیږی چه په هغې باندے د علماؤ اجماع شوی وی او د هغې دپاره د سنت نه دلیل موجود نهٔ وی، لیکن کله هغه دلیل بعض

خلقو تـه معلوم نهٔ وي، او د علماؤ د اجماع علم ورته وي نو ددے نه دلیل نیسي او کله په قیاس سره دلیل نیسي، او کله په یوه مسئله کې خاص نص موجود وي، او مجتهد په هغې کې په عام نص باندے دلیل نیسي، او ډیر علماء داسے دي چه هغوی په یوه مسئله کې په قیاس باندے دلیل نیسي او په هغې کې اجماع هم وي یا بل نص هم وي"

لیکن د اجماع او هغه نص علم ورته نهٔ وي، نو ددهٔ قیلس، د اجماع یلد نص سره برابر شي لکه د ابن مسعودٌ اجتهادي فتویٰ په باره د مفوضه کې چه کله ئے خاوند وفات شي چه د هغې دپاره به مهر مثل وي، دا د نص سره برابر شو چه رسول الله ﷺ د بروَع بنت واشق دپاره مهر مثل مقرر کړے وو۔

بیا ئے بعض هغه مسائل ذکر کړیدي چه په هغې کې څینې علماؤ دا دعوه کړیده چه دا په اجماع یا قیاس سره ثابت دي او نص پکې نشته نو د هغې دپاره ئے نصوص ذکر کړیدي لکه مسئله د مضاربه وغیره شو۔ او کله په یوه مسئله کې خاص نص موجود وي،

لیکن د عالِم علم هغې تـه نـهٔ وي رسیدلے لکه تیمم د جنب دپاره شو او کله د یو نص دلالت خفي وي نو د ډیرو علماؤ ذهن هغې ته ونهٔ رسیږي او د څینو ورته ورسیږي نو اختلاف پیدا شي۔ بیا فرمائي:

[فَمَنِ ادَّعَى اِجْمَاعَهُمْ عَلَى تَرْكِ الْعَمَلِ بِالرَّأْيِ وَالْقِيَاسِ مُطْلَقًا فَقَدْ غَلِطَ وَمَنِ ادَّعَى اَنَّ مِنَ الْمَسَائِلِ مَا لَمْ يَتَكَلَّمْ اَحَدٌ مِنْهُمْ اِلَّا بِالرَّأْيِ وَالْقِيَاسِ فَقَدْ غَلِطَ بَلْ كَانَ كُلٌّ مِنْهُمْ يَتَكَلَّمُ بِحَسْبِ مَا عِنْدَهُ مِنَ الْعِلْمِ فَمَنْ رَأَى دَلَالَةَ الْكِتَابِ ذَكَرَهَا وَمَنْ رَأَى دَلَالَةَ الْمِيزَانِ ذَكَرَهَا وَالدَّلَائِلُ الصَّحِيحَةُ لَا تَتَنَاقَضُ لٰكِنْ قَدْ يَخْفَى وَجْهُ اِتِّفَاقِهِمَا اَوْ ضُعْفُ اَحَدِهِمَا عَلَى بَعْضِ الْعُلَمَاءِ]

نو څوك چه دا دعوه کوي چه د صحابه کرامو مطلقاً په رأی او قیاس باندے د عمل پریخودو اجماع ده نو هم غلط وائي او څوك چه دا دعوه کوي چه ډیر مسائل داسے شته چه هغه صرف په رأی او قیاس سره ثابت دي نو دا هم غلطه ده بلکه هر یو عالم د خپل علم مطابق خبره کړیده نو چا چه د کتاب الله نص موندلے دے هغه ئے ذکر کړیدے او چا چه د عقل نه دلیل موندلے دے هغه ئے ذکر کړیدے او صحیح دلیلونه د یو بل ضد نهٔ ګرځي لیکن کله په څینو علماؤ باندے د هغې د تطبیق وجه یا د هغې د ضعف وجه پټه پاتې شي) آه۔ (محاسن التاویل ۲/۴۸۲ - ۴۹۰)

د امت د اجماع مطلب دا دے چه په یوه مسئله کې د امت د تمامو علماؤ او فقهاؤ اتفاق وي یا په یوه مسئله باندے د صحابه کرامو اتفاق وي، دا دواړه صورتونه د امت د اجماع دي

او د دواړو نه انکار یا ددې نه دیو نه انکار کفر دے، بیا د صحابه کرامؓ اتفاق خو په ډیرو مسئلو کې موجودیږي یعني د اجماع دا صورت خو ملاویږي لیکن د صحابه کرامؓ د اجماع نه روستو په یوه مسئله کې د ټول امت د اجماع او د اتفاق دعوے خو په ډیرو مسائلو کې کړے شویدي لیکن په حقیقت کې داسے اجماعي مسائل ډیر کم دي چه په هغے کې واقعي د امت د تمامو علماؤ او فقهاؤ اتفاق وي، بیا هم که کوم داسے مسائل وي نو د هغے نه انکار به هم د صحابه کرامؓ د اجماع نه د انکار په شان کفر وي ځکه چه په حدیث کې دي : [إِنَّ اللَّهَ لَا يَجْمَعُ أُمَّتِي عَلَى ضَلَالَةٍ وَيَدُ اللَّهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ]

یقیناً الله تعالیٰ زما امت په ګمراهئ باندے نۀ راجمع کوي او په جماعت باندے د الله لاس دے۔ (صحیح الترمذی للالبانی رقم: ۱۱۷۵۹) وصحیح الجامع رقم : ۱۸۴۸)۔ (القاسمی واحسن البیان)

نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى : ددے مطلب دا دے چه کله یو حیوان سرې په لاس کې نیولے وي نو هغه به د هلاکت نه بچ کیږي او د صحیح ګیاه ځای ته به رسیږي او کله چه یو حیوان باندے سرے پرے ورواړوي نو هغه به د هلاکت کندو ته هم پریوزي، پردئ ګیاه به خوري او په خپله طبع به صحیح ګیاه ته هم نشي رسیدلے، نو دغه شان کله چه بنده خپل ځان الله تعالیٰ ته حواله کړي او د هغه په حکمونو کې ځان بند کړي نو مقصد ته به ورسیږي، او کله چه بنده د الله حکمونه پریدي، نو الله به پرے پرے ورواړوي نو چه په کومه کنده کې پریوتو الله به پرے پرواه نۀ کوي یعني الله به ورته هدایت نه کوي۔ یعني په دنیا کې ئے چه کوم طرف ځان دپاره خوښ کړیدے همغه طرف ته به ئے ورتاؤ کړو او هغه به ورته آسان کړو لکه بل آیت کې الله فرمائي : ﴿فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَىٰ﴾ (اللیل : ۱۰)

(زر دے چه آسان به کړو دۀ ته لاره د ګرانوالي)۔ یعني د ګناه کارونه به ورته آسان شي، او په هغے کې به ئے شوق او ذوق پیدا شي، او په نتیجه کې به د مشکلاتو سره مخامخ شي لکه همدا معنیٰ د شان نزول د جنایتکار د عاقبت نه ډیره ښه معلومیږي چه هغه کله رسوا شو نو لاړو مکے ته وتښتیدو او مشرکانو ته ئے پناه ویوړه او د بتانو عبادت ئے شروع کړو او په غلاګانو سر شو۔ (البغوی)

ځینې مفسرین ددے داسے معنیٰ کوي چه په آخرت کې به ئے هغه طرف ته ورتاو کړو کوم طرف ته چه په دنیا کې ورتاو شوے وو۔ (بغوی ۱/ ۲۸۰) واللباب (۷/ ۱۵)

مجاهدؒ معنیٰ کوي : أَيْ نَتْرُكُهُ وَمَا يَعْبُدُ) دے به پریدو چه د هر چا عبادت چه کوي یعني

خپل اختیار ته به ئے پریدو چه کومه لاره ځان دپاره غوره کوی او مونږ به ورته د هدایت توفیق نهٔ ورکوو. (معانی القرآن للنحاسؒ، والقرطبیؒ)

**فائده** : معلومه شوه چه سنت نبوی د انسان مهار دے او چا چه سنت نبوی پرېښودو هغه به شتربې مهارشی نو اتباع د سنت د هلاکت نه د بچ کیدو مهمه ذریعه ده او عصمت دے.

بله **فائده** : پدے آیت کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم شان او عظمت پروت دے، ځکه چه الله تعالیٰ د هغوی عمل مجموعی طور سره په امت باندے حجت گرځولے دے.

وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ : یعنی په آخرت کښې به ئے جهنم ته داخل کړو.

| |
|---|
| إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ |
| یقیناً الله نهٔ بخی دا چه شرك وکړے شی د هغه سره او بخی نور هغه گناهونه چه کم دی |
| ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ ضَلَّ |
| د هغے نه چا لره چه وغواړی او چا چه شرك وکړو د الله سره نو یقیناً دا گمراه شو |
| ضَلٰلًا بَعِيْدًا ﴿١١٦﴾ |
| په گمراهئ لرے سره د حق نه. |

**تفسیر** : مناسبت : مخکښې د رسول الله ﷺ مشاقه او اتباع د غیر سبیل المؤمنین بیان شو نو اُوس د هغے لوی مصداق بیانوی چه هغه شرك دے.

ددے آیت کریمه تفسیر په (٤٨) آیت کښې تیر شویدے. تکرار سره مقصد یا خو د شرك د خطرناکئ زیات تاکید دے. یا د طعمه د قصے تکمیل دے چه هغه مرتد شو او د مشرکانو سره یو ځای شو او په حالت د شرك کښې مړ شو. نو الله تعالیٰ ددے مناسبت د وجه نه دلته د شرك بدی بیانوی.

یا تکرار پدے طریقه ختمیږی چه د آیت (٤٨) نه مخکښې او روستو آیتونه د اهل کتابو په باره کښې نازل شوی وو، او د هغوی عقیده ئے رد کړیده چه د خپلو ځانونو تزکیه مهٔ بیانوئ، تاسو کښې شرك موجود دے او هغه الله تعالیٰ نهٔ معاف کوی.

او دلته تول بحث د مرتدینو په باره کښې دے نو پدے وجه فرمائی چه الله تعالیٰ لکه ځنګه چه اصلی کافرانو ته بخنه نهٔ کوی لکه یهود او نصاریٰ وغیره شو نو دغه شان هغه خلك

هم نهٔ ښتي چه د اسلام نه واوړي او د کافرانو د ډلې سره ملګرې شي، پدې وجه ئې هلته د آيت په تتمه کې ﴿فَقَدِ افْتَرٰى اِثْمًا عَظِيْمًا﴾ وئيلي وو ځکه چه د خپل ځان تزکيه بيانول او الله دپاره اولاد ثابتول دروغ دي. او دلته ئې ﴿فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا بَعِيْدًا﴾ وئيلي دي يعنې څوك چه د اسلام لاره پريږدي، نو خپل ځان ئې د ډيرو لوي ګمراهۍ نه ګوزار کړو چه هيڅکله به سمه لاره مونده نکړي.

| |
|---|
| اِنْ يَّدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اِنٰثًا ۚ وَاِنْ يَّدْعُوْنَ اِلَّا شَيْطٰنًا مَّرِيْدًا ﴿۱۱۷﴾ |
| نهٔ رابلي دوی سوئ د الله تعالىٰ نه مګر زنانه او نهٔ رابلي دوی مګر شيطان سرکش لره |
| لَّعَنَهُ اللّٰهُ ۘ وَقَالَ لَاَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيْبًا |
| لعنت کړے په دهٔ بانديے الله تعالىٰ اودهٔ وئيلي دي خامخا وبه نيسم زهٔ د بندګانو ستا نه څه حصه |
| مَّفْرُوْضًا ﴿۱۱۸﴾ وَّلَاُضِلَّنَّهُمْ وَلَاُمَنِّيَنَّهُمْ وَ |
| مقرر کړے شوے او خامخا ګمراه به کړم دوی لره او خامخا اميدونه به ورکوم دوی ته او |
| لَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ اٰذَانَ الْاَنْعَامِ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ |
| خامخا حکم به کوم دوی ته نو پريکوی به غوږونه د چارپيانو او حکم به کوم دوی ته |
| فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ يَّتَّخِذِ الشَّيْطٰنَ وَلِيًّا مِّنْ دُوْنِ |
| نو بدلوی به پيدائش د الله تعالىٰ او هغه څوك چه ونيسي شيطان لره دوست سوئ |
| اللّٰهِ فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِيْنًا ﴿۱۱۹﴾ |
| د الله تعالىٰ نه نو يقيناً دهٔ تاوان وکړو په تاوان ښکاره سره. |

**تفسير** : پدے آيتونو کې د شرك انتهائي درجه پليتي، او د مشرکانو انتهائي درجه خسيس والے او بې وقوفتيا بيان شويده چه دوی د داسے بتانو عبادت کوی چه دوی هغوی ته د ښځو نومونه ورکړيدي (منات، عزیٰ، لات او دغه شان نور بتان چه دوی به د هغے عبادت کولو د هغوی نومونه د ښځو په شان وو) يعنې يو طرف ته د تعظيم دپاره د بتانو عبادت کوی، او بل طرفته ئې د ښځو په نومونو سره يادوی چه دوی ته ډير سپك مخلوق ښکاری تردے چه په ژوندی خخولو بانديے ئې هم صرفه نهٔ کوی او د ابليس عبادت کوی

یعنی د هغه اطاعت کوی نو گویا که د هغه عبادت کوی۔ (زاد المسیر ۱۹۳/۲)

ان یدعون : د دعا نه مراد عبادت کول دی، لیکن په تعبیر د دعا سره ئے راوړو ځکه چه د مشرکانو شرك اکثر د دعا په صورت کی وی لکه وائی اے فلانی بابا راورسیږه او رامدد شه !۔

إِلَّا إِنَاثًا : ۱- د ابن عباسؓ او حسن بصریؒ او د ضحاكؒ د تفسیر مطابق د اناث نه مراد اموات (مړی) او بی روحه څیزونه دی چه دوی به ورته د ښځو په شان نو مونه ورکول نو ځکه ئے ورته اناث وئیلی دی۔

۲- بله دا چه مشرکان اکثر په قبرونو باندے د زنانو کپړے او جامے اچوی، او بت پرستان اکثر بتان د ښځو په شان مُجسَمو سره جوړ کړی وی، او د ښځو په شان ئے ښائسته کوی نو ځکه ئے ورته اناث وئیلی دی چه دوی ورسره د زنانو په شان معامله کوی۔

۳- یا تشبیه په کمزورتیا کی ده لکه زنانه چه څنګه کمزوری دی، نو دغه شان د دوی دروغژن معبودان هم کمزوری دی چه د دوی هیڅ مدد نشی کولے۔

٤- یا د اناث نه مراد ملائك دی چه د عربو مشرکانو به د الله لونړه ګنړلے او د هغوی عبادت به ئے کولو۔ لکه دا ابن جریرؒ د ضحاكؒ نه نقل کړیدی۔

وان یدعون الا شیطانا مریدا : د بتانو، ملائکو او د نورو هستیانو عبادت په اصل کی د شیطان عبادت دے ځکه چه دا کارونه د هغه په وسوسه کیږی او شیطان انسان لره د الله د در نه اړوی او په نورو درونو ورله سر کوی۔

## سوال وجواب

مشرکانو خو شیطان ته رامدد شه نهٔ دی وئیلی او نهٔ ئے د شیطان عبادت کړیدے نو ددے جملے څه مطلب دے؟

مفسرینو ددے ډیر جوابونه ذکر کړیدی (۱) یو دا چه دے باطلو معبودانو ته رامدد شه وئیل داسے دی لکه سرکش شیطان ته رامدد شه وئیل، ځکه چه دا کارونه د شیطان په وسوسه کیږی او هغه پرے رضا کیږی۔ (۲) د دعاء نه مراد دلته اطاعت دے او اطاعت هم عبادت دے نو معنیٰ دا ده چه دوی په شرك کولو کی اطاعت نهٔ کوی مګر د شیطان سرکش اطاعت کوی چه هغه جنی یا انسی شیطان دے۔

(۳) عبد بن حُمَید د ابن عباسؓ نه او ابن ابی حاتمؒ د سفیانؒ نه نقل کړیدی چه په هر صنم

(بت) كې شيطان جنې داخليږي او مشركانو ته ښكاره كيږي (يا ورسره خبرې كوي) او هغوي ته د شرك دعوت وركوي چه زما خوا له راځئ، زۀ به ستاسو حاجتونه پوره كوم لكه د مشركانو نه دا خبرې ډيرې مشهورې دي چه فلانى بابا له تلې وم او هلته راته آواز وشو، يا را ته بابا لاس راوښكلو چه ستا حاجتونه پوره شو، او ما له نذر او منښته كوه، نو دا په اصل كې شيطان وي لكه ډيرو صوفياؤ ته به د سپينو جامو والا نيك انسان په شكل راغلو، او كله به ئې دعوه وكړه چه زۀ رسول الله (ﷺ) يم لكه د بعض ديوبنديانو كتابونه پدې ګواه دي اوګوره تذكرة الرشيد وغيره) او كله به ئې ورته رڼا راښكاره كړه او ورته به ئې وويل چه ما ستا عبادت قبول كړو او د اولياؤ په ديوان كې مې وليكلې، دا ټول شيطانى خرافات دي چه د انسان د ګمراه كولو كوشش كوي.

## د شيطان د عابدانو تاريخ

(۳) جواب : او دا هم ممكن ده بلكه واقع ده چه په امت كې ډير داسې خلك شته چه حقيقةً د شيطان عبادت كوي او هغه ته آوازونه كوي، او د هغه په نوم نذر او منښتې او ذبحې كوي لكه د انټرنيټ بعض ويډيوګانې پدې باندې ګواه دي.

((مؤرخينو د شيطان د عابدانو تاريخ كې اختلاف كړيدې، ځينې وائي چه دا په قرن اول ميلادي كې غنوصيينو كې پيدا شويدې چه دوي به دا فكر كولو چه شيطان (العياذ بالله) د الله سره په بادشاهئ كې برابر دې، بيا دې فكر ترقي وكړه او بولصيينو ته رانقل شو چه دوي به دا عقيده ساتله (العياذ بالله) چه شيطان ددې كائناتو خالق دې او الله تعالىٰ د هغه نه ددې د اخستو قدرت نۀ دې لرلې، نو هركله چه دوي د هغه په بادشاهئ كې وسيږي نو د خپل خالق (ابليس) عبادت به هم كوي. ليكن حقيقت دا دې چه دا عبادت د ميلاد نه مخكې نه هم موجود وو لكه قرآن كريم كې د ابراهيم (عليه السلام) په قصه كې راغلى دى ﴿يَا أَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطَانَ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ عَصِيًّا﴾ مريم : ٤٤)

او بيا دا عبادت د صلاح الدين ايوبيؒ په زمانه كې هم په (فُرسَانُ الْهَيْكَل) والو كې شروع شوې وو په سنه (١٢٩١ هـ) كې چه د دوي مشر (جاك دى مولى) او د هغه اتباعو د تورې پيشو په شكل د شيطان صورت جوړ كړې وو او دوي كې څه اشارات او شيطانى نښې مقرر وې لكه پنځه ګوډونو والا ستورې چه په مينځ كې به ئې د ګډ سر وو.

او دا عبادت تر ډيرې اوږدې زمانې پورې پټ وو ليكن پدې نوي دَور كې بيرته قوت

مونده کوی تردے چه د شیطان د عبادت کونکو تنظیمونه جوړ شویدی لکه په برطانیا کی (ONA) او په ایرلینډ کی د (OSV) په نوم او په امریکا کی د (معبد ست او کنیسة الشیطان) په نوم او دا ډیر لوی او خطرناك تنظیمونه دی او دا یو یهودی ساحر او کاهن (انطون لاوی) جوړ کریدی په سنه (۱۹۶۶) کی او ددے تنظیم لوی ارکان (۵۰) دی او د هغے په امریکا او یورپ او افریقا کی شاخونه دی چه د هغوی بعض نخے (۶۶۶) دی۔

## د شیطان عابدان څه ته دعوت ورکوی؟

نو د دوی دعوت دا دے چه قوت مضبوطول او دینونو چه کوم څیزونه حرام ګرځولی دی د هغے تهولو نه مزے اخستل، او د جادوګرو او د جادو نه مددونه اخستل او دوی دا عقیده ساتی چه شیطان به خپلو تابعدارو ته پوره سرور (خوشحالی) او سعادت (نیك بختی) ورکوی او د دنیا د څیزونو مالك به ئے جوړوی سره د تهولو خوندونو نه۔ ((ملف کامل عن عباد الشیطان، انټر نیټ))

مَّرِيْدًا : د ((مَرداء)) نه دے چه هغه شګو ته وائی چه څه ګیاه نهٔ زرغونوی او اَمْرَد هغه ونے ته وائی چه پانړے نهٔ لری، او دارنګه هغه هلك ته وائی چه ږیره ئے نهٔ وی راغلی او د ویښتانو نه بربنډ وی (مفردات راغب ص: ٤٨٤) نو شیطان ته ځکه ((مَرِيْد)) وائی چه هغه د هر خیر نه خالی دے، او د الله د اطاعت او د رحمت نه جدا دے، او د الله په غضب باندے ککړ دے (طبریؔ)۔ او ځوك چه دغه شان وی نو هغه ته سرکش او نافرمان وئیلے شی چه ددے نه مراد ابلیس او د هغه تابعدار دی۔

## د شیطان برخه څه شے دے؟

لَّعَنَهُ اللَّهُ : ١ – یعنی کله چه الله تعالیٰ په ابلیس باندے لعنت اُوکړو نو هغه اُووئیل چه زهٔ به ستا د بندګانو د عبادت نه څه حصه ضرور اخلم، یعنی هغوی به د غیر الله عبادت کوی، یا به په عبادت کی ریاکاری کوی، یا به عبادت کولو سره په هغے باندے فخر کوی، یا خو به عبادت کوی لیکن په خلقو باندے به ظلم کولو سره هغه بربادوی، یا به د عبادت نه روستو کفر کوی۔ ٢ – یا دا چه ستا د بندګانو نه به څه حصه خلك زما تابع کیږی او زه به ئے په خپلو جالونو کی ګیروم۔

٣ – یا هغه خلك هم مراد کیدے شی چه شیطان ئے په خپلو وسوسو سره ګمراه کوی او

ځان سره ئې جهنم ته داخلوی لکه هغه په يو اُوږد حديث کې راغلي دی چه الله به آدم علیه السلام ته د قیامت په ورځ وفرمائي : [أَخْرِجْ مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَمِائَةٌ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ]

ته د هر زرو تنو نه نهه سوه نهه نوی تنه راوباسه۔ نو دغه (۹۹۹) کسان به د شیطان تولگے وی۔ او پدے کې اشاره ده چه څوك د الله او د رسول مخالفت کوی مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى نو دا د شیطان د برخے نه حساب دے۔ (طبریؒ)

٤- یا د مقرر شوے حصے نه مراد هغه نذرونه او منبتتي دی چه مشرکان ئے د خپلو بتانو او په قبرونو کې د دفن شوو خلکو په نوم باندے وباسي۔

٥- ځینې وائي چه ددے نه مراد په زړه کې يوه حصه ده چه شيطان هلته راځي کيني او وسوسے اچوی لکه دا خبره د حديث نه ثابته ده۔

وَلَأُضِلَّنَّهُمْ : أَيْ لَأَجْتَهِدَنَّ فِي إِضْلَالِهِمْ۔ یعنی زه به د دوی په گمراه کولو کې پوره کوشش کوم۔ شیطان گمراه کول نشي کولے لیکن خپل کوشش کوی وسوسے اچوی۔

اضلال نه مراد دلته د صحیح عقائدو نه اړول دی، یعنی د هغه دلائلو نه به ئے مشغوله او غافل کړم چه هغه بنده حق او هدایت ته رسوی۔ (تفسیر المنار)

## د شیطان امیدونه ورکول څه دی؟

وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ : دا کلمه د تمنی نه اخستلے شویده او تمنی دیته وائي چه سړے په زړه کې د يو بد کار اټکل وکړی او په هغے کې تصور کوی نو اکثر تمنیات د هغه تصور نه عبارت دے چه حقیقت نهٔ لری (مفردات راغب) دلته ئے مصداقونه دا دی :

١- طُوْلُ الْأَمَلِ۔ شیطان اُوږده امیدونه ورکوی چه وخت لا ډیر دے۔

٢- تَعْوِيْقٌ عَنِ التَّوْبَةِ : د توبې نه منع کول چه فی الحال دِے څوانی ده، آخره کې به توبه وباسے۔ (رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ)

٣- مَعَ الْمَعَاصِيْ يَظُنُّوْنَ الْخَيْرَ۔ گناهونه به پرے کوی او په ځانونو به د خیر او غوره والی گمانونه کوی لکه یهودیانو به شرك کولو او انبياء علیهم السلام به ئے وژل او بیا به ئے د ځان دپاره د جنت دعوے هم کولے۔

٤- لَا بَعْثَ وَلَا جَنَّةَ وَلَا نَارَ۔ دا خیالونه به ور اچوم چه نهٔ دوباره ژوند شته او نهٔ جنت او جهنم۔ (ابن عباسؓ- زاد المسير ٢/١١٠)

٥- إِيْهَامُهُمْ سَيَنَالُوْنَ مِنَ الْآخِرَةِ حَظًّا۔ (زجاج- زاد المسير) دا گمان چه دوی ته به په

آخرت کی لویه برخه ملاویږی۔

لنډه دا چه د دوی په زړونو کی به داسے تمنی گانے پیدا کوم چه هغه به ئے ستا د طاعت او د توحید نه زما طاعت او شرك ته اړوی۔ (طبریؒ)

او شیطان هر چا ته د هغه د حال او قرائنو مطابق تمناگانی ورکوی ځکه چه شیطان په گمراه کولو کی ډیر ماهر دے، او د انسان کمزورے نقطے ډیرے ښے پیژنی، کله د دنیا د څیزونو او سامانونو سره ورله مینه زیاتوی، کله د مشرئ او عهدے او کرسئ حاصلولو ارمانونو کی لامبو وهی، او کله په مال باندے حارص شی چه بیا زکاة ورکولو ته هم تیار نهٔ وی، او د ځان مالداره کولو ارمانونو دیته رسولے وی چه په غلا او غصب او هر قسم خیانت باندے هم صرفه نهٔ کوی۔

خلاصه دا چه دے کی هر هغه باطل امیدونه داخل دی چه د شیطان د وسوسو نه راپیدا کیږی او د انسان د گمراهئ سبب گرځی۔

**وَلَآمُرَنَّهُمْ** : اَیْ بِطَرِیْقِ الْوَسْوَسَةِ۔ او دوی ته به حکم کوم په طریقه د وسوسه سره۔

**فَلَيُبَتِّكُنَّ آذَانَ الْأَنْعَامِ** : یعنی پریکوی به غوږونه د چارپیانو (دپاره د نذر د غیر الله)۔

ددے نه مراد د بحیره او سائبه حیواناتو نښے دی، مشرکانو به دا د خپلو بتانو په نوم باندے وقف کړے او د شناخت دپاره به ئے د هغوی غوږونه پریکړل۔ (قتادهؒ والسُدیؒ- ابن کثیرؒ)

## د خلق الله د تغییر مطلبونه

**فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللَّهِ** : د خلق یوه معنیٰ د ابن عباس رضی الله عنهما او حسنؒ او مجاهدؒ او سعید بن المسیبؒ او ضحاكؒ نه نقل ده چه د الله دین ته وائی لکه آیت کی دی: ﴿لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ﴾ (الروم: ۳۰) یعنی د الله دین اسلام به بدلوی۔ (بغویؒ)

۲- خلق کله په معنیٰ د فطرت سره وی (مجاهدؒ) لکه حدیث کی دی: [كُلُّ مَوْلُوْدٍ يُوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ وَيُنَصِّرَانِهِ وَيُمَجِّسَانِهِ] (بخاری: ۱۳۸۵ مسلم: ۲۸۷۸) هر بچے په فطرت باندے پیدا کیږی بیا روستو د هغه مور او پلار هغه لره یهودی یا نصرانی یا مجوسی جوړ کړی۔ یعنی شیطان انسان د ایمان نه محرومول۔

## د خلق الله د تغییر نور صورتونه او شکلونه دا دی

۳- لکه د حیواناتو غوږونه وغیره پریکول لکه مخکی ذکر شو،

٤– بِالتَّحْلِيْلِ وَالتَّحْرِيْمِ ـ د شيطان په امر باندے به حلال حرام وګنړي او حرامو ته به حلال روائي۔

٥– د انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دے چه ددے تغير نه مراد د نارينه ؤ خصي كول دي۔

٦– الله تعالیٰ نمر، سپوږمۍ، او كاڼړي او اُور وغيره د مختلفو مقاصدو دپاره پيدا كړيدي (چه خلك ترے فائدے واخلي) ليكن مشركانو د هغوي د پيدائش مقصد بدل كړو او هغوي نه ئے معبودان جوړ كړل۔

٧– پدے تغيير كي د سرو نس بندي كول او دغه شان د زنانو د آپريشن كولو سره د هغوي د اولاد پيدا كيدو صلاحيت نه محرومول، د ميك اپ په نوم باندے د وروځو ويښته پريكول، او خپل شكل مسخ كول او وشم (يعني خالونه لګول) هم داخليږي۔

(ابن مسعودؓ – زاد)

ځيني مفسرينو نور جرمونه هم شمارلي دي لكه زنا، لواطت، زنانه ځان نه نارينه جوړ كړي او سړے او هلك ځان نه جينئ جوړه كړي، ګيره خرئيل، يو مجرم ته داسے سزا وركول چه مُثله ئے كړي (غوږونه او پوزه او لاسونه او خپے ترے پريكړي)، يا ورله (شهواني) طاقتونه ختم كړي، عقل او دماغ ورله خراب كړي لكه ظالمان بادشاهان دا كار كوي چه دا ټول شيطاني كارونه دي، او ددے نه بچ كيدل ضروري دي۔ (الطبري و زاد المسير ٢/١٣٥ ومعالم التنزيل للبغوي ٢/٢٨٩) وابن كثير والمنار ٥/٣٤٨ وغيرهم)

دارنګه سپينے ګيرے او سر لره تك تور رنګ وركول چه بل رنګ ورسره ملاؤ نۀ وي، او خپل نسب نفي كول چه د كوم نسب نه وي هغے ته نسبت نۀ كوي۔

نو پدے كي هر هغه قول يا فعل شامليږي چه شريعت د هغے اجازه نۀ وي وركړي۔ نو د انسان خصي كولو اجازه شريعت نۀ ده وركړے۔

قرطبيؒ ليكلي دي : پدے باره كي د هيڅ اختلاف نشته چه د انسان خصي كول حرام دي او داسے كول د الله د خِلقت بدلول دي۔

البته د څاروو خصي كول ددے دپاره چه د هغے فائده زياته شي، يا د هغوي غوښه مزيداره شي، يا بل يو صحيح مقصد وي نو د بعض علماؤ په نيز جائز دي۔ لكه رسول الله ﷺ په هغه دوه ګډانو باندے قرباني كړے وه چه دواړه خصي كړے شوي وو۔ كه دا جائز نۀ وے نو رسول الله ﷺ به پرے قرباني نۀ كولے۔ ليكن راجح دا ده چه دا هم جائز نۀ دي ځكه چه رسول الله ﷺ منع كړيده۔ (نَهٰى عَنْ خِصَاءِ الْبَهَائِمِ) رسول الله ﷺ د حيواناتو د

خصی کولو نه منع فرمایلے دہ۔ (صحیح الجامع: ۶۹۶۰) او دغه گډان رسول الله ﷺ نهٔ وو خصی کړی بلکه د دغه حدیث نه صرف دا معلومیږی چه په خصی گډانو هم قربانی کیږی اگرکه په بنده به ئے په خصی کولو گناهگار وی۔

د خالونو نه مراد هغه خالونه دی چه په غوږنه کی ځای ونیسی او د بدن جزء جوړ شی لکه دا کار پخوا ډیر وو اُوس کم شویدے، او د زینت دپاره په تندی باندے عارضی ټاکے زنانه لگوی دا منع نهٔ دے۔ دارنگه د زنانه لاسونه سرهٔ کول او د سرو کیره سرهٔ کول پکی داخل نهٔ دی۔

حافظ سیوطیؒ په «الاکلیل» کی لیکلی دی چه دا آیت د خصی کولو، د داغلو، زیاتی ویښتو لگولو، د غاښونو په مینځ کی جدائی پیدا کولو او د مخ نه د ویښتو د ویستلو په حرمت باندے دلیل دے۔

بیضاویؒ لیکلی دی چه د «خلق الله» نه مراد د انسان مخ او صورت او صفت دے۔ او د آزاد کړی اُوښ سترگه ویستل، د غلامانو خصی کول، داغل او خالونه لگول او اننگو باندے د ډول نخے لگول، لواطت، سُحاق (د دوه ښځو خپل مینځ کی جنسی خواهش پوره کول) د نمر او سپوږمئ عبادت، په اسلام کی تبدیلی راوستل، او اندامونه په غیر مفید کارونو کی استعمالول چه په هغے سره انسان ته هیڅ فائده حاصله نهٔ شی، دا ټول صورتونه ددے آیت په ضمن کی راځی۔

شوکانیؒ لیکلی چه د علماؤ یوے ډلے د حیواناتو خصی کولو ته پدے غرض جائز وئیلی دی چه هغه چاق شی او د هغوی غوښه زیاته شی۔ بعض علماؤ دا مکروه گنړلی دی۔ (او همدا حقه ده ځکه چه نهی پکی راغلے ده لکه مخکی ذکر شوه) البته د انسان خصی کول د تمامو علماؤ په نیز حرام دی۔

**فائده** : صاحب د المنار دے ته هم اشاره کړیده چه نفس الله تعالیٰ داسے پیدا کړیدے چه نظر او استدلال او طلب د حق ته مائل کیږی او یوتن ئے د نظر او استدلال او فکر نه اړوی او په باطل باندے ورله تربیت کوی او د عقل منفعت ختموی نو دا هم د شیطان یو جال دے۔

## سوال وجواب

شیطان څنگه قسمونه وکړل چه زهٔ به خامخا انسانان گمراه کوم حال دا چه په هغه وخت کی خو لا د آدم علیه السلام اولاد پیدا نهٔ وو؟ نو دهٔ ته د گمراهئ څنگه پته ولگیده؟

ددې جواب دا دې چه شيطان د گمراه کولو يقين نۀ لرلو بلکه په خپل گمان او اټکل باندې ئې دا قسمونه وکړل مگر دا گماني قسمونه په روستو زمانه کې په انسانانو باندې رشتيني شو لکه الله فرمائي: ﴿وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ﴾ (سبا: ۲۰)

يقيناً په دوی باندې ابليس خپل گمان رشتيني کړو۔

او دا گمان ئې يا پدې وجه کړې وو چه دۀ ته چه کله الله وفرمايل: ﴿لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ (ص: ۸۵) خامخا زۀ به ستا او ستا د تابعدارو نه جهنم ډکوم۔ نو دې پوهه شو چه زما تابعدار به پيدا کيږي۔ دويم دا چه کله دۀ آدم عليه السلام خطا کړو نو پوهه شو چه ددۀ بچي به ددۀ نه زيات ضعيف وي۔ څينې دلته معنیٰ کوي چه د گمراه کولو نه مراد دا دې چه زۀ به ورته په گمراهئ باندې تيزي ورکوم، او د دوی په گمراه کولو کې به کوشش کوم، نۀ دا چه هغه په غيبو پوهيدو۔ (ابن الانباريؒ – زاد المسير ۲/۱۱۰)

وَمَنْ يَتَّخِذِ الشَّيْطَانَ: پدې جمله کې د شيطان د تابعدارئ نه يره بيانول مقصد دې۔ د ولي نه مراد رب دې (مقاتلؒ) چه د هغه مطلقاً اتباع کوي۔ يا د ولي نه مراد دوست دې (ابو سليمان الدمشقيؒ)۔ (زاد)

فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُبِينًا: او ددې وجه دا ده چه د الله په اطاعت کې د دنيا او د آخرت هميشه فائدې دي، او د شيطان په اطاعت کې معمولي غوندې فائدې دي او ضررونه او غمونه پکې بې شماره دي او د آخرت عذاب دې، نو ددې دويم په سبب سره اول پريخودل ښکاره تاوان دې۔

| يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَانُ |
|---|
| وعده کوي شيطان د دوی سره او اميدونه اچوي دوی ته او وعده نۀ کوي دوی سره شيطان |
| إِلَّا غُرُورًا ﴿۱۲۰﴾ أُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا يَجِدُونَ عَنْهَا مَحِيصًا ﴿۱۲۱﴾ |
| مگر دهوکے والا، دا کسان ځای د دوی جهنم دې او نۀ به مومي د هغې نه ځای د تيختې۔ |

**تفسير**: يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ: يعني دوی سره د دروغو وعدې کوي او ارمانونه او اميدونه ورته ښائسته ښکاره کوي۔

د شيطان د وعدو او ارمانونو وراچولو ډير صورتونه دي (۱) يَطُولُ عُمُرُكَ: عمر به دې اوږد شي۔ (۲) سَتَنَالُ لَذَّتَكَ وَمُرَادَكَ۔ خوندونه او مزې به واخلې او مقصد به حاصل کړې۔

(زاد المسیر)

(۳) وَسَتَفُوْقُ عَلٰى أَقْرَانِكَ۔ او په خپلو ملګرو به اُوچت شې۔

(٤) مال به ډېر شي او عزت ته به درته حاصل شي، داسې قسم وسوسې د شیطان وي چه هر وخت ئې انسان ته اچوي دې دپاره چه هغه د آخرت د تیاریٔ نه مشغول کړي۔

وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَانُ إِلَّا غُرُوْرًا : د شیطان ټولې وعدې سراسر دهوکه او فریب دې لیکن د انسانانو معامله هم ډیره ناشنا ده، چه د رشتینو خبره کمه مني او د دروغژنو پسې زیات روانیږي لکه اُوګورئ چه شیطاني څیزونه په خلکو کې عام جاري دي او رباني کارونه اختیارونکي په هر دور او هر ځای کې کم دي او کم به وي،

الله تعالیٰ فرمائي : ﴿وَقَلِيْلٌ مِنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ﴾ (سبا: ۱۳)

زما شکر ګزار بندګان کم دي۔ (احسن البیان)

هرکله چه شیطان په خپلو کارونو قسمونه کړي وو او لام او نون ئې د تاکید دپاره راوړي وو نو الله تعالیٰ د هغه د رد دپاره د تاکید او حصر په طریقه وفرمایل چه د شیطان ټولې وعدې غرور او دهوکه ده۔ غُرور دې ته وائي چه په ظاهره کې نفع ورکول ښکاره کړي او په حقیقت کې ضرر ورکول وي۔

إِلَّا غُرُوْرًا : دا یا مفعول لهٗ دې یعنې دپاره د دهوکې۔ یا (ذُو) لفظ پټ دې اَیْ ذَا غُرُوْرٍ۔ یعنې دهوکې والا۔

مَحِيْصًا : اَیْ مَلْجَأً وَمَعْدِلاً ۔ یعنې ځای د پناهیٔ او د اَوړیدو) (زجاج–زاد) دا د حَاصَ يَحِيْصُ نه ظرف مکان یا مصدر میمي دې، په اصل کې په معنیٰ د بچ کیدو او په نفرت سره تختیدو ته وائي۔ (فَحَاصُوْا حَيْصَةَ حُمُرِ الْوَحْشِ إِلَى الْاَبْوَابِ– بخاري)

او مطلب دا دې چه د اُور نه به هیچرې تیختنه یا ځای د تیختې او بچ کیدو ونهٔ مومي یعنې همیشه به پکې پراته وي۔

| وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَنُدْخِلُهُمْ |
|---|
| او هغه کسان چه ایمان ئې راوړې او عملونه ئې کړي نیک زردې چه داخل به کړو دوی لره |
| جَنَّاتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِيْنَ فِيْهَا أَبَدًا وَعْدَ |
| جنتونو ته چه بهیږي به لاندې د هغې نه نهرونه همیشه به وي په هغې همیشه دا وعده |

| اللهِ حَقًّا وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللهِ قِيْلًا ﴿١٢٢﴾ |
|---|
| د الله تعالیٰ ده، رشتینے ده او څوك دے ډیر رشتینی د الله تعالیٰ نه په وینا کی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی ایمان والو ته د جنت زیرے او د الله د وعدے رشتینوالے بیانیږی په مقابله د وعدو د شیطان کی چه هغه دوکه ده، نو رشتینی وعده د الله تعالیٰ ده۔
**وَعْدَ اللهِ** : دا مصدر دے د تاکید د خپل پټ فعل دپاره چه په اصل کی وَعَدَ اللهُ وَعْدًا دے، بیا فعل حذف شو او فاعل ئے د مصدر سره ملاؤ شو دپاره د اختصار۔ نو معنیٰ ئے ده : وعده کړیده الله تعالیٰ وعده۔ نو لنډه معنیٰ ئے کیږی : وعد د الله ده۔
**حَقًّا** : دا هم مصدر دے دپاره د پټ فعل : أَيْ حَقَّهُ حَقًّا ۔ رشتینی کړے ئے ده په رشتینوالی سره۔ یا مضبوطه کړے او ثابته کړے ئے ده په مضبوطوالی سره څکه چه د پیغمبرانو په ژبه ئے د هغے بیان کړے او بیا ئے د هغے بیان په کتابونو کی نازل کړے۔
**قِيْلًا**: دا مصدر دے په معنیٰ د قول سره۔

| لَيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ وَلَا أَمَانِيِّ أَهْلِ الْكِتَابِ مَنْ يَعْمَلْ سُوْءًا |
|---|
| نهٔ دے کار (یا دین) په آرزوگانو ستاسو او نهٔ په آرزوگانو د اهل کتابو چا چه عمل وکړو بد |
| يُجْزَ بِهٖ وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيْرًا ﴿١٢٣﴾ |
| بدله به ورکړے شی د هغے او نهٔ به مومی څان لره سویٰ د الله تعالیٰ نه بچ کونکے او نهٔ مددګار |

**تفسیر** : ربط : مخکی ئے ذکر کړل چه د شیطان په چالونو کی یو چال دروغژن ارمانونه او ارزوګانی دی چه پدے سره انسان خطا کوی نو دلته وائی چه په دروغژنو ارزګانو کامیابی نهٔ ملاویږی بلکه ایمان او عمل صالح لره اعتبار دے۔

## شان نزول

په مدینه کی د اهل کتابو او مسلمانانو بحث شو، اهل کتابو وویل : [نَحْنُ أَوْلٰى بِاللهِ مِنْكُمْ وَنَحْنُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ] مونږ الله ته ستاسو نه ډیر نزدے یو او مونږ جنتیان یو، څکه چه زمونږ نبی ستاسو د نبی نه مخکی راغلے دے، او زمونږ کتاب ستاسو د کتاب نه مخکی نازل دے، او مؤمنانو وویل چه مونږ الله ته ستاسو نه ډیر نزدے یو څکه چه زمونږ نبی خاتم الانبیاء دے او زمونږ کتاب په ټولو کتابونو غوره دے، او مونږ ستاسو په کتاب

هم ایمان راوړے او په خپل کتاب هم نو مونږ الله تعالیٰ ته ډیر نزدے یو۔
(الطبری۹/۲۲۸ واسباب النزول للواحدی ص: ۲۱۱-۲۱۲) والبغوی (۲/۲۹۰)

نو الله تعالیٰ دا آیتونه نازل کړل او قانون ئے بیان کړو چه د الله تعالیٰ په نیز صفاتو لره اعتبار دے که په هر چا کی وی، نو په چا کی چه ایمان عمل او صالح وی هغه کامیاب دے او که چا کی گناهونه او شرکونه او د رسول الله ﷺ مخالفت وی نو هغه ناکام دے۔ددے وجه نه ئے خبره عامه پریخوده چه اهل کتاب متوجه شی ځکه که داسے ئے وئیلی وے چه [أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ خَيْرٌ] (د رسول الله ﷺ صحابه غوره دی) نو بیا به تخصیص راغلے وے نو مخاطب به نهٔ متوجه کیدلے۔

اګرکه روستو ئے په ﴿وَمَنْ أَحْسَنُ دِينًا مِمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ﴾ کی دا خبره بیان کړیده چه اسلام په ټولو دینونو کی غوره دین دے۔

نو پدے معنیٰ به دا خطاب په (لَيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ) کی مشرکانو او مؤمنانو ټولو ته عام وی۔

(۲) شان نزول : امام مجاهدؒ وائی : یو ځل عربو بت پرستو ووئیل چه زمونږ دین بهتر دے چه نهٔ به دوباره راژوندی کیږو او نهٔ به راسره حساب کتاب وکړے شی۔ او اهل کتابو (یهود او نصاراؤ) خپلو خپلو دینونو ته د بهترئ نسبت کاوه، او هرے ډلے دا خبره کوله چه جنت زمونږ دپاره جوړ دے۔

مجاهدؒ وائی چه دا خطاب صرف مشرکانو او اهل کتابو ته دے۔ او علامه طبریؒ وئیلی دی چه پدے دواړو کی غوره تاویل د امام مجاهدؒ دے ځکه چه مخکی او روستو آیتونه پرے دلیل دے ځکه چه مخکی ارزوګانی د شیطان ذکر شوے نو دلته په بحث کی مؤمنان راداخلول بهتر نهٔ دی نو مطلب د آیت به دا وی :

خبره ستاسو په ارمانونو باندے نهٔ ده اے د شیطان د ملګرو ډلے! کوم ارمانونه چه تاسو ته د الله دشمن درکړیدی چه تاسو به د تکلیفونو نه خلاصوی او مدد به درسره کوی، او په دشمن به مو کامیابوی، او نهٔ په ارزوګانی د اهل کتابو ده کوم چه په الله او د هغه په حِلم باندے دوهوکه شویدی، او دا ئے وئیلی دی چه مونږ ته به اُور صرف یو څو ورځے رارسیږی، او جنت ته به صرف یهود یا نصاریٰ داخلیږی۔ (داسے نهٔ ده) بلکه الله به په تاسو کی هر عمل کونکی ته د هغه د عمل بدله ورکوی، که په تاسو کی یا ستاسو نه علاوه نورو خلکو کی هر چا یو بد عمل وکړو نو هغه ته به د هغے سزا ورکولے شی۔ (طبری۲/۲۳٤)

لیکن اول شان نزول غوره دے ځکه چه په هغے کی عموم دے او بل د وجه د حدیث د

ابوبکر صدیق ﷺ نه چه روستو راروان دے۔
لَيۡسَ بِأَمَانِيِّكُمۡ : د لیس اسم پټ دے ای لَيۡسَ الۡأَمۡرُ وَالنَّجَاةُ وَالتَّزۡكِيَةُ (تفسیر السعدی)
یعنی خبره او نجات او د ځان پاکی ستاسو او د اهل کتابو په ارزوګانو سره نهٔ حاصلیږی او نهٔ د هغے پورے متعلق ده۔
مَنۡ يَعۡمَلۡ سُوٓءً ا يُجۡزَ بِهٖ : امام احمدؒ د ابوبکر بن ابی زهیرؒ نه روایت کړیدے چه (کله دا آیت نازل شو) سیدنا ابوبکر صدیق ﷺ پوښتنه اُوکړه، اے د الله رسوله! ددے آیت نه روستو څوك د نجات او کامیابئ امید کولے شی چه هر چا ته د بدئ بدله ملاویږی؟
(او په بل روایت کی دی: (نَزَلَتۡ قَاصِمَةُ الظَّهۡرِ) (اے د الله رسوله! ملاماتونکے آیت نازل شو چه هر چا ته په بدئ باندے سزا ملاویږی (وَأَيُّنَا لَمۡ يَعۡمَلۡ سُوٓءً؟) (طبریؒ)
په مونږ کی داسے څوك دے چه هغه به بدی نهٔ وی کړی یعنی که مونږ ته په هره بدئ (اګرکه وړه وی) سزا راکړے شی نو دا خو به زمونږ ملا ماته کړی)۔
نو نبی ﷺ وفرمایل: اے ابوبکر! الله دِے تا ته بخنه وکړی، آیا ته نهٔ بیماریږے، آیا په تا باندے غم نهٔ راځی، آیا په تا کومه پریشانی نهٔ راځی؟ ابوبکر صدیقؓ وویل: آو۔ نو نبی ﷺ وفرمایل چه دا هم بدله ده۔ (المحرر الوجیز ۲/۲۰۰) وتفسیر القرآن العظیم للطبرانی)
بخاریؒ او مسلمؒ د ابوسعید خدری او ابوهریره رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ((مسلمان ته چه کله هم څه تکلیف، مصیبت، بیماری، غم یا پریشانی ورسی نو الله تعالیٰ د هغه ګناهونه معاف کوی))۔
نو د ګناه ضرور اثر شته، دائے هم اثر دے چه انسان ته د جماعت توفیق ملاؤ نشی، یا تړے مونځ قضاء شی، یا تړے نور عبادات پاتی شی، د الله د ذکر او د عبادت نه محرومه کیدل هم لویه سزا ده۔ سفیانؒ وائی چه ما نه یو ځل ګناه شوے وه، نو زهٔ شپږ میاشتے د تهجدو د توفیق نه محرومه شوم۔ د ګناه په وجه په زړه کی غفلت او د الله سره اُنس ختمیدل راځی۔
نو کافر له الله تعالیٰ په دنیا او آخرت دواړو کی د ګناهونو سزا ورکوی او مؤمن ته په دنیا کی سزا ملاویږی او په آخرت کی ئے بیا معاف کوی خو د ګناه ضرور سزا شته۔ (البحر المحیط ٤/٧٥)
**فائده**: امام طبرانیؒ وائی که چرته سنت نهٔ وے نو دا به ممکن وے چه مونږ وئیلی وے چه دا آیت د کفارو په باره کی نازل دے ځکه چه پدے آیت کی (وَلَا يَجِدۡ لَهٗ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ وَلِيًّا

وَلَا نَصِيرًا) راغلی دی (چه د قیامت په ورځ به د الله نه سوئ هیڅ دوست او مددګار ونهٔ مومی) او څوك چه د قیامت په ورځ دوست او مددګار نهٔ مونده کوی هغه کافر وی ځکه چه الله تعالیٰ د ایمان والا دپاره په دواړو جهانونو کی د مدد ذمه واری اخستې ده، فرمایلی ئې دی: ﴿اِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُومُ الْأَشْهَادُ﴾ (غافر: ۹۱) لیکن دا قانون دے چه کله یو خطاب اجمالی راشی او رسول الله ﷺ د هغې بیان وکړی نو فیصله به د رسول الله ﷺ په بیان باندې کولې شی نهٔ په اجمال د آیت باندې ځکه چه رسول الله ﷺ ته الله تعالیٰ د قرآن کریم بیان سپارلے دے ﴿لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ﴾ (النحل: ٤٤)

تفسیر القرآن العظیم للامام الطبرانی سورة النساء)

د امام طبرانیؒ د خبرې مطلب دا دے چه دا آیت مؤمنانو ته هم شامل دے لیکن د (مَنْ يَعْمَلْ سُوْءً يُجْزَ بِهٖ) نه مراد دا دے چه کله مؤمن نه یوه ګناه وشی نو الله تعالیٰ ورته په بعض ګناهونو باندې په دنیا کی مصیبتونه راولی نو دا د هغه بدله شوه. او هر چه کافر دے نو هغه ته الله تعالیٰ په آخرت کی سزاګانې ورکوی.

## خبرداری:

پدې آیت کی د الله تعالیٰ حقیقی قانون ذکر دے چه په بد عمل باندې سزا مقرر ده او په بل آیت ﴿وَمَا أَصَابَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُو عَن كَثِيرٍ﴾ الشوری (۳۰) کی دا احسانی قانون ذکر دے چه ډیر ګناهونه الله معاف کوی، سزا پرې نهٔ ورکوی.

نو دواړو کی هیڅ تعارض نشته. نو بنا پدې باندې په آیت کی دې توجیه ته ضرورت نهٔ راځی چه د (سُوْء) نه مراد شرك واخستې شی چه پدې باندې به خامخا سزا وی او نور ګناهونه کله معاف کوی او کله پرې سزا ورکوی.

او دې ته بعض مفسرینو حاجت ځکه محسوس کړیدې چه د هغوی په ذهن کی د دواړو آیتونو ترمینځ تعارض ښکاره شویدې چه دلته وائی په هره ګناه سزا ده او هلته وائی چه ډیر معاف کوی. مګر حقه دا ده چه سوء هرې ګناه ته وائی شرك هم پکی داخل دے خو دا د الله تعالیٰ قانون حقیقی دے او په دغه بل آیت کی ئې قانون احسانی دے.

د قانون قضائی او قانون احسانی مثال دا دے لکه یو مدیر ووائی چا چه غیر حاضری وکړه، د مدرسې نه به ویستل کیږی نو په یو وخت کی یو طالب غیر حاضری وکړی نو هغه معاف کړی د هغه د نورو ښه صفاتو په وجه نو احسان ئې ورسره وکړو نو دلته قانون

قضائی د دغه طالب ویستل دی لیکن احسانی قانون ورسره عملی شو چه په مدرسه کی پریخودے شو۔

وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحَاتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ

او چا چه عمل وکړو د نیکو کارونو نه نارینه وی او که زنانه او دا وی مؤمن (موحد)

فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ

نو دغه کسان داخلیږی به جنت ته او ظلم به نشی کیدے په دوی باندے

نَقِيْرًا ﴿۱۲۴﴾

په اندازه د داغ د هډوکی د کجورے۔

**تفسیر** : دا مقابل د (مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءً) دے، هلته یره ورکول وو دلته زیرے ورکوی۔ یعنی جنت ته د داخلیدو دپاره دوه شرطونه دی، اول دا چه صحیح ایمان چا کی راشی او بیا ورسره نیك عملونه کوی په تابعدارئ د سنت کی۔

مِنَ الصّٰلِحَاتِ : دا مِنْ تبعیضیه دے یعنی بعض نیك اعمال ځکه چه ټول نیك اعمال د بنده د وَس او طاقت نه بهر دی لکه بعض خلکو باندے زکاة لازم نهٔ وی، په چا باندے حج او په چا باندے جهاد لازم نهٔ وی، یا ترے د عذر د وجه نه ساقط وی۔

يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ : یعنی که چا کی ایمان او ټول نیك اعمال راغلل نو هغه به بغیر د عذاب نه د اول نه جنت ته داخلیږی او که د ایمان سره ئے ګناهونه یو ځای کړل نو بیا د الله خوښه ده که معاف ئے کړو جنت ته به ئے داخل کړی او که معاف ئے نکړو نو سزا به ورکړی بیا به ئے جنت ته داخل کړی۔

وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا : یعنی دوی چه کوم نیك عملونه کړی وی د هغے نه به د هډوکی د داغ په اندازه هم کمے نهٔ کیږی، دارنګه پدے کی ضمیر (مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءً) ته هم راجع کیدل صحیح دی، یعنی که چا بد عمل وکړو نو د هغے په اندازه سزا به ورته ملاویږی او په هغوی باندے به په سزا کی ظلم او زیاتے نشی کیدے۔

وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ

او څوك دے ډیر ښائسته په اعتبار د دین سره د هغه چا نه تابع ئے کړو مخ خپل د الله دپاره

| وَهُوَ مُحْسِنٌ وَاتَّبَعَ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ |
| --- |
| او دا نیکی کونکے وی او تابع شوے وی د دین د ابراهیم علیه السلام |
| حَنِيفًا وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا ﴿١٢٥﴾ |
| چه مضبوط وو په حق او نیولے دے الله تعالیٰ ابراهیم علیه السلام لره دوست |

**تفسیر** : پدے آیت کریمه کی الله تعالیٰ اُوس فیصله ذکر کوی چه صحیح دین د چا دے، اهل کتاب هم د صحیح دین دعوه کوی، او مسلمانان هم نو الله صحیح دین والا خلك بیانوی او د تعیین دپاره ئے دا آیت نازل کړو، او په تمامو دینونو باندے ئے د دین اسلام فضیلت بیان کړو چه د هغه انسان نه د چا دین غوره کیدے شی چه هغه خپل تندے د الله مخے ته خکته کړو او د هغه تابعدار شو، او د هغه نه سوئ ئے بل هیڅوك رب ونهٔ منلو، او په خپل ژوند کی ئے نیك عمل کولو،

او د هغه ابراهیم علیه السلام د ملت اتباع ئے شروع کړه کوم چه د شرك نه پوره بیزاری کړے وه، او حق پرستی ئے د خپل ژوند اول شعار جوړ کړے وو۔ نو پدے آیت کی ئے مؤمنان د یهود او نصاراؤ نه راجدا کړل ځکه چه هغوی هم د ایمان او عمل صالح دعوه کوله۔

ددے آیت داسے مثال دے لکه مخکی زمانه کی به مؤمنانو مسلمانانو ځان ته مؤمنان مسلمانان لقب نهٔ وئیلو بلکه ځانونو ته به ئے اهل السنة، اهل الحدیث وئیل، دا د معتزله او خوارجو او نورو گمراه فرقونه د ځان راجدا کولو دپاره ځکه چه هغوی هم ځان ته مُسْلِمِين وائی نو که مونږه ئے هم ووایو نو بیا فرق نهٔ راځی او عوامو ته به فرق نهٔ معلومیږی لکه اُوس هم د فرق دپاره داسے نومونه کیخودلے شی۔ نو پدے آیت سره یهودیان او نصاریٰ د مسلمانانو نه جدا کوی۔

الله تعالیٰ پدے آیت کی د اسلام فضیلت په دوه خبرو سره بیان کړیدے :

اوله خبره دا ده چه د اسلام بنیاد په عقیده او عمل دوه څیزونو دے۔ اسلام د بنده نه مطالبه کوی چه دا الله تعالیٰ خپل رب وګنړی او د هغه دپاره کامل عبودیت او خشوع او خضوع ښکاره کړی چه هغے ته په (اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ) سره اشاره ده او د ایمان سره په خپل ژوند کی نیك عمل هم کوی۔ پدے کی رد دے چه یهود او نصاراؤ کی دا صفت نشته۔

دویمه خبره دا ده چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د الله بندګانو ته د ابراهیم علیه السلام دین طرف ته دعوت

ورکړو. او دا خبره هر چا ته معلومه وه چه ابراهيم عليه السلام انسانانو لره صرف يو الله طرف ته رابلل او د هغه دين هر چا ته مقبول وو، پدے وجه د عقل تقاضا دا وه چه د محمد ﷺ دين د ټولو په نيز مقبول وے. او يهود او نصارىٰ او عربو مشرکانو ملتِ ابراهيمي پريخوستے وو نو د هغوى دين غوره نشو. (رازیؒ، قاسمیؒ)

**أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلّٰهِ**: ١-اَىْ اِنْقَادَ نَفْسَهُ لِلّٰهِ. خپل ځان ئے د الله تابع کړو.

٢- أَخْلَصَ عَمَلَهُ لِلّٰهِ. خپل عمل د الله دپاره خالص کړی، هيڅ قسم شرکيات په هغه کی نهٔ وی. (ابن کثيرؒ)

٣- أَخْلَصَ دِيْنَهُ لِلّٰهِ وَخَضَعَ لَهُ وَتَوَجَّهَ اِلَيْهِ بِالْعِبَادَةِ. (سعيد بن جبيرؒ، قرطبیؒ) يعنی خپل دين الله دپاره خالص کړی او هغه ته عاجزی وکړی او په بندګئ سره هغه ته متوجه شی.

٤- [فَوَّضَ أَمْرَهُ اِلَى اللّٰهِ] (بغوی) خپل ټول کارونه الله ته وسپاری) ددے رجوع هم دے ته کيږی چه د غير الله نه په ډډه شی او صرف د الله دپاره موحد شی.

**وَهُوَ مُحْسِنٌ** : ١- [اَىْ مُتَّبِعٌ فِيْهِ الرَّسُوْلَ ﷺ] (ابن کثير) او پدے عمل کی د رسول الله ﷺ تابعداری کوی. ٢- يا (وَهُوَ مُوَحِّدٌ) او دے توحيد والا وی. (بغویؒ)

٣- احسان په عمل کی دا دے چه بنده داسے بندګی کوی ګويا که الله ته ګوری، يا الله دهٔ ته ګوری.

٤- يا اَسْلَمَ وَجْهَهُ کی اخلاص ته اشاره ده او په (مُحْسِن) کی اتباع د شريعت ده په کوم باندے چه الله تعالىٰ انبياء او رسولان (عليهم السلام) راليږلی دی او کتابونه ئے پرے نازل کړيدی. (السعدیؒ)

يا په (اَسْلَمَ) کی صحيح اعتقاد ته اشاره ده، او په (مُحْسِن) کی نيك اعمالو ته ځکه احسان فعل د حسناتو او ترك د سيئاتو ته وئيلے شی. او پدے کی په ټولو باطلو او ګمراه ډلو باندے رد دے چه د چا عقيده خرابه ده او د چا عمل، او د چا دواړه. (اللباب)

﴿وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرَاهِيْمَ خَلِيْلًا﴾ يعنی الله تعالىٰ ابراهيم عليه السلام لره خپل دوست نيولے وو. پدے کی انسانانو ته يو قسم ترغيب ورکړے کيږی چه هرکله ابراهيم عليه السلام د الله خليل وو نو د هغه دين (چه دين اسلام دے) قبلول پکار دی.

امام ابن القيم رحمة الله عليه په خپل کتاب ((الجواب الکافی)) کی ليکلی دی چه کلمه د ((خُلَّة)) چه د هغے نه خليل جوړ دے، ددے معنىٰ د کامل محبت او انتهائی محبت ده چه د هغے نه روستو په زړهٔ کی د بل هيچا دپاره هيڅ ګنجائش باقی پاتے نهٔ شی. او دا لوئی

منصب صرف د ابراهیم او محمد علیهما السلام دپاره خاص وو۔
مسلمؒ او حاکمؒ د جُندب بن عبد الله بَجَلی رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه دهٔ د نبی کریم ﷺ نه د وفات نه مخکې آوریدلی چه وئیل ئے :
((الله تعالیٰ زهٔ خلیل جوړ کړے یم لکه څنګه ئے چه ابراهیم (علیه السلام) خپل خلیل جوړ کړے وو))۔ زمونږ نبی له الله تعالیٰ د حبیب مرتبه هم ورکړے وه او د خلیل هم۔
خُلة کله هغه صفاء محبت ته هم وائی چه هیڅ نقصان پکی نهٔ وی۔ (زجاجؒ)
(تفسیر البغوی)۔
د خلیل او حبیب فرق دا دے چه خلیل هغه مُحب (دوست) ته وائی چه د هغه په محبت کی نقصان (کمے) او خلل نهٔ وی۔ او حبیب مطلق دوست ته وائی۔

| وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ |
|---|
| او خاص د الله دپاره دی هغه څه چه په آسمانونو کی دی او هغه څه چه په زمکه کی دی |
| وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيطًا ﴿١٢٦﴾ |
| او دے الله په هر شی باندے راګیرونکے۔ |

**تفسیر** : پدے کی بیان د تصرف او قدرت د الله تعالیٰ دے چه د آسمان او د زمکے هر شے د الله ملکیت دے، د هغه د قدرت نه هیڅ شے بهر نهٔ دے، پدے وجه هغه د ټول جهان مالك به هغوی ته د هغوی د عملونو بدله ضرور ورکوی۔ نو که څوك پدے مخکښی قوانینو عمل کوی، نو ځانله ئے فائده ده، الله تعالیٰ ورته حاجت نهٔ لری او که څوك ئے نهٔ کوی، نو الله تعالیٰ ته هیڅ ضرر نشی رسولے خپل تاوان به وکړی۔
بعض مفسرینو لیکلی دی چه دلته مقصد دا بیانول دی چه الله تعالیٰ چه ابراهیم علیه السلام خپل خلیل جوړ کړو نو پدے وجه نهٔ چه الله تعالیٰ د ابراهیم علیه السلام د دوستئ محتاج وو بلکه دا خو د الله د طرف نه د ابراهیم علیه السلام انتهائی درجه اکرام وو۔
او بعضو دا لیکلی دی چه مقصود دا بیانول وو چه د ابراهیم خلیل الله کیدل هغه د عبودیت د دائرے نه بهر نکړو او هغه ئے د عبودیت د درجے نه پورته نهٔ کړو بلکه هغه د الله بنده دے چه د الله د تصرف لاندے دے۔ (تیسیر الرحمن)
مُحِيطًا : حافظ ابن کثیرؒ لیکی : ددے احاطے نه علمی احاطه مراد ده یعنی د هغه د علم

نه هیڅ ذره هم بهر نهٔ ده.

| |
|---|
| وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِى النِّسَآءِ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ |
| او تپوس کوی دوی ستا نه په باره د زنانو کی تهٔ اُووایه الله تعالیٰ مضبوط حکم کوی تاسو ته |
| فِيْهِنَّ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِى الْكِتٰبِ |
| په باره د دوی کی او هغه چه لوستلے شی په تاسو باندے په دے کتاب کی (دے سورت کی) |
| فِىْ يَتٰمَى النِّسَآءِ الّٰتِىْ لَاتُؤْتُوْنَهُنَّ مَا |
| په باره د یتیمو زنانو کی هغه یتیمانے چه نهٔ ورکوئ تاسو هغوی ته هغه (مهر) |
| كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ وَ |
| چه مقرر کړے شوے دے هغوی لره او مینه کوئ تاسو چه نکاح وکړئ د هغوی سره او |
| الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ |
| په باره د کمزورو بچو کی او دا (حکم کوی) چه ودریږئ دپاره د یتیمانانو په انصاف سره |
| وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا ﴿۱۲۷﴾ |
| او هغه څه چه کوئ تاسو څه نیك کار نو یقیناً الله تعالیٰ دے په هغے باندے پو هه. |

**تفسیر:** **مضمون:**

پدے آیت کی نهم حکم دے د احکامو د معاشرے نه چه هغه حفاظت د حقوقو د کمزورو خلکو دے چه هغه زنانه او یتیمانان او واړه ماشومان دی، او مقصد دا دے چه بادشاه له پکار دی چه د دوی نه د ظلمونو په دفعه کولو کی کوشش وکړی. او عوام المسلمین له هم پکار ده.

او په اول کی ئے هم ددے د حفاظت تلقین کړے وو او اُوس په مینځ کی هم او بیا په آخر کی هم.

بیا د ښځے او د خاوند د اختلاف پیدا کیدو او د هغے د اصلاح په باره کی حکمونه شویدی خو فرق دا دے چه مخکی بد اخلاقی د ښځے د طرف نه وه او دلته بد اخلاقی د خاوند د طرفنه ده، نو د خاوند د بد اخلاقئ په حالت کی ئے د اصلاح او علاج صورتونه

بیان کړیدی تر (۱۳۰) پورے، او که یو سړی دوه ښځے کړی وی نو په هغے کی ئے د عدل حکم کړے او د ظلم نه ئے منع کړیده، بیا ئے پنځم علاج د زنانه په باره کی ذکر کړیدے چه هغه طلاق ورکول دی. نو په دے مجموعه آیتونو کی د مظلومانو او د کمزورو د حقوقو د حفاظت تاکید شویدے.

بیا الله تعالیٰ د خپل مالکیت او بادشاهی تذکره درے ځل کړیده پدے کی بیان د احتیاج د بندګانو او استغناء د الله دے په (ولله ما في السموات) سره، بیا ئے امر او وصیت په تقویٰ سره کړیدے چه د الله په احکامو عمل وکړئ. بیا ئے په (اِنْ يَّشَاْ) کی تهدید او دهمکی ورکړیده نافرمانو ته چه الله کولے شی چه تاسو ختم کړی او ستاسو په ځای نور خلك راولی. بیا ئے یوه بله ذهن سازی کړیده په (مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا) سره چه پدے کی د دنیا بی رغبتی او د هغه انسان بی وقوفوالے بیانول دی چه صرف دنیا د هغه نصب العین او منظور النظر ده نو ترغیب ورکوی دنیا او آخرت دواړو ته، دا خبره ئے ولے راوړیده ؟ نو وجه دا ده چه کله انسان حقوق نهٔ ادا کوی نو په هغه کی دنیا پرستی راغلی وی ځکه چه د دنیا سره مینه د هرے ګناه سر دے.

نو الله آخرت ته هم ترغیب ورکوی چه هغے ته هم فکر وکړه تر راتلونکی رکوع پورے بیا په (۱۳۵ او ۱۳۶) کی یو بل حکم ذکر دے چه د راعی او د رعیت او ټولو انسانانو سره متعلق دے.

## شان نزول

ددے آیت د نزول په باره کی مفسرینو مختلف روایات ذکر کړیدی علامه ماوردیؒ دوه قوله ذکر کړیدی :

(۱) ددے آیتِ کریمه د نازلیدو سبب دا دے چه بعض صحابه کرامو د نبی کریم ﷺ نه د ښځو په حقله پوښتنه اُوکړه چه په میراث او نورو کارونو کی د دوی څه حقوق دی ؟ نو دا آیت نازل شو. (فتح القدیر للشوکانیؒ)

(۲) - د جاهلیت په زمانه کی زنانه ؤ او ماشومانو ته چا په میراث کی برخه نهٔ ورکوله نو کله چه الله تعالیٰ د میراث آیتونه نازل کړل او زنانه او ماشومان ئے هم د برخو خاوندان جوړ کړل نو دا حکم په خلکو باندے درونډ تمام شو او د نبی کریم ﷺ نه ئے تپوس وکړو. (ګویا که د مخکنی حکم نسخ یا تبدیلی ئے غوښتله) (تفسیر الماوردی ۱/ ۵۳۲) وزاد المسیر

(۲۰۰/۲) وعزيز التفاسير۳/۳۴۷)

وَيَسْتَفْتُونَكَ : دا د استفتاء نه دے طلب د فتوىٰ ته وائى، او فتوىٰ د فتىٰ نه دے، فتىٰ ځوان ته وائى او په ځوانئ حالت کی په انسان کی طاقت وى، نو فتوىٰ هغه حکم ته وائى چه طاقتور وى، ددے وجه نه فتوىٰ په شريعت کی هر هغه جواب او حکم ته وئيلے شى چه په کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ سره ثابت او مضبوط شى۔

ددے وجه نه فتوىٰ دے ته نۀ شى وئيلے چه انسان اجتهادى طريقے سره يا تقليدى انداز کی د فقهاؤ اقوال رانقل کړى، صرف اقوال نقل کولو سره بنده مفتى نۀ کرځى لکه فقهاءِ احنافو هم ليکلى دى چه چه مفتى به مجتهد وى، صرف د علماؤ اقوالو نقل کونکى ته مفتى نشى وئيلے لکه دا خبره ابن همامؒ او ابن عابدين شامىؒ په کتاب القضاء کى ليکلے ده۔ [وَالْمُفْتِيْ يَنْبَغِيْ أَنْ يَكُوْنَ مُجْتَهِدًا) قَالَ فِيْ فَتْحِ الْقَدِيْرِ : وَاعْلَمْ أَنَّ مَا ذُكِرَ فِي الْقَاضِيْ ذُكِرَ فِي الْمُفْتِيْ فَلَا يُفْتِيْ إِلَّا الْمُجْتَهِدُ وَقَدِ اسْتَقَرَّ رَأْيُ الْأُصُوْلِيِّيْنَ عَلَى أَنَّ الْمُفْتِيَ هُوَ الْمُجْتَهِدُ فَأَمَّا غَيْرُ الْمُجْتَهِدِ مِمَّنْ يَحْفَظُ أَقْوَالَ الْمُجْتَهِدِ فَلَيْسَ مُفْتِيًا وَالْوَاجِبُ عَلَيْهِ إِذَا سُئِلَ أَنْ يَذْكُرَ قَوْلَ الْمُجْتَهِدِ كَأَبِيْ حَنِيْفَةَ عَلَى جِهَةِ الْحِكَايَةِ]

(البحر الرائق لابن نجيم، كتاب القضاء بحث الفاسق يكون مفتيا) و حاشية رد المحتار على الدر المختار ۳٦۱/۵ مطلب يفتى بقول الامام على الاطلاق) ومجمع الانهر فى شرح ملتقى الابحر ۲۱۵/۳ لشيخ زاده)۔

يعنى مفتى به هغه څوک وى چه مجتهد وى، ابن همامؒ په فتح القدير کى وائى چه پدے خبره پوهه شه چه د قاضى کوم شرطونه دى هغه به د مفتى هم وى، نو دا فتوىٰ به صرف مجتهد ورکوى او د اصوليينو پدے خبره اتفاق دے چه مفتى به صرف مجتهد وى هرچه غير مجتهد دے چه د مجتهد اقوال ورته ياد وى نو هغه مفتى نشى کيدے بلکه په هغه باندے دا واجبه ده چه کله ترے تپوس وکړے شى نو د مجتهد مثلاً د امام ابوحنيفةؒ قول به په طريقه د حکايت ذکر کوى) آه۔

ليکن مونږ تپوس کوو چه ددے زمانے مفتيانو پدے اتفاقى خبرو باندے څومره حده پورے عمل کريدے؟ چه ځان ته مفتيان وائى حال دا چه دوى خو وائى چه د اجتهاد دروازه بنده ده، نو د دوى په قول د افتاء دروازه هم بنده شوه،

دوى ته به صرف ناقلين وئيلے شى، نۀ مفتيان، ددے دپاسه هم که يو مقلد ځان ته مفتى وائى نو دا به لوى جاهل او هټ دهرمى کونکے وى۔

فِي النِّسَآءِ : ددے نساء نه مراد يتيمانانے جينکئ دى لکه روستو (فِيْ يَتَامَى النِّسَاءِ) د

هغے تفسیر دے۔

یا د نساء نه مراد عامے زنانه دی چه یتیمانانے جینکئ هم پکی داخل دی یعنی د زنانو په باره کی تپوس کوی چه د دوی نه حقوق دی او د دوی سره څه معاملات پکار دی۔

قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ : الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته خطاب کولو سره اُوفرمایل : ته اُووایه چه د ښځو سره متعلق چه کوم مسائل نهٔ دی بیان شوی، نو د هغے په باره کی الله تاسو ته فتویٰ درکوی، او هغه مسائل چه مخکی نه په تیر شوی آیتونو کی بیان شویدی نو هغه آیتونه تاسو ته فتویٰ درکوی چه د هغے تلاوت تاسو د مخکی نه ددے سورت په ابتداء کی کویٔ یعنی د الله دا وینا : ﴿ وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ ﴾ او ددے نه روستو آیتونه۔

وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ : دا عطف دے په لفظ د (الله) باندے او يُفْتِيْكُمْ دلته پټ دے [أَيْ وَيُفْتِيْكُمْ مَا يُتْلٰى مِنَ الآيَاتِ فِي الْكِتَابِ] یعنی هغه آیتونه هم تاسو ته فتویٰ درکوی چه د مخکی نه په قرآن کریم کی په تاسو باندے لوستل کیږی۔ الله تعالیٰ دلته په خپل کتاب باندے حواله ورکړے ده او روستو بیا حواله ورکوی ﴿ وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ ﴾ هلته ئے په سورة انعام باندے حواله ورکړیده، او دا د عظیم کتاب طریقه وی چه روستو په مخکی حواله ورکوی۔

فِيْ يَتٰمَى النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ :

یعنی دغه آیتونه د هغه یتیمانو زنانو په باره کی نازل شویدی چه تاسو هغوی ته هغه څه (یعنی د میراث حق) نه ورکویٔ چه الله ورته فرض کړی او مقرر کړیدی۔ او هم د هغه زنانو په باره کی نازل شویدی چه تاسو د هغوی د نکاح کولو نه اعراض کویٔ۔ (یعنی بل چا ته ئے هم نهٔ پریږدیٔ او خپله ئے هم نهٔ کویٔ یا دا چه تاسو د هغوی د نکاح کولو مینه لریٔ لیکن مهر نهٔ ورکویٔ)

امام بخاریؒ په کتاب التفسیر کی د عروه بن زبیر رحمه الله نه روایت کړیدے چه هغه د عائشے رضی الله عنها نه د ﴿ وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا ﴾ په باره کی تپوس اُوکړو، نو هغے اُوفرمایل : چه ((دا د یتیمے جینئ په باره کی دے، چه د خپل ولی په تربیت کی به وه، او د هغه په مال کی به شریکه وه، او ددے هغه ولی به ددے د مال او ښائست په وجه ددے سره وادهٔ کول خوښول، لیکن هغے ته به ئے مناسب مهر نهٔ ورکولو۔ الله تعالیٰ ددے نه منع اُوفرمائیله چه هغه دِے ددے په مهر کی د انصاف کولو نه بغیر ددے سره وادهٔ نهٔ کوی))۔

عروهٔ وائی : عائشې رضي الله عنها اُووئیل چه خلقو ددې آیت نه روستو هم د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوکړو نو دا آیت ﴿ وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَآءِ ﴾ نازل شو۔

عائشه رضي الله عنها وائي چه د الله تعالیٰ وینا : ﴿وَتَرْغَبُونَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ﴾ د هغه یتیمې جینئ په باره کې ده چه د هغې ولي به د هغې د نهٔ ښائست په وجه د هغې سره وادهٔ کول نهٔ خوښول، او نهٔ به دې ته تیار وو چه بل سړي ورسره نکاح اُوکړي ځکه چه یریدو به چه بل سړې به ددهٔ په مال کې شریك شي۔ پدې وجه هغه به ئې تول عمر د واده کولو نه بنده ساتله۔

مخکې (د سورت په ابتداء کې) هم دا تیر شویدي چه کله به د یوې ماشومې جینئ پلار وفات شو نو جاهلیت والو به ورسره داسې معامله کوله چه که جینئ به ښائسته وه او د کوم وارث به خوښه شوه نو پخپله به ئې په نکاح اخستله خو چه جینئ به څه مال لرلو نو هغه به ئې ترې خوړو او مهر به ئې نهٔ ورکولو۔ او که پخپله به ئې د هغې نکاح نهٔ وه خوښه، نو بل چا ته به ئې هم په نکاح نهٔ ورکوله تردې چه وفات به شوه او د جینئ د پلار وارث ته به همدا مظلومه میراثه شوه او هغوی به دا خپل میراث ګڼرلو او ددې نه پاتې شوې تول میراث به ئې ځان ته کړلو۔ پدې وجه صحابه کرامو تپوس وکړو چه د یتیمانو جینکو سره څه معامله وکړي؟ نو دا آیتونه نازل شو۔

يَتٰمَى النِّسَآءِ : یعني یتیمانانې جینکئ۔ لیکن نساء ئې ورته پدې وجه وئیلي دي چه اُوس د نکاح زمانې ته رسیدلې دي او یتیمي وې په اعتبار د مَاکَانَ (یعني مخکنئ زمانې) سره۔

لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ : دا یوه زجري جمله ده او مطلب ئې دا دې چه زهٔ تاسو ته د هغه زنانهٔ په باره کې فتویٰ درکوم چه ستاسو عادت دا دې چه تاسو هغوی ته د الله مقرر کړې حق نهٔ ورکوئ۔

مَا كُتِبَ لَهُنَّ : اَیْ مِنَ الْمِيْرَاثِ وَالْمَهْرِ وَالنَّفَقَةِ۔ یعني چه تاسو ورله میراث، مهر او نفقه نهٔ ورکوئ۔ لکه په جاهلیت کې به ئې زنانه د دغه درې واړو څیزونو نه محرومه وله۔

وترغبون ان تنکحوهن : ددې دوه مطلبه جوړیږي (۱) یو دا چه تاسو مینه کوئ د هغوی د نکاح کولو سره کله چه به یتیمه د مال او جمال والا وه، لیکن مهرونه ورته نهٔ ورکوئ نو الله فتویٰ درکوي او دغه آیتونه ئې نازل کړیدي چه تاسو دوی ته مهرونه ورکړئ او مال کې ورسره ځان مهٔ شریکوئ۔ نو د ښځو نه به ئې غوا میخه جوړه کړه هیڅ شرافت به ئې ورته نهٔ ورکولو کوم چه په مهر کې دې۔ اَیْ وَتَرْغَبُوْنَ فِيْ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ۔

(۲) یا دا چه دلته (عَنْ) کلمه پټه ده. او د رغبت معنیٰ ده اعراض. یعنی تاسو اعراض کوئ د هغوی د نکاح کولو نه او بل ته ئې هم نهٔ پریدئ، نو ددې کار نه ځان وساتئ بلکه ددې جینکو سره احسان وکړئ، او د انصاف معامله ورسره وکړئ. دا څومره ظلم دې چه د یوې جینئ به واده ته زړه کیږی او مالکان به ئې د مال د خاطره نهٔ ورکوی، نو ددې نه به د هغې څومره سوچونه او فکرونه خرابیږی او معاشره کې به فسادونه پیدا کیږی، زنانه مظلوم قوم دې په هره زمانه کې پرې داسې قسم ظلمونه کیږی، بعض پلاران ساده ګان وی هغوی هم د خپلې خور لور په باره کې انتهائی د غفلت نه کار اخلی، هغوی ته ښې رشتې راځی لیکن د مال د خاطره یا د خپل عزت د خاطره، د هغوی په عزتونو باندې لوبې کوی. اَیْ وَتَرْغَبُوْنَ عَنْ نِكَاحِهِنَّ. یعنی تاسو اعراض کوئ د هغوی د نکاح نه.

وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ : دا عطف دې په (هُنَّ) ضمیر باندې د (فِیْ) د لاندې دې. یعنی الله تاسو ته حکم کوی یا دغه آیتونه تاسو ته فتویٰ درکوی کوم چه د کمزورو ماشومانو په باره کې نازل شویدی چه هغوی سره احسان وکړئ.

د جاهلیت په زمانه کې لکه څنګه چه ښځو ته په میراث کې حصه نهٔ ملاویده نو دغه شان ماشومانو ته به هم حصه نهٔ ملاویده، او دا به ئې ویل چه د میراث حق د هغه چا دې چه په لاس کې توره راخلی. پدې وجه الله تعالیٰ اُوفرمایل چه کمزورو ماشومانو ته هم د هغوی حصه ورکړئ، لکه چه الله په ابتداء د سورت کې فرمایلی دی: ﴿يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ﴾ د اولادو په باره کې د الله دا حکم دې چه مذکر ته د مؤنث دوه حصې ورکړې شی.

وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ : پدې جمله کې د میراث نه علاوه په نورو حقوقو کې په انصاف باندې امر کوی چه د یتیمانانو سره د انصاف معامله وکړئ لکه د سورت په ابتداء کې ئې فرمایلی دی: ﴿وَاٰتُوا الْيَتٰمٰٓى اَمْوَالَهُمْ﴾ چه یتیمانانو ته د هغوی مالونه ورکړئ.

وَاَنْ تَقُوْمُوْا : (۱) دا عطف دې په (يَتٰمَى النِّسَآءِ) باندې نو د (فِیْ) د لاندې دې.

(۲) یا عطفې دې په (فِيْهِنَّ) باندې. اَیْ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ اَنْ تَقُوْمُوْا یعنی الله تاسو ته حکم کوی چه د یتیمانانو په باره کې په انصاف ودریږئ. (۳) یا دلته يَاْمُرُكُمْ فعل پټ دې. او الله تاسو ته حکم کوی چه تاسو د یتیمانانو په باره کې په انصاف ودریږئ.

د یتامیٰ نه مراد هلکان او جینکئ دواړه دی چه دوی سره به انصاف کولې شی چه میراث او مهر او نفقه به ورکولې شی. او دا ټولو حقوقو ته شامل دی، لکه هغه ته مال

ورکول، هغه ته ادب ورکول، او هغه سره د نرمۍ نه کار اخستل، د یتیم د ادب دپاره وهل، په هغوی باندے شفقت کول، او د هغوی د مال حفاظت کول، او په سر باندے به ورته لاس راکاږی وغیره چه په احادیثو کښې ئے تشریحات راغلی دی۔

**وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ** : دا ټول حقوق الله او حقوق العباد ته شاملیږی لکه یتیم سره احسانات کول، او د شریعت په احکامو باندے عمل کول، یا عام د خیر کارونه کول۔

**عنوان د آیت** : په دے آیت کښې څلور خبرے ذکر دی (۱) د یتیمانانو جینکو په باره کښې حکم۔ (فی یتامی النساء) (۲) د عامو ماشومانو د حقوقو او د میراث خبره۔ (والمستضعفین)۔ (۳) د عامو یتیمانو سره د میراث نه په غیر نور احسانات کول۔ (وان تقوموا) (٤) او د عامو بندګانو سره عمومی احسان او د الله په دین باندے نور عمل کول۔ (وما تفعلوا من خیر)۔ نو دا آیت حقوق الله او حقوق العباد والمظلومین لره جامع دے۔

| وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوْزًا أَوْ إِعْرَاضًا فَلَاجُنَاحَ |
|---|
| او که چرته یوه ښځه یریږی د خاوند خپل نه د بد اخلاقۍ یا د مخ اړولو نه نو ګناه نشته |
| عَلَيْهِمَا أَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ |
| په دے دواړو چه دوی جوړه وکړی په خپل مینځ کښې جوړه کول او جوړه کول ډیره غوره کار دے |
| وَأُحْضِرَتِ الْأَنْفُسُ الشُّحَّ وَإِنْ تُحْسِنُوْا |
| او حاضر کړے شویدی نفسونه کنجوسۍ ته او که تاسو احسان کوئ (یو بل سره) |
| وَتَتَّقُوْا فَإِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿١٢٨﴾ |
| او ځان بچ کوئ (د اختلافاتو نه) نو یقیناً الله تعالیٰ دے ستاسو په عملونو خبردار۔ |

**تفسیر** : پدے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د ښځے او د خاوند سره متعلق یو حکم بیان کړیدے چه که ښځه د خپل خاوند د طرف نه بے تعلقی او بے توجهی معلوموی، د مثال په توګه د هغے سره په بستره اُوده کیدل پریدی، یا د هغے په اخراجاتو کښې کمی وکړی، یا د هغے سره خبرے اترے او کیناستل پاڅیدل بند کړی، نو دواړو دپاره مناسب دا ده چه خپل مینځ کښې صلح اُوکړی، او پدے خبره اتفاق اُوکړی چه خاوند د هغے حق ادا کړی لکه څنګه چه د اسلام تقاضا ده۔ او که داسے ممکن نهٔ ښکاره کیده، او ښځه غواړی چه ازدواجی

ژوند دے باقي پاتے شي نو مهر يا د اخراجاتو څه حصه دے پريدی، يا خاوند ته دے څه نور مال ورکړي، يا که هغه سره يوه بله ښځه وی چه دا هغه ډيره خوښوی نو د خپل نمبر څه ورځے دے هغے ته ورکړي، او خاوند دے دے ته طلاق ورنکړي،
دا هله چه ښځه پدے باندے راضي وی، او که نهٔ وی راضی نو خاوند باندے لازم ده چه د هغے حق به پوره ادا کوی او که دا دواړه صورتونه هم ممکن نهٔ شو او اختلافات زيات شو نو بيا دے خاوند طلاق ورکړی دے دپاره چه د هغے حقوق ضائع نکړي، ليکن الله فرمائی چه په صلح کی هر خير دے ځکه چه پدے سره زړونه يو ځای کيږي او کورنو کی اختلافات ختميږي او ددے په نتيجه کی د انسان دين او عزت محفوظ کيږي۔

## شان نزول

ددے د شان نزول په باره کی مفسرينو مختلف روايات ذکر کړيدی چه خلاصه ئے دا ده چه دا آيت د هغه سړی په باره کی نازل دے چه د هغه سره په نکاح کی يوه ښځه وی او هغه وغواړی چه بله ځوانه ښځه په نکاح کړی، او اوله ښځه طلاقوی پدے وجه چه دا بوډۍ ده، يا د مباشرت نه عاجزه ده، يا بد شکله ده، يا ئے اولاد نشته، نو دا اوله ښځه ورته ووائی چه ما مهٔ طلاقه وه او زما نمبر دويمے ښځے ته ورکړه نو په څه باندے چه راضی شوه نو خاوند له د هغے قبلول جائز دی لکه يوه شپه ددے سره تيره کړی او دوه يا درے شپے يا مياشت د نورے ښځے سره۔ (الطبری، والدر المنثور)
نو پدے کی الله تعالیٰ سړی ته پوره آزادی ورکړه۔ نو ښځه دا نشی کولے چه په خاوند باندے پابندی ولګوی چه بله ښځه به نهٔ کوی کله چه د خاوند ضرورت وی۔
نُشُوْزًا : نشوز په اصل کی پورته والی ته وائی يعنی خاوند د ښځے د حقوقو د ادائيګئ نه ځان پورته ګڼړی يعنی د ښځے نه جدا والے او د هغے د صحبت نه لرے والے او د هغے په نفقه کی تقصير کوی۔
اَوْ اِعْرَاضًا : د اعراض نه مراد طلاق دی، يا دا چه خاوند د ښځے سره خبرے اترے او ناسته پاسته کمه کړی چه مقصد ئے دا وی چه هغه ښځه بدی ګڼړی، يا بلے ښځے ته مائل شی چه هغه ددے نه زياته ښائسته وی۔

## د نشوز او اعراض فرقونه

۱ - نشوز هغه بد اخلاقئ ته وائی چه په نفرت سره وی یعنی ښځه ئے خوښه نۀ ده، او اعراض دے ته وائی چه په غیر د نفرت نه وی، هسے ئے ترے مخ اړولے دے، نورو څیزونو ته ئے فکر وی، اخبارونه او ناولے او کهانیانے گوری او ښځے ته ئے هیڅ فکر نۀ وی۔

۲ - دے ته نژدے دا ده چه نشوز بد اخلاقئ وهل ټکولو ته وائی، او اعراض دا چه وهل نۀ کوی لیکن هسے ئے ورسره طبع نۀ لگی، توجه نۀ ورکوی او د هغے حقوق نۀ ادا کوی۔ او سری کی دا دوه قسمه خویونه وی څکه الله تعالیٰ ذکر کړل۔

امام بخاری رحمة الله علیه د عائشه رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه دا آیت د داسے ښځو په باره کی دے چه د هغے خاوند هغه نۀ غواړی، هغے له طلاق ورکوی او د بلے ښځے سره وادۀ کول غواړی، ښځه وائی چه ما له طلاق مۀ راکوه او بل وادۀ اُوکړه، او ما خپل خوراك او نفقه او خپل نمبر پریخودے دے۔

حاکمؒ د عروةؓ په واسطه د عائشے رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه هغے اُووئیل چه اے زما خورئیه! رسول الله ﷺ به د نمبر په باره کی زمونږ نه هیڅا له په هیڅا باندے ترجیح نۀ ورکوله، او تقریباً هره ورځ به زمونږ ټولو خوا ته راتلو، هرے ښځے ته به نژدے کیدو، لیکن گوتے به ئے نۀ وروړلے، تردے چه د چا نمبر به شو نو د هغے خوا ته به ورغلو او هلته به ئے شپه تیره کړه۔

سوده بنت زمعه رضی الله عنها بوډئ شوے وه او هغه یریدله چه رسول الله ﷺ به هغه پریدی۔ هغے اُووئیل اے د الله رسوله! زۀ خپل نمبر عائشےؓ ته ورکوم، نو نبی ﷺ هغه قبول کړو۔ (بخاری: ۲۵۹۳ حسب ترقیم فتح الباری)

عائشه رضی الله عنها وائی: مونږ به وئیل چه دا او ددے په شان نورو حالاتو په باره کی الله تعالیٰ فرمایلی دی: ﴿وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا﴾ الآیة۔ (ورواه الترمذی: ۳۰۴۰ واسناده صحیح- البانیؒ)

علماؤ لیکلی دی چه نبی ﷺ داسے دے دپاره اُوکړل چه د اُمت دپاره یوه نمونه جوړه شی۔ نو دا هم د اعراض یو صورت شو۔

وَالصُّلْحُ خَيْرٌ: دا هرے صلحے ته شامل دے، د ښځے او خاوند پورے خاص نۀ دے۔

۱ - او که د خاوند سره ولگی نو بیا به مطلب دا وی چه صلح د نشوز نه بهتره ده څکه چه په نشوز سره خاوند گناهگاریږی او د کور نه د جنگ میدان جوړیږی۔

۲ - صلح د طلاق نه بهتره ده چه کورنئ پرے ورانیږی او د اولادو نه جدا کیږی۔

۳- صلح د ښځې او خاوند ترمینځ بهتره ده د هغه صلح نه چه دریمګړې پکې اشتراك وکړي او د جانبینو رازونه ورته ښکاره شي.
٤- صلح د قانوني فیصلې نه بهتره ده ځکه چه په هغې کې رسوائي او شرم پروت دے.
٥- صلح د زور او جبر نه بهتره ده چه وخت پرې ضائع کیږي او د نورو خطراتو احتمال پکې شته او زړه بد والے خو ورسره ملګرے دے. (عزیز)

وَأُحْضِرَتِ الْأَنفُسُ الشُّحَّ :

پدے کې الله تعالیٰ فرمائي : چه په نفسونو کې شح او بخل شته لیکن تاسو به د تقویٰ نه کار اخلئ یعنې خپل څه شے چا ته نهٔ ورکول، پدے باره کې د بخل نه کار اخستل، د هر انسان په فطرت کې داخل دي. پدے وجه ښځې له پکار دي چه خاوند خپل طرف ته د مائل کولو دپاره د خپل بعض حقوقو نه لاس راکاړي، دغه شان د خاوند طبعي بخل ته دِے نظر اُوکړي او د هغه د طرف نه دِے په کمه راضي شي، او د ډیر مال مطالبه دِے نهٔ کوي چه هغه تنګ نکړي، دے دپاره چه صلح ته عملي جامه اغوستول ممکن شي.

الانفس نائب فاعل دے او (الشح) ئے مفعول دے. یعنې نفسونه بخل ته حاضر شویدي یعنې ګویا که بخل یو ځای کې پروت دے او نفسونه د هغې خوا ته حاضر شویدي نو د هغې اثر پرې شویدے، حاصل معنیٰ ئے دا ده (وُضِعَ الشُّحُّ فِى الْأَنفُسِ) یعنې په نفسونو کې بخل کیخودلے شویدے، فطرةً الله تعالیٰ د انسان په نفس کې بخل ایخودے دے. ﴿وَكَانَ الْإِنسَانُ قَتُورًا﴾ (اسراء: ۱۰۰) انسان بخیل دے. لیکن بنده به د خپل مزاج نه کار نهٔ اخلي بلکه تقویٰ ته به ګوري او ښځه به د خاوند بخل ته نهٔ ګوري ځکه چه دا فطري شے دے.

الشح : شح :۱- اَلْحِرْصُ عَلٰى مَنْعِ الْخَيْرِ ته وائي یعنې د خیر په منع کولو باندے حرص کولو ته شح وائي. ۲- یا عَدَمُ إِرَادَةِ الْخَيْرِ لِلْغَيْرِ. یعنې بل ته د خیر رسولو اراده نهٔ کول.
۳- اَلْحِرْصُ الشَّدِيدُ ته هم وائي یعنې سخت حرص کول، مګر دا ئے خپله معنیٰ نهٔ ده.

شح ډیر بد شے دے، رسول الله ﷺ فرمائي :

[وَلَا يَجْتَمِعُ الشُّحُّ وَالْإِيمَانُ فِى قَلْبِ عَبْدٍ أَبَدًا] (النسائي : ۳۱۱۰) باسناد صحیح- الباني)

شح او ایمان د بنده په زړه کې هیڅکله نهٔ راجمع کیږي. دا د ایمان منافي شے دے ځکه چه ایمان خیرخواهئ ته وائي (اَلدِّينُ النَّصِيحَةُ) او شح بل دپاره خیر نهٔ طلب کول وي. او په یو بل حدیث کې ئے فرمایلي دي : [وَاتَّقُوا الشُّحَّ فَإِنَّ الشُّحَّ أَهْلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حَمَلَهُمْ عَلٰى أَنْ سَفَكُوا دِمَائَهُمْ وَاسْتَحَلُّوا مَحَارِمَهُمْ] تاسو د شح نه ځان بچ کړئ ځکه چه شح ستاسو نه

پخوانی خلك هلاك كړيدی، پدے خبره ئے راپورته كړل چه د انسانانو وینی ئے توی كړے او د هغوی عزتونه او مالونه لوټ كول ئے حلال وګڼل. (صحیح مسلم: ٦٧٤١ باب تحريم الظلم). قتلونه كول او پردی مالونه خوړل هم د شح نه پیدا كیږی.

څوك چه د شح نه خلاص شو نو دا كامیاب دے.

﴿ وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴾ (الحشر:٩)

سعيد بن جبيرؒ د ابو هياج الاسدیؒ نه نقل كوی هغه وائی: ما عبد الرحمن بن عوف ﷺ په طواف كی ولیدو چه صرف دا یوه دعا ئے بار بار كوله: [اَللّٰهُمَّ قِنِيْ شُحَّ نَفْسِيْ] اے الله! ما د خپل نفس د شح نه بچ وساته. نو ما ورته وویل چه څرنګ صرف پدے یوه دعا باندے اكتفاء كوے؟. هغه وویل: (آیا تا قرآن كی نهٔ دی ویلی: چه څوك د نفس د شح نه خلاص شو نو دا كامیاب خلك دی). او په یو روایت كی دی چه وے فرمایل: كله چه زهٔ د نفس د شح نه خلاص شوم نو اسراف به نهٔ كوم، زنا به نهٔ كوم، خیانت او غلا به نهٔ كوم. او په یو روایت كی دی چه وے فرمایل: بعض د شح نه دا خبره ده چه انسان د الله په نافرمانئ شح وكړی نو ګناهونه شروع كړی. (معجم الصحابة لابی القاسم البغوی رقم الحديث: ١٨٧٧) واخبار مكة للفاكهی رقم: ٤١٥-٤١٦) الناشر: دار خضر بيروت)

## د شح مصداقات

شح دیته وائی چه انسان خپل خیر بل چا ته نهٔ ورکوئ نهٔ مال ورکوی او نهٔ د چا خدمت كوی او نهٔ د بل چا دپاره یوه خبره كوی چه هغه ته پرے فائده ورسیږی بلكه كه یو انسان ته د بل چا د طرفنه یوه فائده رسیږی او دهٔ ته پكی هیڅ ضرر هم نهٔ وی نو دے پرے بیا هم خفه وی چه دے انسان ته دا فائده ولے ورسیدله، او په زړه كی په هغے باندے نا راضه وی چه دا كار ولے وشو او بیا به د هغه پسے خبرے هم كوی چه دا سړے خو ددے فائدے او خیر مستحق نهٔ وو دهٔ ته ولے وركړے شوه. او زړه ئے په هغے راتنګ شی او وركونكی ته هم په غصه شی چه دا په هیڅ نهٔ پو هیږی، او دا مرض په عامو انسانانو كی دے مګر هغه څوك به بچ وی چه الله پرے رحم وكړی، ټول حسدونه او كینے د شح نه پیدا كیږی.

ددے ډیر مثالونه دی: ١- لكه یو نیك سړی ته یو تن خور لور وركوی نو دے پرے خفه وی چه دا ئے ورله ولے وركړه، دا خو ددے لائق نهٔ وو، دے خفه وی چه ددے شخص ولے ددے اُوچتے كورنئ سره خپلولی راغله. ٢- یو تن ته بل څوك مال وركړی او دے ئے وینی نو دهٔ

لـه پریے غصه ورشي چه دا مال ئے ولے ورکړو۔ ۳- ډیر کرته یو تن په مال یا په علم کی ترقی وکړی نو نور خلك هغه له خپے وهی چه دا ولے دے علم ته ورسیدو، او ولے ورته دومره مال ملاؤ شو نو د هغه د ضرر پسے لګیا شي، شیطانیانی ورله کوی حال دا چه دهٔ ته ئے هیڅ ضرر نهٔ وی۔

٤- یو تن په یوه اداره او جامعه کی ماجستری او دکتورے ته قبلیږی نو بل ورله شیطانی وکړی چه سند ئے جعلی دے۔

## د شح او بخل فرقونه

۱- شح : اَلْحِرْصُ عَلٰی مَنْعِ الْخَیْرِ ته وائی یعنی خیر منع کولو باندے حرص کولو ته۔ او بخل حق منع کولو ته وائی نو څوك چه د الله او د بندګانو حقوق ادا کوی هغه ته بخیل نشی وئیلے۔

۲- څینی داسے فرق کوی چه شح هغه بخل ته وائی چه حرص ورسره وی۔ نو دا د بخل نه سخت دے۔ ۳- یو حدیث کی ئے داسے فرق راغلے دے :

[اَلْبَخِیْلُ یَبْخَلُ بِمَا فِیْ یَدِهٖ وَالشَّحِیْحُ یَشِحُّ بِمَا فِیْ اَیْدِی النَّاسِ]

(بخیل هغه چا ته وائی چه د خپل لاس نه چا ته څه نهٔ ورکوی او شحیح (سخت بخیل) هغه چا ته وائی چه د خلکو په لاسونو کی کوم نعمت وی په هغے بخل کوی۔

٤- بخل په مال کی استعمالیږی او شح عام دے مال، عزت او محبت ټولو باندے بخل کولو ته وائی، یُقَالُ هُوَ شَحِیْحٌ بِمَوَدَّتِكَ وَلَا یُقَالُ بَخِیْلٌ)۔

(الفروق اللغوية لابی هلال العسکری ص ۲۹۵)۔

نو ددے جملے (وَاُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ) مقصود دا دے چه الله تعالیٰ ستاسو په نفسونو کی دا څیز ایخودے دے، نو ددے علاج به کوے، او په نفس کی خبیث څیزونه شته نو په انسان باندے د هغے تزکیه واجبه ده چه دا بد صفات د ځان نه وباسی۔

د بعض عارفینو نه نقل دی چه شح فی نفسه مذموم نهٔ دے ځکه چه دا فطری شے دے، مذموم هغه شح دے چه په زړه باندے تسلط وکړی او د هغے تابعداری شروع شي۔ (نفس المصدر السابق)

**فائده** : پدے جمله ذکر کولو کی په ظاهری نظر کی څه فائده نهٔ ښکاری بلکه دا خو لا په صلح نهٔ کولو باندے تیزی ده ځکه چه کله دا وویل شو چه شح د انسانانو سره تړلے

شویدے نو هریو تن به په خپل هدف کلك ولاړ وی؟ مګر اصل خبره دا ده چه دا ډیره جامعه او ژوره جمله ده او مقصد ئے دا دے چه اے صلح کونکیه ! لکه چه ته دا غواړے چه تا ته ستا مقابل ټول اهداف او حقوق درکړی، او ته د هغه ټول حقوق د خپو لاندے کړے نو دغه شان ستا مقابل هم نفس لری او په خپل هدف باندے کلك ولاړ دے، لکه چه ته د هغه حقوقو ته په طمع ئے نو هغه ستا حقوقو ته په طمع دے، نو تاسو دواړو طرفونو له پکار دی چه په خپلو اهدافو حاصلولو کی لږ د نرمۍ نه کار واخلئ او که نرمی نهٔ کوئ نو بیا به ستاسو د سولے (صلح) دعوه دروغژنه وی او په حقیقت کی به سولے ته تیار نهٔ یئ۔ (عزیز التفاسیر)

ابن عاشورؒ لیکی : د عربو په نیز په مال باندے شح کول او سماحت (سخا) نهٔ کول مذموم (بد) یادیدل نو پدے جمله کی نفرت ورکوی په هغه عوارضو باندے چه هغه د سخاوت او صلح نه مانع ګرځی او په همدے وجه ئے روستو په احسان باندے امر کړیدے۔

وَإِنْ تُحْسِنُوا : الله تعالیٰ خاوندانو ته خطاب اُوکړو وے فرمایل چه که تاسو د خپلو ښځو سره ښائسته سلوك کوئ او د هغوی په باره کی د الله نه یره کوئ نو الله تعالیٰ ستاسو په عملونو ښه پوهه دے، د هغے به ښائسته بدله درکوی۔ نو پدے کی ترغیب دے احسان کولو ته۔ او اشاره ده چه کوم بندګان احسان کونکی وی نو هغوی د شح نه بچ کیدونکی او کامیابۍ طرفته تلونکی دی۔

| وَلَنْ تَسْتَطِيعُوا أَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ |
| --- |
| او هیچرے تاسو طاقت نهٔ لرئ چه انصاف وکړئ په مینځ د زنانو کی اګرکه حرص کوئ تاسو |
| فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ وَإِنْ |
| نو مهٔ کږیږئ په پوره کږیدلو سره پس چه پریدئ هغه بله په شان د زوړندے او که |
| تُصْلِحُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَحِيمًا ﴿١٢٩﴾ |
| اصلاح کوئ تاسو او ځان ساتئ (د ظلم نه) نو یقیناً الله تعالیٰ دے بخنه کونکے رحم کونکے۔ |

**تفسیر** : دا آیت د دوه ښځو سره لګی او په بعض صورتونو کی د یوے ښځے سره هم لګی۔ مثلاً یو سړے دے چه ډیرے ښځے ئے کړیدی نو دے به عدل کوی او ظلم به نهٔ کوی که عدل ئے ونکړو لوی مجرم به وی۔ اصحاب السنن د ابو هریره ﷺ نه روایت کړیدے چه

رسول الله ﷺ اُوفرمایل : ((د چا چـه دوه ښځې وی او هغه یو طرف ته پوره کوږ شی [جَاءَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَأَحَدُ شِقَّيْهِ سَاقِطٌ] نـو د قیامت په ورځ به د هغه یو طرف پرېوتے وی))۔ (واسناده صحیح) یعنی د آخرت په ورځ به فالج وهلے وی۔

## د ښځو ترمینځ عدل به په کومو کارونو کی وی؟

بیـا دا عـدل بـه په ظاهری کارونو کی کوی لکه شپه تیرول (چه یوے سره شپه تیره کړی نـو بلے سره به ئے هم تیره وی) او په نفقه او خرچه او جامو او خوراکونو او جدا کوټه ورکولو کی بـه انـصاف کوی۔ او هرچه محبت او د زړه میلان دے نو هغه غیر اختیاری شے دے په هغے باندے الله تعالیٰ بنده نهٔ راګیروی لکه د رسول الله ﷺ به د عائشے رضی الله عنها سره محبت زیات وو۔

په مسند احمد (۱٤٤/٦) طبعة الحلبی) کی د عائشه رضی الله عنها نه روایت شویدے چه نبی کریم ﷺ به د خپلو بیبیانو ترمینځ د نمبر په تقسیم کی پوره انصاف کولو، بیا به ئے وئیل چه [اَللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِيْ فِيْمَا أَمْلِكُ فَلَا تَلُمْنِيْ فِيْمَا تَمْلِكُ وَلَا أَمْلِكُ يَعْنِي الْقَلْبَ] اے الله ! د کـوم شی چـه زهٔ مـالك یم، په هغے کی ما تقسیم اُوکړو او د کوم چه ته مالك ئے، زهٔ نهٔ یم، (یعنی زړهٔ) د هغے په کړیدو کی ما مهٔ ملامته کوه۔

دارنـګـه پـه جماع کی هم مساوات ضروری نهٔ دے لکه دا خبره د عبد الله بن عباس رضی الله عـنهـما نه نقل ده (قاسمیؒ) ځکه چه زنانو کی تفاوت وی، ځینی زنانه کی کمالات وی او ځـینی ساده وی، خپله صفائی او د محبت اظهار پوره نشی کولے نو هغے ته د بنده توجه کـمـه وی، دارنګه د ځینو زنانو شهوات کم وی، دے طرفته ئے توجه ډیره نهٔ وی، البته داسے بـه هـم نـهٔ کـوی چـه د بـلے ښځے هیڅ خبر نهٔ اخلی او هیڅکله خواله نهٔ ورځی او هغه ئے زوړنده پـریـښـی وی۔ (کـل الـمیل) لفظ پرے دلیل دے۔ اَیْ کُلَّ الْـمَیْلِ اِلٰی اِحْدَاهُنَّ اَوْ عَنْ اِحْدَاهُنَّ۔ (التحریر) یعنی پوره مائله کیدل یوے طرفته یا پوره مائله کیدل د یوے نه۔

نو الله پـدے آیت کی یـو لـوئی حـقیـقت بیان کـړیـدے چه اے خلقو ! تاسو د هر قسم کـوشش باوجود د خپلو ښځو ترمینځ پوره طریقے سره مساوات او برابری نشئ کولے۔ ابن عباسؓ، مجاهدؒ او حسن بصریؒ وغیرهم همدا تفسیر بیان کړیدے۔

نـو دا دعـوه چرتـه ونـکړئ چـه مونږ پوره حق ادا کونکی یو۔ او د عدل طاقت نهٔ لرل په محبت او جماع کی دی، کما مرّ۔

پدے وجه الله تعالیٰ نصیحت کړیدے چه که کومے یوے ښځے طرف ته ستاسو میلان وی نو پدے کی د حد نه تجاوز کول نهٔ دی پکار چه دویمه د آسمان او زمکے ترمینځ زوړنده پریدئ۔ اَیْ لَا اَیِّمٌ وَّلَا ذَاتُ زَوْجٍ۔ چه نهٔ کُنډه وی او نهٔ د خاوند والا وی۔

وَلَوْ حَرَصْتُمْ : دا د مخکی سره لګی یعنی اګرکه انسان په عدل کی ډیر حرص کوی خو بیا هم د محبت په باب کی دا کمزورے دے۔

ځینی وائی دا د روستو سره لګی: یعنی اګرکه ستاسو یوے زنانه سره حرص او محبت زیات وی خو هغے ته به پوره نهٔ مائله کیږئ۔ اول قول غوره دے۔

وَإِنْ تُصْلِحُوْا : یعنی که تاسو د خپلو کارونو اصلاح اُوکړئ، د نمبر په تقسیم کی د عدل نه کار واخلئ، او په هر حال کی د الله نه یره اُوکړئ نو الله تعالیٰ ډیره معافی کونکے او انتهائی رحم کونکے دے۔ د اصلاح یو صورت دا دے چه ښځه په لږ څه راضی شی او د خپلو بعض حقوقو نه تیره شی، نو خاوند له هم پکار دی چه دا اُومنی او ښځے ته طلاق ورنکړی۔

| |
|---|
| وَإِنْ يَّتَفَرَّقَا يُغْنِ اللّٰهُ كُلًّا مِّنْ سَعَتِهٖ |
| او که چرته جدا شول دا دواړه نو بے پرواه به کړی الله تعالیٰ هر یو لره د خپلے فراخئ نه |
| وَكَانَ اللّٰهُ وَاسِعًا حَكِيْمًا ﴿١٣٠﴾ |
| او دے الله فراخه (فضل والا) حکمتونو والا۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کی الله تعالیٰ وعده کړیده چه که د خاوند او ښځے په مابین کی د هر ممکن کوشش باوجود صلح اُونهٔ شی او دواړه د یو بل نه په خوشحالئ جدا شی نو الله تعالیٰ به په خپل فضل او کرم سره دواړو نه هر یو مستغنی (بے پرواه) کړی او ددے نه به د ښائسته رشتے انتظام اُوکړی، الله تعالیٰ ډیر فراخه فضل والا او لوی حکمتونو والا دے۔

نو ښځه دے دا نهٔ وائی چه ما له خاوند طلاق راکړی زهٔ به څه کوم او زما ژوند به څنګه تیریږی؟ نو الله فرمائی چه د الله سره خایونه ډیر او فراخیانی زیاتی دی۔ دارنګه سړے وائی چه که زهٔ دا ښځه پریږدم ما ته به بله ملاؤ شی او که نهٔ؟ نو الله فرمائی: د الله سره هرڅه دی، نو په هر صورت کی خیر دے۔ (المحرر الوجیز)

وَإِنْ يَّتَفَرَّقَا : اَیْ بِالطَّلَاقِ اَوْ بِالْخُلْعِ ۔ یعنی که ښځه او خاوند د یو بل نه په طلاق یا په

خلع سره جدا شي۔
مِنْ سَعَتِهٖ : یعني د الله د فراخئ نه۔
وَاسِعًا : اَیْ فَضْلُهٗ وَمُلْكُهٗ ۔ یعني د الله فضل او بادشاهي فراخه ده۔ او حکیما نے وروستو راوړو اشاره ده چه الله تعالیٰ خپل فضل ورکوي موافق د تقاضا د خپل علم او حکمة۔ (التحریر والتنویر)
ابو حیانؒ د امام راغبؒ نه نقل کوي چه حکیم دلته ډیر مناسب صفت راوړے شویدے ځکه چه حکمة یو شے په مناسب ځای کې کیخودو ته وائي او د فراخئ سره چه حکمة نهٔ وي نو د صلاح په ځای فساد ته زیاته نزدے کیږي۔ (البحر المحیط ۴/۹۰)

| وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ |
| --- |
| او خاص د الله دپاره دي هغه څه چه په آسمانونو کې دي او هغه څه چه په زمکه کې دي |
| وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ |
| او یقیناً مونږ وصیت کړے وو هغه کسانو ته چه ورکړے شویدے کتاب مخکې ستاسو نه |
| وَإِيَّاكُمْ أَنِ اتَّقُوا اللّٰهَ وَإِنْ تَكْفُرُوْا فَإِنَّ لِلّٰهِ |
| او تاسو ته (هم) چه اُویریږئ د الله تعالیٰ نه او که تاسو کفر کوئ نو یقیناً خاص د الله دپاره دي |
| مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَكَانَ اللّٰهُ غَنِيًّا حَمِيْدًا ﴿۱۳۱﴾ |
| هغه څه په آسمانونو کې دي او هغه څه چه په زمکه کې دي او دے الله بے حاجته ستائیلے شوے۔ |
| وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا ﴿۱۳۲﴾ |
| او خاص د الله په اختیار کې دي هغه څه چه په آسمانونو کې دي او هغه څه |
| فِي الْأَرْضِ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا |
| چه په زمکه کې دي او کافي دے الله کارجوړونکے۔ |

**تفسیر :** پدے آیتونو کې الله تعالیٰ خپل کمال تصرف او ملکیت بیانوي او دائے درے ځل ذکر کړیدے، یا د تاکید دپاره دے لیکن ظاهر دا ده چه د دراتلونکو فائدو دپاره دے :
اول ځل د دلیل په طور ذکر شویدے چه که خاوند او ښځه دواړه د یو بل نه جدا شي نو

الله به دواړه په خپلو فراخه نعمتونو کی پټ کړی ځکه چه الله د ټولے دنیا مالك او بادشاه دے۔ او دویم ځل دلیل کرځول شویدے ددے دپاره چه د خلکو ناشکری کول الله تعالیٰ ته هیڅ ضرر نهٔ شی رسولے او هم د دوی اطاعت ورته څه فائده نهٔ ورکوی، دواړه کارونه د هر چا د خپل ځان دپاره دی، ښه وی او که بد، او دا ځکه چه الله د ټولے دنیا بادشاه دۓ چه په هر اعتبار سره پوره دے۔

او په دریم ځل باندے دا جمله د کمال قدرت دپاره دلیل جوړ شویدے چه که تاسو نافرمانی کویٔ نو ولے به مو نهٔ ختموی او نور خلك به ستاسو په عوض کی ولے نهٔ راولی ځکه چه الله د ټولے دنیا بادشاه دے هرڅه د هغه په اختیار سره کیږی. فَالْأَوَّلُ لِتَقْرِيْرِ كَوْنِهٖ وَاسِعَ الْجُوْدِ وَالثَّانِيْ: لِلتَّنْزِيْهِ عَنْ طَاعَةِ الْمُطِيْعِيْنَ، وَالثَّالِثُ لِقُدْرَتِهٖ عَلَى الْإِفْنَاءِ وَالْإِيْجَادِ۔ (رازیؒ)

اے انسانانو! ستاسو د نافرمانیانو باوجود چه الله تاسو کوم ژوندی ساتلی یئ نو دے دپاره نهٔ چه هغه ستاسو د فانی کولو نه عاجز دے۔ هغه په هر وخت کی په یو ځل ستاسو په ختمولو پوره قدرت لری، هغه تاسو لره دے دپاره ژوندی ساتلی دی چه هغه ستاسو د بندگیٔ نه په پوره توگه بے نیاز دے او ستاسو په نافرمانیٔ سره د هغه په عزت او شان کی هیڅ نقصان نهٔ واقع کیږی۔

دا د تکرار یوه فائده شوه۔

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ : ددے جملے معنیٰ آسانه ده خو مقصد پکی ذهن سازی ده او دریے ځل ئے ذکر کړه یا د تاکید دپاره۔ یا پدے کی ډیرو فائدو ته اشاره ده یو دا چه هر څه د الله دی نو نظام به د هغه چلیږی او د هغه د احکامو پابندی به کیږی۔

۲ – دویم دا د واسعًا حکیمًا دپاره علت دے یعنی الله ځکه فراخه فضل او بادشاهیٔ والا دے چه د آسمان او د زمکے د هر شی اختیار د هغه سره دے۔ دریم پدے کی اشاره ده چه اے بنده تهٔ غلام ئے، د غلام په شان ژوند به تیروے نهٔ د سیدانو او مالکانو په شان، نو په نور چا به تکبر نهٔ کوی او پردی حقوق به ادا کوی۔

وَلَقَدْ وَصَّيْنَا : الله تعالیٰ د تاکید په شکل په تقویٰ باندے امر کړے او پدے کی حکمت دادے چه اکثر انسانان کورنی حقوق نهٔ ادا کوی، نو ځکه تاکیدی حکم وشو چه د الله نه یره وکړیٔ او د الله او د بندگانو حقوق ادا کړیٔ۔

په بل تعبیر سره اصلاح د نظام الاسرة (یعنی د کورنیٔ نظام برابر والے) په شریعت کی ډیرلوی مهم حکم دے پدے وجه ددے د برابروالی دپاره په تقویٰ باندے قرآن کریم کی

تاکیدات زیات راغی۔ کله چه کورنیٔ کی اختلاف راشی نو پدیے سره جنګونه، بد اخلاقیانی او د اولادو تربیت خرابیدل او د دوه کورنو جنګونه او بغضونه پیدا کیدل راغی، او مونځونه او عبادات پدیے سره ضائع کیږی مګر پدیے خبره هغه څوك بنه پوهیږی چه هغه د ژوند د مقصد نه خبر وی او یو مقصد ئے لاس کی رانیولے وی نو هغه ته کورنی اختلافات ډیر لوی ضرر ورکوی، د مقصد نه ئے ورانوی. دا وجه ده چه په سورة الطلاق کی هم الله تعالیٰ د تقویٰ حکم زیات کړیدیے۔

بیا دیے آیت ته علماء کرامؒ قُطْبُ الْقُرْآن (د قرآن مِحْوَر) وائی ځکه چه د ټولو کارونو دارومدار په همدیے دیے۔

وَلَقَدْ وَصَّيْنَا : اَیْ أَمَرْنَا وَعَهِدْنَا۔ یعنی مونږ مضبوط حکم کړیے۔ (البحر)

وَإِنْ تَكْفُرُوا : د تقویٰ په مقابله کی ئے کفر راوړو ځکه چه قرآن کریم کی اکثر اعلیٰ درجے بیانیږی، بنده به یا اعلیٰ مؤمن وی یا به کافر وی او مینځ کی د فاسقانو درجه کمه بیانوی۔ او د تقویٰ ادنیٰ درجه دا ده چه بنده د شرك او کفر نه ځان وساتی نو پدیے معنیٰ هم کفر مقابل د تقویٰ صحیح دیے۔

وَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ : دریے ځل تکرار دپاره نور نکتے ابوحیانؒ داسے ذکر کړیدی :

(۱) ابن عطیۃؒ نه نقل کوی چه اول ځل کی تنبیه ده په ځای د امید چه دواړه جدا کیدونکی (ښځه او خاوند) له پکار دی چه د الله نه امید وساتی۔ او په دویم کی تنبیه ده په استغناء د الله تعالیٰ د خپلو بندګانو نه۔ او دریم ځل ذکر کول مقدمه ده دپاره د وعید۔

(۲) د امام راغبؒ نه نقل کوی چه اول ځل کی تسلی ده په ما فات (فوت شوی څیزونو) باندیے۔ دویم ځل کی دا خبره ذکر کوی چه د الله وصیت په تقویٰ سره د هغه د رحمت د وجه نه دیے نهٔ د هغه د حاجت د وجه نه، او که بندګان کفر وکړی نو الله ته هیڅ ضرر نشی ورکولے۔ او دریم ځل دیے دپاره ذکر شویدیے چه دلالت وکړی چه الله تعالیٰ غنی ذات دیے۔

(۳) د مکیؒ نه نقل کوی : [نَبَّهَنَا اَوَّلًا : عَلٰى مُلْكِهِ وَسَعَتِهِ، وَثَانِيًا : عَلٰى حَاجَتِنَا اِلَيْهِ وَغِنَاهُ، وَثَالِثًا : عَلٰى حِفْظِهِ لَنَا وَعِلْمِهِ بِتَدْبِيْرِنَا]

اول ځل کی مونږ ته خبرداریے راکوی چه د هغه بادشاهی او مهربانیانی فراخه دی۔ دویم ځل کی خبرداریے ورکوی چه مونږ الله ته محتاج یو او هغه ځمونږ نه بیخی بی حاجته دیے۔ او په دریم ځل کی خبرداریے ورکوی چه هغه ځمونږ حفاظت کوی او ځمونږ په پروګرام چلولو او کارونو برابرولو پوهه دیے۔ (انتهی قول ابی حیان فی البحر)

یعنی په اول ځل د (وَاسِعًا حَكِيْمًا) او دویم ځل د (غَنِيًّا) سره او دریم ځل د (وَكِيْلًا) سره متعلق دے۔ او دا د ټولو نه غوره وجه ده۔

| إِنْ يَّشَأْ يُذْهِبْكُمْ أَيُّهَا النَّاسُ وَيَأْتِ بِآخَرِيْنَ |
|---|
| که وغواړي الله تعالیٰ ختم به کړي تاسو اے خلقو! او رابه ولي نور خلق |
| وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴿۱۳۳﴾ |
| او دے الله تعالیٰ پدے کار باندے قدرت لرونکے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کې الله تعالیٰ په نافرمانۍ کولو باندے دهمکي ورکوي او دا متعلق دے د (أَنِ اتَّقُوا اللّٰهَ) او د (وَإِنْ تَكْفُرُوْا) سره۔

یعني د الله نه ویریږه که کفر دے وکړو نو الله به دے ختم کړي او ستا په ځاې به نور خلك راپیدا کړي چه د الله ښه بندګي او ښه طاعت به کوي۔

بعض سلفو (ابو درداء ﷺ) ددے آیت نه دا خبره راخستے ده:

مَا أَهْوَنَ الْعِبَادَ عَلَى اللّٰهِ إِذَا عَصَوْا أَمْرَهُ)۔

بندګان الله تعالیٰ ته څو مره سپك ښکاره کیږي کله چه د هغه حکم ماتوي۔ او چه کله ئے امر نهٔ ماتوي نو لوی ورته ښکاره کیږي۔ کائنات الله تعالیٰ ددے دپاره ودرولي دي چه د هغه بندګي به کیږي او د هغه حکم به منلے کیږي۔ نو اشاره ده چه غیر متقیان خلك ذلیله او د الله د نظر نه پرېوتي دي۔ (ابن کثیر، قاسمي التفسیر المنیر للزحیلي)

(قول ابي الدرداء في البداية والنهاية لابن كثير فتح قبرص (۱۷۲/۷) بكى ابو الدرداء لما رأى السبي وقال هذا القول الخ)

| مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا |
|---|
| څوك چه اراده لري د بدلے د دنیا (نو دا کم عقل دے) ځکه چه د الله سره بدلے د دنیا |
| وَالْآخِرَةِ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ﴿۱۳۴﴾ |
| او د آخرت دي (نو هغه دے طلب کړي) او دے الله آوریدونکے لیدونکے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کې د هغه چا سفاهت (بیوقوفي) بیانول غرض دے چه دنیا ئے په آخرت باندے غوره کړیده۔

مناسبت:

تقوىٰ خلك ولې پريدي؟ نو سبب ئې دا دے چه دنيا ئې په آخرت باندے غوره كړيده، دنيا ورته لوى شے ښكاره شويدے نو دلته الله فرمائى چه تقوىٰ وكړه الله تعالىٰ به دواړه خيرونه دركړى ځكه چه د دنيا او د آخرت خيرونه دواړه د الله په لاس كې دى۔ (التحرير)

ددے آيت بيا دوه مطلبونه دى:

(۱) څوك چه عملونه د دنيا دپاره كوى او په خپلو عملونو سره د دنيا بدله غواړى نو ددے جواب پټ دے (فَهُوَ سَفِيْهٌ) هغه انسان بيوقوف دے ځكه چه د الله سره خو د دنيا او دآخرت دواړه بدلے شته نو دواړه ولے نۀ غواړى او دے د فانى دنيا بدلے غواړى او هميشه باقى (آخرت) ئې هير كړيدے۔ يعنى څوك چه حقوق نۀ ادا كوى نو ددۀ صرف دنيا غرض ده، او حال دا چه د الله سره آخرت هم شته نو په حقوقو ادا كولو سره دِے آخرت هم طلب كړى۔ امام راغب وائى چه پدے كې د انسان تبكيت (غلے كول) دى چه ته صرف يو سوال كوے سره ددے نه چه الله په دواړو سوالونو قادر دے او انسان ته تيزى وركول دى چه د الله تعالىٰ نه كامل او افضل شے وغواړى ځكه چه څوك يو خسيس (بيكاره) شے غواړى او دے قادر وى چه غوره شے وغواړى نو دے كمزورى او بيكاره همت والا دے۔ (البحر المحيط)

(۲) ظاهر د آيت دا دے چه (يريد ثواب الدنيا) مطلب دا دے چه څوك چه د دنيا بدلے غواړى او دنيا ئې صرف نصب العين (هدف) گرځولے ده او دا غرض ئې دے چه زۀ په دنيا كې مالداره شم او په نورو خلكو اُوچت شم او د دنيا ژوند مے ښه شى، كه عمل كوى او كه نۀ خو اراده ئې شته۔ نو الله دعوت وركوى چه ما سره خو آخرت هم شته نو څنگه بې قيمته شے غواړے او قيمتى شے پريدے۔ نو عقلاؤ ته پدے كې ترغيب دے۔

نو ددے جواب به پټ وى فَلْيَطْلُبِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةَ۔ هغه دِے دنيا او آخرت دواړه طلب كړى۔

يا فَلَيْسَ لَهُ فِي الْآخِرَةِ ثَوَابٌ۔ د هغه دپاره به په آخرت كې هيڅ بدله نۀ وى۔

يا فَلَا يُعْرِضُ عَنْ دِيْنِ اللّٰهِ۔ دا دِے د الله تعالىٰ د دين نه اعراض نكوى۔

يا فَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى سُؤَالِهِ۔ په خپل يو سوال دِے كوتاهي نكوى۔ (التحرير)

او پدے كې دا مطلب هم جوړيږى چه ايمان والو ته دا نصيحت كوى چه تاسو د دنيا خيرونه طلب كول د آخرت د خير طلب كولو نه غافله نكړى ځكه چه دواړه جمع كول افضل دى۔ يا پدے كې مؤمنانو ته دا تعليم دے چه دوى د دنيا خير او مال په حرامو طريقو طلب نكړى ځكه چه حلال مال هم د الله تعالىٰ سره شته نو په حلاله طريقه دِے د الله نه

طلب کړي او ورسره آخرت دې هم طلب کړي یا پدې کار سره به دوی ته د آخرت فائدې هم ملاوې شي۔ (التحریر)

صاحب د تسهیل داسې مطلب هم بیان کړیدې چه پدې کې دعوت دې چه بنده له پکار دي چه د دنیا او د آخرت دواړو طلب صرف د الله نه وکړي ځکه چه دا دواړه د الله په لاس کې دي نهٔ د بل چا په لاس کې۔ آه۔ نو پدې کې به رد وي په مشرکانو چه د باباګانو او مړو نه امیدونه ساتي چه دوی به ورله دنیا او آخرت ښه کوي۔

ابن الجوزيؒ په زاد المسیر (۲/۱۲۲) کې د زجاجؒ نه نقل کړیدي چه مشرکانو به الله تعالیٰ ته (په بعض بندګیانو) ځان نزدې کولو دې دپاره د دنیا خیر ورله ورکړي او شرونه ترې واړوي لیکن په آخرت به ئې ایمان نهٔ لرلو۔ نو الله تعالیٰ خبر ورکړو چه د دنیا او د آخرت دواړه خیرونه د الله تعالیٰ سره دي۔

او ماورديؒ ذکر کړیدي چه د ثواب الدنیا نه مراد په جهاد کې غنیمت دې او د ثواب الآخرة نه مراد جنت دې۔ او وئیلي ئې دي چه په آیت کې تیزي ورکول دي مجاهد ته چه د الله د ثواب اراده وساته۔

يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا : یعنې دنیا غواړي په نیکو عملونو سره یعنې نیک عملونه د دنیا د ژوند ښه کولو دپاره کوي نو پدې کې ریاکاران، منافقان او فاسقان ټول داخلیږي چه په اخلاص سره عمل نهٔ کوي۔

ثواب : دلته معنیٰ لغوي مراد ده یعنې بدله۔

| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰامِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ وَلَوْ |
|---|
| اې ایمان والو! شئ کلك ولاړ په انصاف سره بیان کونکي د الله دپاره اګر که وي دا (ګواهي) |
| عَلٰى أَنْفُسِكُمْ أَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِيْنَ إِنْ يَّكُنْ |
| په نفسونو ستاسو یا په مور او پلار او خپلوانو باندې، که وي هغه (یعنې د چا دپاره چه ګواهي |
| غَنِيًّا أَوْ فَقِيْرًا فَاللّٰهُ أَوْلٰى بِهِمَا |
| کیدې شي) مالدار یا غریب نو الله تعالیٰ ډیر مهربان دې په دې دواړو باندې (ستا نه) |
| فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوٰى أَنْ تَعْدِلُوْا وَإِنْ تَلْوُوْا |
| نو تابعداري مهٔ کوئ د خواهش چه اوړئ تاسو د حق نه او که اړوئ تاسو ژبې خپلې |

أَوْ تُعْرِضُوْا فَإِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۱۳۵﴾

یا مخ اړوئ (د حق بیان نه) نو یقیناً الله دے ستاسو په عملونو خبردار۔

**تفسیر** : پدے آیت کی د امور انتظامیه نه بل امر دے چه متعلق دے د راعی او رعیت سره او د عوام الناسو خپل مابین کی هم، او دے آیت نه هر وخت کی د هر چا ضرورت دے او مقصد په آیت کی ترغیب الی العدل دے چه د عدل نه کار واخلئ او د هیچا دپاره بی عدلی مهٔ کوئ۔ او د عدل د پریخودو دوه طریقے بیانوی او په هغے زجر ورکوی۔

مناسبت :

۱– د مخکی (وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ) سره دے چه کله د ښځے او د خاوند اختلاف راشی نو پدے کی اکثر بی عدلی کیږی، د هلاك کورنئ او د هغه سخرګنئ دواړه د خپل خپل شخص سره ودریږی اګرکه پدے کی به یو ظالم وی۔

او دا قسم انسانان په عالَم کی ډیر زیات وی چه د خپلے لور، خور دپاره دروغ وائی او بی عدلی او جنګ کوی او د انصاف نه کار نهٔ اخلی، که د انصاف نه کار واخستے شی نو ډیرے کورنئ به اصلاح شی او جګړے به ختمے شی۔

۲– زمونږ بعض مشائخ داسے ربط هم بیانوی چه دا جواب د سوال دے چه پدے سورت کی مخکی کوم احکام شرعیه انتظامیه ذکر کړے شول نو وهم پیدا شو چه آیا پدے احکامو کی به د والدینو او خپلوانو او یا د فقیر یا د غنی طرفداری او د هغه سره مصالحه جائز وی نو پدے آیت کی د هغے جواب وشو چه پدے احکامو کی ترمیم او استثناء نشته بلکه پدے احکامو به عمل د هر چا دپاره ضروری وی۔

۳– ابو سلیمان الدمشقیؒ وائی چه دا خطاب دے هغه کسانو سره چه هغوی د ابن اُبیرق منافق د طرفنه ئے جګړه او بحث کولو۔ (زاد المسیر)

كُوْنُوْا قَوّٰامِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ : پدے کی دوه خبرے دی :

(۱) یو په هر ځای کی په عدل باندے ودریدل او د عدل نه کار اخستل ضروری دی، یعنی ربط ئے په طریقه د تعمیم بعد التخصیص سره دے یعنی یوائے په تاسو باندے په ګنړو بیبیانو کی عدالت فرض نهٔ دے بلکه په تاسو باندے لازمه ده چه په ټولو معاملاتو کی د انصاف نه کار واخلئ،

(۲) او بل ګواهی د الله دپاره ورکول لازم دی۔ پکار ده چه ستاسو شهادت (ګواهی)

صرف د الله دپاره، د الله په باره کې وي، مۀ پکې د مور او پلار لحاظ ساتئ او مۀ د خپلوانو او رشته دارانو خيال ساتئ اګر که دا ګواهي ستاسو په خپل ځان باندې وي هم پکار ده چه تاسو ئې ادا کړئ. او دغه شان آيت په سورة المائده کې هم راغلے دے نو هلته يو حکم دے چه ګواهي په انصاف سره ادا کړئ.

لکه دلته زجاج دا معنیٰ کړيده:

[قُوْمُوْا بِالْعَدْلِ وَاَشْهِدُوْا لِلّٰهِ بِالْحَقِّ وَاِنْ كَانَ الْحَقُّ عَلَى الشَّاهِدِ]

تاسو په انصاف باندې ودريږئ (په هر ځای کې) او بله دا چه ګواهي ورکړئ د الله دپاره په حق سره اګر که دا حق په ګواهي ورکونکي وي يا په مور او پلار دده وي الخ. (زاد المسير)

علامه ابن عاشورؒ وائي: وَقَدْ جَمَعَتِ الآيَةُ أَصْلَيِ التَّحَاكُمِ وَهُمَا الْقَضَاءُ وَالشَّهَادَةُ.

دے آيت د تحاکم (فيصلو) دوه قوانين جمع کړيدي يو په فيصله کې د انصاف نه کار اخستل او بل ګواهي په صحيح طريقه ادا کول. (التحرير)

بناء په اول صورت به قوامين اول خبر د (کونوا) دپاره وي او (شهداء) به ئې دويم خبر وي. او بناء په دويم صورت کې به شهداء حال وي د قوامين د پټ ضمير نه.

ابن عطيةؒ وائي: د حاليت معنیٰ ضعيفه ده ځکه چه بيا به په انصاف ودريدل صرف د شهادت د حالت پورې خاص شي. (المحرر الوجيز ۲/۲۰۸)

قَوَّامِيْنَ بِالْقِسْطِ : د قيام بالقسط معنیٰ د عدل لحاظ ساتل دي او دا په درې قسمه ده:

(۱) عَدَالَةٌ بَيْنَ الْاِنْسَانِ وَنَفْسِهٖ. د انسان او د هغه د نفس په باره کې انصاف.

(۲) عَدَالَةٌ بَيْنَهٗ وَبَيْنَ النَّاسِ. د انسان او د نورو خلکو ترمينځ انصاف.

(۳) عَدَالَةٌ بَيْنَهٗ وَبَيْنَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ. د بنده او د الله د ترمينځ انصاف. نو څوک چه ددے ټولو لحاظ وساتي نو دا انصافدار او د الله دپاره ګواهي کونکے وګرزيدو.

(محاسن التاويل سورة البقره آيت لتکونوا شهداء على الناس)

قوامين: ئې صيغه د مبالغې راوړه چه دلالت کوي په کثرت باندې او پدې کې اشاره ده چه په هر حال کې په انصاف ودريږئ. (التحرير)

شُهَدَاءَ لِلّٰهِ: يعنې ستاسو ګواهي به صرف او صرف د الله د رضا او د هغه د مخ د خاطره وي، نۀ د دنياوي لالچ د وجه نه. مفسرين ليکي چه دا دليل دے چه په ګواهي کولو باندې اجرت اخستل ناجائز دي کله چه دا د ګواهۍ ځای ته راوبللے شي ځکه چه پدې صورت کې دۀ د الله دپاره ګواهي ورنکړه. (قاسميؒ)

وَلَوْ عَلٰى أَنْفُسِكُمْ : دا متعلق دے د (شُهَدَاء) پورے۔
١- یعنی اگرکه دا گواهی ستاسو په خپلو ځانونو راځی۔ یعنی مثلاً یو ځای کی ستا د چا سره جګړه ده او ګواهۍ ته ضرورت راغے نو حقیقتِ حال ووایه او په خپل ځان اقرار وکړه، ګواهي ادا کړه اګرکه تا ته به ضرر هم وی۔ نو دلته به د شهادت نه مراد اقرار وی۔
٢- یا معنیٰ دا ده چه اګرکه ددے ګواهي وبال او ضرر به ستاسو په نفسونو او پلارانو باندے راځی لکه د یو ظالم بادشاه په خلاف ګواهي کولو سره په انسان باندے ضرر راځی۔
او الوالدین : یعنی ستا د مور او پلار د چا سره جګړه ده او تا ته ګواهي معلومه ده، نو تهٔ به د خپل مور او پلار په خلاف ګواهي ورکوے اګرکه ستا نه به مور او پلار خپه هم شی او ظاهراً دنیاوی ضرر به هم درته ملاویږی لیکن الله ته به نظر وکړے۔
وَالْأَقْرَبِينَ : یعنی نور خپلوان لکه ورونه او خویندے او بچی شو۔ بلکه حق په هر چا باندے حاکِم دے۔
إِنْ يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقِيرًا : ډیر خلك د مالدار نه متأثره وی نو د هغه په خلاف ګواهي نهٔ ورکوی، یا د هغه مال او عهدے او خدمت ته په طمع وی نو د هغه دپاره غلطه ګواهي کوی۔ یا په غریب باندے رحم کول غواړی نو د هغه په خلاف ګواهي نهٔ کوی دے دپاره چه مال ورته ملاؤ شی۔ لکه مفسرینو ځینی روایات نقل کړیدی چه په جاهلیت زمانه کی به بعض خلکو د غریبانو په حق کی ګواهي پټوله او دا به ئے ویل چه کله دوی مالداره شی بیا به ګواهي ادا کړو نو الله دا آیت نازل کړو۔ (الدر المنثور والطبری)
نو الله فرمائی : چه د هغوی مصلحت او فائده په ګواهي ورکولو کی ده۔ الله تعالیٰ ستا نه په هغوی باندے ډیر رحم کونکے دے، تهٔ د الله په باره کی د هغوی لحاظ مهٔ ساته۔
ان یکن : کی ضمیر (مشهود عَلَيْه) ته راجع دے یعنی د چا په خلاف چه ګواهي کیدے شی که هغه مالداره وی یا غریب وی نو هم ګواهي مهٔ پټه وه۔ یعنی که هغه مالداره وی نو د هغه د مالدارئ لحاظ به نهٔ ساتی او نهٔ به ترے یریږی او که هغه فقیر وی نو په هغه باندے به دیرے او د شفقت کولو لحاظ نهٔ ساتی ځکه چه الله تعالیٰ په دوارو باندے ډیر غوره دے۔ (المحرر الوجيز)
فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوٰى أَنْ تَعْدِلُوا : ١- دلته (لَا) پټ دے۔ یعنی د خواهش پسے مهٔ روانیږئ چه عدل نهٔ کوئ۔ یعنی د خواهش اتباع دا ده چه بنده عدل ونکړی۔
٢- یا اَنْ تَعْدِلُوا عَنِ الْحَقِّ۔ د خواهش تابعداری مهٔ کوئ چه د حق نه واوړئ۔ یعنی د حق

نه اوړیدل د خواهش تابعداری ده. د دواړو معنو حاصل یو دے. یعنی ددهٔ خواهش دا وی چه زما عزت او زما مال محفوظ پاتی شی یا زما خپلوانو ته مال ورسیږی یا خواهش ئے دا دے چه د مالدار لحاظ وساتی یا د غریب.

حافظ ابن کثیرؒ معنیٰ کوی: [اَیْ لَایَحْمِلَنَّکُمُ الْهَوٰی وَالْعَصَبِیَّةُ وَبُغْضُ النَّاسِ اِلَیْکُمْ عَلٰی تَرْکِ الْعَدْلِ فِیْ شُؤُوْنِکُمْ بَلِ الْزَمُوا الْعَدْلَ عَلٰی أَیِّ حَالٍ کَانَ] یعنی تاسو ډیے ذاتی غرض او عصبیت او خپل مینځ کی دشمنی پدے خبره راپورته نکړی چه تاسو په خپلو کارونو کی عدل نه لاس واخلئ بلکه په هر حال کی عدل مضبوط راونیسئ.

وَإِنْ تَلْوُوْا أَوْ تُعْرِضُوْا : پدے کی د بی عدلئ شکلونه بیانوی، بی عدلی خلك په دوه طریقو سره کوی یو دا چه د یو سړی د حق دلیل ښکاره وی، نو بنده راولګی په هغه دلیل کی تحریف کوی او ژبه پرے کږوی دے دپاره چه دا دلیل د هغه په دعوه باندے ونهٔ ګرځی. یعنی ګواهی په داسے طریقه سره وکړی چه ژبه پرے کږه وږه کړی دے دپاره چه ددے سړی حق ثابت نشی او ځان هم د ملامتیا نه وباسی. او که هغه دلیل پټ وی نو د هغے نه په پټولو سره اعراض وکړی یعنی مدعی ته هغه خبره معلومه نهٔ ده نو دے پرے غلے شی او ګواهی ورنکړی نو الله فرمائی چه زهٔ ستاسو د عملونو نه خبردار یم، بدله به درکوم.

نو (تَلْوُوْا) کی تحریف ته او په (تُعْرِضُوْا) کی کتمان ته اشاره ده. یعنی که څوك دے په ګواهئ کی راوړاندے کړی نو دے تحریف کوی او که څوك ئے ګواهئ ته راونهٔ غواړی او دهٔ ته ښه معلومه وی نو بیا ئے پټه ساتی دے دپاره چه وړور یا پلار یا بل خپلوان ئے ملامته نشی یا یو کاغذ لیکلے شوے وی نو هغه پټ کړی. نو ددے کار نه به مسلمان ځان ساتی. او ددے په روزمره زندګئ کی بیشماره صورتونه دی چه عقلمند خلك ئے معلومولے شی د طوالت په یره سره مونږ د هغے د لیکلو نه مخ اړه وو. راجع بدائع التفسیر لابن القیم)

مفسرینو د لی الشهادة دپاره دوه نور صورتونه ذکر کړیدی

(۱) د ګواهئ روستو کول چه په جلتئ سره ګواهی ورکولو ته تیار نهٔ شی.

(۲) په ګواهئ کی انحراف وکړی پدے طریقه چه ګواهی خو ورکړی لیکن اصلی مضمون پټ کړی او په نیمګړے طریقه ئے ورکړی. (المحرر)

په عدل او انصاف باندے آسمان او زمکه ولاړ دی.

په مسند احمدؒ کی د عبد الله بن رواحه ﷺ نه روایت دے چه کله رسول الله ﷺ دهٔ لره د

خیبر د یهودیانو د میوو او دانو د اندازے لګولو دپاره اُولیږلو نو یهودیانو هغه ته رشوت ورکول اُوغوختل دے دپاره چه د هغوی سره نرمی اُوکړی، نو دهٔ اُووئیل چه قسم په الله ! زهٔ تاسو ته خپل محبوب ترین شخص رالیږلے یم او تاسو ما ته د شادوګانو او خنزیرانو نه هم زیات مبغوض یئ لیکن د هغه ذات محبت او تاسو سره نفرت په ما باندے بی انصافی نشی کولے۔ نو یهودیانو اُووئیل چه د آسمان او زمکے بنیاد په همدے عدل باندے ولاړ دے۔ (مسند احمد ۳/۳۶۷رقم : ۱٤۹۹٦ واسناده قوی علی شرط مسلم- ارناووط)۔

که پدے آیت پوره عمل وشی نو معاشره به ډیره زیاته برابره شی۔

| |
|---|
| یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا آمِنُوْا بِاللهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالْکِتَابِ الَّذِیْ |
| اے ایمان والو ! ایمان راوړئ (د زړهٔ نه) په الله او د هغه په رسول او په کتاب هغه باندے |
| نَزَّلَ عَلٰی رَسُوْلِهٖ وَالْکِتَابِ الَّذِیْ اَنْزَلَ |
| چه نازل کړیدے الله تعالیٰ په رسول خپل او په کتابونو هغو چه نازل کړیدی الله تعالیٰ |
| مِنْ قَبْلُ وَمَنْ یَّکْفُرْ بِاللهِ وَمَلَائِکَتِهٖ وَکُتُبِهٖ |
| مخکی ددے نه او چا چه کفر وکړو په الله او په ملائکو د هغه او په کتابونو د هغه |
| وَرُسُلِهٖ وَالْیَوْمِ الْآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِیْدًا ﴿۱۳٦﴾ |
| او په رسولانو د هغه او په ورځ روستنئ نو یقیناً دا ګمراه شو په ګمراهئ لرے د حق نه۔ |

**تفسیر** : ددے نه روستو الله تعالیٰ په منافقانو باندے ردونه کوی او په اول کی مؤمنانو ته په ثَبَات عَلَی الایمان (یعنی په دین او ایمان باندے د مضبوط پاتے کیدو) حکم کوی چه د منافقانو په شان مهٔ جوړیږئ چه هغوی ایمان راوړو او بیا وتښتیدل او دا د دعوت یوه ښه طریقه ده چه اے مؤمنه ! مضبوط شه منافقان واوړیدل چه تهٔ وانهٔ وړے۔

یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا : پدے خطاب کی درے اقوال دی :

(۱) زجاج وئیلی دی چه دا منافقانو ته خطاب دے او په (آمَنُوْا) کی د اخلاص د ایمان حکم دے۔ او دوی ته دا اشکال راغلے دے چه ایمان والو ته څنګه دوباره د ایمان راوړو حکم وکړے شی دا خو تحصیل د حاصل دے۔

(۲) خینی وائی چه دا اهل کتابو ته خطاب دے یعنی یهودیانو چه تاسو په مخکنو

کتابونو او پیغمبرانو ایمان لرئ نو تاسو به هله کامیابیږئ چه په ټولو کتابونو مخکنو او روستنو ایمان ولرئ او ټول رسولان ومنئ۔ (معالم التنزیل للبغوی)۔

(۳) راجح دا ده چه دا خطاب ټولو مؤمنانو ته دے او حسن بصریؒ او ابو العالیهؒ او نورو سلفوؒ نه نقل دی چه دلته مقصد اقامت او ثبات (مضبوطیدل) دی په ایمان باندے۔ یعنی دوی دِے په ایمان کی زیات قوت او ثابت والے پیدا کړی او په هر حال کی دِے پدے باندے مضبوط شی۔(معالم، آلوسیؒ، اللباب)۔

علامه ناصر السعدیؒ فرمائی : کله یو حکم هغه چا ته کیږی چه په یو شی کی داخل نهٔ وی او د هغے نه په هیڅ شی باندے متصف نهٔ وی نو دهٔ ته حکم ددے دپاره کیږی چه پدے څیز کی راداخل شی لکه څوك چه مؤمن نهٔ وی نو هغه ته د ایمان حکم کیږی لکه مخکښی ذکر شو (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ آمِنُوا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا) الآية۔ او کله حکم هغه چا ته کیږی چه په یو شی کی داخل وی خو مقصد پکی دا وی چه کوم شے تا ته حاصل دے د هغے تصحیح وکړه او هغه په ځان کیٌ صحیح راوله او کوم چه نهٔ دے حاصل د هغے د حاصلولو کوشش وکړه او ددے قبیلے نه دا حکم هم دے ایمان والو ته چه تاسو خپل ایمان په اخلاص او صدق (رشتینوالی) سره صحیح کړئ او د مفسداتو نه ئے بچ کړئ او ایمان ته د نقصان رسونکو ټولو څیزونو نه الله ته توبه وباسئ۔

او دارنګه دا حکم ددے تقاضا هم کوی چه په کوم مؤمن کی د ایمان او د اعمالو علوم نهٔ وی موجود چه هغه حاصل کړی ځکه چه کله دهٔ ته یو نص راورسی او د هغے په معنیٰ باندے پوهه شی او د هغے عقیده وساتی نو دا هم مامور بهٖ ایمان دے۔

دارنګه ټول ظاهری او باطنی اعمال د ایمان نه دی لکه پدے باندے ډیر نصوص او د سلفو صالحینو اجماع دلیل دے۔

او بیا پدے حالت باندے همیشوالے کول او مضبوط پاتے کیدل تر مرګه پورے۔

او بیا ئے دلته په الله او په رسولانو او په قرآن او په پخوانو کتابونو باندے د ایمان حکم وکړو نو دا ټول هغه ایمانیات دی چه په مؤمن باندے واجب دی او بغیر ددے نه بنده مؤمن کیدے نشی انتهیٰ۔ (تفسیر السعدی۱/۲۰۹)

دارنګه مؤمن ته د ایمان دعوت پدے وجه هم ورکړے کیږی چه په ایمان کی ډیرے مرتبے دی نو ادنیٰ درجے مؤمن ته وائی چه اعلیٰ درجه ایمان جوړ کړه۔

وَالْكِتٰبِ : په آیت کی د کتاب لفظ دوه ځل استعمال شویدے، د اول نه مراد قرآن کریم

او د دویم نـه مـراد تـمـام آسـمـانـی کـتـابـونـه دی. او دویـم الکتاب کی الف لام جنسی یا استغراقی دی.

د قرآن کریم دپاره ئے (نَزَّلَ) لـفـظ استـعـمـال کړو ځکه چه قرآن په درویشت کالو کی په تدریج سره نازل شویدے. او نورو کتابونو دپاره ئے (اَنْزَلَ) لفظ استعمال کړو ځکه چه هغه کتابونه په یو ځل ټول نازل شوی وو. د دواړو لفظونو په لغوی معنیٰ کی همدا فرق دے.

(تیسیر الرحمن).

او علامه محمد طاهر ابن عاشورؒ وائی : د مخکنو کتابونو نزول پوره شوے وو نو (اَنْزَلَ) لـفـظ ورلـه استـعـمـال شو او د قرآن نزول لا روان وو نو ځکه (نزل) ورله استعمال شو چه په تدریج باندے دلالت کوی.

عـلامـه ابـن عـاشـورؒ فـرمائی : پدے کی تنبیه ده چه مسلمانان د ټولو امتونو په نسبت کـامـل ایمان والا دی او د ټولو خلکو نه د الله رسولانو او کتابونو ته زیات نزدے دی، نودوی لائق دی چه دوی سرداران جوړ شی نهٔ بل څوک ځکه چه د دوی ایمان سلامتیا والا دے او د فضیلت والو د فضائلو نه انکار نهٔ کوی.

وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ : دے کی د ایمان اهمیت او د کفر لوی ضرر بیانوی یعنی څوك چه د الله او د هـغـه د مـلائـکـو او د هـغـه د کـتـابـونـو او د هغه د رسولانو او د ورځے د آخرت نه انکار کـوی هـغـه بـه د حقے لارے نه اوړی او په ښکاره گمراهئ کی به اخته کیږی. ځکه چه د الله تـعـالیٰ نـه انـکار خو کفر دے، د ملائکو، د کتابونو، د رسولانو او د ورځے د آخرت نه انکار هـم کـفـر دے. ځکه په دوی باندے د ایمان راوړو نه بغیر او ددے ایمان مطابق عمل کولو نه بغیر په الله باندے د ایمان هیڅ تصور نشی کیدے.

دے آیت کی اکثر ایمانیات ذکر دی او په تقدیر باندے ایمان په بل ځای کی ذکر دے پدے وجه ددے نه علماؤ (آمَنْتُ بِاللّٰهِ وَمَلَائِكَتِهٖ) تر آخره پورے کلمات جوړ کړیدی.

ابـن عاشورؒ لیکی : چه د آیت په اول کی ئے (ایمان بالآخرة ) باندے حکم ونکړو او روستو ئے ذکـر کـړو پـدے کی غرض تعریض دے په مشرکانو چه هغوی په آخرت ایمان نهٔ لری او اشاره ده چه مؤمنان کامل ایمان والا دی، چه پدے ټولو ایمانیاتو ایمان لری.

إِنَّ الَّذِيْنَ آمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ آمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا

یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړے بیا ئے کفر وکړو بیا ئے ایمان راوړو بیا ئے کفر وکړو

| ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ |
| --- |
| بیا زیاتت شول په کفر کی (چه مرهٔ شول په کفر) نو نهٔ دے الله تعالیٰ چه بخنه وکړی |
| لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا ﴿۱۳۷﴾ |
| دوی ته او نهٔ دے چه هدایت وکړی دوی ته د سمے لارے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کی د منافقانو قباحتونه (بد بد صفتونه) بیانیږی چه په ایمان باندے ثابت قدم نهٔ وی ځکه چه د منافقانو دا خوئی دے چه کله ورته په دین کی څه فائده ښکاره شی نو ایمان راوړی، بیا چه کله پرے څه تکلیف راشی کفر اختیار کړی بیا چه فائده وینی ایمان راوړی بیا چه تکلیف راشی ایمان پریدی او کفر اختیار کړی۔ د منافقهانو او یهودو صفات روستو راوړی ځکه چه سورة النساء کی معاشره د مسلمانانو جوړیدله نو دے قسم خلکو په کی فساد اچولو ځکه تفصیلاً د هغوی قباحتونه راوړی چه مؤمنان پرے دهوکه نشی او د هغوی اصلاح وشی یا پرے حجت قائم شی۔

ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا : ۱– د کفر د زیاتیدو یو صورت دا دے چه په کفر باندے مرهٔ شی۔

۲– دویم دا چه د حق سره عناد شروع کړی نو دوی ته الله تعالیٰ بخنه نهٔ کوی او نهٔ به حق او صدق طرف ته د دوی لارخودنه کوی ځکه دا خبره د عقل نه وړاندے معلومیږی چه دوی د الله دپاره مخلص او رشتینی مؤمنان جوړ شی ځکه کله د ایمان دعویٰ کول او بیا د هغے نه انکار کول او بار بار خپل مخکنی حالت ته واپس کیدل دے خبرے ته اشاره کوی چه دوی د خپل دین نه لوبه جوړه کړیده، د دوی نیت صحیح نهٔ دے۔ نو دا آیت د خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ په شان دے۔ چه مطلب دا دے چه الله تعالیٰ دوی ته په کفر کولو باندے دا عقوبت ورکوی چه هدایت ورته نکوی او الله تعالیٰ په کفر او گناهونو باندے قسماقسم سزاگانے ورکوی یوه دا ده چه انسان د هدایت نه محروم شی والعیاذ بالله۔

سَبِيْلًا : یعنی سَبِيْلَ الْجَنَّةِ وَالنَّجَاةِ مِنَ النَّارِ۔ یعنی الله به ورته د جنت لاره او د اُور نه د نجات لاره ونهٔ ښائی، دا د دوی د کفر سزا ده۔

**سوال** دا دے چه دوی ته ولے هدایت نهٔ کیږی ؟ نو بعض مفسرینو وئیلی دی چه ددے نه مراد یهودیان دی چه اول ئے په موسیٰ ؑ ایمان راوړو بیا ئے د سخی عبادت کولو سره شرك او کفر وکړو، بیا چه کله ورته موسیٰ ؑ راواپس شو نو بیا ئے په هغه باندے ایمان

راوړو، لیکن بیا د عیسیٰ علیه السلام په زمانه کې ئې کفر وکړو او کله چه رسول الله ﷺ پیغمبر شو نو د هغه نه انکار کولو سره ئې خپل کفر نور هم مضبوط کړو او تر مرګه پورې په همدې کفر باندې ولاړ پاتې شو. (قاسمیؒ)

په آیت کې د منافقانو یا یهودیانو د ایمان د ګډوډ والی بیان دې، او دا ښکاره کوی چه د دوی ایمان ډیر بعید (لرې) دې ځکه چه د دوی او د دوی د مشرانو داسې ګډوډ حال راروان دې. نو پدې کې عام کافران مراد نهٔ دی ځکه چه کافر که ایمان راوړی او د الله دپاره مخلص او رشتینی ایمان والاجوړ شی نو الله تعالیٰ د هغوی د بخنې وعده کوی او اسلام تیر شوې کفر ختموی.

یا ددې نه مراد هغه کسان دی چه د هغوی نه ارتداد بار بار صادر شوې وی او په کفر باندې همیشه پاتې شوی وی، نو د دوی د شان نه دا خبره وراندې ده چه دوی په اخلاص سره ایمان راوړی چه د هغې په وجه د مغفرت مستحق شی او د الله مهربانی پرې وشی ځکه چه د دوی په زړونو باندې د کفر مهر وهلې شویدې او د مرتد والی سره اموخته شویدی، او ایمان د دوی په نیز ډیر معمولی شې دې، او دا مطلب نهٔ دې چه څوک مرتد شو او بیا صحیح ایمان راوړی کنې د هغه توبه به نهٔ قبلیږی. (قاسمیؒ)

**فائده** : دا آیت دلیل دې چه په کفر کې زیادت او نقصان راځی نو ضرور به په ایمان کې هم زیادت او نقصان راځی ځکه چه دا دواړه ضدین متنافیین دی (په بل تعبیر: نقیضین دی) نو کله چه یو تفاوت قبلوی بل به ئې هم خامخا قبلوی. (قاسمیؒ)

راجح دا ده چه دا عقوبت د الله تعالیٰ د طرفنه دې په کفر باندې چه د هدایت توفیق به نهٔ ورکوی.

| |
|---|
| بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿١٣٨﴾ الَّذِيْنَ |
| زیرې ورکړه منافقانو ته چه یقیناً د دوی دپاره عذاب دردناک دې. هغه کسان دی |
| يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ |
| چه نیسی کافرانو لره دوستان سوئ د مؤمنانو نه، آیا لټوی دوی د هغوی سره عزت |
| فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ﴿١٣٩﴾ |
| نو یقیناً اختیار د عزت خو د الله تعالیٰ سره دې ټول. |

**تفسیر** : اُوس د دوی سزا بیانوی چه دوی ته به الله تعالیٰ د قیامت په ورځ دردناك عذاب ورکوی. او بشارت په اصل کی خوشحالونکی خبر ته وائی دلته په طریقه د تهکم (سپکاوی) سره د عذاب د خبر دپاره استعمال شویدے.

مخکی د منافقانو دا بد صفتونه ذکر شو چه دوی مرتد شویدی، او بیائے کفر زیات شویدے. او بل دا چه منافقان دی، او د منافق معنیٰ ده دوه سورو والا چه کله په یوه سوره ننوزی او کله په بله. دوه مخیزه پالیسی اختیاروی.

**اَلَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ** : ددے ځای نه د منافقانو نور بد صفتونه بیانیږی چه دا هغه خلك دی چه دوی د مؤمنانو په ځای کافران خپل دوستان جوړ کړیدی. د منافقانو د یهودو سره دوستی وه، او پاك خلك (صحابه کرامؓ) ئے پریښی وو او ګنده معاشره ئے خپله کړے وه.

دے نه معلومه شوه چه د کفارو سره دوستی کول چه هغوی ته پوره ورواوړی پدے سره انسان کافر کیږی.

**اَيَبْتَغُوْنَ** : یعنی آیا د کافرانو په دوستیٔ سره د دوی مقصد قوت او غلبه حاصلول دی؟ آیا د هغوی سره خپل عزت ګوری؟ نو دا د دوی کچه خیال دے ځکه چه د عزت او قوت مالك خو صرف الله دے، هغه چه چا له غواړی عزت او کامیابی ورکوی، کافران د الله د مرضیٔ نه بغیر د دوی هیڅ مدد نشی کولے.

ځینی خلك د کفارو په ژبه او کلچر کی عزت وینی، او د هغوی مادی ترقیٔ په هیبت کی اچولی وی، حال دا چه د عزت شے د الله په نیز باندے صرف او صرف دین او ایمان او تقویٰ او د کفارو دشمنی ده.

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه پدے سره مقصود خلق پدے خبره راتیزول دی چه دوی صرف د الله عاجز بندګان جوړ شی او د هغه د دربار نه عزت تلاش کړی.

**فائده** : په سورة المنافقون کی چه راغلی دی چه عزت د الله او د رسول او د ایمان والو دپاره دے نو هلته مقصد د عزت موصوف خلك بیانول دی چه دے درے قسمه ذواتو ته عزت حاصل دے، او دلته د عزت اختیار او واك بیانول دی چه دا صرف د الله په واك او اختیار کی دے، او د الله د طرفنه دے نو دواړو آیتونو کی الحمد لله هیڅ تعارض نشته.

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ

او یقیناً نازل کړے دے الله تعالیٰ په تاسو باندے په دے کتاب کی دا چه کله واورئ تاسو

آیَاتِ اللهِ یُکْفَرُ بِهَا وَیُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا

آیتونه د الله تعالیٰ چه کفر کیږی په هغے باندے او ټوقے کیږی په هغے پورے نو مهٔ کینئ

مَعَهُمْ حَتّٰی یَخُوْضُوْا فِیْ حَدِیْثٍ غَیْرِهٖۤ اِنَّکُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ

د دوی سره تردے چه ننوځی په خبره کی سوئی ددے نه یقیناً تاسو به دغه وخت د هغوی په شان شئ

اِنَّ اللهَ جَامِعُ الْمُنَافِقِیْنَ وَالْکَافِرِیْنَ فِیْ جَهَنَّمَ جَمِیْعًا ﴿۱۴۰﴾

یقیناً الله تعالیٰ راجمع کونکے دے منافقانو او کافرانو لره په جهنم کی یو ځای۔

**تفسیر**: د مکے مشرکانو به په خپلو مجلسونو کی د قرآن کریم پورے ټوقے کولے، پدے وجه الله تعالیٰ مسلمانانو لره د هغوی سره د ناستے نه منع اُوفرمایله او د سورة الانعام آیت (۶۸) ئے نازل کړو: ﴿وَاِذَا رَاَیْتَ الَّذِیْنَ یَخُوْضُوْنَ فِیْۤ اٰیٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتّٰی یَخُوْضُوْا فِیْ حَدِیْثٍ غَیْرِهٖ وَاِمَّا یُنْسِیَنَّکَ الشَّیْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّکْرٰی مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِیْنَ﴾ (کله چه ته هغه خلق اُووینے چه زمونږ په آیتونو عیبونه لګوی نو د دوی نه جدا شه تردے چه دوی په بله خبره کی شروع شی، او که تا نه شیطان هیر کړی نو د یادیدو نه روستو بیا د داسے ظالمانو سره مهٔ کینه)۔ نو ددے آیت د نازلیدو نه روستو مسلمانانو د کافرانو سره ناسته بنده کړه۔

کله چه مسلمانانو هجرت اُوکړو او مدینے ته راغلل نو د یهودیانو او منافقانو سره ئے د هغوی په مجلسونو کی کیناستل شروع کړل چه هلته به یهودیانو د قرآن کریم پورے ټوقے کولے۔ نو دا آیت نازل شو چه پدے کی مسلمانانو ته دا خبره رایاده شویده چه ددے نه مخکی په قرآن کی د الله حکم راغلے دے چه په کومو مجلسونو کی کافران د قرآن کریم پورے ټوقے کوی، نو په هغے کی به نهٔ کینئ، ځکه چه ستاسو ناسته د هغوی سره ددے خبرے دلیل دے چه د الله د آیتونو نه په انکار کیدو او د هغے پورے په ټوقو کیدو باندے تاسو راضی یئ، بیا به په کفر او د جهنم د عذاب په مستحق کیدو کی تاسو د هغوی په شان شئ لکه چه الله مخکی اُوفرمایل: چه الله به منافقان او کافران په جهنم کی راجمع کوی۔ ددے نه دا قاعده معلوم شوه چه [اَلْمُسْتَمِعُ شَرِیْكُ الْقَائِلِ وَالسَّاکِتُ شَرِیْكُ الْفَاعِلِ]

د ګناه آوریدونکے د ویونکی سره شریك وی، او غلے ناست د کونکی سره شریك وی)

او دے آیت ته تقریباً په هره موقعه کی ضرورت راځی۔

عمر بن عبد العزیز څه کسان په شرابو کی ونیول نو د هغوی په وهلو ئے حکم وکړو نو

چا پکی وویل چه فلانے پکی روژه وو،

نو عمر بن عبد العزیزؒ دا آیت ولوستلو (اِنَّكُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ) اشاره وه دے ته چه په گناه باندے راضی هم گناهگار دے او د هغوی سره په گناه کی شریك دے۔

علامه قرطبیؒ وائی : [وَلِهٰذَا يُؤَاخَذُ الْفَاعِلُ وَالرَّاضِيْ بِعُقُوْبَةِ الْمَعَاصِيْ حَتّٰى يُهْلَكُوْا بِأَجْمَعِهِمْ] ددے وجه نه د گناه کونکے او په گناه باندے راضی دواړه به د گناهونو په سزا کی راګیرولے شی تردے چه ټول به په هلاکت کی شریك وی۔

ابن جریرؒ د ضحاكؒ قول نقل کریدے :

[دَخَلَ فِيْهِ كُلُّ مُحْدِثٍ فِي الدِّيْنِ وَكُلُّ مُبْتَدِعٍ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ]

ددے آیت په ضمن کی هر هغه سړے داخلیږی چه په دین کی یوه نوے خبره پیدا کوی او بدعت کوی تر قیامته پورے۔ (قاسمی والبغوی ۲/۳۰۱)

څکه چه بدعتی او خواهش پرست هم په آیتونو کی د خپل باطل ثابتولو دپاره غلط تاویلات او تحریفات کوی چه دا د الله د آیتونو پورے مسخرے دی۔ (تفسیر السعدی)

دارنګه کوم بدعتیان چه د قرآن او حدیث په درس کی د قرآن او حدیث پورے توقے کوی او د آیت او حدیث نه جوابونه کوی او خپل مذهب ثابتوی د هغے نه پاڅیدل واجب دی او د بدعتیانو نه سبق وئیلو سره په بنده کی دینی بی غیرتی پیدا کیږی۔

د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی : فِي الْاٰيَةِ دَلِيْلٌ عَلٰى وُجُوْبِ التَّجَنُّبِ مِنْ أَهْلِ الْمَعَاصِيْ ۔ دا آیت دلیل دے چه د گناه والا خلکو نه جدائی او بیزاری لازم ده، د هغوی خوا کی به نۀ کینی ورنه د هغوی سره به په گناه کی حساب شی۔

علامه سمرقندیؒ وائی : [فِيْ هٰذِهِ الْاٰيَةِ دَلِيْلٌ عَلٰى اَنَّ مَنْ جَلَسَ فِيْ مَجْلِسِ مَعْصِيَةٍ وَلَمْ يُنْكِرْ عَلَيْهِمْ فَيَكُوْنُ مَعَهُمْ فِي الْوِزْرِ سَوَاءً، وَيَنْبَغِيْ اَنْ يُنْكِرَ عَلَيْهِمْ اِذَا تَكَلَّمُوْا بِالْمَعْصِيَةِ اَوْ عَمِلُوْا بِهَا فَاِنْ لَمْ يَقْدِرْ يَنْبَغِيْ اَنْ يَقُوْمَ عَنْهُمْ] (القرطبی ۵/۴۱۸ والقاسمی ۲/۵۲۰)

دا آیت دلیل دے چه څوك د گناه په مجلس کی کیناستو او په هغوی باندے ئے انکار ونکړو نو دے به د هغوی سره په گناه کی برابر وی، او پکار ده چه کله هغوی د گناه خبره کوی یا پرے عمل کوی نو دے به انکار وکړی او که انکار باندے قادر نۀ وی نو بیا به د هغوی نه پاڅیږی دے دپاره چه ددے آیت په وعید کی داخل نشی)۔

حاکمؒ وائی چه د اسلام کوم علماء چه د ملحدینو او د اسلام مخالفینو سره د مناظرے دپاره د هغوی مجلسونو ته ځی نو هغوی دپاره هیڅ منع نشته بلکه هغوی ته به اجر او

ثواب ملاویږي او که په یو مجلس کې د الله او د رسول یا د دینِ اسلام پورې توقې کیږي نو څوك چه په هغې راضي وي نو هغه کافر کیږي ځکه چه الله تعالیٰ فرمایلي دي: ﴿ إِنَّكُمْ إِذًا مِثْلُهُمْ ﴾ یعنې تاسو به د هغوی په شان شئ.

امام شوکاني رحمه الله لیکي: چونکه په قرآن کریم کې د الفاظو عموم له اعتبار وي نهٔ خصوص د سبب له پدې وجه هغه ځاې چه هلته په دلائل شرعیه ؤپورې توقې کیږي د هغې نه پرهیز کول واجب دي. د مثال په توګه د تقلید شخصي قیدیان چه د قرآن او سنت په بدله کې د خلقو آراء قبلوي، او کله چه یو عالِم په یوه مسئله باندې د قرآن او سنت نه دلیل نیسي نو دوي ورپورې توقې کوي او خلقو ته دا یقین ورکوي چه دهٔ د مذهب د امام مخالفت اُوکړو کوم ته چه دوي د مُعلم شریعت ﷺ مقام ورکړیدې، ډیر غټ جرم ئې پورته کړیدې دداسې خلقو مجلسونو نه پرهیز کول لازم دي. (فتح البیان والقاسمي)

## د منکراتو په مجالسو کې د اشتراك صورتونه

۱ – یو تن د یو شرعي کار دپاره یو ځای ته ورشي لیکن هلته د منکراتو سره مخامخ شي لکه سړې جومات ته د مانځه دپاره لاړ شي خو هلته د قرآن کریم غلط تفسیر یا د بدعتي درس وي. یا د ولیمې دپاره لاړ شي خو هلته ساز او سرود وي. یا د مړي د جنازې دپاره لاړ شي خو هلته د نوحه (بې صبره ژړا، ایر) سره مخامخ شي. یا د امر بالمعروف او نهي عن المنکر دپاره لاړ شي خو ددهٔ په خوله باندې څوك عمل ونکړي او خپل د منکراتو مجلس همدغه شان جاري وساتي نو پدې تولو صورتونو کې په بنده ګناه نشته پدې شرط چه ذکر شوي مجالس به په زړه کې بد ګنړي او بد به ورته ګوري.

(احکام القرآن للجصاص ۲۸۹/۲)

آو دغه درس کې به نهٔ کیني او دغه ولیمه کې به شرکت نهٔ کوي بلکه راواپس کیږي به او جصاصؒ د حنفي مذهب تشریح لیکلې ده چه صحیح نهٔ ده، ددې آیت د ظاهر او د احادیثو مخالفه ده.

۲ – دویم دا چه سړې د منکراتو په مجالسو کې قصداً شرکت وکړي نو ددې حکم بنکاره دې چه د مجلس والو په شان به ګنهګار وي نو مسلمان له پکار دي چه د هغوی نه اعراض وکړي او که مجلس بدل کړي نو ښه کار به وکړي.

| الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ فَإِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ |
|---|
| هغه کسان دي چه انتظار کوي ستاسو په باره کې نو که وي ستاسو دپاره فتح |
| مِّنَ اللّٰهِ قَالُوْا أَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ وَإِنْ كَانَ لِلْكَافِرِيْنَ |
| د الله تعالیٰ د طرف نه (نو) دوی وائي آیا نهٔ وو مونږ تاسو سره (ملګري) او که وي د کافرانو دپاره |
| نَصِيْبٌ قَالُوْا أَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ |
| څه برخه (یعني فتح) نو دوی وائي آیا غلبه نهٔ شوه کولے مونږ په تاسو باندے (چه |
| وَنَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ |
| د مؤمنانو ملګري شوي وے) او آیا نهٔ ئے منع کړي مونږ تاسو لره د مؤمنانو نه |
| فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَنْ |
| نو الله تعالیٰ به فیصله وکړي په مینځ ستاسو کې په ورځ د قیامت او هیچرے نهٔ |
| يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكَافِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ﴿١٤١﴾ |
| ګرځوي الله تعالیٰ د کافرانو دپاره په مؤمنانو باندے لاره (د غلبے). |

**تفسیر** : پدے کې د منافقانو یو بل بد صفت بیان شویدے چه مسلمانانو لره د دوی نه په نفرت کولو مجبوره کوي چه دا هغه لالچیان خلك دي چه صرف دنیا او خپله ګټه ئے په نظر کې نیولے ده، فرمائي چه دا منافقان هر وخت د مسلمانانو د فتح یا شکست په انتظار کې وسیږي، او په دواړو حالتونو کښ د دوی صرف خپله فائده مقصود وي.

که د الله د طرف نه مسلمانانو ته فتح او نصرت ملاویږي نو فوراً وائي چه آیا مونږ تاسو سره نهٔ وو، ستاسو په فتح کې زمونږ هم دخل دے. پدے وجه په مالِ غنیمت کې زمونږه هم حصه کیږي، او که کامیابي حاصله نهٔ شي او د کافرانو په وقتي توګه غلبه راشي لکه په جنګ اُحد کې چه اُوشوه نو همدا منافقان کافرانو خوا ته ځي وائي چه آیا مونږ په تاسو غالب نهٔ وو، آیا مونږ تاسو لره نشو قتلولے، او قیدیان کولے مو نشوې، لیکن مونږ دا ټول هر څه اُونکړل بلکه د مسلمانانو همت مو خکته کړو تردے چه تاسو په هغوی باندے غالبه شوئ ورنه تاسو به ددے حادثاتو او پیښو ښکار کیدے.

نَصِيبٌ : د کافرانو په حق کې ئې نصيب (برخه) ذکر کړه ځکه چه د هغوی غلبه هسې ظاهری د خواهش برخه وی او حقیقی کامیابی او فتح نۀ ده. او د مؤمنانو والا حصې ته ئې فتح وویله ځکه چه د ایمان والو مقصود د کفر نه علاقه آزاده ول دی.

أَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ : اَیْ اَلَمْ نَغْلِبْکُمْ وَنَتَمَکَّنْ مِنْ قَتْلِکُمْ. یعنی آیا مونږ په تاسو باندې غلبه نشوه کولې او ستاسو په وژلو قادر نۀ وو چه مونږ د مؤمنانو ملګرتیا کړې وه؟!.

وَنَمْنَعْكُم : یعنی مونږ تاسو لره د مؤمنانو نه منع کړئ او هغوی مو درنه یو طرف او بل طرفته واړول.

فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ : یعنی منافقان دې پدې نۀ دهوکه کیږی چه په ژبه سره د شهادت کلمې وئیلو په وجه که په دنیا کې د دوی د نفسونو حفاظت شویدې نو د قیامت په ورځ به هم د دوی نفسونه بچ شی. د قیامت په ورځ به د دوی دا چل ول او دوه مخیزه پالیسی هیڅرې په کار رانشی، او په دنیا کې به د منافقانو دا آرزو هیڅکله هم پوره نۀ شی چه د مسلمانانو وجود بالکل ختم شی، الله تعالیٰ کافرانو له هیڅ کله په مسلمانانو داسې غلبه نۀ ورکوی چه دوی بالکل ختم کړی.

## سوال وجواب

که څوك ووائی چه ﴿وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ﴾ کې لَنْ د تاکید دپاره دې چه هیڅکله به الله تعالیٰ کافرانو ته په مؤمنانو باندې څه لاره جوړه نکړی چه کافران په مسلمانانو غلبه وکړی حال دا چه په ډیرو ځایونو کې کافرانو په مسلمانانو غلبه کړیده لکه د اُحد په غزا کې او اُوس هم مسلمانان د کافرانو د تسلط لاندې دی؟

جواب : ۱- د علی ﷺ نه ددې په باره کې پوښتنه وشوه نو هغه وفرمایل : دا په قیامت کې مراد ده چه الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ د کافرانو دپاره په مؤمنانو باندې هیڅکله لاره جوړه نکړی بلکه کافران به خکته په جهنم کې وی او مؤمنان به پورته په جنت کې وی. (الطبریؒ) دا هم یو ښه مصداق دې لیکن ظاهر دا ده چه آیت کې تخصیص د آخرت نشته بلکه دنیا او آخرت دواړو ته شامل دې.

۲- جواب : د سبیل نه مراد داسې غلبه ده چه په هغې سره د مسلمانانو دولت او د هغوی آثار بیخی د دنیا نه ختم شی او د دوی وجود بیخی ختم کړی لکه رسول الله ﷺ د الله تعالیٰ نه درې دعاګانې طلب کړې وې چه دوه پکې قبولې شوې وې، یوه دا وه چه زۀ به ستا

په امت باندې دشمنان دومره نهٔ مسلط کوم چه د دوی بیخ وباسي [وَلَوِ اجْتَمَعَ عَلَيْهِمْ مَنْ بِأَقْطَارِهَا] (الترمذي) اګرکه هغه څوك پرې ټول ورغونډ شي کوم چه د دنیا په اطرافو کې وسیږي. (القرطبي ٥/ ٤١٩)

دا تفسير هم ناقص ښکاري ځکه چه دلته الله تعالیٰ (الْمُؤْمِنِيْنَ) لفظ استعمال کړیدې یعنې په ټولو مؤمنانو تسلط نشي موندلې. او داسې ئې نهٔ دي ویلي چه په هیڅ مؤمن باندې تسلط نشي موندلې.

٣- بعض وائي دلته د سبیل نه مراد سبیل الحُجّة دې، کافران که هر څومره غلبه وکړي لیکن حجت ئې باطل دې او د مؤمنانو حجت د الله د طرف نه دې، نو هغه حق دې او غالب دې. او هیڅکله باطل حجت په حق حجت باندې غلبه نشي کولې. (زاد المسیر ٢/ ٢١٠)

٤- ښه جواب دا دې چه دلته الله تعالیٰ (المؤمنين) کلمه ذکر کړیده او کله چه مؤمنین مطلق ذکر شي نو کامل ایمان مراد وي، نو مطلب دا دې چه مؤمنانو کې کله کامل ایمان وي نو د الله قانون دا دې چه کافران به پرې هیڅکله نهٔ غالبه کوي، نهٔ به ئې نیولې شي او نهٔ به ئې قتلولې شي، او نهٔ به ورته هیڅکله تکلیف رسولې شي ځکه چه مؤمن د الله دوست دې، د الله په حفاظت کې دې، نو دا ډیره مزیداره وعده ده نو د سبیل نه مراد لاره د تکلیف او د قتل او د غلبې ده. لیکن ددې سره دا خبره ملګرې ده چه کله په دوی باندې غلبه کیږي نو د هغې وجه به د دوی عملونه وي، دوی به په دغه وخت کې په صفت د کامل ایمان باندې باقي نهٔ وي، یعنې کله چه د کافرانو غلبه راځي نو د هغې وجه دا وي چه په ایمان والو کې ډیر لږ خلك صحیح ایمان والا وي، اکثر پکې منافقان، او بد عمله او فاسقان او ریاء کار وي، او په صفت د کامل ایمان باندې پاتې نهٔ وي لکه دا وعده الله تعالیٰ په بل آیت کې هم کړیدې ﴿إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ (الحج:٣٨) الله تعالیٰ د ایمان والو د طرفنه مدافعت کوي پدې شرط چه ایمان والا په خپل صحیح او کامل ایمان باندې باقي وي.

ددې مثال دا دې چه په بدر کې کامل ایمان وو، نو ډیرو لږو کسانو ته غلبه ملاؤ شوه او په اُحد کې معمولي شان د کامل ایمان خلاف وشو په پنځوسو ناستو ملګرو کې څلویښتو نه مخالفت وشو نو فتح په شکست بدله شوه. نو پدې آیت کې عمومي قانون ذکر شویدې چه ددې نه ځینې شاذ او نادر صورتونه وځي چه د هغې سبب د کامل ایمان مخالف کارونه کول دي، لکه ظلمونه، عصیانونه، او غفلتونه شو.

دا تفسیر امام ابن القیّم په بدائع التفسیر کې غوره کړیدې صرف سوال دا راځي چه

انبیاء علیهم السلام او بعض متقیان ولے قتل شویدی ؟ جواب : یا د امت د عصیان د وجه نه یا د الله تعالیٰ د طرفنه په هغوی باندے ابتلاء (او امتحان) وو او د ابتلاء او د مصیبت ترمینځ ډیر فرق دے۔

| إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ وَإِذَا قَامُوا |
|---|
| یقیناً منافقان دهوکه کوی د الله تعالیٰ سره او هغه دهوکے ورکوی دوی ته او کله چه ودریږی |
| إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَىٰ يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٤٢﴾ |
| مانځه ته نو ودریږی ناراسته، خودنه کوی خلقو ته او نۀ یادوی دوی الله تعالیٰ مګر لږ۔ |

**تفسیر** : په دے آیت کی هم د منافقانو بعض بد اعمال بیان شویدی۔

د منافقانو د الله تعالیٰ سره د دهوکے صورتونه په سورة البقره کی بیان شویدی۔

بعض دا دی : منافقانو په ظاهره کی (په ژبه) ایمان راوړیدے لیکن په زړه کی کافران دی، ظاهره کی په نیك عملونو کی حاضری ورکوی لیکن زړه ئے د الله سره نۀ دے، او دا قانون دے چه څوك په یو خدمت کی حاضر شی او د زړه نه نۀ وی نو دیته دهوکه وائی۔

**وَهُوَ خَادِعُهُمْ** : الله به هم د دوی سره د دهوکے معامله وکړی او د الله د طرفنه دهوکه ورکول په حقیقت باندے بناء دی، او د بندګانو سره مشابه نۀ ده نو د الله تعالیٰ دهوکه دوی لره داسے ده چه دوی باندے په دنیا کی د ایمان والو احکام جاری کوی چه وینه او مالونه به ئے محفوظ وی، نو دوی به د خپلے کم عقلئ او ناپوهئ په وجه دا ګمان کوی چه مونږ مسلمانانو ته دهوکه ورکړه لکه څنګه په دنیا کی زمونږ مالونه او نفسونه محفوظ شو نو په آخرت کی به هم د عذاب نه بچ کیږو، نو الله تعالیٰ هم د دوی سره دغسے معامله کوی چه په دنیا کی دوی ته پرے سستوی او دوی په خپل حال باندے پریدی، او دغه شان د دوی نفسونه او مالونه محفوظ ساتی دے دپاره چه په دهوکه کی پریوزی او په آخرت کی به د دوی ځای جهنم کی د ټولو نه لاندے کنده وی۔

او په آخرت کی دهوکه دا هم ده چه د مسلمانانو سره به ئے یو ځای پورے بوځی بیا به ترے په پُل صراط کی رڼا واخلی۔ دارنګه د جنت دروازه به ورته کولاوه کړی بیرته به ئے جهنم ته راستانه کړی۔

**وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَىٰ** : دا هم د منافقانو د دهوکے یو صورت دے چه په

ظاهره کې خو مؤنځ کوي ليکن سخت بې اخلاصه دي ګويا که بې اخلاصه عبادت په الله باندې د اخلاص په عبادت منې۔

نو د منافقانو بد صفت دا شو چه کله مانځه ته راځي نو دروند او سست اُودريږي لکه چه چا په دې کار مجبوره کړي وي ځکه چه د دوی نيت د مانځه نۀ وي، او نۀ په هغې باندې د دوی ايمان وي، او نۀ د مانځه په ارکانو او اعمالو باندې سوچ او فکر کوي۔ د دوی مقصد خو خلقو ته رياکاري کول وي، دې دپاره چه دوی ورته مسلمانان ښکاره شي۔ او په مانځه کې سستي ځکه کوي چه د ثواب اراده نۀ لري او په پريخودو سره د عذاب نه نۀ يريږي (قرطبیؒ) نو پدې کې مؤمنانو ته يره ورکول دي چه تاسو مانځه ته راځئ نو په خوشحالئ او تازه ګئ سره راځئ۔

حافظ ابن مردويهؒ د ابن عباس رضی الله عنهما قول نقل کړيدې چه دا بده خبره ده چه بنده په مانځه کې سُست ولاړ وي، بلکه هغه له خوشحاله او تازه مخ سره مونځ کول پکار دي، ځکه چه بنده په مانځه کې د خپل رب سره جرګه کوي او الله تعالیٰ ددهٔ مخې ته وي او کله چه هغه ته آواز کوي نو د هغه آواز آوري۔

حاکمؒ وائي : دا آيت دليل دې چه په مانځه کې سُستي کول د منافق نښه ده۔

نو ددې نه معلومه شوه چه کله ستا د مانځه سره مينه وه او په شوق باندې مانځه ته پاڅيدلې او هغې درلـه خوند درکولو نو تۀ د منافقت نه خلاص يې۔ الله تعالیٰ ډير اکرم او عزتمند دې ددې نه چه داسې زړه کې منافقت راولي چه هغه د الله ذاکر وي۔ او که مونځ سره دې شوق او جذبه او د تکبيرِ اولیٰ رانيولو سره دې مينه نۀ وه، نو پوهه شه چه منافقت په تا کې ژاله اچولې ده۔

يُرَآؤُوْنَ النَّاسَ: د منافقانو بل بد صفت دا دې چه دوی په عبادتونو کې مخلوق ته ځان ښائي او د مخلوق جانب ورته د الله نه لوی ښکاره کيږي نو هغوی ته ځان ښائي۔

وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ : يعنې په مانځه کې الله ډير کم يادوی، نۀ خشوع او خضوع اختياروی او نۀ ورته دا معلومه وي چه په ژبه څه وائي بلکه زر زر يو څو کلمات ووائي او رسول الله ﷺ فرمائي :

[تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِ يَجْلِسُ يَرْقُبُ الشَّمْسَ حَتّٰى إِذَا كَانَتْ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ قَامَ فَنَقَرَ أَرْبَعًا لَا يَذْكُرُ اللّٰهَ فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا] (الموطأ ٥١٤ وصحيح مسلم ١٤٤٣ عن انس بن مالك)

دا د منافق مونځ دې چه ناوخته مازيګر کې د نمر انتظار کې ناست وي چه کله نمر د

شیطان دوه ښکرونو مینځ ته راشي (یعنی زیړې مازیګر شي) نو پاځیږي څلور ټونګې ووهي چه الله په کې ډیر کم یادوي.

په صحیحینو کې دي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ((په منافقانو باندې د ټولو نه زیات درووند د ماسخوتن او سحر مونځ دې)). ځکه چه پدې وخت کې پوره ریا نهٔ کیږي.

**وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ إِلَّا قَلِيْلًا** : دا په عام اوقاتو کې هم مراد دې چه منافقانو کې د الله یادول ډیر کم دي. ۱– او کم والې پدې وجه دې چه صرف په خولې سره دې او په زړه کې ئې د الله یاد نشته. ۲– یا دا چه کم ځکه دې چه د خلکو د خودنې دپاره دې او په ریاء سره دې یعنی اګر که منافقان په ظاهري حالت کې ډیر ذکر کوي، زر تسبیې به ورسره وي لیکن د اخلاص نه خالي وي او په ریاء سره وي نو ځکه لږ دې. د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دي چه که د دوی ذکر د الله دپاره وې (یعنی په اخلاص سره) نو ډیر به وې.

او ظاهري مطلب ئې هم صحیح دې چه د منافقانو صفت دا دې چه کم ذکر کوي او د ایمان والو صفت دا دې چه ډیر ذکر به کوي. د منافق اکثر اوقات د دنیا په خبرو باندې آباد وي او د الله ذکر او تسبیحات او حمدونه ډیر کم وائي. (قاسمیؒ)

| مُّذَبْذَبِيْنَ بَيْنَ ذٰلِكَ لَا إِلٰى هٰٓؤُلَآءِ وَلَا إِلٰى |
|---|
| حیران دي په مینځ ددې (دوه لارو) کې، نهٔ دوی (مؤمنانو) طرف ته دي او نهٔ دوی (کافرانو) |
| هٰٓؤُلَآءِ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ﴿۱۴۳﴾ |
| طرف ته دي او هغه څوک چه الله تعالیٰ ئې ګمراه کړي نو هیچرې وبه نهٔ مومې ته هغه لره لاره. |

**تفسیر** : پدې کې د منافقانو نور بد صفات ذکر دي چه دوی د ایمان او د کفر ترمینځ حیران او پریشانه دي، د مؤمنانو سره هم ملګري نهٔ وي ځکه چه عقیده او زړه کې د دوی سره ئې نو شان نهٔ وي او د کافرو سره هم نهٔ وي ځکه چه په ظاهره کې ئې کلمه وئیلې ده او مونځونو ته حاضریږي او داسې انسان چه په دوه ژالو ئې خپې ایښې وي ډیر پریشانه وي، دارنګه د دوی نه بعض شکیان وي نو کله اخوا مائل کیږي او کله دیخوا. او دا کار د خپلو دنیاوي فائدو دپاره کوي لکه:

بخاريؒ او مسلمؒ د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړیدې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : [مَثَلُ الْمُنَافِقِ كَمَثَلِ الشَّاةِ الْعَائِرَةِ بَيْنَ الْغَنَمَيْنِ تَعِيْرُ إِلٰى هٰذِهٖ مَرَّةً وَإِلٰى هٰذِهٖ مَرَّةً]

د منافق مثال د هغه چیلئ دے چه وارثے راوړے وی او د دوه رمو ترمینځ حیرانه روانه وی، کله یو طرف ته ځی (د خپل شهوت پوره کولو دپاره) نو کله بل طرف ته، هغه فیصله نشی کولے چه چا پسے لاړه شی.

مُذَبْذَبِيْنَ : دا حال دے د (يُرَاؤُوْنَ) نه یا د (يَذْكُرُوْنَ) د ضمیر نه.

ذبذبه حیرانتیا او پریشانتیا ته وائی او په اصل کی هغه آواز ته وئیلے شی چه یو زوړند شی ته د حرکت ورکولو نه پورته کیږی. (راغب) نو منافقان هم د مسلمانانو او د کافرانو ترمینځ زوړند وی او د دواړو ډلو ترمینځ تالیٔ وهی.

او ذبذبه په معنیٰ د دفع کولو سره هم استعمالیږی. گویا که هره ډله ئے دیکه کوی چه زمونږ خوا له مهٔ راځه.

بَيْنَ ذٰلِكَ : اشاره ده ایمان او کفر ته.

لَا إِلٰى هٰؤُلَاءِ : د (لَا) متعلق پټ دے اَیْ لَا مَنْسُوْبِيْنَ اِلٰى هٰؤُلَاءِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَلَا اِلٰى هٰؤُلَاءِ الْكَافِرِيْنَ] یعنی نهٔ منسوب دی دے مؤمنانو ته او نهٔ کافرانو ته.

دا تشریح د مذبذبین شوه.

او د دواړو جملو فرق دا هم دے چه مذبذبین کی د دوی لازمی صفت بیان شو چه دوی حیران دی، او د (لا الی هؤلاء) مطلب دا دے چه نور خلك هم د دوی په نسبت کولو کی حیران دی ځکه چه داسے متضاد کارونه کوی چه کله یو طرفته مائل وی او کله بل طرفته یعنی نهٔ د مؤمنانو په شان اخلاص پکی شته او نهٔ د کافرانو په شان ښکاره کفر کوی.

د منافقانو نه کافران ښه دی یو غیرت خو پکی شته چه په خپل کفر باندے ښکاره ولاړ دی او منافقان بی غیرته دی.

فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا : یعنی د هدایت لاره به ورله موندہ نکړے چه په هغے باندے ئے روان کړے. یا به هغه په نیغه لاره ونهٔ وینے بلکه حیران او گډوډ به روان وی.

| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَاتَتَّخِذُوا الْكَافِرِيْنَ أَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ أَتُرِيْدُوْنَ |
|---|
| اے ایمان والو! مهٔ نیسئ کافران دوستان سویٰ د مؤمنانو نه آیا تاسو اراده لرئ |
| أَنْ تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَانًا مُّبِيْنًا ﴿۱۴۴﴾ |
| چه وگرځوئ د الله دپاره په خپل ځانونو باندے دلیل ښکاره. |

**تفسیر** : پدے آیت کی بیرته اولے خبرے ته رجوع کوی چه منافقان د کافرانو سره دوستی ساتی، او د کافرانو سره دوستی کول د توحید او د ایمان منافی شے دے، نو الله ایمان والا منع کوی ددے نه چه دوی د کافرانو سره دوستی وساتی۔ دارنګه مخکی د منافقانو بد صفات ذکر شو نو اُوس ایمان والا د هغوی د دوستانے نه منع کوی چه اے ایمان والو! کافرانو نه خپل دوستان مهٔ جوړوئ او دوی ته د مسلمانانو رازونه مهٔ ورکوئ، که تاسو داسے کوئ نو خپل خلاف به د الله په نیز دلیل جوړ کړئ او د عذاب مستحق به شئ۔

حاکمؒ وائی : دا آیت دلیل دے چه د کافر دوستی حرامه ده۔ زمخشری لیکلی دی چه صَعْصَعَه بن صُوْحَانْ خپل وراره ته اُووئیل : د مؤمن سره مخلصانه سلوك کوه او د کافر او فاجر سره په ښائسته اخلاقو راتلل کوه، فاجر به ستا د ښائسته اخلاقو نه راضی کیږی او د مؤمن په تا باندے حق دے چه د هغه سره به مخلصانه سلوك کوے۔ (قاسمیؒ)

**الْکَافِرِیْنَ** : کی دوه قوله دی (۱) یا ترے ښکاره کافران مراد دی۔ (۲) یا ترے منافقان مراد دي۔ دواړه مراد کیدل هم صحیح دی۔

**اَوْلِیَآءَ** : د کافرانو دوستی دا ده چه د هغوی سره په زړه کی مینه وساتی، هغوی ته د مسلمانانو رازونه ښکاره کړی، هغوی له خور لور ورکړی، د مسلمانانو په خلاف د هغوی سره مدد وکړی۔ البته ظاهری لین دین (اخستل خرڅول) ورسره کول جائز دی هرے مسئلے له به خپل خپل نوعیت ورکولے شی۔

**سُلْطَانًا مُّبِیْنًا** : اَیْ عَلٰی عَذَابِکُمْ - یعنی په خپل عذاب باندے۔ یعنی تهٔ به د قیامت په ورځ په طمع یی چه زما خو ډیر عملونه دی، زهٔ به جنت ته ځم لیکن الله به فرمائی چه تهٔ د جهنم والو نه ئے ځکه چه ستا د کفارو سره مینه وه او (اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ) بنده به د هغه چا سره حساب وی چه د چا سره ئے مینه وی۔

سلطان : دلیل او برهان ته وائی۔

اِنَّ الْمُنٰفِقِیْنَ فِی الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ وَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ

یقیناً منافقان به په لاندے طبقه د اُور کی وی او هیچرے تهٔ به موندهٔ نکړے د دوی دپاره

نَصِیْرًا ﴿۱۴۵﴾ اِلَّا الَّذِیْنَ تَابُوْا وَاَصْلَحُوْا وَاعْتَصَمُوْا

مددګار۔ مګر هغه کسان چه توبه ئے وویستله او نیك عمل ئے وکړو او ځان ئے بچ کړو

| بِاللّٰهِ وَاَخْلَصُوْا دِيْنَهُمْ لِلّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ |
|---|
| په دین د الله تعالیٰ او خالص ئے کړو عبادت خپل د الله دپاره نو دغه کسان به ملګری وی |
| الْمُؤْمِنِيْنَ وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿١٤٦﴾ |
| د ایمان والو او زر دے چه ورېه کړی الله تعالیٰ مؤمنانو ته اجر لوئی۔ |

**تفسیر** : په دے آیت کی د منافقانو انجام بیان شویدے چه دوی به په جهنم کی د تهولو نه لاندے کنده کی وی۔ او بیائے توبی ته ترغیب ورکړیدے او ددے بد انجام نه ئے هغه خلق مستثنیٰ کړیدی چه هغوی د منافقت نه توبه اُوویستله او خپل عمل ئے نیك کړو او د کافرانو دوستی ئے پریخوستله او د الله سره ئے تعلق مضبوط کړو او په خپل دین کی د الله دپاره مُخلص شو، الله تعالیٰ فرمائی چه دوی به په آخرت کی د مؤمنانو سره په جنت کی اُوسیږی۔

حاکمؒ په مستدرك کی، بیهقیؒ په شعب الایمان کی او ابن ابی حاتمؒ په خپل تفسیر کی د معاذ بن جبل ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : ((خپل دین د الله دپاره خالص کړئ، ستاسو لږ عمل به هم کافی وی))۔

**الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ** : د جهنم طبقے چه ښکته کیږی نو سختیږی او د جنت درجات چه پورته کیږی نو کمال پکی پیدا کیږی۔

الدرك : طبقے ته وائی او د جهنم اُوه طبقات دی د یو بل لاندے دی۔ ١-جهنم، ٢- لظیٰ، ٣-حُطَمَه، ٤- سَعِیر، ٥- سَقَر، ٦- جَحِیْم، ٧- هَاوِیَه او دے تهولو ته نار (اُور) وئیلے کیږی۔ او دا تهول د جهنم نومونه هم دی۔

مفسر قاسمیؒ لیکی چه د منافقانو عذاب او طبقه ښکه سخته ده چه دوی د کفر سره استهزاء په اسلام پورے او د مسلمانانو سره خداع او نور بد صفات یو ځای کړیدی۔

امام رازیؒ لیکی : منافقان د مسلمانانو په رازونو ډیر خبردار وی نو دوی کافرانو ته خبر ورکوی چه د هغے په وجه په مسلمانانو تکلیفونه زیاتیږی، نو ددے سبب په وجه منافقانو ته هم دغه شان عذاب سخت ورکړے شو۔ دارنګه د منافقانو کفر پټ دے نو د عذاب دپاره ئے هم ډیر پټ ځای پکار دے ځکه چه جزاء د جنس د عمل نه وی۔

د منافقانو جهنم ته د بوتللو تشریح د عبد الله بن مسعود ﷺ په حدیث کی داسے راغلے ده

چه (فِيْ تَوَابِيْتَ مِنْ حَدِيْدٍ مُقْفَلَةٍ عَلَيْهِمْ فِيْ اَسْفَلِ النَّارِ) د وسپنې په صندوقونو کې به په بند کړې شوې وي چه هغې ته به تالې لګولې شوې وي او په لاندې طبقه د جهنم کې به وي۔
(شعب الايمان، ابن ابی شيبه وصححه السيوطی فی البدور السافرة : رقم الحديث : ٦٩)

اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا : دا د منافقانو د توبې بيان دې چه پدې کې څلور شرطونه دي۔ اول توبه يعنې منافقت پريښودل۔ دويم : اصلاح د عمل چه د منافقت نه روستو به نيك نيك اعمال شروع کوي، ځکه چه دوی مخکې فاسد او د ضرر والا اعمال کول۔

دريم : اعتصام بالله۔ دا قيد ځکه لګوی چه د منافقانو په الله باندې بهروسه نهٔ وه، د مخلوق نه متأثره وو نو الله دا شرط ولګولو چه اعتماد او بهروسه به په الله کوی۔

وَاعْتَصَمُوْا بِاللهِ : د اعتصام معنیٰ ده په الله باندې ځان بچ کول او ددې دوه صورتونه دي يو په الله باندې توکل او بهروسه کول دي، او دويم : د الله په دين باندې منګولې لګول او هغه کلك رانيول او دين د هيچا دپاره نهٔ پريښودل دي نو پدې سره به د منافقت نه بچ کيږي چه په دين باندې په هر ځای کې عمل کوی۔

څلورم شرط : (وَاَخْلَصُوْا دِيْنَهُمْ لِلّٰهِ) دا مقابل د رياء دې چه د توبې نه روستو به صرف د الله دپاره اعمال کوی۔

فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ : يعنې دا کسان به د مؤمنانو سره ملګرې وي يعنې په دنيا او په آخرت کې به د مؤمنانو نه حسابيږي۔ او لفظ د (مَعَ) په معنیٰ د (مِنْ) سره اَیْ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۔ دوی به د مؤمنانو نه وي۔ او لفظ د مَعَ ئې ذکر کړو پدې کې اشاره ده لرې والي د دوی ته د نفاق نه، او اُوچتې مرتبې حاصلولو ته، يعنې دوی به پدې کارونو سره په لاندې طبقه د اُور کې نهٔ وي بلکه دوی ته به د هغه مؤمنانو په شان اُوچت درجات ملاويږي کوم چه په ايمان باندې هميشه وو او هيڅ منافقت ئې نهٔ دې کړې۔ (قاسمیؒ)

| مَا يَفْعَلُ اللهُ بِعَذَابِكُمْ اِنْ شَكَرْتُمْ وَاٰمَنْتُمْ وَكَانَ |
| --- |
| څه کوی الله تعالیٰ په عذاب ستاسو که شکر کوئ تاسو او ايمان راوړئ او دې |
| اللهُ شَاكِرًا عَلِيْمًا ﴿۱۴۷﴾ |
| الله تعالیٰ قبلونکې د عمل، په هر څه باندې پوهه۔ |

**تفسير:** دا هغه آيت دې چه د ابن عباسؓ په قول ددې امت دپاره د دنيا او ما فيها نه غوره

دے۔

مناسبت :

مخکې د الله غضب ذکر شو اُوس د الله تعالیٰ امتنان او رحمت بیانیږي، او دا آیت جواب د سوال دے او ترغیب دے ایمان او شکر طرفته۔

سوال پیدا شو چه الله تعالیٰ یو بنده درك اسفل ته بوځي او غضب پرے کوي نو دے ته به د الله ضرورت وي لکه څنګه چه یو تن غصه شي نو ترڅو ئے چه غصه نافذه کړي نۀ وي نو بلۀ پریشر ئے نۀ کمیږي نو آیا الله به د بندګانو عذاب ته ضرورت لري؟ نو الله فرمائي هیڅکله داسے نۀ ده، الله تعالیٰ د دنیا د بادشاهانو په شان نۀ د حسد او د کینې په وجه تاسو ته عذاب درکوي، او نۀ ئے ستاسو په عذاب کې څه ګټه شته، او نۀ هغه ته ستاسو په کفر باندے څه ضرر شته چه ستاسو په عذاب ئے د ځان نه واړوي بلکه هغه خو بې نیازه دے، بلکه دا د الله تعالیٰ کمال دے چه د بندګانو سره احسان کوي او دا ئے هم کمال دے چه د مجرمانو نه بدله اخلي نو ستاسو عذاب ستاسو د کفر په وجه راځي نو الله پدے آیت کې بندګانو ته چل ښائي چه دوه کارونه همیشه وکړئ نو د الله عذاب به هیڅکله نۀ راځي چه هغه د الله شکر کول او په هغه باندے د زړۀ نه ایمان راوړل دي۔

**مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ** : ما استفهامیه ده او استفهام انکاري دے یعنې الله ستاسو په عذاب څه کوي، یعنې عذاب نۀ درکوي۔ یا ما نافیه ده۔

**إِنْ شَكَرْتُمْ وَآمَنْتُمْ :**

سوال وجواب

سوال : ایمان خو د شکر نه مخکې دے نو دلته څنګه روستو ذکر شو ؟

جواب : ۱- ځینې مفسرین لیکي چه دلته شکر توحید ته وائي یعنې اول د شریکانو نفي کول او بیا په الله باندے ایمان راوړل او توحید په ایمان باندے مقدم وي۔ (زاد المسیر۲/۱۳۵) لیکن دا نیمګړے مصداق دے۔

۲- ځینې وائي چه شکر په معنیٰ د توبې سره دے او توبه په ایمان مخکې وي او د ایمان نه مراد اخلاص او په الله باندے اعتصام کول دي۔ (روح المعاني)

۳- بعض وائي : (وَآمَنْتُمْ) جمله د (شَكَرْتُمْ) دپاره عطف تفسیر دے۔ او دا ځکه چه دلته خطاب کافرانو او منافقانو ته دے یعنې اے کافرانو ! که تاسو شکر وکړئ یعنې ایمان

راوړئ- (عزيز التفاسير) دا ناقص تفسير دے۔

٤- ظاهر دا ده چه شکر دلته په خپله معنیٰ دے نو شکر ئے مقدم کړو ځکه چه انسان اول کی د الله نعمتونو ته گوری نو د هغے په نتیجه کی ئے په زړه کی د شکر جذبه پیدا شی نو د هغے نه روستو ایمان ته راشی، او صحیح لاره اختیار کړی- د الله په اسماء او صفاتو ئے یقین راشی- نو اجمالی شکر د ایمان نه مخکی وی او تفصیلی شکر چه ټول اعمال کوی دا د ایمان نه روستو وی- نو شکر سبب د ایمان شو او سبب په مسبب باندے مقدم وی-

٥- بله وجه دا ده چه شکر مقصود دے او ایمان د هغے وسیله ده ځکه چه شکر په ژبه سره د الله ثناء ویل، او په زړه کی د هغه تعظیم او مینه ساتل، او په بدن باندے د هغه دپاره عبادات کول، او د هغه دپاره مال لگول، او د نعمتونو نسبت خپل خالق ته کول، او د هغه نعمت د الله په نافرمانئ کی نهٔ استعمالول دی لکه ددے تشریح په سورة البقره کی تیره شویده۔

**شَاكِرًا عَلِيْمًا**: ١- شاکر په معنیٰ د قبلونکی د اعمالو سره- ٢- یا قدردان- یعنی الله تعالیٰ سره د بندگانو د عملونو ډیر قدر دے- ٣- اَلَّذِىْ يَجْزِىْ بِالْعَمَلِ الْقَلِيْلِ الْاَجْرَ الْجَزِيْلَ - په لږ عمل باندے ډیره بدله ورکونکے-

| لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ |
|---|
| نهٔ خوښوی الله تعالیٰ په زوره وئیل د بدے وینا مگر هغه څوك |
| ظُلِمَ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا ﴿١٤٨﴾ |
| چه ظلم کړے شوے وی په هغه باندے او دے الله تعالیٰ آوریدونکے پوهه- |

**تفسير**: مناسبت: مخکی د منافقانو بد صفتونه ذکر شول نو هغوی عذر وکړو چه مونږ یهودو خواته ورځو او هغوی ته کفر او شرك ښکاره کوو نو پدے کی مونږ تقیه کوو یعنی د هغوی د شر نه ځان خلاصولو دپاره دا کار کوو- نو پدے آیت کی په هغوی باندے رد کوی چه تاسو خو هیڅ مجبوره نهٔ یئ او تقیه خو په وخت د اکراه (سختے مجبورتیا) کی وی- او کلمه د کفر په حالت د اکراه کی وئیل جائز دی لکه د سورة النحل (١٠٦) آیت کی الله تعالیٰ ددے تشریح کړیده-

او په آيت کې نور مصداقات هم شته لکه:

الله تعالیٰ دا خبره نهٔ خوښوي چه بنده په خپله ژبه سره بدې خبرې د خلقو په مخکې بيان کړي لکه کنځل، بد رد، غيبت، چغل خوري، چا ته ښکاره بنيرې کول، بده ژبه استعمالول او د فسق او فجور کلمات په ژبه راوستل. په بنيرو کولو کې يو بې رحمي ده او بل د الله بې ادبي ده، او الله تعالیٰ ته د ظلم نسبت دې چه فلانے هلاک کړه.

ددې نه صرف هغه شخص مستثنیٰ دې چه په هغه باندې ظلم شوے وي، نو د هغه حق کيږي چه د حاکم په مخکې خپل مظلوميت بيان کړي يا ظالم ته بنيرې اُوکړي. د ابن عباس رضي الله عنهما نه همدا تفسير منقول دے. علماؤ د ظلم ډير صورتونه بيان کړيدي، په آيت کې هغه تمام صورتونه مراد دي.

ددې معنیٰ زيات وضاحت په هغه حديث سره کيږي چه ابوداوُدؒ او حافظ ابوبکر بزارؒ د ابوهريره ﷺ نه روايت کړيدے چه يو سړے رسول الله ﷺ خوا ته راغلو او وے وئيل چه زما يو ګاونډے ما ته ضرر راکوي. نبي کريم ﷺ هغه ته اُووئيل چه ته خپل سامان راوباسه او په لاره کې کيږده. نو هغه سړي دغه شان اُوکړل، کله چه به څوك په هغه ځاي تيريدو نو دهٔ ته به ئې تپوس کولو چه څه خبره ده؟ نو دهٔ به وئيل چه زما ګاونډے ما ته ضرر راکوي، نو هر سړي به وئيل چه اے الله! ته په دهٔ باندې لعنت اُوکړے، اے الله ته ئې اُوشرموے. آخر دا چه هغه سړے راغلو او وے وئيل چه کور ته لاړ شه قسم په الله تن نه روستو به زهٔ هيڅ کله تاته ضرر نهٔ درکوم.

(مسند البزار ٨٣٤٤، والادب المفرد رقم: ١٢٤، واسناده صحيح)

مجاهدؒ وائي چه دا آيت د يو داسې سړي په باره کې نازل شوے وو چه د هغه خوا ته يو ميلمه راغلو نو دهٔ د هغه خيال اُونکړو، پدې وجه هغه بل چا کره لاړو، او ددهٔ بد خصلت ئې خلقو ته بيان کړو، نو دهٔ دپاره دا کار جائز اُوګرځولے شو.

(رواه عبد الرزاق عن مجاهد- قاسمي وابن كثير)

په يو بل روايت کې زيات صراحت دے چه دا آيت د داسې سړي په باره کې دے چه د هغه خوا ته يو ميلمه راشي او دا د هغه خيال ونهٔ ساتي، نو هغه ددهٔ ځاي نه اُوځي او خلقو ته وائي چه فلانی سړي زما خيال ونهٔ ساتلو او زما سره ئې ښه سلوك اُونکړو. (قاسميؒ)

او که هغه ګوزاره حال ميلمستيا ورکړي او بيا دے غيبت کوي چه ما له ئې چرګان حلال نکړل نو دا خبرے بيانول د الله خوښ نهٔ دي.

سيدنا علي ﷺ نه ددے آيت په باره کې پوښتنه اوشوه نو هغه اُووئيل چه د کفر کلمه يا بده کومه بده خبره په ژبه باندے راوستل الله تعالى نۀ خوښوی، صرف د مظلوم او مجبور دپاره جائز دی. او ددے مثال د اسلام په ابتداء کې د مکے هغه مسلمانان دی چه په هغوی باندے به قريشو کافرانو د ظلم او زياتي غر گوزارولو او دوی به ئے رسول الله ﷺ ته په کنځلو او بد رد وئيلو مجبوره کول. نو عمار ﷺ داسے اُوکړل نو کافرانو پريخودو. او د هغه ملګرے ئے په سولئ باندے اُوځيژولو. عمار ﷺ او د هغه د ملګری په باره کې د سورة النحل آيت (١٠٦) نازل شوے وو چه په هغے کې د هغه د ايمان ګواهي ورکړے شويده. معلومه شوه چه که يو شخص رشتيني ايمان والا وی او د خپل ځان بچ کولو دپاره په ژبه سره د کفر کلمه ادا کوی نو هيڅ ګناه نشته لکه څنګه چه عمار ﷺ دغسے کړی وو او قرآن د هغه د ايمان ګواهي ورکړه.

مفسرين ليکی چه د﴿ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ ﴾ په عموم کې مخکې ذکر شوی ټول صورتونه داخل دی.

لَا يُحِبُّ اللّٰهُ : دا کلمه په اعتبار د معنىٰ سره آسانه ده ليکن مطلب ئے زور دے چه هرکله الله تعالىٰ د يو شی سره مينه نۀ کوی نو هغه حرام وی او هغه مبغوض شے وی.

اَلْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ : يعني رابښکاره کول د بدے خبرے. او هرکله چه الله تعالىٰ ته بده خبره رابښکاره کول خوښ نۀ دی، نو د هغ عمل ئے خامخا خوښ نۀ دے، څکه چه قول د عمل نه آسان وی.

الجهر : سوال دا دے چه د الله بده خبره رابښکاره کول خوښ نۀ دی آيا پټول ئے خوښ دی؟ جواب دا دے چه پټه خبره کله غير اختياري وی نو په هغے باندے الله تعالىٰ بنده نۀ راګيروی، او دلته د راګيرولو خبره روانه ده (لايحب). لکه يو تن لاړ شی او د کافرانو سره ملګرے شی او د مؤمنانو او د اسلام پورے توقے شروع کړی، او کلمے د کفر ښکاره وائی نو دا د الله خوښ نۀ ده او که زړه کې يوه غلطه خبره غير اختياري راشی او ښکاره ئے نکړی نو دا معاف ده.

إِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ فَاِنَّ

که ښکاره کوئ تاسو نيکئ لره يا پټوئ هغه يا معافي کوئ د بدئ نه نو يقيناً

اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا ﴿١٤٩﴾

الله تعالیٰ معافي کونکے قدرت لرونکے دے۔

**تفسیر** : مخکې آیت کې بدله اخستل جائز وګرځولے شو چه مثلاً چا باندے زیاتے شوے وي هغه خپله فیصله حاکم ته پیش کړي لیکن پدے آیت کریمه کې ددے نه افضل او غوره خبرے ته دعوت ورکړے شویدے، چه که یو شخص تا سره بدي اوکړي او ته هغه معاف کړے ځکه چه الله تعالیٰ معافي کونکے دے سره ددے نه چه الله تعالیٰ عفوے کولو ته محتاج نهٔ دے، بلکه په بدله اخستلو باندے قادر دے او هغه معافي کوي نو تا لره خو په طریق اولیٰ باندے معافي کول غوره دي، پدے وجه که ته هم د قدرت سره سره معافي کوے نو یقین اوساته چه الله ښکاره او پټ ټول پیژني هغه به تا هیڅ کله نهٔ ضائع کوي او تا ته به د هغې ښه نه ښه بدله درکوي۔

امام احمدؒ او امام مسلمؒ د ابو هریره ؓ نه روایت کریدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل :

((مال په صدقے کولو سره نهٔ کمیږي او څوك چه نور خلق معاف کوي الله به هغه ته عزت ورکوي او څوك چه الله دپاره تواضع (عاجزي) اختیاروي نو الله به هغه ته رفعت او اوچتوالے ورکوي))۔

إِنْ تُبْدُوا خَيْرًا أَوْ تُخْفُوهُ : ددے ډیر صورتونه کیدے شي، یو دا چه تا باندے ظلم وشو نو ته هغه ظلم پټ کړے او د ظالم سره په پټه یا ښکاره نیکي وکړے، ښه اخلاق ورسره استعمال کړے او د هغه په ظلم باندے صبر وکړے، یا د هغه دپاره د هدایت دعا وکړے۔ یا په حالت د اکراه کې یو انسان کلمه د توحید رانبکاره کړي، یا ئے په پټه ووائي او په عزیمت باندے عمل وکړي نو اجرئے کیږي۔

أَوْ تَعْفُوا عَنْ سُوءٍ : **فائده** : امام رازيؒ وائي : د خیر کارونه سره د ډیر والي نه په دوه څیزونو کې راګیر دي یو د مالك حقیقي سره رشتیني چلیدل، او بل د مخلوق سره نیك اخلاق کول، بیا د مخلوق سره اخلاق کول په دوه قسمه دي یو هغوی ته نفع (فائده) رسول او بل د هغوی نه ضرر دفع کول نو په (ان تبدوا خیرا او تخفوه) کې اشاره ده مخلوق ته فائدے رسولو ته او په (او تعفوا) کې اشاره ده د مخلوق نه ضرر دفع کولو ته نو پدے دوه کلمو کې د خیر ټول اقسام او د نیکئ ټول اعمال داخل شو۔ (قاسميؒ)

سوال : په خیر کې خو عفوه هم شامله ده نو مستقل ذکر کولو کې ئے څه حکمت دے؟

جواب : ددے دپاره ئے پرے صراحت وکړو چه مظلوم ته ترغیب ورکړي چه عفوه کول

بهتر کار دے، یعنی په هر خیر باندے اجر ملاویږی، لیکن په عفوه باندے ډیر زیات اجر ورکوی۔ بله وجه دا ده چه موقع د عفو ده۔
أَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْءٍ : یعنی که د خیر اظهار یا پټوالے نهٔ کوی بلکه صرف د ظالم د بدئ نه معافی وکړی او چُپ شی نو پدے هم اجر ملاویږی نو اوله اُوچته درجه ده چه ظالم سره احسان وکړی او صرف معافی کول دویمه درجه ده۔

| إِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ بِاللهِ وَرُسُلِهِ وَيُرِيْدُوْنَ أَنْ يُّفَرِّقُوْا |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه کفر کوی په الله تعالیٰ او په رسولانو د هغه او اراده لری چه جدا والے وکړی |
| بَيْنَ اللهِ وَرُسُلِهِ وَيَقُوْلُوْنَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَّنَكْفُرُ |
| په مینځ د الله او د رسولانو د هغه کی او وائی چه مونږ ایمان لرو په بعضو باندے او کفر کوو |
| بِبَعْضٍ وَّيُرِيْدُوْنَ أَنْ يَّتَّخِذُوْا بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا ﴿۱۵۰﴾ أُولٰٓئِكَ هُمُ |
| په بعضو او اراده لری چه ونیسی په مینځ ددے کی بله لاره۔ دا کسان هم دوی |
| الْكٰفِرُوْنَ حَقًّا وَأَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿۱۵۱﴾ |
| کافران دی په رشتیا سره او تیار کړیدے مونږ کافرانو دپاره عذاب سپکونکے۔ |

**تفسیر : مضمون** : ددے ځای نه روستو په اهل کتابو باندے رد ونه او د هغوی بد صفتونه ذکر کوی ځکه چه د منافقانو به ددے شاډوګانو او خنزیرانو سره دوستانه وه نو الله د دوی حال هم په ډاګه کوی چه دوی خو دومره ګنده مخلوق دے او منافقان ورسره ځان عزتمند کوی۔
او بله دا چه د منافقانو او اهل کتابو د یو بل سره په صفاتو کی مشابهت دے۔ بله وجه مخکی بیانه شوه چه معاشره او خلافت اسلامیه دے دوه ډلو خرابوله او په سورة النساء کی ازالة رسوب الجاهلیة وو دوی هغه بیرته راتازه کول غوښتل۔
بیا جواب د یو سوال دے په (۱۵۳) کی بیا الزامی جواب دے په ذکر د پنځویشت قبیح صفاتو د هغوی سره او په هغے کی ئے بعض صفات دا ذکر کړیدی چه دوی باندے طیبات حرام شویدی د دوی د جرم او ظلم د وجه نه او بیا نیکانو اهل کتابو ته زیرے دے،
او بیا تحقیقی جواب دے په (۱۶۳) کی ورسره د رسولانو د رالیږلو حکمت ذکر کوی په

(١٦٥) کی، بیا د قرآن کریم او د رسول الله ﷺ په صدق باندے د الله تعالیٰ او د ملائکو د شهادت ذکر دیے په (١٦٦) کی او په آخر د سورت کی تخویف اخروی دیے۔

دلته د یهودیانو د حالاتو تذکره د ډیرو حکمتونو په بنیاد شویده یو دا چه د منافقانو په شان یهودیانو هم معاشره خرابه وله نو مؤمنانو ته دشمنان په ګوته کوی چه د دوی سره موالات او دوستی ونکړی۔ او دویم پدیے کی د یهودیانو اصلاح غرض ده چه راشی د فسادونو نه لاس واخلی۔ دریم دا چه دلته یهودیانو اعتراض کړیے وو نو الله ورله عیبونه بیانوی او دا خبردارے ورکوی چه د چا دا قسم بد صفات وی نو د دوی د اعتراض هیڅ حیثیت نهٔ پاتی کیږی نو دیے دپاره چه د عوامو خلکو په زړونو کی د دوی لوی والے رانشی چه دا خو علماء او کتاب والا دی۔

إِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ : د ابن عباس رضی الله عنهما وینا ده چه دا آیت د کعب بن اشرف او د هغه د ملګرو په باره کی نازل شویدیے۔

حافظ ابن کثیرؒ او شوکانیؒ وغیرهما وائی چه پدیے آیت کی د کافرانو نه مراد یهود او نصاریٰ دی، چه په بعض انبیاؤ (علیهم السلام) ئے ایمان راوړو او بعضو نه ئے په غیر د دلیل او برهان نه انکار کولو۔

یهودیانو د عیسیٰ او محمد ﷺ نه انکار اُوکړو او نصاراؤ د خاتم النبیین محمد ﷺ نه انکار اُوکړو۔

وَرُسُلِهٖ : پدیے سره مقصد دا بیانول دی چه چا په بعض انبیاؤ کفر وکړو نو ګویا که هغه په تمامو انبیاؤ کفر وکړو پدیے وجه د رسل لفظ ئے جمع راوړه، ځکه چه د الله په تمامو انبیاؤ باندے ایمان راوړل ضروری دی، ځوك چه د حسد، عصبیت یا د خپل نفس د خواهش په وجه د یو نبی نه هم انکار کوی نو هغه دا ښکاره کړه چه په کومو انبیاؤ باندے دهٔ ایمان ښکاره کړیے وو نو دا د الله دپاره نهٔ وو بلکه د عصبیت او د نفس د خواهش او د کوم دنیاوی غرض په خاطر وو۔ الله تعالیٰ داسے خلق پدیے آیتِ کریمه کی دریے ځله د کفر په صفت سره یاد کړیدی۔

وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّفَرِّقُوْا بَيْنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهٖ : اَیْ فِی الْاِیْمَانِ۔ یعنی ځوك چه دا وائی چه مونږ په الله ایمان راوړیدیے او د هغه په ټولو رسولانو ایمان نهٔ راوړی نو دا په حقیقت کی په الله باندے ایمان لرونکے نهٔ دیے۔

یا دلته مضاف (اَمر) لفظ پټ دیے۔ یعنی د الله او د هغه د رسولانو د امر ترمینځ فرق کوی

چه په يو د ايمان دعوه لري او بل بانديے کفر کوي. او پديے کي دا هم داخليږي چه څوك وواني چه زهٔ د الله په کتاب ايمان لرم ليکن د رسول الله ﷺ احاديث نهٔ منم، نو دهٔ هم د الله او د هغه د رسولانو ترمينځ فرق راوستلو په ايمان کي. نو په منکرين حديث کي هم د يهودو مرض راغلے دے.

او ددے تفريق نه د ذواتو تفريق نهٔ دے مراد بلکه دا يقيني خبره ده چه الله خالق دے او رسولان د هغه مخلوق دے. نو دا جدا والے په ايمان کي دے لکه روستو ﴿وَيَقُوْلُوْنَ نُؤْمِنُ﴾ ئے تفسير دے.

وَيُرِيْدُوْنَ أَنْ يَّتَّخِذُوْا بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا : يعني دا دريم دين جوړول دي چه بنده صرف الله مني او د هغه رسولان نهٔ مني. نو ددے نه معلومه شوه چه د الله په نيز د اسلام او د کفر لارے پوره ښکاره دي چه (۱) اسلام : الله واحد او لاشريك گنړل او په ټولو پيغمبرانو بانديے ايمان راوړل دي. (۲) او کفر د الله سره په يوه وجه شريك جوړول، يا د پيغمبرانو نهٔ منل برابره خبره ده چه څيني ومني او بائے ونهٔ مني. نو ددے دواړو لارو ترمينځ دريمه لاره نشته مگر لکه څنگه چه منافقانو د خپلو ځانونو دپاره دريمه لاره جوړه کړيده او مذبذبه لاره ئے نيولے ده، نو دغه شان اهل کتاب هم غواړي چه د مسلمانانو دپاره يوه دريمه لاره جوړه کړي چه د الله پيغمبران په خپله خوښه او د خپل انتخاب مطابق ومني او کوم نبي ئے چه نهٔ وي خوښ په هغه ايمان رانهٔ وړي. د دوي په نيز دا کار عزت او وقار دے ليکن داسے نهٔ ده بلکه دا کار د دوي سپکاوے دے، الله تعالیٰ به ئے زر سپکونکي عذاب ته حواله کړي ځکه چه دوي د الله دشمنئ ته بډے وهلي دي او نوے دين جوړوي.

او دا حکم د هغه چا هم دے چه د الله په احکامو کي هم دا کار کوي ځکه يو منکر د دين اسلام وي، او مرتد عن الاسلام وي او بل د احکام شرعيه ؤ وي نو دے د اسلام سره مينه هم لري او ډير کرته اقرار د کلمے د توحيد هم کوي، ليکن د الله په احکامو بانديے عمل نهٔ کوي هغه ئے شا ته گوزار کړي وي او د الله په بعض احکامو بانديے اعتراضونه هم کوي لکه حدود نهٔ مني، او باقي د خپلو فاندو مطابق احکام مني نو دا هم د تفريق يو صورت دے.

هُمُ الْكَافِرُوْنَ حَقًّا : دلته حق په معنیٰ د ثابت او محقق سره دے او مطلب دا دے چه سو چه کفر او نيمائي کفر د الله په نيز يو برابر دي، نو اهل کتابو ته په څينو پيغمبرانو بانديے ايمان ساتل هيڅ فائده نهٔ رسوي بلکه دوي د الله په نيز يقيني کافر دي.

وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَلَمْ يُفَرِّقُوْا

او هغه کسان چه ایمان ئې راوړې په الله او په رسولانو د هغه او جدائي ئې نۀ ده راوستې

بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ أُولٰٓئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيْهِمْ

په مینځ د یو تن کې د دوی نه همدا کسان زر دي چه ورېه کړي دوی ته الله تعالیٰ

أُجُوْرَهُمْ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۵۲﴾

اجرونه د دوی او دې الله بخونکې رحم کونکې۔

**تفسیر** : قاسميؒ لیکي : پدې آیت کې د نبي کریم ﷺ د امت صفت بیان شویدې چه دا خلق د الله تعالیٰ په هر نازل کړي کتاب او په هر مرسل نبي باندې ایمان لري۔ پدې وجه الله د دوی سره وعده کړیده چه دوی ته به د دوی پوره پوره بدله ورکوي او که د دوی نه کوم تقصیر شوې وي نو هغه به ورته معاف کوي او په خپل رحمت سره به د دوی نیکیانو کې زیادت کوي۔ دا آیت هم په هغه آیتونو کې داخل دې چه ددې امت دپاره د دنیا وما فیها نه غوره دې۔

يَسْئَلُكَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتَابًا مِّنَ السَّمَآءِ

تپوس کوي ستا نه اهل کتاب چه (په یو ځای) نازل کړې په دوی باندې کتاب د آسمان د طرف نه

فَقَدْ سَأَلُوْا مُوْسٰى أَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَقَالُوْا

پس یقیناً غوښتې وو دوی د موسیٰ علیه السلام نه لوی شې ددې نه نو دوی وئیلي وو

أَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ثُمَّ اتَّخَذُوا

وښایه موږ ته الله تعالیٰ ښکاره نو ونیول دوی لره تندر په سبب د ظلم د دوی بیا ونیو دوی

الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ

سخي لره (په الوهیت سره) روستو د هغې نه چه راغلي وو دوی ته ښکاره دلیلونه

فَعَفَوْنَا عَنْ ذٰلِكَ وَآتَيْنَا مُوْسٰى سُلْطَانًا مُّبِيْنًا ﴿۱۵۳﴾

نو معافي وکړه موږ ددې نه او ورکړې وو موږ موسیٰ علیه السلام ته دلیل ښکاره۔

**تفسیر** : پدې کې د اهل کتابو اعتراض رانقل کوی او بیا د هغې الزامی جواب کوی او نور قبائح ئې بیانوی۔
اهل کتابو به د عوام الناس او د منافقانو او خپلو ملګرو په ذهن کې دا شك پیدا کولو چه ګوره موسیٰ علیه السلام ته الله تعالیٰ په یو ځل کتاب ورکړې وو، او دا سړے عربی دے او لړ لړ خبرے راوړی، کله یو آیت او کله دوه آیتونه، نو کیدے شی چه دا د ځان نه جوړوی، که دا حق رسول وی نو کتاب دې په یو ځل راوړی؟
نو دا د دوی تعنت او ضد وو (چه کله سړی ته حق ښکاره شی او بیا هم بې ځایه اعتراضونه کوی چه دا وښایه او دا وښایه لکه باطل پرست مناظرین دا کار کوی چه کله ملامته شی بیا وائی قولی حدیث پکی راته وښایه او کله وائی امر پکی وښایه او کله وائی صراحةً وښایه، مطلب ئې دلیل نۀ وی خو صرف د خپل مقابل حق پرست غلے کول وی، ستا نه مقصد پاتے کوی دا د اهل کتابو طریقه ده او باطل پرستو مبتدعینو خپله کړیده) د اهل کتابو مقصد دا وو چه د رسول الله ﷺ نه به پدے طریقه خلك واوړی او هغه به یواځې پاتی شی او د دوی کفر به په ځای پاتے شی۔
د محمد بن کعب قُرَظِیؒ، سدیؒ او قتادةؒ وینا ده چه یهودیانو د رسول الله ﷺ نه مطالبه اُوکړه چه لکه څنګه په موسیٰ (علیه السلام) باندے تورات لیکلے نازل شوے وو، دغه شان د آسمان نه زمونږ دپاره یو کتاب نازلیدل پکار دی دے دپاره چه مونږ په تا ایمان راوړو۔ دا خبره دوی د ضد او د کفر د وجه نه کړے وه، ورنه په رسول الله ﷺ باندے د ایمان راوړو دپاره په تورات کې د بیان شوی دلائلو او براهینو نه روستو د هیڅ دلیل ضرورت نۀ وو۔
كِتَابًا مِنَ السَّمَاءِ : د کتاب نه مراد دلته په یو ځل کتاب راتلل دی۔ لکه دا اعتراض امیانو مشرکانو هم کړے وو لکه په سورة فرقان (۳۲) آیت کی ذکر دے۔ نو دلته تنزیل (لږ لږ نازلول) په معنیٰ د انزال (یو ځل نازلولو) سره دے۔ او هرکله چه د دوی دا سوال عنادی وو نو پدے وجه اول جواب الزامی ورکړے شو په ذکر د قبائحو د دوی سره۔
کتاب : دلته په معنیٰ د خط سره هم دے چه د آسمان نه راشی او په هغې کې ئے اهل کتابو ته لیکلی وی چه اے اهل کتابو ! دا زما نبی دے او په دۀ باندے ایمان راوړئ (الطبریؒ) او دا سوال بعینهٖ مشرکانو هم کړے وو لکه په سورة بنی اسرائیل (۹۰) آیت کی راغلی دے ﴿وَلَنْ نُؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتَّى تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نَقْرَؤُهُ﴾
او سورة المدثر آیت (۵۲) کی دی : ﴿بَلْ يُرِيدُ كُلُّ امْرِئٍ مِنْهُمْ أَنْ يُؤْتَى صُحُفًا مُنَشَّرَةً﴾ بلکه هر

یو د دوی نه اراده لری چه ورته ورکړے شي کتابچے خورے ورے).
نو کیدے شي چه اهل کتابو دا مختلف سوالونه کړی وی.
**فَقَدْ سَأَلُوا مُوسٰى** : پدے کی الزامی جواب بیانوی او تفصیلی جواب په (۱۶۳) کی ورکوی چه دا خو د الله عادت دے چه کله یو شان وحی نازلوی او کله بل شان، ډیرو پیغمبرانو ته الله لږه لږه وحی رالیږله نو ولے ګنے دوی به په باطله وو نو د الله دوه عادته دی چه کله د حکمت بناء په یو ځل کتاب ورکوی، او کله لږه لږه وحی رالیږی. نو دا خو د اعتراض هیڅ خبره نۀ ده.
او د الزامی جواب حاصل دا وی چه ته دا اعتراض ولے کوے، تا کی خپله څو مره عیبونه دی هغے تـه نۀ ګورے، تا خو خپل په یو ځل نازل شوے کتاب هم نۀ دے منلے، نو که مونږ دغه کتاب راوړو هم تۀ ئے نۀ منے، نو ستا دلیل مطلب نۀ دے بلکه ورانے ډیے غرض دے.
**فَقَدْ** : کی فاء سببیه ده، او دلته مخکی عبارت پټ دے (پرواه مکوه او د دوی دا مطالبه لوېه مۀ ګنړه او مۀ حیرانیږه)
**أَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ** : یعنی په یو ځل کتاب غوښتل او نازلول وړه خبره ده دوی ددے نه ډیر لوی فساد کړے وو، چه د لوی الله د لیدو مطالبه ئے کړے وه په طریقه د تعنت او ضد سره نۀ په طریقه د هدایت سره. او دا سوال د دوی مشرانو کړے وو لیکن دوی پرے راضی وو نو ځکه دوی ته نسبت وشو.
**فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ** : دوی خو د موسیٰ عليه السلام نه ددے نه هم لوئی سوال کړے، دوی وئیلی وو چه مونږ ته الله پدے ظاهری سترګو راوښایه، نو آسمان نه په دوی باندے تندر راپریوتو چه د دوی د عناد او د استکبار په وجه هغه دوی لره راونیول او ټول په تړوله هلاك شو. دوی چه کله هم یوه نښنه لیدلے ده نو د خپلے زمانے نبی نه ئے د هغے نه د لوئی نښنے مطالبه کړیده، او تر هغه وخته پورے غلی نۀ دی ناست تردے چه کومه داسے نښنه ئے نۀ وی لیدلی چه دوی په ایمان راوړو باندے مجبوره کړی، او چه د هغے نه روستو د ایمان راوړو هیڅ فائده نۀ پاتے کیږی. دے خلقو کله هم د زړۀ نه ایمان نۀ دے راوړے، همیشه ئے کفر په خپل زړونو کی کینولے دے. نو کله چه الله د دوی په حال باندے رحم وکړو او دویم ځلی ئے راژوندی کړل نو د خپل فطرت د کوږوالی او په زړۀ کی د پټ ساتلے شوی کفر په وجه ئے سخے معبود ونیولو او عبادت ئے ورله شروع کړو چه د هغے تفصیل په سورة الاعراف او سورة طه وغیره کی موجود دے. او کله چه موسیٰ عليه السلام د طور غر نه واپس راغلو او دویم

خلقو ته دوی ته د توحید دعوت ورکړو او په شرك باندې ئې دوی اُوږتل نو بیا دوی توبه وویستله او الله دوی بیا معاف کړل. (تیسیر الرحمن)

سُلْطَانًا مُّبِيْنًا: (دلیل ښکاره) دا ورسره څکه وائي چه څوك به دا سوال وکړي چه دوی څکه شرك کړے وو چه موسیٰ ؑ به ورته معجزے او دلیلونه نهٔ وو پیش کړي نو الله فرمائي چه دوی ښکاره معجزے ولیدلے لیکن هغه ئې پټ کړل او شرك کې اخته شو نو که د رسول الله ﷺ معجزے په دوی باندے پټے پاتے شي نو دا د دوی د حال نه وړاندے نهٔ ده.

سلطان مبین: تورات ته هم وائي، او دارنګه هغه رعب او هیبت دے چه الله تعالی په موسیٰ ؑ کې اچولے وو چه په فرعون باندے به ددهٔ رعب پروت وو، هغه ئې نشو قتل کولے. او دغه شان بني اسرائیلو به ئې خبره منله. او ځیني وائي چه ددے نه مراد اِلٰهي شریعت دے چه هغه موسیٰ ؑ ته ورکړے شوے وو، او د خلکو په زړونو به ئې اثر کولو (في ظلال القرآن ۲/ ۸۰۰). لیکن په بني اسرائیلو ئې هیڅ اثر ونکړو یا ئې څه وخته پورے اثر وو، همیشه نهٔ وو. دا ټول مصداقات صحیح دي.

| وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّوْرَ بِمِيْثَاقِهِمْ |
|---|
| او پورته کړے وو مونږ دپاسه د دوی نه طور غر دپاره د قبلولو د وعدے د دوی |
| وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُلْنَا لَهُمْ |
| او وئیلي وو مونږ دوی ته داخل شئ دروازے ته سجده کونکي او وئیلي وو مونږ دوی ته |
| لَا تَعْدُوْا فِي السَّبْتِ وَاَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ﴿۱۰٤﴾ |
| زیاتے مهٔ کوئ په ورځ د خالي کې او اخستے وه مونږ د دوی نه وعده مضبوطه. |

**تفسیر**: پدے کې هم اشاره ده چه دوی ته تورات راوړے شو نو دوی ترے په هغه وخت کې انکار وکړو چه ددے احکام ګران دي مونږه ئې منلو ته تیار نهٔ یو.

بیا پرے الله تعالیٰ طور (غر) راپورته کړو نو په زوره ئې پرے وومنلو، نو دا خو هغه خلك دي چه د غر په زور سره پرے کتاب منلے شویدے نو دوی څنګه دعوه کوي چه په یو ځل کتاب راوړه مونږه ئې منو.

بِمِيْثَاقِهِمْ: اَيْ لِاَخْذِ مِيْثَاقِهِمْ. دپاره د اخستلو د وعدے د دوی نه.

وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ: دوی ته الله تعالیٰ دا حکم کړے وو چه بیت المقدس ته د

سجدے کولو (سر ټيټولو) او د ((حِطَّةٌ)) وئیلو په حالت کې داخل شئ (یعني اے الله! مونږ چه د جهاد په پریخودو او ستا د حکم نه سر اړولو سره کوم گناهونه کړیدي نو هغه معاف کړه) نو دوی د دواړو خبرو مخالفت اُوکړو، نهٔ د سجدے په حالت کې داخل شو او نهٔ ئے ((حِطَّةٌ)) ووئیل، بلکه په کوناټو توليدو سره داخل شو او ((حِنْطَةٌ)) ئے ووئیل یعني غنم دانے پکار دي۔

وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوْا : دغه شان الله تعالیٰ دوی د خالي ورځے د مهیانو د ښکار نه منع کړي وو او پدے باندے د پابند اُوسیدو دپاره ئے د دوی نه سخت لوظ اخستے وو، لیکن دوی د هغه حکم هم مخالفت اُوکړو او حیلے کولو سره ئے د خالي په ورځ مهیانو ته بندونه اُوتړل او د اتوار په ورځ ئے د هغوی ښکار اُوکړو۔ ددے تفصیل به هم په سورة الاعراف آیت (۱٦۳) کې راځي، ان شاء الله تعالیٰ۔

مِيْثَاقًا غَلِيْظًا : یعني دا مسئله او حکم استحبابي نهٔ وو بلکه ډیر مؤکد او مضبوط وو لیکن دوی د هغے مخالفت وکړو۔

| فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيْثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ بَآيَاتِ اللهِ وَ |
|---|
| پس په سبب د ماتولو د دوی وعدے خپلے لره او کفر د دوی په آیتونو د الله تعالیٰ او |
| قَتْلِهِمُ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَقَوْلِهِمْ قُلُوْبُنَا غُلْفٌ |
| وژل د دوی پیغمبرانو لره په ناحقه او په سبب د وینا د دوی چه زړونه زمونږ ډك دي د علم نه |
| بَلْ طَبَعَ اللهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْنَ إِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۵۵﴾ |
| بلکه مهر وهلے دے الله تعالیٰ په هغے باندے په سبب د کفر د دوی نو ایمان نهٔ راوړي مگر لږ۔ |

**تفسیر** : پدے کې نور قبائح د دوی بیانوي۔

فَبِمَا نَقْضِهِمْ : دا متعلق دے د (عَذَّبْنَاهُمْ) پورے۔ یعني مونږ عذاب ورکړو دوی ته په سبب د ماتولو د دوی دغه لوظونو لره۔ ۲– یا متعلق دے د (فَعَلْنَا بِهِمْ مَا فَعَلْنَا) پورے، یعني وکړل مونږ په دوی باندے هغه کارونه کوم چه مونږ وکړل دا په سبب د ماتولو د دوی لوظونو لره چه چا نه مے شادوګان او چا نه مے خنزیران جوړ کړل او دنیا کې مے سزاګانے ورکړے۔ ۳– یا د (لَعَنَّا) مقدر پورے۔ لکه په سورة المائده آیت (۱۳) کې ئے ددے صراحت کړیدے ﴿فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيْثَاقَهُمْ لَعَنَّاهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قَاسِيَةً﴾ په سبب د ماتولو د دوی

لو ظونو لره مونږ لعنت وکړو په دوی باندے۔
٤ – خپني دا د روستو (حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ) پورے متعلق کوی لیکن هغه بعید دے۔
قُلُوبُنَا غُلْفٌ : ددے دوه تفسیرونه په سورة البقره آیت (۸۸) کی ذکر شویدی چه زمونږ زړونه په پردو کی دی ستا په خبره نهٔ پو هیږو، یا زمونږ زړونه د هر علم لوښی دی، زړونه مو د علم نه ډك دی۔
بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ : دا رد دے په دے وینا د دوی (قُلُوبُنَا غُلْفٌ) یعنی د دوی زړونه د علم نه ډك نهٔ دی بلکه الله تعالیٰ په هغے باندے مهر وهلے دے پدے وجه چه دوی کفر کړیدے۔
فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا : یعنی بعض خبرے منی او اکثرے نهٔ منی او څوك چه د اسلام بعض خبرے منی او اکثرے نهٔ منی هغه کافر دے نو بیائے پرے د کفر فتویٰ ورکړه۔
۲ – یا په دوی کی ډیر کم خلك ایمان راوړی او اکثرئے ضدیان دی۔

| وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَانًا |
|---|
| او په سبب د کفر د دوی او په وئیلو د دوی په مریم علیها السلام باندے بهتان (بدنامه) |
| عَظِيمًا ﴿١٥٦﴾ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ |
| لوئی۔ او په سبب د وئیلو د دوی چه یقیناً وژلے دے مونږ مسیح عیسی (علیه السلام) ځوی د مریم |
| رَسُولَ اللّٰهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِنْ شُبِّهَ |
| رسول د الله تعالیٰ او نهٔ دے وژلے دوی هغه او نهٔ ئے په سولئ کړے دے لیکن مشابه کړے شوے وو |
| لَهُمْ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِنْهُ |
| دوی ته او یقیناً هغه کسان چه اختلاف ئے کړے دے په هغه کی خامخا په شك کی دی ددهٔ نه |
| مَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ وَمَا قَتَلُوهُ |
| نشته دوی له په هغے باندے څه علم مګر تابعداری کوی د ګمان او نهٔ دے قتل کړے دوی هغه |
| يَقِينًا ﴿١٥٧﴾ بَلْ رَفَعَهُ اللّٰهُ إِلَيْهِ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿١٥٨﴾ |
| په یقین سره۔ بلکه پورته کړے دے هغه لره الله تعالیٰ خپل ځان ته او دے الله غالبه حکمتونو والا۔ |

**تفسیر** : پدے کی دوه قبائح نور ذکر کوی چه هغه د مهر وهلو او د لعنت اسباب هم دی

او دلته د مخکنی سره دریے خل کفر ذکر شو یا خو تاکید ته اشاره ده. یا پدیے کی دا خبردارے ورکوی چه د دوی نه بار بار کفر شویدے اول ئے په موسیٰ علیه السلام کفر وکړو بیا ئے په عیسیٰ علیه السلام او بیا ئے په محمد ﷺ باندے (ابوالسعود- قاسمیؒ)

وَقَوْلِهِمْ عَلٰى مَرْيَمَ : دا ئے بل عیب دے چه دوی په پاکه زنانه (مریم علیها السلام) چه دوی ته ئے د پاکئ نښے او کرامتونه ښکاره شوی وو بیا هم بدنامه لګوله، د زنا تهمت ئے پرے تړلو او عیسیٰ علیه السلام ته ئے ولدِ زنا وئیلو، او هغه بهتان په سورة مریم (۲۷) کی ذکر دے.

وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ : دوی دا دعویٰ اُوکړه چه مونږ عیسیٰ ابن مریم علیه السلام قتل کړے وو او په حقیقت کی ئے نهٔ دے قتل کړے، پدیے وجه ئے دلته (وَقَوْلِهِمْ) لفظ راوړو او (وَقَتْلِهِمْ) ئے ونهٔ وئیلو. نو پدیے کی دَدوی دوه جرمونه ذکر شو یو دا چه د دوی خبره دروغژنه ده چه وژلے ئے نهٔ دے او دا دعوه کوی چه مونږ وژلے دے. او دویم دا چه د نبی د وژلو اراده ئے کړے وه او څوک چه د نبی د وژلو اراده وکړی هغه ډیر لوی مجرم وی.

رسول الله : دا یا د دوی کلام کی داخل دے یعنی دوی د استهزاء او مسخرو په طریقه وویل چه ګوره (مونږ د الله رسول قتل کړو یعنی هغه شخص چه خلك ورته یا مسلمانان ورته د الله رسول وائی). مګر ظاهر دا دے چه دا د الله کلام دے، او د دوی د زیات د قباحت دپاره ئے ذکر کړو چه ګوره دوی د هغه مسیح د وژلو دعوه کوی چه هغه د الله رسول دے، نو آیا د الله رسول څوك وژنی؟! دا هغه لوی مجرمان دی. او دا ځکه قول د الله کی داخل دے چه یهودو به د عیسیٰ علیه السلام په باره کی بده ژبه استعمالوله او فاعل ابن الفاعلة به ئے ورته وئیلو. (العیاذ بالله) نو دوی ورله ادبی کلمات نهٔ استعمالول.

وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ : الله تعالیٰ د دوی په غلطه دعوه باندے رد کوی چه دوی عیسیٰ علیه السلام نهٔ قتل کړے او نهٔ ئے پهانسی کړیدے، لکه د قتل دغه دواړه طریقے دی.

وَلَٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ : اَیْ شُبِّهَ عِیْسٰی بِرَجُلٍ آخَرَ لَهُمْ.

یعنی مشابه کړے شو عیسیٰ علیه السلام د بل سړی سره د دوی دپاره. نو دوی بل سړے قتل کړو او عیسیٰ علیه السلام ترے الله تعالیٰ بچ کړو. نو (شبه) کی ضمیر عیسیٰ علیه السلام ته راجع دے او تشبیه مشبه به غواړی نو هغه حذف دے (اَیْ بِرَجُلٍ آخَرَ).

۲- یا لٰكِنْ شُبِّهَ الْمَقْتُوْلُ عَلَيْهِمْ . لیکن مقتول په دوی باندے ګډوډ شو چه مونږ څوك قتل کړو؟. ۳- دا ترکیب هم جائز دے : وَلٰكِنْ قَتَلُوْا مَنْ شُبِّهَ لَهُمْ بِعِیْسٰی.

لیکن دوی قتل کړے هغه څوك چه دوی دپاره مشابه کړے شوے وو د عیسیٰ ؑ سره. او په هغه باندے د عیسیٰ ؑ شکل او شباهت اچولے شوے وو. (قاسمیٰ)

٤- یا شُبّه د اشتباه نه اخستلے شویدے او (لَهُمْ) په معنیٰ د (عَلَيْهِمْ) دے.

نو معنیٰ دا ده چه لیکن اشتباه (او شبهه) اچولے شویده په دوی باندے په باره د پهانسی کولو د عیسیٰ ؑ کی. چه که مونږ عیسیٰ ؑ وژلے وی نو بیا زمونږ ملګرے (یا د عیسیٰ ؑ ملګرے د حوارینونه) څه شو او که زمونږ ملګرے (یا د عیسیٰ ؑ ملګرے) مونږ وژلے وی نو بیا عیسیٰ (ؑ) څه شو؟ (بنا په دوه تفسیرونو).

او دا اشتباه الله تعالیٰ په دوی باندے څکه راوستله چه دوی د الله د حکمونو رعایت نهٔ کوی نو الله ئے پریشانه کوی او د عامو انسانانو سره الله تعالیٰ دا کار کوی لکه چه شیعه ګان او اهل بدع په خپلو عقائدو کی ډیر پریشانه وی.

## د اشتباه کیفیت او د وژلی شوی شخص تذکره

په یهودو باندے څنګه اشتباه راغله؟ ددے په باره کی مفسرینو ډیر روایتونه ذکر کړیدی:

(١) کله چه الله تعالیٰ عیسیٰ ؑ ته په معجزانه طریقے سره نجات ورکړو نو ددے دپاره چه د یهودیانو مشران په خپله ناکامیٔ باندے پرده واچوی، یو سړے ئے وواژه او په دار ئے کړو او د هغه خواته ئے نږدے څوك نهٔ پریخودل نو هرکله چه د هغه شکل بدل شو نو دوی په عوامو کی ډنډوره وکړه چه مونږ عیسیٰ ؑ په دار کړیدے. نو په عوامو ئے اشتباه واچوله. (روح المعانی ٦/ ١٠) وغیره)

(٢) الله تعالیٰ د یو بل سړی شکل د عیسیٰ ؑ په شکل وګرځولو چه قاتلینو ته عیسیٰ ؑ ښکاره شو او وے وژلو خو حقیقت کی داسے نهٔ وه.

(٣) خینی وائی چه ذکر شوے مقتول د یهودیانو د پولیسو مشر وو چه طیطایوس نوم ئے وو، هغه د عیسیٰ ؑ د نیولو دپاره د هغه پناه ګاه ته داخل شو خو چه بهر راووتو نورو پولیسو پرے اشتباه وکړه او مړ ئے کړو. (زاد المسیر ٢/ ٢١٧)

(٤) ابن جریر وغیره د وهبؒ نه نقل کړیدی چه عیسیٰ ؑ د خپلو اوه ویشت (٢٧) حوارینو سره په یوه کوټه کی داخل شو نو یهودیانو د هغے کوټے نه ګیره واچوله، نو پدے کی عیسیٰ ؑ خپلو ملګروته وویل چه څوك جنت غواړی چه زما شکل په هغه باندے واچول شی او هغه قتل شی؟ نو یو تن وویل: زهٔ جنت غواړم نو الله تعالیٰ د هغه شکل د

عیسیٰ علیه السلام په شان جوړ کړو، او عیسیٰ علیه السلام ترې الله تعالیٰ د چهت په سوري بره آسمان ته وخیژولو، او یهودیانو هغه شخص چه د عیسیٰ علیه السلام په شکل جوړ شوې وو په دار (پهانسي) باندې وخیژولو. دا روایت د دریمې معنیٰ د شبه مطابق دې.

(ابن جرير الطبري والمحرر الوجيز ٣٠٣/٤) والقاسمي ٥٥٤/٢)

**خلاصه** : د عیسیٰ علیه السلام د قتل او پهانسيْ باندې د خیژولو په باره کې چه کوم تفصیلات د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت کیږي، د قرآن او سنت نه د هغې ثبوت نهٔ ملاویږي. د هغې په باره کې مرفوع حدیث د رسول الله ﷺ نه نهٔ دې موجود، او ظاهر دا ده چه هغوی به هم د اهل کتابونه دا خبرې اخستې وي.

حافظ ابن کثیرؒ هم د تفسیر په کتابونو کې موجود هغه واقعات خلاصه کولو سره په خپل تفسیر کې بیان کړیدي چه په هغې کې تناقض موجود دې، ځکه چه د هغه روایاتو مطابق چه کله د عیسیٰ علیه السلام منونکې د هغه د گرفتارولو په وخت د هغه نه واوریدل چه څوك دې چه زما شبیه (مشابه) جوړیدل خوښ کړي او هغه به په جنت کې زما ملگرې وي؟، د هغوی نه یو تن دغه مرتبه قبوله هم کړه نو بیا څنگه د یهودیانو په شان هغوی هم دا گمان کوي چه عیسیٰ علیه السلام ته پهانسي ورکړې شویده ؟!.

صحیح خبره خو دا ده چه الله تعالیٰ د عیسیٰ علیه السلام په باره کې په قرآن کریم کې کوم خبر ورکړیدې، صرف پدې باندې (په تفصیل کې ننوتو نه بغیر) ایمان لرل پکار دي. دا معلومول ضروري نهٔ دي چه الله یهودیان څنگه په شبهه کې واچول او د عیسیٰ علیه السلام شبیه څنگه جوړ شو ؟. (القاسمي ٥٥٦/٢ وتيسير الرحمن)

لیکن څوك چه د کتاب او سنت صحیح اتباع نکوي هغوی په شبهاتو کې پرې وځي او دې کې ورته مشکلات پیدا کیږي او تعارض ورته پکې ښکاره کیږي.

**وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا** : یعنی کومو خلکو (یعنی یهودیانو) چه دْ عیسیٰ علیه السلام د مرگ په باره کې اختلاف کړیدې نو هغوی په شك کې اخته شویدي، د دوی سره پدې باره کې هیڅ صحیح علم نشته، او دا هم لوی عذاب دې چه یو کارئې وکړو او بیا پکې پریشانه شو، او زړونه ئې یخ نشو چه مونږ عیسیٰ (علیه السلام) ووژلو.

**لَهُمْ بِهِ** : اَیْ بِمَوْتِهٖ. یعنی په وژلو د عیسیٰ علیه السلام باندې.

**مِنْ عِلْمٍ** : یعنی څه دلیل.

**إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ** : دا استثناء منقطع ده. اَیْ لٰكِنْ یَتَّبِعُوْنَ اتِّبَاعَ الظَّنِّ.

لیکن دوی تابعداری د گمان کوی۔ ځکه چه ظن غیر دے د علم نه۔ یا استثناء متصل ده او ظن دوی ته علم ښکاره کیږی نو معنیٰ دا ده چه دوی سره پدے باندے یقینی علم او دلیل نشته مگر تابعداری د گمان ورسره شته چه هغه د دوی په نیز علم دے۔

وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا : أَيْ قَتْلًا يَقِينًا ۔ یعنی دوی عیسیٰ ؑ نهٔ دے وژلے په وژلو یقینی سره۔ یا یقیناً د (قَتَلُوا) د ضمیر نه حال دے أَيْ مُتَيَقِّنِيْنَ بِأَنَّهُ عِيْسٰى ۔ چه یقین کونکی وی چه دغه وژلے شوے عیسیٰ علیه السلام دے۔

ددے آیت نه معلومه شوه چه څوك دا عقیده ساتی چه عیسیٰ ؑ وژلے شویدے نو دا ددے یقینی خبرو د الله نه انکار کوی چه په قرآن کی دیارلس آیتونه دی، او د نوی (۹۰) نه زیات احادیث او اجماع د مسلمانانو ده چه عیسیٰ ؑ ژوندے دے او د قیامت نه مخکی به د آسمان نه راکوزیږی، لهذا دوی پدے عقیده سره کافر شو۔

بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ إِلَيْهِ : دا صریح دے چه عیسیٰ ؑ الله تعالیٰ خپل ځان ته پورته کریدے۔ نو دا دلیل دے چه الله تعالیٰ د آسمانونو د بره په عرش باندے مُسْتَوِی دے۔

وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا : ځینی مفسرین دا دوه صفتونه د دوه سوالونو جواب گرځوی (۱) چه د زمکے او د آسمان په مینځ کی خلا ده او اکسیجن نشته او ظاهری د ختلو اسباب هم نهٔ وو نو څرنگه ئے بره وخیژولو؟ جواب وشو چه الله عزیز دے پدے کار غالب، قادر او زوروَر دے۔ حکیمًا سره دا سوال هم دفع شو چه زمونږ پیغمبر (رسول الله ﷺ) ئے ولے په داسے طریقے سره پورته ونهٔ خیژولو؟ نو الله فرمائی زهٔ حکیم یم، زما په هر کار کی حکمت وی۔ (احسن الکلام)

| وَإِنْ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ |
| --- |
| او نشته څوك د اهل کتابو نه مگر خامخا ایمان به راوړی په هغه باندے مخکی |
| مَوْتِهٖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا ﴿١٥٩﴾ |
| د مرگ د هغه نه او په ورځ د قیامت به وی هغه په دوی باندے گواهی ورکونکے۔ |

**تفسیر**: پدے کی د عیسیٰ ؑ د ژوند تذکره بیا شویده او یو قسم رد دے په اهل کتابو چه تاسو خو د هغه نه انکار کوئ او د هغه بی ادبی کوئ، لیکن هغه به په تاسو باندے په قیامت کی گواهی درکوی، او اُوس خو په هغه ایمان نهٔ راوړئ لیکن په وخت د مرگ کی

به ئے مجبوراً راوړي.

او ددے آیت په معنیٰ کی د علماء التفسیر دوه اقوال دی :

یو قول دا دے چه استثناء مفرغه ده (أَيْ وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ أَحَدٌ) او (لَيُؤْمِنَنَّ) کی ضمیر دغه کتابی ته راجع دے او (به) ضمیر عیسیٰ علیه السلام ته او د (مَوْتِه) ضمیر کتابی ته راجع دے. نو معنیٰ دا ده چه هر یو تن د یهود او نصاراؤ نه د خپل مرګ نه مخکی کله چه په حالت د نزع کی وی نو په عیسیٰ علیه السلام به ضرور ایمان راوړی لیکن د هغه وخت ایمان به فائده نهٔ ورکوی. د محمد بن الحنفیة، عکرمة، مجاهد او محمد بن سیرینؒ وغیرهم همدا قول دے.

او دا د ټولو مجرمانو په باره کی قانون دے چه په ژوند کی خو ایمان نهٔ راوړی لیکن د مرګ په وخت کی ورته هر حقیقت راښکاره شی، نو بیا ایمان راوړی لیکن څه فائده ؟! ﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْفَتْحُ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ، قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنْفَعُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِيمَانُهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ﴾ (السجدة : ۲۸/۲۹). فرعون هم چه مړ کیدو نو حقیقت ورته ښکاره شو چه زهٔ په باطله یم نو د ایمان اعلان ئے وکړو لیکن هیڅ فائده ونشوه، او هر باطل پرست ته په وخت د مرګ کی خپل باطلوالے معلومیږی لیکن «اُوبه د ورخه تیری» وی.

ابن عباس رضی الله عنهما ددے آیت دا معنیٰ وکړه نو چا پرے اعتراض وکړو چه ځینی خلك خو په اُور کی سوزی او ځینی په اُوبو کی غرقیږی نو آیا په هغه وخت کی هم ایمان راوړی؟ نو هغه جواب وکړو چه هغه وخت کی هم د هغه په زړه کی خپل باطلوالے راشی او پښیمانه وی چه ما ولے ایمان نهٔ راوړو. او الله تعالیٰ دهٔ ته د افسوس دپاره دا حالت راښکاره کوی.

او دا خبره په قرآن کریم کی الله تعالیٰ زیاته بیان کړیده چه اے بنده ! تهٔ خو اُوس خبره نهٔ منے خو یو وخت به داسے راشی چه بیا به ئے خامخا منے لیکن فائده به نهٔ درکوی. الله فرمائی : ﴿وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً مِنَ الْأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ النَّاسَ كَانُوا بِآيَاتِنَا لَا يُوقِنُونَ﴾ (النمل:۸۲) یعنی اُوس خو دوی نهٔ منی لیکن داسے وخت به راشی چه دنیا کی به دعوی د کفر او د اسلام پته ولګی، دابة الارض به ورله فیصله کوی.

دویم قول دا دے چه دا ضمیرونه ټول عیسیٰ علیه السلام ته راجع دی یعنی چه کله عیسیٰ علیه السلام به آخری زمانه کی د آسمان نه راکوزیږی، او دجال به قتلوی، نو په هغه وخت کی به هر یهودی او نصرانی : هغه د وفات نه مخکی پدے خبره ایمان راوړی چه عیسیٰ علیه السلام

يهوديانو نهٔ قتل کړي وو او نهٔ ئې پهانسي کړي وو. او په هغه وخت کې به عام اهل کتاب (يهوديان او نصارئ) يا ايمان راوړي يا به د دجال ملګري کيږي او قتليږي به. نو په هغه وخت به د دين اسلام نه سوئ تمام اديان ختميږي، او ټول يهوديان او نصارئ به د عيسیٰ عليه السلام په شان د دينِ اسلام پيروي کوي. ابن جريرؒ وائي چه همدا قول زيات صحيح دے او ډير احاديث ددے تائيد کوي. ابن کثيرؒ هم ددے قول تائيد کړيدے.

بخاري او مسلم د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت کړيدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل:

((په هغه ذات مے قسم دے چه د هغه په لاس کې زما نفس دے، نزدے ده چه ابن مريم به په تاسو کې انصاف کونکے راکوزيږي، صليب به ماتوي، خنزير به قتلوي، او جزيه به ساقطوي، (يعني صرف اسلام به قبلوي) او مال به دومره زيات شي چه هيڅوك به صدقه نهٔ قبلوي. په هغه زمانه کې به يوه سجده د دنيا او ما فيها نه بهتره وي)).

ابو هريره رضي الله عنه وويل چه که غواړئ نو دا آيت اُولولئ (او بيائے همدا آيت ولوستلو).

(بخاري: ٣٤٤٨) و (٢٢٢٢) ومسلم: ٤٠٦)

د ابو هريره رضي الله عنه نه په روايت شوي يو حديث کې دي چه ((الله تعالیٰ به هغه زمانه کې د اسلام نه سوئ نور تمام اديان ختم کړي او عيسیٰ عليه السلام به څلويښت (ورځے، يا مياشتے يا کلونه) ژوندے وي، دے نه روستو به هغه وفات شي او مسلمانان به په هغه باندے جنازه وکړي)). (مسند احمد: ٩٢٥٩) وابوداود رقم: ٤٣٢٦) واسناده صحيح.

په صحيح مسلمؒ کې د نواس بن سمعان رضي الله عنه روايت دے چه ((هغه به د دمشق د مشرقي مينارے خوا ته راکوزيږي)).

حافظ ابن کثيرؒ د ډيرو صحابه کرامو نه ګڼ احاديث نقل کړيدي چه په هغے کې د عيسیٰ عليه السلام د راکوزيدو صفت او ځاي ذکر شويدے چه هغه به په دمشق کې د مشرقي منارے خوا ته د سهار مانځه په وخت راکوزيږي.

د عيسیٰ عليه السلام او د دجال تفصيلي واقعات زمونږ په کتاب ((علامات قيامت، مهدي، عيسیٰ عليه السلام او دجال)) کې وګورئ.

**وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا:** يعني د قيامت په ورځ به (عيسیٰ عليه السلام) د اهل کتابو په باره کې د هغوي د اعمالو مطابق ګواهي ورکوي کوم چه هغه د آسمان ته د پورته کيدو نه مخکې ليدلي وو، او د کومو مشاهده به چه زمکے ته د بيرته راکوزيدو نه روستو کوي.

قتادة وائی چه عیسیٰ علیه السلام به گواهی ورکوی چه هغوی د الله پیغام رسولے وو او د الله دپاره به د خپل عبودیت اقرار کوی۔

| فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ |
|---|
| پس په سبب د ظلم د هغه کسانو چه یهودیان دی حرام کړیدی مونږ په دوی باندے |
| طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ |
| مزیدار شیان چه حلال شوی وو دوی لره او په سبب د منع کولو د دوی د لارے د الله تعالیٰ نه |
| كَثِيْرًا ﴿١٥٩﴾ وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ نُهُوْا عَنْهُ |
| ډیرو خلقو لره۔ او په سبب د اخستلو د دوی سود او یقیناً دوی منع کړے شویدی د هغے نه |
| وَأَكْلِهِمْ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِيْنَ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيْمًا ﴿١٦٠﴾ |
| او خوړل د دوی مالونو د خلقو لره په ناروا او تیار کړیدے مونږ کافرانو لره د دوی نه عذاب دردناك۔ |

**تفسیر** : ځینی مفسرین وائی چه دلته اُوس د هغه یهودیانو قبائح ذکر کیږی چه د قرآن کریم د نزول په وخت کی په دوی کی پیدا شوی وو چه ددے په وجه په دوی باندے پاك او حلال ځیزونه حرام شوی وو۔ مگر ظاهر دا ده چه دا د مجموعه یهودیانو بدی بیانیږی چه هغوی کی دا مرضونه پیدا شوی وو۔

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا : فاء ئے سببیه راوړه او (بِظُلْمٍ) متعلق دے د روستو (حَرَّمْنَا) پورے۔ یعنی دا راتلونکی کارونه د دوی د ظلم په وجه وشو۔

دلته د ظلم نه مراد هغه غټ غټ گناهونه دی چه هغه یهودیانو کړی وو او کوم چه په (١٥٧/١٥٦/١٥٥) آیتونو کی ذکر شو۔ او څه اُوس ذکر کیږی چه هغه خلك د الله د لارے نه اړول، سودونه خوړل، او پردی مالونه په ناروا او خوړل دی۔ د هغه گناهونو په وجه الله تعالیٰ په هغوی باندے بعض حلال ځیزونه حرام کړل کوم چه د مخکی نه هغوی دپاره حلال وو لکه د اُوښانو غوښے، د نوکونو والا ښکاروو غوښے او د گډانو (پسانو) وازدے لکه بعض په سورة الانعام (١٤٦) آیت کی ذکر دی، دارنگه د خالی په ورځ ښکار حرام کړے شو، د حائضے ښځے سره نزدے کیناستل ئے پرے حرام کړل۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه ددے تحریم نه مراد یا خو دا ده چه یهودیانو خپله په تورات

کې تحریف اوکړو او په خان ئے څه حلال څیزونه حرام کړل نو ګویا که په تقدیر کې الله همداسې لیکلی وو۔ یعنی دا تکوینی تحریم دے، نۀ تشریعی۔
یا ددے نه مراد دا دے چه الله تعالیٰ په تورات کې څه داسې حلال څیزونه حرام کړل چه د مخکې نه د هغوی دپاره حلال وو او دا د هغوی د ګناهونو په وجه وشو، وهو الظاهر۔
دوی د الله ډیر بندګان د نیغې لارے نه بند کړی وو، سودونه ئے خوړل، حال دا چه د هغے نه منع شوی وو او د خلقو مال به ئے په ناجائزو طریقو سره خوړلو، د مثال په توګه د یهودو علماؤ یهودیانو ته د هغوی د خواهش مطابق فتوے ورکړے او د هغوی نه ئے رشوتونه واخستل۔
وَبِصَدِّهِمْ : دا د دوی لوی مرض وو چه د صحیح دین نه به ئے خلک اړول، په هغے کې به ئے شکونه پیدا کول او د الله لویه دشمنی ئے اعلان کړے وه۔ او افسوس چه دا مرض زمونږ د امت مبتدعینو هم خپل کړو چه په ناپوهۍ یا په ضد او عناد سره خلک د صحیح دین او د کتاب او سنت د تابعدارۍ نه اړوی او په هغوی باندے قسماقسم بدنامے او تهمتونه لګوی او خلک د هغوی نه متنفره کوی۔ فانا لله وانا الیه راجعون والله المستعان۔
وَقَدْ نُهُوْا عَنْهُ : پدے کې اشاره ده د دوی ډیر قباحت ته چه په تورات او انجیل کې صراحةً د ربا (سود) نه منع کړے شوی وو مګر دوی د هغے مخالفت کړیدے۔
**فائده۱** : یهودیانو دعوه کړے وه چه مونږ الله ته نزدے یو او د الله محبوبان یو، او پدے باندے به ئے فخر کولو او د خلکو په زړونو کې به ئے دا عقیده کینوله چه مونږ الله په ګناهونو باندے هم نۀ رانیسی، او دوزخ ئے د نورو خلکو دپاره جوړ کړیدے مګر همدغه یهودیان الله تعالیٰ خلکو ته راښکاره کړل او د دوی ظلمونه ئے دلته او لږ مخکې ذکر کړل چه مونږ ددے ظلمونو په سبب په دوی باندے پاکیزه شیان حرام کړل،
نو دغه تحریم د دوی په ظلم باندے پوره دلیل دے چه پکار ده چه انکار ترے ونکړی نو که دوی د الله محبوبان وے نو آیا په دوی باندے به دغه پاک څیزونه حرامیدلے؟!۔ نو یهودیان ئے په دے آیتونو کې ډیر سخت شرمولی دی چه ددے نه روستو د دوی د جنت دعوے او د بزرګۍ دعوے سراسر غلطے دی۔
**فائده ۲** : انسان چه د لوی لوی نعمتونو نه محرومیږی ددے سبب د هغه ظلم او ګناهونه وی، د امن او سکون ختمیدل، پریشانه زندګی، ددے اسباب ګناهونه دی۔ دا تحریم تکوینی دے چه الله تعالیٰ ئے اوس هم په بندګانو باندے وخت په وخت کوی، کله په

بنده داسې مرض کېږدي چه د نعمت نه فائده نشي حاصلولې، ځکه مالونه ئې په حرامو طريقو پيدا کړي وي او کله ورته بل مانع راولي۔

**فائده ۳**-: په ذکر شوي اسبابو کې د تحريم بعض اسباب خو په دوي کې په روستو زمانه کې پيدا شوي وو او تحريم خو په دوي باندې په تورات کې شوې وو؟ نو علماؤ ددې وجه دا ليکلې ده چه دا روستو اسباب د تحريم د دوام او بقاء دپاره ذکر شويدي يعني ددغه اسبابو په وجه دوي باندې تحريم باقي پاتې شو۔ (روح المعاني)

**فائده**: حرام خوړل د تباهي سبب دې، زمونږ زمانه کې رشتونه، ظلمونه، غصبونه، مزدورانو نه پيسې خوړل، تختول، نيول خو مره ډير شويدي دا قسم خلك هم هلاکت طرفته روان دي والعياذ بالله۔

| |
|---|
| لَـٰكِنِ الرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُونَ يُؤْمِنُونَ بِمَا |
| ليکن مضبوط په علم کې د دوي نه او مؤمنان ايمان لري په هغه کتاب |
| أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ وَ |
| چه نازل کړې شويدې تا ته او په هغه چه نازل شوې مخکې ستا نه او (زۀ صفت کوم) |
| الْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ وَالْمُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالْمُؤْمِنُونَ |
| د هغه چا چه پابندي کونکي دي د مانځه او ورکونکي د زکاة او ايمان لرونکي |
| بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أُولَـٰئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٦١﴾ |
| په الله تعالىٰ او په ورځ روستنۍ دغه کسان خامخا ورکوو به دوي ته اجر لوی۔ |

**تفسير**: دا دفع د وهم او بيان د عدل دې چه آيا ټول يهود به دغه شان وي؟ نو الله دا وهم ختموي۔ او پدې کې دعوت ورکوي نورو يهوديانو ته چه ستاسو نه نيکان خلك هم شته هغوي ته به زۀ ښائسته بدلې ورکوم نو تاسو هم ايمان راوړئ او د هغوي په شان شئ۔

سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما وائي چه دا آيت د عبد الله بن سلام، ثعلبه بن سعيه، زيد بن سعيه او اسد بن عبيد په باره کې نازل شوي وو، چه دوي د يهوديت نه توبه ويستلې وه او اسلام ئې قبول کړې وو او رسول الله ﷺ ئې د آخري رسول په حيثيت تسليم کړې وو۔ (ابن کثير)

په راسخ فی العلم باندے د سورة آل عمران آيت (۷) په ضمن کی تفصيل سره ليکل شوی دی۔ او مؤمنون نه مراد يا خو د اهل کتابو مؤمنانو دی، يا مهاجرين او انصار دی، يا هغه تمام خلك چه په رسول الله ﷺ باندے ئے ايمان راوړے۔ وهو الظاهر۔

وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ : دا منصوب دے سيبويه او عام بصريان وائی چه دا منصوب دے په مدح سره۔ أَیْ أَمْدَحُ الْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ ۔ يعنی زهٔ مدح او صفت کوم د مانځه پابندی کونکو۔

او دا د عربيت قانون دے چه کله د يو معطوف اعراب د مخکنو نه بدليږی پدے کی مقصد دا وی چه خلك د هغه شی زيات اهميت ته متوجه شی نو پدے طريقه به د معطوفاتو په ترجمه کی تغير نهٔ واقع کيږی صرف لفظی تفاوت او فرق به لری۔

او ددے نه معلومه شوه چه کوم يهوديان د مانځه پابند وو الله تعالیٰ ورته هدايت وکړو او په آخری رسول (محمد رسول الله ﷺ) ئے ايمان راوړو۔

**فائده:** اُوس هم څوك چه صحيح مونځ کوی هغوی ته الله پاك سمه لاره وربښائی، اکثر امامانو مونځ برباد کړو والله المستعان۔

| |
|---|
| إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَىٰ نُوحٍ |
| يقيناً مونږ وحی کړيده تا ته لکه څنګه چه وحی کړے وه مونږ نوح (عليه السلام) ته |
| وَالنَّبِيِّينَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ |
| او نورو پيغمبرانو ته روستو د هغه نه او وحی کړے وه مونږ ابراهيم او اسماعيل او اسحاق |
| وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَارُونَ |
| او يعقوب (عليهم السلام) ته او اولاد د هغوی ته او عيسی او ايوب او يونس او هارون |
| وَسُلَيْمَانَ وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا ﴿۱۶۳﴾ |
| او سليمان (عليهم السلام) ته او ورکړے وو مونږ داؤد (عليه السلام) ته زبور۔ |

**تفسير:** ددے نه روستو اهل کتابو ته د هغوی د اعتراض تفصيلی جواب بيانوی نو دا د (يَسْأَلُكَ أَهْلُ الْكِتَابِ) سره متعلق دے۔

د جواب حاصل (۱) يو دا دے چه عامو پيغمبرانو ته (چه دلته الله تعالیٰ دولس ذکر

کریدی) الله تعالیٰ وحی لږه لږه رالیږلے ده (په یو ځل ورته کتاب نهٔ دے ورکړے شوے) نو لږه لږه وحی نازلول دلیل د بطلان نهٔ دے، کله الله تعالیٰ وحی په یو ځل رالیږي او کله لږه لږه د بندګانو د احوالو مطابق، نو دا سوال ستاسو سراسر غلط شو چه آخری پیغمبر ته په یو ځل وحی ولے نهٔ راځی؟۔

موسیٰ علیه السلام ته په یو ځل کتاب ځکه ورکړے شو چه بنی اسرائیلو ټولو ایمان راوړے وو او د فرعون نه راخلاص شو او په میدان تیه کې پراته وو، نو په یو ځل احکامو ته ئے ضرورت وو چه ټول شریعت ورته بیان کړے شي، او هرچه د رسول الله ﷺ ملګری دی نو دا په یو ځل باندے تیار شوی نهٔ وو بلکه وخت په وخت به ملګری تیاریدل، او اسلام کې به داخلیدل نو ټولو احکامو ته په یو خت کې ضرورت نهٔ وو نو ځکه به وحی لږه لږه د حالاتو مطابق راتلله، مثلاً که د عائشے رضی الله عنها د صفائی په باره کې آیتونه د اول نه نازل شوی وے او واقعه لا راغلے نهٔ وے نو ددے به څه اثر وے؟! لږ فکر وکړه۔

(۲) دویم دا چه ددے نبی په شان نور انبیاء علیهم السلام هم مخکې تیر شویدی او دا څه اولنے او ناشنا پیغمبر نهٔ دے او ددهٔ دین د هغوی د دین په شان دے، او صفات ئے د هغوی د صفاتو په شان دی، چه هغوی الله تعالیٰ مبشرین او منذرین رالیږلی دی نو دا ئے هم مبشر او نذیر رالیږلے دے، نو څه وجه ده چه هغه پیغمبران تاسو منئ او ددے نبی نه انکار کوئ؟ معلومیږی چه ستاسو انکار په ضد باندے بناء دے، او د نبوت دروازه خو لا بنده شوے نهٔ وه بلکه په رسول الله ﷺ باندے بنده شوه نو تاسو ولے د نبوت دروازه بنده ګنړئ۔ اوله طریقه د سوال سره ډیره موافقه ده۔

**أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ** : ایحاء (وحی کول) رسول الله ﷺ ته دا لفظ په قرآن کریم کې (٦) کرته ذکر دے، وحی معنیٰ ده سرعت (جلتی) کول، او په شریعت کې : [كَلَامُ اللّٰهِ تَعَالىٰ يَصِلُ إِلَى قَلْبِ النَّبِيِّ ﷺ بِالْوَاسِطَةِ أَوْ بِغَيْرِ الْوَاسِطَةِ] د الله تعالیٰ کلام دے چه په واسطه د جبریل علیه السلام یا په غیر د واسطے نه د یو نبی زړه ته رسیږی)

قرآن کریم کې د وحی نورے معانی هم استعمال شویدی لکه الهام، او تعلیم فطری او اشاره او وسوسه وغیره چه په خپل خپل ځایونو کې به راځی ان شاء الله تعالیٰ۔ د تفصیل دپاره زمونږ کتاب «اصول التفسیر وعلوم القرآن» کتلے شئ۔

**كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَىٰ نُوحٍ** : د نوح علیه السلام نه مخکې هم ډیر پیغمبران تیر شویدی، د آدم علیه السلام د زمانے نه شروع دی او هغوی ته وحی شویده، نو د نوح علیه السلام تخصیص ئے ولے وکړو؟۔

اهل علمو ددے ډیر وجوهات بیان کړیدی :

(۱) تشبیه پدے وجه ورکړے شوه چه نوح علیه السلام د سختے تیارے په زمانه کی راغلے وو چه سخت اختلافات وو لکه څنګه چه د رسول الله ﷺ په زمانه کی سخته تیاره وه او هرچه آدم علیه السلام دے نو هغه خپلو بچو دپاره پیغمبر وو چه ټول موحدین خلك وو۔

(۲) بله تشبیه په سختو تکلیفونو برداشت کولو کی ده۔

(۳) یا نوح علیه السلام اول الرسل دے لکه څنګه چه رسول الله ﷺ آخر الرسل دے او هرچه آدم علیه السلام وو نو هغه نبی وو او رسول نهٔ وو۔ رسول ته الله نوے کتاب رالیږلے وی او نبی ته نهٔ وی ورکړے شوے، نو د رسول درجه د نبی نه لویه ده۔

(٤) یا دلته د وحی نه مراد هغه وحی ده چه په هغے کی د مشرکانو په شرك باندے رد وی او هغه صرف د نوح علیه السلام نه شروع ده نهٔ مخکی۔ نو مشابهت د رسول الله ﷺ د نوح علیه السلام سره زیات وو پدے وجه ئے د هغه تخصیص وکړو۔

وَالنَّبِيِّنَ مِنۢ بَعْدِهٖ : د نوح علیه السلام نه روستو پیغمبران بعض الله تعالیٰ په سورة اعراف کی بیان کړیدی لکه هود، صالح، شعیب، لوط او یوسف علیهم السلام۔

## سوال وجواب

سوال : الله تعالیٰ ولے د رسول الله ﷺ وحی د ډیرو پیغمبرانو سره مشابه کړه تردے چه د څینو نومونه ئے هم پکی واخستل ؟

(۱) جواب دادے چه دغه پیغمبران په اهل کتابو کی ډیر مشهور وو اګرکه په څینو باندے به ئے ایمان هم نهٔ لرلو۔

(۲) دویم دا چه پدے کی اشاره ده چه د وحی قسمونه مختلف دی، څینی پیغمبرانو ته په یوه طریقه او څینو ته په بله او بله طریقه وحی شویده، نو د وحی اختلاف په اصل نبوت کی څه فرق نهٔ راولی نو اے اهل کتابو ! تاسو له پکار دی چه ایمان راوړل په فرمایشی وحی پورے موقوف نهٔ کړئ۔

وَاَوْحَيْنَا اِلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ : دا تخصیص بعد التعمیم دے۔

داود زبورا : یعنی په دوی کی صرف داود علیه السلام ته زبور کتاب په یو ځل ورکړے شوے وو۔ مګر آلوسیؒ لیکی چه د داود علیه السلام کتاب هم په قسطونو سره نازل شوے وو۔ (روح۳/۱۹۲)

علامه قرطبیؒ او آلوسیؒ لیکی چه ددے کتاب یوسل پنځوس (۱۵۰) سورتونه وو چه

صرف وعظونه او فضیلتونه او د الله تحمید او تمجید او ثناء گانے پکی ذکر وے. او هیڅ احکام د حلال او حرامو وغیره پکی نۀ وو ذکر شوی. (روح المعانی۱۹۲/۳)
او ددے کتاب تذکره ئے وکړه پدے کی اشاره ده چه د داود ﷺ فضیلت په بادشاهئ سره نۀ وو بلکه په نبوت او کتاب سره وو.
بله وجه دا ده چه بعض یهودو داود علیه السلام او سلیمان علیه السلام ساحران گنړل لکه په تفسیر د سورة البقره کی علامه قاسمیؒ لیکلی دی.

| وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنَاهُمْ عَلَيْكَ |
|---|
| او (وحی کړیده) مونږ نورو رسولانو ته چه بیان کړیدے مونږ د هغوی په تا باندے |
| مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ |
| مخکی ددے نه او نورو رسولانو ته چه بیان نۀ دے کړے مونږ د هغوی په تا باندے |
| وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا ﴿١٦٤﴾ رُسُلًا |
| او خبرے کړیدی الله تعالیٰ د موسیٰ (ﷺ) سره په خبرے کولو سره. (لیږلی دی مونږ) رسولان |
| مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ |
| زیرے ورکونکی او یره ورکونکی ددے دپاره چه نۀ شی د خلقو دپاره په الله تعالیٰ باندے |
| حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿١٦٥﴾ |
| بهانه پس د لیږلو د رسولانو نه او دے الله تعالیٰ غالبه حکمتونو والا. |

**تفسیر** : وَرُسُلًا : اَیْ اَرْسَلْنَا . مونږ رالیږلی دی رسولان. یا د (اَوْحَيْنَا) دپاره مفعول دے. یعنی مونږ وحی کړے وه نورو رسولانو ته چه د هغے بیان مونږ تا ته مخکی کړیدے په سورة الاعراف او سورة هود او سورة الشعراء او سورة انبیاء او سورة انعام او سورة مریم وغیره کی.
وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ : نور قسم رسولان دی چه مونږ د هغوی نومونه، قصے او حالات تا ته نۀ دی بیان کړی چه د هغوی شمار په صحیح حدیث کی نۀ دے بیان شوے البته د یو ضعیف روایت نه (چه صحیح ابن حبانؒ نقل کړیدے) معلومیږی چه یو لاکھ څلیریشت زره پیغمبران وو پدے وجه ورسره علماء کرامؒ (کم وبیش) زیات او کم الفاظ

وائی۔ ابن الجوزیؒ دغه روایت ته موضوع وئیلے دے۔ لیکن شیخ البانیؒ وائی چه دغه روایت صحیح لغیره دے ځکه چه په ډیرو طرقو کی ئے بعض طرق صحیح دی۔ او ابن کثیرؒ په تاریخ کی ذکر کړیدے او سکوت ئے پرے کړیدے او دغه شان حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری (٦/٢٥٧) او عینیؒ په عمدة القاری (٧/٣٠٧) کی پرے سکوت کړیدے، آلوسیؒ په تفسیر کی وائی چه د ابن جوزیؒ خبره صحیح نۀ ده، آؤ په سند کی ئے ضعف شته مګر د هغے جبیره په متابعت سره شویده۔ انظر التفصیل فی الصحیحة رقم (٢٦٦٨)

بیا د کومو پیغمبرانو نومونه او قصے چه ذکر شویدی (چه هغه پنځه ویشت دی) نو هغه ډیر بهتر دی د نورو نه۔ او په دغه پنځه ویشتو کی پنځه پیغمبران اولوا العزم دی، نوحؑ، ابراهیمؑ، موسیٰؑ، عیسیٰؑ او محمد رسول الله علیهم الصلاة والتسلیمات۔

وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا : دا د وحی یوه بله طریقه ده چه براه راست بغیر د لیدو او بغیر د واسطے نه خبرے کول یعنی الله وینی نۀ او خبرے ئے آوری۔

## د وحی اقسام او طریقے

د وحی تقریباً اُوه طریقے دی چه زمونږ کتاب ((اصول التفسیر وعلوم القرآن)) او ((سیرتِ رسول ﷺ)) (١/٣٦٢) کی ئے تفصیلًا کتلے شئ۔ مختصر دا چه :

(١) وحی کله پیغمبر ته په خوب کی وی۔ (٢) کله واسطه رالیږی او دغه واسطه کله په شکل د سړی وی لکه جبریل ؑ به د دحیة الکلبیؓ او کله د یو بل اعرابی په شکل راتللو۔ (٣) او دوه کرته جبریل ؑ په خپل اصلی شکل کی راغلے دے۔

(٤) او کله به واسطه وه، جبریل ؑ به راغلو او رسول الله ﷺ ته به ئے په زړه کی وحی ګوزار کړه او هغه ته به جبریل ؑ نۀ ښکاره کیدو۔

(٥) او کله به وحی د صَلْصَلَةُ الْجَرَس (د تلئ یا د زنځیر د آواز په شان) راتلله او دا به په نبی کریم ﷺ باندے ډیر بوج وو پدے کښ به جبریل ؑ رسول الله ﷺ ته کلکه غاړه ورکوله او تردے چه په سخته یخه ورځ کی به د هغه تندے مبارك د خولو نه ډك شو۔

(٦) او کله ئے بره آسمانونو ته بوتلے دے او براه راست ئے ورسره خبرے کړیدی په غیر د لیدلو نه۔ (٧) او کله به ورسره الله تعالیٰ بغیر د لیدو نه خبرے کولے لکه موسیٰ ؑ سره ئے هم داسے خبرے کړیدی او پدے آیت کی ذکر دی۔ (الرحیق المختوم ص : ٥٤)

## د الله دپاره کلام اختیاری صفت دے۔

وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوسٰى تَكْلِيمًا : یعنی په غیر د واسطے د ملائك نه او په غیر د لیدو د الله نه الله تعالیٰ د موسیٰ علیه السلام سره خبرے وکړے او دا د موسیٰ علیه السلام ډیر لوی منقبت او فضیلت دے چه عظیم ذات ورسره بغیر د واسطے نه خبرے وکړے۔

د جمهورو سلفو او اهل سنتو دا عقیده ده چه خبرے کول د الله تعالیٰ صفت دے څنګه چه د هغه د شان مناسب وی پدے وجه ئے تکلیماً مفعول مطلق راوړو چه تاکید نه اشاره شی او په حقیقت باندے حمل شی او څوك دا ونهٔ وائی چه الله تعالیٰ به ورسره خبرے نهٔ وی کړی ملائك به کړی وی، او الله به خپل ځان ته د اضافتِ تشریفی په طریقه نسبت کړے وی نو ددے وهم د ختمولو دپاره ئے مفعول مطلق تاکیدی راوړی۔

نو دا آیت صریح رد دے په هغه متکلمینو (معتزله او بعض ګمراه ډلو) چه وائی چه د الله تعالیٰ کلام (خبرے) نشته ځکه چه خبرے خو د هغه چا وی چه جارحه (یعنی ژبه) او مرئ لری او الله خو ددے نه مستغنی دے۔ نو ددے جواب دا دے چه ډیر څیزونه شته چه ژبه او مرئ نهٔ لری او خبرے کوی، قرآن کریم کی دی : ﴿ وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ ﴾ (اسراء : ٤٤) په دنیا کی هیڅ شے نشته مګر د الله تعالیٰ تسبیحات سره د حمدونو نه وائی لیکن تاسو د هغوی په تسبیحاتو نهٔ پو هیږئ۔

او د سیرتِ نبوی ﷺ نه ثابته ده چه ونو، کانړو، ډوډئ خبرے کړیدی او نبی کریم ﷺ او صحابه کرامو آوریدلی دی۔ او زمونږ پدے جدید دور کی د ریډیو او ټیپ، وی سی آر، کمپیوټر، موبائل او جدید آلاتو نه خبرے راوځی او حال دا چه ژبه او مرئ نهٔ لری نو د الله د کلام په رد کی دا دلیل ورکول د علم نه جدائی او د جهالت په دریاب کی ډوبیدل دی۔ دا خلك د الله لوی بی ادبه دی چه خپل ځان دپاره خبرے کمال ګنړی او د الله نه خبرے نفی کوی او هغه ته د نقصان نسبت کوی۔ او صحیح حدیث کی دی : الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ د هر یو تن سره خبرے کوی چه په مینځ د الله او د بنده کی به هیڅ ترجمانی کونکے نهٔ وی۔ (بخاری : ٦٥٣٩) ومسلم (٢٢٦٥)۔

او مونږ سره الله تعالیٰ د قرآن کریم په واسطه سره خبرے کړیدی چه خپل دا خوږ کلام ئے رالیږلے دے۔

رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ : اَیْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا ۔ مونږ رالیږلی دی رسولان د بشارت او انذار دپاره۔

منونکو ته زیرے ورکونکي او نۀ منونکو ته یره ورکونکي۔

عَلَى اللهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ : اَیْ بَعْدَ اِرْسَالِ الرُّسُلِ۔ پس د رالیږلو د رسولانو نه۔

پدے کې د رسولانو د رالیږلو حکمت بیانوي چه قیامت کې به الله تعالیٰ ځینې انسانان اُور ته ګوزاري نو هغوي به عذر کوي چه اے الله! مونږ ولے اُور ته ګوزارے؟ الله به فرمائي: تاسو ګناهونه کړیدي۔ نو هغوي به وائي چه مونږ ته معلومات نۀ وو چه دا ګناه ده۔ نو دا لوي حجت او دلیل دے د بندګانو په الله باندے، نو که ددے سره دوي اُور ته بوتللے شي نو بیا به الله تعالیٰ ته د ظلم نسبت وشي، او الله تعالیٰ خو د هیڅ عذر او دلیل په خپل ځان باقي نۀ پریدي۔

په صحیحینو کې د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت شویدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: [وَمَا أَحَدٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ الْعُذْرُ مِنَ اللهِ وَمِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ بَعَثَ الْمُبَشِّرِيْنَ وَالْمُنْذِرِيْنَ]

او هیڅ ته د عذر زائل کول دومره محبوب نۀ دي څومره چه الله تعالیٰ ته د بندګانو عذرونه زائل کول محبوب دي، پدے وجه هغه د جنت زیري ورکولو او د جهنم نه یرے ورکولو دپاره انبیاء علیهم السلام راولیږل۔ (دے دپاره چه خلق د انبیاؤ تعلیمات خپل کړي او د خپلو ګناهونو معافي اُوغواړي او د الله د رضا حقدار جوړ شي)۔

(بخاري: ٧٤١٦) ومسلم (٣٨٣٧)۔

نو کله چه الله تعالیٰ د بندګانو مکمل عذر زائل کړي نو بیا ئے اُور ته داخلوي۔ لکه رسولان ئے راولیږل دا په خلکو باندے د الله تعالیٰ د طرفنه حجت شو چه ددے نه روستو هم څوك جرمونه کوي، نو دا عذر به ئے زائل وي چه زۀ نۀ وم پوهه۔ کله چه انسان ته د رسول الله ﷺ بیان براهِ راست یا په واسطه د علماؤ او کتابونو سره راورسیدو نو عذر د بندګانو ختم شو۔ او دا حجت (عذر) الله تعالیٰ په سورة بني اسرائیل (١٥) آیت کې هم ختم کړیدے: ﴿ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِيْنَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُوْلًا ﴾ مونږ تر هغه وخته پورے (بندګانو ته) عذاب نۀ ورکوو ترڅو چه رسول راولیږو۔ او د سورة طه (١٢٤) آیت کې هم راغلي دي: ﴿ فَيَقُوْلُوْا رَبَّنَا لَوْلَا أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُوْلًا فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ مِنْ قَبْلِ أَنْ نَذِلَّ وَنَخْزٰى ﴾۔

او سورة القصص (٤٧) آیت کې دي: ﴿ وَلَوْلَا أَنْ تُصِيْبَهُمْ مُصِيْبَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيْهِمْ فَيَقُوْلُوْا رَبَّنَا لَوْلَا أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُوْلًا فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ یعني که په ګناه باندے دوي ته مصیبت رسیدلے نو بیا به دوي بهانے کولے چه اے ربه زمونږ! تا مونږ ته ولے یو رسول نۀ رالیږلو چه مونږ ستا د آیتونو تابعداري کولے او ایمان مو راوړے وے۔

عَزِيْزًا حَكِيْمًا : يعنى الله تعالىٰ قادر دے په رسولانو رالیږلو او بيا چه رسولان راولیږی او خوك ئے خبرے ونهٔ منی نو سمدست عذاب نهٔ ورکوی او بندګانو ته انتظار کوی پدے کی ئے حکمتونه دی۔

| لَـٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَا أَنْزَلَ إِلَيْكَ أَنْزَلَهُ |
|---|
| لیکن الله ګواهی کوی په هغه کتاب چه نازل کړے ئے دے تا ته، نازل کړے ئے دے دا |
| بِعِلْمِهِ وَالْمَلَآئِكَةُ يَشْهَدُوْنَ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴿١٦٦﴾ |
| په خپل علم سره، او ملائك ګواهی کوی او پوره دے الله ګواهی ورکونکے۔ |

**تفسير**: لکن کلمه د وَهم د دفع کولو دپاره استعمالیږی نو معنیٰ دا ده : اِذَا لَمْ يَشْهَدُوْا فَاللّٰهُ يَشْهَدُ الخ۔ يعنى كه دا خلك ستا د نبوت او كتاب ګواهی نهٔ ورکوی او ستا تکذیب کوی نو الله او ملائك ګواهی ورکوی۔ او دا ګواهی د هغوی د ګواهئ نه ډیره غوره ده۔ (التحرير والتنوير لابن عاشور ٤/٣٢٥)

علامه آلوسیؒ وائی : لَمَّا شَبَّهَ إِيْحَاءَ الرَّسُوْلِ بِالْإِيْحَاءِ إِلَى الْأَنْبِيَاءِ أَوْهَمَ ذٰلِكَ التَّشْبِيْهُ مَزِيَّةَ الْإِيْحَاءِ إِلَيْهِمْ فَذَكَرَ بِأَنَّ لِلْإِيْحَاءِ إِلَيْكَ مَزِيَّةً وَهِيَ شَهَادَةُ اللّٰهِ وَالْمَلَآئِكَةِ]

يعنى هركله چه الله تعالىٰ د رسول الله ﷺ وحی د نورو انبياؤ د وحی سره مشابه کړه نو ددے نه دا ګمان پیدا شو چه دغه انبیاء علیهم السلام به غوره وی د رسول الله ﷺ نه نو الله تعالىٰ د آخری رسول دپاره ګواهی ذکر کړه دے دپاره چه ددهٔ په فضیلت باندے او ددهٔ د نبوت په صحیح والی باندے دلالت وکړی۔ (روح المعانی ٣/١٩٤)

## شان نزول

ابن اسحاقؒ او ابن جریرؒ او بیهقیؒ په ((الدلائل)) کی د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه څه یهودیان د رسول الله ﷺ خوا ته راغلل، نبی ﷺ هغوی ته اُووئیل چه قسم په الله ما ته معلومه ده چه تاسو ته زما د رسول کیدو علم دے۔ هغوی اُووئیل چه مونږ ته ددے علم نشته۔ (او مونږ ستا د نبوت ګواهی نهٔ ورکوو) نو دا آیت نازل شو چه که دا خلق ستا د رسالت ګواهی نهٔ ورکوی نو نهٔ دے ورکوی، الله ګواهی ورکوی چه دا قرآن هغه په تا باندے نازل کړیدے، ددے هغه ته علم دے او ملائك هم ګواهی ورکوی او د

الله ګواهي کافي ده. علماؤ ليکلي دي چه پدې کې نبي کريم ﷺ ته يو قسم تسلي ورکړې شوېده.

أَنْزَلَهُ بِعِلْمِهِ : دې کې ډير مطلبونه دي : (١) أَنْزَلَهُ صَادِرًا عَنْ عِلْمِهِ.

الله تعالیٰ دا کتاب په تا باندې نازل کړيدې پداسې حال کې چه د الله تعالیٰ ته په علم سره راوتې دې، يعنې هغه ته ددې خبرې علم وو چه زۀ دا کتاب آخرې نبي ته ليږم او غير اختياري نۀ دې راغلې. او پدې کې په اشاره او تنبيه وي په وجه د شهادت باندې. چه الله تعالیٰ څکه ګواهي ورکوي چه الله تعالیٰ ته ددې وحي او کتاب حال معلوم دې. نو ددې نه بله لويه ګواهي چرته کيدې شي؟ او که پدې ګواهي کې څوك طعن او تنقيد کوي نو دې به د الله تعالیٰ په علم او قدرت او حکمت کې تنقيد کوي. (تفسير السعدى)

(٢) أَنْزَلَهُ مُشْتَمِلًا عَلَى عُلُوْمِهِ – (تفسير السعدى) أَوْ مُتَلَبِّسًا بِعِلْمِهِ (التحرير والتنوير ٤/٣٢٥).

الله تعالیٰ دا کتاب نازل کړيدې پداسې حال کې چه مشتمل دې په ټولو هغه علمونو باندې چه بندګان ورته ضرورت لري. يعنې پدې کتاب کې د الله تعالیٰ علمونه، احکام شرعيه او غيبي اخبار دي چه هغه صرف الله تعالیٰ ته معلوم وو او بندګانو ته ئې پدې کې خبر ورکړيدې. (تفسير السعدى)

(٣) أَنْزَلَهُ بِعِلْمِ اللّٰهِ أَنَّكَ أَهْلٌ لِمَا اصْطَفَاكَ اللّٰهُ لَهُ مِنَ النُّبُوَّةِ] (فتح القدير للشوكانى)

أَوْ هُوَ يَعْلَمُ أَنَّكَ أَهْلٌ لِإِنْزَالِهِ عَلَيْكَ. (القرطبى).

نازل کړې ئې دا کتاب پداسې حال کې چه الله تعالیٰ ته دا معلومه وه چه تۀ ددې کتاب او د نبوت اهل او لائق ئې.

(٤) أَنْزَلَهُ وَهُوَ عَالِمٌ بِهِ، رَقِيْبٌ عَلَيْهِ] الله تعالیٰ نازل کړيدې دا کتاب په داسې حال کې چه الله تعالیٰ عالِم دې پدې کتاب، او نګهبان او حفاظت کونکې دې ددې کتاب د شيطانانو نه. نو دا جمله د مخکې دپاره د تفسير په شان ده. (قاسمیؒ، آلوسیؒ)

(٥) أُنْزَلَهُ مَعَ عِلْمِهِ. (السمعانیؒ) نازل کړې ئې دې دا کتاب سره د علم د الله تعالیٰ نه. يعنې دا چه رسول الله ﷺ ته رارسيدلې دې نو ددې سره د الله علم موجود وو او وحي صحيح ځاى ته رسيدلې ده.

## سوال وجواب

سوال : کله چه الله تعالیٰ د رسول الله ﷺ د رسالت ګواهي ورکړه نو د ملائکو ګواهي

ذکر کولو ته حاجت څه وو؟

۱-جواب : کوم یهودیان چه د رسول الله ﷺ خوا ته راغلي وو هغوی به دا ویل چه مونږ علماء الارض (د زمکې عالمان) یو او مونږ ستا د رسالت نه انکار کوو، نو الله وفرمایل : که د زمکې علماء ترې انکار کوي نو د آسمان علماء چه ملائك دي هغوی ئې ګواهي ورکوي۔ اګرکه د ملائکو ګواهي ته ضرورت هم نشته، صرف د الله ګواهي هم کافي ده څکه ئې وروسته ویل : ﴿ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا ﴾ صرف الله تعالیٰ د ګواه په حیثیت سره کافي دے۔ (تفسير السمعاني ۱/۵۰٤)

۲- جواب : علامه سعديؒ وائي : پدے کي اشاره ده د ملائکو کامل ایمان ته او د قرآن کریم اُوچت شان ته چه ملائك هم ددے ګواهي ورکوي، او دغه مجرمان انسانان ترے انکار کوي۔ (تفسير السعدي ۱/۲۱۵)

## د الله تعالیٰ شهادت څنګه دے؟

د الله د ګواهئ مختلف شکلونه دي (۱) یو د الله ګواهي په بیان سره ده چه الله تعالیٰ په خپل کتاب (قرآن کریم) کي دا بیان کړیدے او بندګانو ته ئې آوازونه کړیدي چه دا زما کتاب دے او دا مې حق رسول دے ویې منئ۔ (۲) بله ګواهي د الله تعالیٰ بالنصرة ده۔ یعنی الله تعالیٰ وخت په وخت په سختو موقعو کي د رسول الله ﷺ مددونه کړیدي او انجام ئې ورله ښه کړیدے۔ (۳) معجزات ئې راښکاره کوي چه امت د هغې د مقابلې نه عاجز دے او الله تعالیٰ ورته تهولي، لارے او طریقې برابروي، نو که دا نبي باطل پرست وے نو الله به ئې مددونه نهٔ کولے او لارے به ئې نهٔ کولاویدلے، ترقي به ئې نهٔ کیدلے او انجام به ئې خرابیدلے څکه چه د باطل والو انجام خراب وي۔ کومو خلکو چه په دروغه د نبوت دعوے وکړے نو ډیر زر د بد انجام سره ملاقو شول۔

## د ملائکو شهادت څنګه دے؟

د ملائکو شهادت دا دے چه ملائکو د رسول الله ﷺ په غزوهٔ بدر او احزاب او حُنَین کي مدد کړیدے، دارنګه ملائك راغي دهٔ ته تسلیاني ورکوي، سلامونه پرے اچوي، وحي ورته راوړي، او ددهٔ ملګري ئې کله کله وینی، نو دا د هغوی شهادت دے چه دا رسول او دا قرآن کریم حق کتاب دے۔ او دا ګواهي داسے نهٔ ده چه ملائك راغلي وے او خلکو ئې آواز آوریدلے وي یا د الله تعالیٰ آواز ئې آوریدلے وي بلکه دغه ذکرشوي خیزونه دلائل د ګواهئ

دي۔

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ قَدْ

يقيناً هغه كسان چه كفر ئې كړے او منع كوي خلق د لارے د الله تعالىٰ نه يقيناً

ضَلُّوا ضَلَالًا بَعِيدًا ﴿۱۶۷﴾

گمراه شول په گمراهئ لرے سره۔

**تفسير** : پدے كښې الله تعالىٰ د آخرت تخويف بيانوي او د متعدي كفارو ضلال بيانوي او دوي ته د عدم هدايت سزا وركوي چه حق ورته ښكاره شي او بيا ئې هم نهٔ مني او خلك ترے اړوي نو هدايت به ورته نهٔ كيږي۔ او دا آيت اول يهودو ته شامل دے او بيا مشركانو ته او بيا ټولو كافرو ته۔

وَصَدُّوا: يعني خپله هم د الله د لارے نه واوړيدل او نور خلك ئې هم د الله د لارے نه واړول۔

ضَلُّوا ضَلَالًا بَعِيدًا : شرك هم لويه گمراهي ده او كفر هم او بيا چه خلك د الله د لارے نه اړوي دا هم لويه گمراهي ده، د گمراهئ داعي ته اكثر هدايت نهٔ كيږي بلكه هدايت هغه چا ته كيږي چه د هدايت خوا خواته كيږي، منيب وي، خالي الذهن وي، او عناد او ضد پكې نهٔ وي او چه يو سړي ته حق ښه معلوم شو او بيا د هغې په خلاف كې دعوت كوي نو دا د حق نه نور هم جدا كيږي او لاره ترے وركيږي۔

وَصَدُّوا : دا خلك په هغه زمانه كې مشركان وو او يهوديان وو چه عام خلك به ئې د رسول الله ﷺ او د قرآن كريم او د اسلام نه منع كول او په رسول الله ﷺ او دين اسلام به ئې اعتراضونه كول او د خلكو په زړونو كې به ئې شكوك او شبهات اچول۔ او پدے كې په هره زمانه كې مشركان او اهل بدع داخليږي چه خلكو ته وائي د قرآن خواته مهٔ ورځئ، د توحيد مسئله مهٔ زده كوئ، كتاب او سنت خواته مهٔ ورځئ او د پلار نيكه په باطل دين كلك شئ۔

د الله د لارے مختلف مصداقات دي۔ د دين نه اړول، د يوے مسئلے، د يو سنت طريقے نه، د يوے بندگئ نه اړول۔

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَظَلَمُوا لَمْ يَكُنِ اللَّهُ لِيَغْفِرَ

يقيناً هغه كسان چه كفر ئې كړيدے او ظلم ئې كړيدے نهٔ دے الله تعالىٰ چه بخښنه وكړي

| لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيْقًا ﴿١٦٨﴾ إِلَّا طَرِيْقَ جَهَنَّمَ خَالِدِيْنَ فِيْهَا |
|---|
| دوی ته او نۀ چه وښائي دوی ته لاره۔ مګر لاره د جهنم، همیشه به وی په هغې کې |
| أَبَدًا وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿١٦٩﴾ |
| همیشه دپاره او دے دا کار په الله باندے آسان۔ |

**تفسیر**: پدے کې د دغه مخکنو مجرمانو د آخرت عذاب او بد انجام بیانیږی۔

**كَفَرُوْا** : د الله د دین او د هغه د آیتونو نه ئے انکار وکړو۔

**وَظَلَمُوْا** : د دوی ظلم دا دے چه کفر او شرك ئے اختیار کړو نو پدے معنیٰ به (وَظَلَمُوْا) عطف تفسیری وی۔ او دوی متعدی ظالمان هم دی چه خلك د حقے لارے نه اړوی او مسلمانیدو ته ئے نۀ پریدی، او مسلمانانو سره ئے په حق باندے جنګونه کړیدی او هغوی ته ئے تکلیفونه رسولی دی، او دوی ته ئے شکونه او شبهات اچولی دی او په نبی کریم ﷺ باندے ئے ظلم کړیدے چه د هغه د نبوت نه ئے انکار کړیدے او د هغه صفات ئے د عوامو نه پټ ساتلی دی، او بیا ئے ځان په حق هم ګنړلے دے نو ځکه د ګمراهئ نه نۀ جدا کیږی۔

او په ظلم کې اشاره ده چه دوی د خپل کفر او شرك او بد اعمالو نه توبه هم نۀ ده وېستلې۔

**لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ** : کفارو ته ډیر کرته الله تعالیٰ هدایت کوی لیکن کله چه د کفر سره ظلمونه او د دین په ضد کې ودریدل شروع کړی، مسلمانان وژنی او د هغوی سره قتال کوی، نو بیا ورته غالباً هدایت نۀ کیږی ځکه چه دوی د ضد او عناد په وجه د الله بخنه او د هدایت لاره په خپل ځان باندے بنده کړه کومه چه جنت ته رسیدلے ده چه هغه د نیك اعمالو او د حق منلو لاره ده۔

دا آیت داسے دے لکه د خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ په شان، دے ته سزا وائی، د بدو اعمالو کله سزا داوی چه انسان باندے د هدایت لاره او د مغفرت دروازه بنده شی۔

داسے قِسم کفارو ته چه د مسلمانانو مقابلے ته راوتلی وی، دعوت هم فائده نۀ ورکوی چه بنده ورشی او هغوی ته ووائی چه تاسو ایمان راوړئ، هغوی له الله تعالیٰ زړونه اړولی دی۔

**طَرِيْقًا** : ددے لارے نه مراد د ایمان او د نیك اعمالو لاره ده چه انسان جنت ته رسوی۔

إِلَّا طَرِيقَ جَهَنَّمَ : یعنی د جهنم د لارے اسباب به ورته ښائی چه هغه بد اعمال او د حق مخالفت او د گناهونو توفیق دے او دا د ﴿فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَىٰ﴾ په شان دے۔

وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا : یعنی الله تعالیٰ د دوی په سزا باندے هیڅ پرواه نکوی، انسان چه کله بل ته سزا ورکوی، نو په هغه بوج راځی او چه وژنی ئے نو هیبت پرے راځی، او یریږی چه ما ته به سبا له دده نه خطر راپیښ شی او الله تعالیٰ نهٔ د چا نه شرمیږی، او نهٔ پرے هیبت او رعب راځی او نهٔ د انجام نه یریږی، د وجه د کمال قدرت د الله تعالیٰ نه۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُمُ الرَّسُولُ بِالْحَقِّ مِنْ رَبِّكُمْ |
| اے ایمان والو! یقیناً راغلے دے تاسو ته رسول په حق بیانولو سره د طرفه د رب ستاسو نه |
| فَآمِنُوا خَيْرًا لَكُمْ وَإِنْ تَكْفُرُوا |
| نو ایمان راوړئ، دا به غوره وی ستاسو دپاره، او که تاسو کفر کوئ |
| فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي |
| (نو الله بے پرواه دے ستاسو نه) ځکه یقیناً د الله په اختیار کی دی هغه څه چه په |
| السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿١٧٠﴾ |
| آسمانونو او زمکه کی دی او دے الله پوهه حکمتونو والا۔ |

**تفسیر : مضمون** : ددے ځای نه تر آخر د سورت پورے بل قسم مضمون دے چه پدے کی یو څو مسائل بیانیږی، اول ترغیب الی اطاعة الله والرسول دے۔ چه اے خلکو! د الله او د رسول اطاعت وکړئ او پدے پیغمبر ایمان راوړئ، او دا چه درته کومے مسئلے بیانوی د هغے په منلو کی ستاسو سراسر خیر او فائده ده، نو پدے کی د رسول الله ﷺ شان بیانیږی ځکه چه ددے رسمونو او غلطو عقیدو رد به رسول الله ﷺ کولو۔

بیا رد کوی په غلو د اهل کتابو باندے چه د ځان نه خبرے مهٔ جوړوئ، او رد کوی په شرك باندے چه نصاراؤ د عیسیٰ علیه السلام په باره کی کړے وو چه د هغه نه ئے إله جوړ کړے وو۔ نو منع کوی د شرك نه چه د عیسیٰ علیه السلام د اُلوهیت عقیده مهٔ ساتئ او په (۱۷۲) آیت کی ئے وجه بیانوی چه عیسیٰ علیه السلام خپله په شرك باندے رضا نهٔ دے او حال دا چه تاسو ئے

د الله سره شریك جوړوي،

بیا ئې تخویف بیان کړیدې چه څوك د الله د بندګۍ نه انکار کوي، الله به سزا ورکوي او څوك چه ایمان لري او د الله بندګي کوي هغوی دپاره زیرې بیانیږي.

بیا ئې قرآن کریم ته ترغیب ورکړیدې لکه مخکې ئې رسول ته ترغیب ورکړو چه دا قرآن ښاشسته رڼا ده ددې تابعداري وکړئ. بیا چه څوك د الله په کتاب ایمان لري او عمل پرې کوي هغوی دپاره ئې زیرې بیان کړیدې، او په آخرکې ئې د امور انتظامیه ؤ نه د میراث مسئله ذکر کړیده لکه دا د قرآن کریم د موضوعاتو طریقه ده چه اول او آخرئې یو کوي.

یَا اَیُّهَا النَّاسُ : پدې کې ترغیب دې ایمان ته په رسول الله ﷺ باندې او د هغه تابعدارئ ته چه د جاهلیت رسمونه پریدئ او ددې رسول تابعداري شروع کړئ. او ټولو انسانانو ته (یهود، نصارئ او مشرکان او نورو کفارو ته) عام اعلان دې چه خاتم النبیین ﷺ د الله رسول دې، او هغه حق دین د دنیا والو د هدایت دپاره راوړې.

بِالْحَقِّ : یعنې په رشتیاؤ سره چه دروغژن نهٔ دې. یا لِاِظْهَارِ الْحَقِّ. د حق د ښکاره کولو دپاره راغلې دې.

فَآمِنُوْا خَیْرًا لَّکُمْ : یعنې اې خلقو ! ستاسو خیر پدې کې دې چه تاسو په هغه باندې ایمان راوړئ،

وَاِنْ تَکْفُرُوْا : او که تاسو کفر کوئ نو پوهه شئ چه د آسمان او زمکې ملکیت د هغه دې، او هغه تاسو ته په عذاب درکولو قادر دې.

بعض علماؤ ددې تفسیر داسې کړیدې چه که تاسو کفر کوئ نو پوهه شئ چه هغه ستاسو نه غني او بې حاجته دې، نهٔ ستاسو په کفر سره هغه ته څه نقصان رسیږي او نهٔ ستاسو په ایمان سره څه فائده، ځکه هر څه د هغه دي.

خیرا لکم : ددې نه مخکې (یَکُنْ) لفظ پټ دې. یعنې دا (ایمان) به ستاسو دپاره غوره وي. یا په اعتبار د موصوف محذوفه سره مفعول مطلق دې اَیْ اِیْمَانًا خَیْرًا لَّکُمْ.

یعنې تاسو داسې ایمان راوړئ چه هغه ستاسو دپاره فائده مند وي او د منافقت او شرك والا ایمان نهٔ وي. (قاسمیؒ)

وَاِنْ تَکْفُرُوْا : یعنې که ایمان رانهٔ وړئ نو چا له به ضرر ورکړئ ؟ صرف خپلو ځانونو له ځکه چه په کائناتو کې هر څه د الله دي، د الله تعالیٰ بندګانو ته څه حاجت دې ؟!.

عَلِیْمًا حَکِیْمًا: یعنې الله تعالیٰ ته د هغه دشمنان معلوم دي او چه عذاب ورته روستو

کوی نو دائے په حکمت بناء دی۔

| يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللهِ إِلَّا الْحَقَّ إِنَّمَا |
|---|
| اے کتاب والو ! زیاتے مهٔ کوئ په دین خپل کی او مهٔ وایئ په الله باندے مگر حق، یقیناً |
| الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللهِ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا |
| مسیح عیسیٰ (علیه السلام) ځوی د مریم رسول د الله تعالیٰ دے او کلمه د هغه ده چه گوزار کړے ده |
| إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ فَآمِنُوا بِاللهِ وَرُسُلِهِ وَلَا تَقُولُوا |
| مریم ته او روح وو د طرفه د الله نه نو ایمان راوړئ په الله تعالیٰ او په رسولانو د هغه او مهٔ وایئ |
| ثَلَاثَةٌ انْتَهُوا خَيْرًا لَكُمْ إِنَّمَا اللهُ إِلَهٌ |
| چه آلهه درے دی، منع شئ (ددے نه) دا به غوره وی ستاسو دپاره یقیناً الله حقدار د بندګئ |
| وَاحِدٌ سُبْحَانَهُ أَنْ يَكُونَ لَهُ وَلَدٌ لَهُ مَا |
| یو دے، پاک دے ددے نه چه شی د هغه دپاره ځوی، د هغه په اختیار کی دی هغه څه |
| فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَكَفَى بِاللهِ وَكِيلًا ﴿۱۷۱﴾ |
| چه په آسمانونو کی دی او هغه څه چه په زمکه کی دی او پوره دے الله تعالیٰ ذمه وار۔ |

**تفسیر** : ربط : مخکی ئے د یهودیانو د اعتراض جواب ورکړو او هغوی ئے په خپل اعتراض کی پړه کړل، نو اُوس خصوصی خطاب نصاراؤ ته کوی او هغوی ته د هغوی په کفر او ضلال باندے زجر ورکوی۔ (قاسمیؒ)

یا پدے کی د اهل کتابو (یهود او نصاراؤ) سره خطاب دے چه دوی یو په رسول الله ﷺ باندے اعتراض کولو او عقیدے ئے غلطے وے نو په حق اعتراض او د حق په خلاف غلطے عقیدے ئے لرلے۔ د الله د توحید او د عیسیٰ علیه السلام په باره کی د یهود او نصاراؤ دواړو عقیدے خرابے وے نو پدے کی د هغوی اصلاح او مونږ ته تنبیه راکړے شویده چه د هغوی په شان غلطے عقیدے اختیار نکړو۔

لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ : قرآن کریم کی دا جمله دوه کرته راغلے ده، یو دلته او بل سورة المائده کی او دا ډیره عجیبه قانون او قاعده ده۔

## د غلو څه معنی؟

لَا تَغْلُوْا : دا د غلو نه اخستے شویدے، امام راغبؒ لیکی چه غلو په هغه وخت کی هم استعمالیږی چه کله په نرخ کی زیاتوالے پیدا شی لکه عرب وائی : (غَلَا السِّعْرُ) نرخ (ریټ) زیات شو۔ او غلو دیته هم وائی چه څوك د یو شی د رتبی (مرتبے) په لوی والی کی د حد نه تجاوز وکړی او د استحقاق نه پورته مرتبه ورکړی۔

## د غلو مصداقات

(۱) سیوطیؒ په الدر المنثور کی د قتادهؒ نه ددے یو مصداق دا بیان کړیدے : [لَا تَبْتَدِعُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ] یعنی په دین کی عقیدوی او عملی بدعات (نوی کارونه) مهٔ پیدا کوئ۔ دا مصداق صحیح دے ځکه چه اهل بدعت اهل غلو دی لیکن ناقص دے او په آیت کی ددے نه هم زیات عموم دے۔

(۲) ظاهر دا ده چه غلو په دوه قسمه ده ۱-: غلو بالافراط۔ لکه د اشخاصو په مرتبه کی زیادت پیدا کول، یا د مسائلو په حکمونو کی د حد نه تیروتل، یا څیزونه د خپل حد نه پورته کول۔ ددے مثال روستو راځی۔ ۲- دویم غلو بالتفریط : دا ده چه یو شخص د خپلے مرتبے نه راخکته کول، او دارنګه د اقوالو او اعمالو او د اشیاؤ د خپلو مرتبو نه راخکته کول، نو دلته غلو دے دواړو ته شامل ده چه په دین کی غلو مهٔ کوئ یعنی مهٔ افراط (زیاتے پیدا) کوئ او مهٔ تفریط (کمے پیدا) کوئ۔ کما فی البغوی)

**فائده ۱** : دلته یوه قاعده ده چه بنده ئے وپیژنی نو عقیده، نظریه، ذهن سازی او عدل په بنده کی پیدا کوی او هغے ته حفظ المراتب وائی۔ یعنی د هر چا او د هر عمل او د هر شی خپله خپله مرتبه پیژندل او هغه محفوظه ساتل، د چا چه کومه درجه ده هغه درجه ورکول، همدغه عدل او انصاف او همدغه حق پرستی ده، او که څوك حفظ المراتب ونکړی، یو تن د خپلے مرتبے نه واړوی یا ئے راښکته کړی، نو دا انسان لاړو په غلو کی واقع شو۔ نو د یو شخص، قول، عمل او مکان او مرتبه دے ونهٔ پیژندله نو دا غلو شوه۔ نو پدے آیت کی د حفظ المراتب قانون ذکر دے۔

**فائده ۲** : د شیطان دوه جالونه دی یو افراط او بل تفریط۔ علماء وائی فَبِأَيِّهِمَا ظَفِرَ فَرِحَ۔ شیطان چه پدے دواړو کی په هر یو کامیاب شو نو خوشحاله وی، ځکه په دواړو طریقو

سره بنده د دین نه اوړی او د الله په مخالفت کی واقع کیږی. افراط مرض د اهل بدعو دے او تفریط مرض د فاسقانو دے. افراط والا یهودیان وو او تفریط والا نصاریٰ وو.
او کله په یو سړی کی دواړه راجمع کیږی، تیزو مزاجونو والا کی افراط زیات راځی ځکه چه شیطان ډیر هوښیار دے چه د چا مزاج کی تیزی وی نو په هغه باندے افراط (زیاتے) کوی، په مسئلو کی افراط، په فتوو کی افراط، په اشخاصو کی افراط راولی.
او چه د چا په مزاج کی سستوالے او نرمی وی نو په هغه باندے تفریط (کوتاهی) کوی، د الله د حدودو نه ئے رابنکته کوی. نو پدے وجه شریعت زمونږ نه اعتدال غواړی او زمونږ دین وسط (درمیانه دے) په مابین د یهودیت او نصرانیت کی، او د اعتدال سره د الله مدد وی نۀ د افراط او تفریط سره.

## د افراط او تفریط مثالونه

ددے په دین کی ډیر زیات مثالونه دی، ځینی مثالونه د پوهے دپاره لاندے ولولئ:
۱ – د اشخاصو په مراتبو کی افراط تفریط داسے کیږی چه یو تن د یو نبی نه اِلٰه جوړ کړی لکه څنګه چه نصاراؤ دا کار کړیدے چه د عیسٰی ﷺ سره ئے مینه دومره حد ته ورسیده چه د هغه په باره کی ئے قِسم قِسم عقیدے پیدا کړے چه هغه ته ئے اِلٰه یا ابنُ الله یا ثالث ثلثة درے عقیدے جوړ کړے. یعنی عین الله دے، یا د الله ولد دے یا درے آلهه دی، الله، روح القدس او عیسیٰ ﷺ. نو د عیسیٰ ﷺ مرتبه ئے د نبوت او بندګئ نه اُلوهیت ته وخیژوله نو پدے سره غلو والا وګرځیدل.
رسول الله ﷺ دے خبرے ته اشاره کړے وه. بخاریؒ د سیدنا عمر بن خطاب ﷛ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: [لَا تُطْرُوْنِیْ كَمَا أَطْرَتِ النَّصَارٰی عِیْسَی ابْنَ مَرْیَمَ]
زما په صفت کی د حد نه تیروتل مهٔ کوئ لکه څنګه چه نصاراؤ د عیسیٰ بن مریم (ﷺ) په باره کی کړی وو، زهٔ د الله بنده یم، پدے وجه ما ته د الله بنده او د هغه رسول وایئ.
پدے حدیث کی رسول الله ﷺ امت مسلمه ته دا خبردارے ورکړو چه په کومه بیماریٔ کی نصاریٰ اخته شویدی په هغے کی دوی اخته نشی. نصاراؤ عیسیٰ ابن مریم د نبوت د مقام نه پورته کړے وو او د اُلوهیت مقام ته ئے رسولے وو او هغه ته ئے د الله ځوی وئیلے وو حال دا چه الله هغه د مریم د خیټے نه په غیر د پلار نه د آدم ﷺ په شان پیدا کړے وو او د خپل کامل قدرت دپاره ئے یوه نښه جوړه کړے وه. هغه د الله بنده او رسول وو. ددے نه

زیات د دوی حیثیت نهٔ وو۔ لیکن ددهٔ منونکو ددهٔ نه خپل معبود جوړ کړو۔

دوی په دین کی رهبانیت او د ښځو نه جدائی ایجاد کړیده او عیسیٰ ؑ ته ئے د الله مقام ورکړو بلکه خپل علماء او راهبان ئے خپل معبودان جوړ کړل،

لکه چه الله فرمائی: ﴿اتَّخَذُوٓا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ﴾ چه دوی خپل علماء او راهبان معبودان جوړ کړل۔

افسوس دے چه رسول الله ﷺ د کومے خبرے نه یریدو نو همغه اُوشوه، ډیر د اسلام دعویٰ کوونکو رسول الله ﷺ ته د الله مقام ورکړو او هغه ئے حاجت روا، مشکل کشا او هغه ئے هر څه اُوګڼلو کوم چه د الله په قدرت او د هغه په صفاتو کی داخل دی او نعوذ بالله (د کفر نقل کول کفر نهٔ وی) دا آواز ئے اُوکړو ۔

وہی جو مستوی عرش تھا خدا ہو کر اُتر پڑا ہے مدینہ میں مصطفیٰ ہو کر

هغه الله چه په عرش مستوی (برابر) وو چه مدینے ته راکوز شو نو مصطفیٰ ترے جوړ شو

استغفر الله استغفر الله۔

او دا کار زمونږ په امت کی بریلیان وغیره کوی چه هغوی د محمد رسول الله ﷺ دومره صفتونه کوی چه هغه د رسالت او عبدیت نه الوهیت درجے ته ورسوی۔ کله وائی ((احمد احد سے جدا نہیں))۔ احمد د الله نه جدا نهٔ دے (وحدة الوجود عقیدے والا دی)

کله وائی: ((که الله راونیولے نو محمد (ﷺ) به دِے خلاص کړی او که محمد ونیولے نو هیڅوك خلاصونکے نشته))۔ (العیاذ بالله)۔

ځینی ملیان پکی داسے هم وائی چه د قیامت په ورځ به د رسول الله ﷺ او د الله تعالیٰ جګړه شی (العیاذ بالله) الله تعالیٰ به خلك جهنم ته ګوزاری او محمد (ﷺ) به ئے بهر راکاږی نو پدے کی به پرے محمد (ﷺ) غالبه شی او د اُور نه به ئے خلاص کړی))

داسے قسم بی هوده خبرے کوی او د خلکو په زړونو کی د الله نه نفرت اچوی او د هغه په شان کی ګستاخی کوی۔ حال دا چه د شفاعت مطلب خو دغه نهٔ دے، بلکه په شفاعت کی خو ټول کمال د الله تعالیٰ دے، د شفاعت فائده دا ده چه د الله تعالیٰ عظمت او د هغه اکرام خپلو انبیاؤ لره او په مجرمانو بندګانو باندے رحم مقصد دے او دا ټول د الله تعالیٰ صفتونه دی چه د هغه په بندګانو رحمت او شفقت دے چه د رسول الله ﷺ شفاعت ئے مقرر کړیدے او د قبلولو وعده ئے کړیده اګرکه پدے کی د رسول الله ﷺ اکرام او عزت او کمال هم شته لیکن اصل کمال د الله تعالیٰ دے۔

۲- مثال: یو تن ووائي چه که د دنیا ټول دریابونو نه سیاهي جوړه شي او د ونو نه قلمونه او د صحابه کرامو (رضوان الله علیهم اجمعین) صفتونه پرې لیکل شروع شي نو ختم به نشي. نو دا هم د غلو یو صورت دے ځکه چه دا صفت الله تعالیٰ صرف د خپل ځان دپاره ثابت کړیدے نهٔ د مخلوق دپاره لکه سورة لقمان (۲۷) کې راغلے دے. ﴿ وَلَوْ أَنَّمَا فِي الْأَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ أَقْلَامٌ ﴾

۳- اهل التقلید هم د علماؤ مجتهدینو په باره کې غلو وکړه، ائمه کرامؒ د مبلغینو او علماؤ په درجه کې دي په امت باندے ئې ډیر لوی احسان دے او ددے احسان منل لازم دي چه د خپل وس مطابق ئې په دین عمل کړے او امت ته ئې بیان کړے، لیکن اهل تقلید راولګیدل د ټول امت علماء ئې پریښودل صرف د یو عالِم پورے ونښتل، او هغه ئې په ټولو باندے بلکه په صحابه کرامو باندے داسے اُوچت کړو چه بیخي خطائي هم ورله نهٔ مني، نهٔ به وائے چه دا نبي دے او عالِم مجتهد نهٔ دے، دا خبره هیڅکله نهٔ برداشت کوي چه ووېل شي چه امام ابوحنیفهؒ د امت یو مجتهد عالِم دے او خطائي هم ترے کیدے شي، یا ترے پیدے فلانئ مسئله کښې اجتهادي خطائي شویده. دے ته غلو وائي، په یو عالِم باندے داسے ښه ګمان جوړ شي چه د هغه غلطو خبرو ته هم ښه وائي، او د امت نور علماء ورته هیڅ نهٔ ښکاره کیږي ته به وائے چه هغه ګنے د یهودو یا نصاراؤ علماء دي. او دغه یو عالِم دومره پورته کړي چه د هغه د قول دپاره په حدیث کې تاویل او تحریف کوي حال دا چه دا د چا تاوان دے؟! امام ابوحنیفهؒ ترے خبر هم نهٔ دے او دهٔ پرے ځان غرق کړو. الله تعالیٰ به درنه د قرآن او حدیث تپوس کوي نهٔ د یو عالِم د تقلید په باره کې.

په الدر المختار او رد المحتار کې د امام ابوحنیفهؒ په باره کې داسے غلو شویده، وائي چه یوه ورځ کعبے ته ننوتو او په یوه خپه باندے ئې نیم قرآن او بیا په بله خپه باندے ئې نیم قرآن ولوستو او دا یوه خپه ئې راواخسته او په بله ئې کیخوده او بیا ئې ووېل:

مَا عَبَدْنَاكَ حَقَّ عِبَادَتِكَ وَلٰكِنْ عَرَفْنَاكَ حَقَّ مَعْرِفَتِكَ.

اے الله! مونږ ستا لائق عبادت ونکړو لیکن ستا لائق معرفت مو وکړو. نو د بیت الله د یو کوټ نه ورته آواز وشو.

[يَا أَبَا حَنِيْفَةَ! قَدْ عَرَفْتَنَا حَقَّ الْمَعْرِفَةِ وَخَدَمْتَنَا فَأَحْسَنْتَ الْخِدْمَةَ، قَدْ غَفَرْنَا لَكَ وَلِمَنِ اتَّبَعَكَ مِمَّنْ كَانَ عَلَى مَذْهَبِكَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. (رد المحتار ۱/۱۲٤ مقدمة)

اے ابوحنیفهٔ! تا مونږ په ډیر لائق پیژندلو سره وپیژندلو او زمونږ ډیر ښائسته خدمت

ډېرے وکړونو مونږ ته هم ویخښلے او هغه څوك هم چه ستا په مذهب باندې تر قیامته پورے وي۔ دا د (وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ) بعینه مصداق دے۔ نو د احنافو ډېرے مبارك شي چه ټول ویخلي شو۔ دا هغه د یهودو او نصاراؤ غلو ده چه ځان ته به ئې جنتیان ویل۔

٤- د اولیاؤ په باره کې خو ډېره زیاته غلو شویده، څینې صوفیاء خپلو استاذانو ته حضرتِ اقدس وائي یعنې هغه شخص چه انتهائي پاك وي، او هیڅ ګناه ترے نۀ وي شوي۔ او کله د اولیاؤ د قبرونو نه فیوضات حاصلول، او د هغوی د قبرونو کانړي په خپل ځان رابنکل چه پدے کې برکت دے او د هغوی قبرونو باندے شالونه اچول او شمعے لګول او هغوی باندے عرسونه او چهلمونه کول دا ټول غلو ده۔ د اولیاؤ منل خو دا نۀ دي چه انسان د هغوی بندګي شروع کړي، سجدے ورته ولګوي بلکه د اولیاؤ منل دا دي چه بندګان د هغوی په شان نیك عمل وکړي او د هغوی په شان د الله تعالیٰ نزدے بندګان جوړ شي۔

٥- غلو په اعمالو کې داسے ده چه یو شے مستحب وي او یو انسان ئې په ځان باندے فرض کړي، یو شے په شریعت کې لازم نۀ وي او هغے ته لازم ووائي، لکه بعض خلك وائي چه سه روزه به خامخا لګوے ځکه چه په غیر ددے نه ایمان نۀ جوړیږي۔

نو ټول بدعتونه او په عملونو کې افراطونه پدے کې داخلیږي، یو شي له دومره ډېر زور ورکول چه شریعت ورله نۀ وي ورکړے دا هم غلو ده، لکه څینې خلك د قرآن د درس په باره کې د الله په کتاب کې تحریف کوي وائي چه جهنمیان به په جهنم کې وائي :

﴿ لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ ﴾ ارمان چه مونږ د قرآن درس آوریدلے وے۔ نو وائي چه څوك د قرآن درس ته نۀ کیني هغه جهنمي دے، نو دا غلو ده، د قرآن درس آوریدل ډېر آهم دي او ډېر لوي اجرونه او خیرونه پکې دي، لیکن دے ته نۀ کیناستل د جهنم سبب نۀ دے، بلکه پدے باندے که چا ایمان راوړو او ددے اعمال ئې خپل کړل نو دا هم مسلمان دے، اګرکه قرآن ئې وئیلے ئې هم نۀ وي، البته د خیرونو نه محروم دے۔

د جهاد آیتونه په تبلیغ لګول یا بعض خلك د جهاد نه علاوه ټولو اعمالو ته غلط وائي، څینې وائي چه پدے زمانه کې حجونه کول صحیح نۀ دي ځکه چه جهاد فرض دے، دا هم غلو ده۔ ځکه چه په اسلام کې به په هره زمانه کې حج هم وي او جهاد به هم وي، او یو به د بل په وجه نۀ پریدی۔ څینې خلك ﴿ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا ﴾ آیت نه ووټونه ثابتوي او د جمهوریت تائید کوي، دا هم غلو ده۔

٦– غلو پـه صـورت د تفریط کی دا ده چه یو تن د انبیاؤ علیهم السلام درجه د نبوت نه راخـکـتـه کـړی او عـلـمـاء او اولیـاء پـه هغوی باندے اُوچت کړی لکه بعض صوفیاء وائی:
[نَحْنُ دَخَلْنَا الْبَحْرَ الْخِضَمَّ وَالْأَنْبِيَاءُ عَلَى سَاحِلِهِ]
مـونـږ (د مـعـرفت) ژور دریاب ته ننوتی یو چه انبیاء (علیهم السلام) د هغے په غاړه کی دی۔ دارنـگـه یو تـن د صـحـابه کرامؓ درجه راښکته کړی او دوی ته بد گوری او ځینو ته د کـفـر نسبـتـونـه کـوی لـکـه شیـعـه گان دا کار کوی نو دا هم غلو ده۔ یا د علماؤ په باره کی وائـی چـه دوی پـه هیـڅ نـهٔ پـو هیـدل او زهٔ بـه پو هیږم، یا د دین د مشرانو بی عزتی او سپکاوے کول او د علماؤ شان نهٔ پیژندل دا غلو فی التفریط ده۔
لنډه دا چه دا ډیره عجیبه موضوع ده او یو مجلد کتاب پرے لیکلے کیږی۔
الله دِے د مسلمانانو په حال رحم اُوکړی، او د خالص توحید په لاره دِے روان کړی او د قرآن او سنت رښتینی متبعین دِے جوړ کړی۔
وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللهِ إِلَّا الْحَقَّ : یعنی الله تعالیٰ باندے دروغ مهٔ جوړوئ هغه دپاره داسے صـفـات مـهٔ وایئ چه په هغے سره د هغه متصف کیدل محال وی لکه دا عقیده ساتل چه الله پـه خپـلـو مـخـلـوقـاتـو کی حلول (نزول) کړیدے، دارنگه الله او بنده کی فی الواقع فرق نشتـه، او هـغـه د خپـلـو بـنـدگانو سره متحد دے، یا دا عقیده ساتل چه د الله ښځه یا ځوی شتـه (الـعـیـاذ بـالله)، دارنـگه الله تعالیٰ سره شریك جوړول، په الله باندے دروغ تړل دی، د الله صفات غیر لره او د غیر صفات الله لره ورکول، الله یو شے حلال کړے دے او دا وائی چه حرام دے، الله یو شے حرام کړیدے دا وائی حلال دے دا ټول تقول علی الله دے۔
إِنَّمَا الْمَسِيحُ : دا یو خصوصی مثال راوړی چه د عیسیٰ علیه السلام په باره کی د نصاراؤ او د یهـودو عـقـیـده خرابـه شـوے وه نو الله فرمائی : عیسیٰ ابن مریم صرف د الله رسول وو، الله هـغـه پـه غیر د پلار نه او بغیر د نطفے نه صرف په کلمه د (کُنْ) سره پیدا کړے، چه هغه ئے مریم بنت عمران ته د جبریل علیه السلام د پو کی په ذریعه اُورسولو او عیسیٰ یو روح وو، چه الله د نورو تـمامو مخلوقاتو د روحونو په شان پیدا کړے وو۔ او د روح نسبت الله خپل طرف ته د عیسیٰ علیه السلام د عزت دپاره کړیدے۔
بـعـض مـفـسـرینو لیکلی دی چه د روح نه مراد د مریم په گریوان کی د جبریل علیه السلام هغه پـو کـے دے چـه د هـغـے پـه وجـه سره د الله په حکم سره مریم حمل واخستو او هغه پو کی ته روح پـدے وجـه اُووئـیـل شو چه هغه یوه هوا وه چه د روح نه خارجه شوه، او ددے نسبت الله

خپل طرف ته پدې وجه کړیدے چه هغه د الله په حکم سره موجود شوے وو۔
وَكَلِمَتُهُ : عیسیٰ علیه السلام ته کلمه ځکه وائی چه دا په کلمه د کُنْ سره پیدا شویدے چه ظاهری څه اسباب ورسره ملګری نهٔ وو او نور خلك هم د الله مخلوق دے لیکن د هغے سره ظاهری اسباب ملګری وو۔
وَرُوحٌ مِنْهُ : دا هغه لفظ دے چه نصاریٰ پرے ګمراه شوی وو او دا به ئے ویل چه په قرآن کی دی چه عیسیٰ علیه السلام روح دے د الله نه، یعنی جزء دے د الله نه لکه څنګه چه روح جزء د بدن وی۔
مفسرینو ددے تقریباً اته جوابونه لیکلی دی، لکه قرطبی (۲۲/٦) روح المعانی (۲٥/٦) او زاد المسیر (۲۲٥/۲) وغیره ذکر کړیدی۔
(۱) مشهوره معنیٰ دا ده چه دا روح دے چه د جانبه د الله نه راغلے دے۔ نور ارواح هم د الله د طرفه دی، لیکن فرق دا دے چه کله الله تعالیٰ د آدم علیه السلام د شا نه د انسانانو روحونه راویستل او په یو ځای کی ئے واچول نو نور روحونه ئے بیرته د هغه شا ته ننویستل او د عیسیٰ علیه السلام روح ئے د ځان سره جدا وساتلو،
نو کله چه د مریم نه عیسیٰ علیه السلام پیدا کیدو نو د هغے خیټے ته ئے ورواچولو۔ نو ځکه (رُوحٌ مِنْهُ) دے چه الله خصوصی د ځان سره ساتلے وو۔
(۲) یا دا اضافت تشریفی دے یعنی د عیسیٰ علیه السلام د روح د عزت دپاره الله تعالیٰ ځان ته نسبت وکړو۔ لکه بیت الله۔ کعبة الله۔ ناقة الله۔
(۳) روح کله په معنیٰ د رحمت سره وی لکه ﴿وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ﴾ او عیسیٰ علیه السلام د خپلو تابعدارو دپاره رحمت وو۔
(٤) روح کله په معنیٰ د برهان سره دے۔
(٥) روح کله په معنیٰ د حیاة سره وی یعنی الله سبحانه وتعالیٰ ژوندے کړے وو په خپل امر تکوینی سره۔
(٦) روح کله په معنیٰ مصدری سره استعمالیږی یعنی پوکے کول او الله تعالیٰ ته ئے نسبت وشو ځکه چه د الله په امر سره جبریل علیه السلام د مریم په ګریوان کی پوکے کړے وو او د هغے نه عیسیٰ علیه السلام پیدا شوے وو۔ (طبری ۷۰٤/۷)

## د عیسیٰ علیه السلام د روح خصوصیات او امتیازات

یو خصوصیت خو مخکې په اوله وجه کې بیان شو.

۲- دویم خصوصیت دا دے چه نور روحونه په هغو بدنونو کې حلول کوي چه اصل ئے د بل ژوندي نه اخستلے شوے وي مګر د عیسیٰ ﷺ روح مبارك په داسے بدن کې ورننوت چه اصل ئے د بل ژوندي نه نهٔ وو اخستلے شوے.

۳- د عیسیٰ ﷺ د روح په برکت سره به د ختې مرغۍ نه ژوندۍ مرغۍ جوړیده لکه آل عمران کې تیر شوي وو او المائده (۱۱۰) کې به راشي.

٤- د عیسیٰ ﷺ روح د هغه د بدن سره ډیره اوږده موده پورے وخت تیروي چه دغه شان د هیچا روح د هغه د بدن سره دومره اوږده زمانه نشي پاتے کیدے تردے چه عیسیٰ ﷺ اُوس هم ژوندے دے او قیامت ته نزدے وخته پورے به ژوندے وي.

٥- قیامت ته نزدے به د عیسیٰ ﷺ روح داسے وي چه د هغه په تنفس (ساه اخستلو) سره به د ډیرو ژوندو خلکو نه روحونه وځي کافران به وژل کیږي او د هغه تنفس به هغه ځاے ته رسیږي کوم ځاے ته چه د هغه نظر رسیږي. (صحیح مسلم: ۷۵٦۰)

## عجیبه قصه

یو نصراني طبیب د هارون رشید په مجلس کې د علي بن الحسین الواقدي المروزيؒ سره مناظره کې ووئیل چه ستاسو په کتاب کې دي چه عیسیٰ ﷺ د الله تعالیٰ جزء (یعني ولد) دے د (رُوْحٌ مِنْهُ) لفظ نه ئے دلیل ونیولو. نو هغه سلفي عالم ددهٔ په جواب کې وفرمایل: چه که خبره داسے وي نو بیا به ددے آیت سره څه کوے ﴿وَسَخَّرَ لَكُمْ مَا فِي السَّمٰوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مِنْهُ﴾ (الجاثیه: ۱۳)

یعني الله تعالیٰ ستاسو دپاره تابع ګرزولي هغه څیزونه چه په آسمانونو او زمکه کې دي دا ټول د الله د طرفنه دي. نو دلته هم (مِنْهُ) لفظ راغلے دے نو آیا د آسمان او زمکے ټول څیزونه د الله نه جزء دے ؟! نو پدے سره هغه نصراني پړ شو او مسلمان شو او هارون رشید دغه عالِم ته لوي انعام ورکړو. (روح المعاني)

فَآمِنُوا بِاللهِ وَرُسُلِهِ : یعني کله چه د عیسیٰ ﷺ د پیدائش حقیقت معلوم شو او دا هم معلومه شوه چه هغه د الله رسول وو، نو بیا ایمان وساتئ چه الله یواځے دے، د هغه ښځه یا څوي نشته، او عیسیٰ ﷺ د الله بنده او د هغه رسول وو، پدے وجه دا مهٔ وایئ چه الله د (الله، مسیح او مریم) درے وارو د مجموعے نوم دے.

وَلَاتَقُولُوْا ثَـلَاثَةٌ : اَیْ لَاتَقُوْلُوْا الاٰلِهَةُ ثَلٰثَةٌ۔ یعنی داسے مهٔ وایئ چه آلِهَه درے کسان دی۔ پدے کی د عیسیٰ ؈ په باره کی د نصاراؤ درے قسمه ډلو او عقیدو ته اشاره کوی۔

اِنْتَهُوْا خَیْرًا : اَیْ اِنْتَهُـوْا عَنِ التَّثْلِیْثِ وَاْتُوْا خَیْرًا لَّکُمْ ۔ تـاسـو د درے والی د عقیدے نه منع شئ او هغه شی ته راتلل وکړئ چه ستاسو دپاره غوره وی چه هغه خالص توحید دے۔ یا (خیرا) نه مخکی (یَکُنْ) پټ دے اَیْ یَکُنْ خَیْرًا لَّکُمْ۔ یعنی دا به ستاسو دپاره غوره وی۔

**فائده** : حـافـظ ابـن کـثیرؒ لیکلی دی چه د نصاراؤ د کفر هیڅ حد نشته او نهٔ د هغوی د گـمـراهیـانو څـه انتهـاء شتـه، د هغوی نـه څـه خلق عیسیٰ ؈ تـه د الله څوی وائی۔ د عیسایانو ډیرے ډلے دی چه د هغوی مختلفے رائے او متناقض اقوال دی۔

د هـغـوی ددے فـکـری تـناقض او تباین د وجه نه بعض متکلمینو وئیلی دی چه که لس نـصـرانیـان پـه یـو ځـای راجـمـع شی نو د دوی به خپل مینځ کی د اختلاف په وجه یولس مختلف اقوال پیدا شی۔

د اسـلام عـلـماؤ د عیسـایـانـو د تـثـلیث عقیدے پوره رد کړیدے او ثابته کړے ئے ده چه دا عـقیـده د عـقـل او مـنطق خلاف ده۔ پدے وخت کی په امریکه او برطانیه وغیره کی داسے ډیر عیسایان موجود دی چه عیسیٰ ؈ حقیقی معبود نهٔ گنړی بلکه د هغوی عقیده ده چه حقیقی معبود صرف یو الله دے۔

پـدے وجـه الله تعالیٰ عیسایان مخاطب کړل ورته ئے اُووئیل چه تاسو د تثلیث عقیدے نه مـنـع شـئ، پـدے کـی سـتـاسـو دپاره خیر دے، ځکه چه معبود صرف یو الله دے، هغه ددے عقیدے نه اُوچت او پاك دے چه د هغه ځوك ځوی شی، ځکه چه د آسمان او زمکے هر شے د هغه ملکیت دے نو دا څنگه کیدے شی چه د هغه مملوك او مخلوق د هغه یو جزء جوړ شی؟! د تـمـامـو مـخـلـوقـاتو معاملات الله تعالیٰ ته حواله دی، او هغه د ټولو نه غنی او بے حاجتـه دے نو دا څنگه کیدے شی چه هغه چا لره خپل ځوی جوړ کړی، ځوی خو د هغه چا وی چه عاجز او کمزورے او محتاج وی، او په تدبیر او حفاظت د مخلوق کی یوائے پوره نهٔ وی، دے دپاره چه د هغه قائمقام جوړ شی او د هغه په شان تدبیر او حفاظت وکړی۔

## نصاراؤ ته د تثلیث عقیده څنگه رانقل شوه؟

د عیـسـویـت دین په اصل کی د نورو آسمانی دینونو په شان په توحید باندے روان وو او د

عیسیٰ علیه السلام اسمان ته د پورته کیدو نه روستو هم تر یو اتیا (۸۱) کالو پورے نصاریٰ په توحید باندے روان وو (القرطبی) او تردیے چه نن ورځ هم دوی خپل ځانونه موحدین ګنړی او د مشرکانو تو م ورته بد ښکاری. د تثلیث عقیده دوی ته ځینو مشرکانو (بت پرستانو) ورنقل کړه کله چه هغوی د نصرانیت دین قبول کړو او خپل ځانونه ئے نصاریٰ معرفی کړل. (تفسیر المنار)

د نصاراو چه په عقیده کی څو مره اختلافات دی، دا په ټوله دنیا کی په بله هیڅ یوه عقیدوی دله کی نهٔ موندل کیږی پدیے وجه څوك چه پدیے عقیدو کی اخته وی، نو ډیر پریشانه وی ځکه چه توحید یو فطری دین دیے، ددیے نه اوریدو سره بنده په ډیرو ګندونو او مشکلاتو کی اخته کیږی، پدیے وجه الله تعالیٰ نصاراو ته دعوت ورکړو چه تاسو د تثلیث د عقیدیے نه منع شئ دیے کی به ستاسو دپاره فائده وی، د فطرت په دین به روان شئ او د ډیرو مشکلاتو او وهمونو نه به خلاص شئ.

تثلیث والا عقیده کی ډیرے ډلے وے. O ځینی وائی چه معبودان دریے دی (۱) الله، (۲) روح القدس (۳) عیسیٰ علیه السلام. O او ځینی وائی (۱) الله، (۲) بی بی مریم (علیها السلام) (۳) او دریم معبود عیسیٰ علیه السلام دیے. O او ځینی وائی چه د اقانیم ثلاثه نه اله مرکب دیے او د عیسایانو په کتابونو کی ښکاره عبارتونه موجود دی چه هغوی به وئیل (۱) عیسیٰ ابن الله دیے. او هغه بعینه الله (معبود) هم دیے. (۲) او مریم ام الله ده (عیاذا بالله د الله مور ده یا ئے بی بی ده) O او ځینی د اقانیم ثلاثه نه داسے تعبیر کوی چه دا اب، ابن او روح القدس دیے، اب الله دیے او ابن هم الله دیے او روح القدس هم الله دیے.

او دوی وائی چه دا دریے واړه په قوت، عظمت، ازلیت او په هر شی کی سره یو برابر دی.

او دا هم وائی چه مونږ پدیے حقائقو باندے په ښه شان نهٔ پو هیږو ځکه چه دا داسے رازونه دی چه د عقل او د ادراك بشری (انسانی علم) نه پورته دی. (محاسن التاویل ۶۱۱/۲)

شیخ رحمة الله الهندی الکیرانوئ په (اظهار الحق) کتاب کی د عیسیانو د عقائدو تفصیل او د هغے ردونه په ډیر جامع ترتیب سره کړیدی که څوك شوق لری هغے ته دِے رجوع وکړی. دارنګه ((الجواب الصحیح لمن بدل دین المسیح)) د شیخ الاسلام ابن تیمیة او ((هدایة الحیاری)) د ابن القیمؒ. ((مناظرة بین السلام والنصرانیة)) لنخبة من العلماء دارنګه ((مع زمیلی المسیح)) کتاب وګوره.

| لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ أَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِلّٰهِ وَلَا |
|---|
| هیچرے بد نهٔ گنړی (نفرت نهٔ کوی) مسیح (ؑ) ددے نه چه شی بنده د الله دپاره او نهٔ |
| الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيَسْتَكْبِرْ |
| ملائك نزدے (الله ته) او څوك چه نفرت كوى د عبادت د الله تعالىٰ نه او ځان لوئى گنړى |
| فَسَيَحْشُرُهُمْ إِلَيْهِ جَمِيْعًا ﴿۱۷۲﴾ |
| (نو عذاب به ورکړی) نو زر دے چه جمع به کړی دوی لره الله تعالىٰ خپل ځان ته ټول۔ |

**تفسیر** : پدے آیتِ کریمه کی د الله تعالیٰ د طرف نه د عیسیٰ ؑ دپاره د عیسایانو د باطلے عقیدے په خلاف لویه گواهی ده چه هغه د الله د بنده کیدو نه کله منکر کیدے شی، د الله دپاره عبودیت خو هغه عزت او شرافت دے چه په هغے باندے هغه ناز کوی۔ همدا گواهی الله تعالیٰ د مقرب ملائکو دپاره هم ورکړیده چه دوی هم د الله په عبودیت باندے ناز کوی، او پدے کی په مشرکین بالملائکه باندے رد مقصود دے۔

او بل رد دے په نصاراؤ باندے چه لکه څنگه چه عیسیٰ ؑ بی پلاره پیدا شویدے نو ملائك هم بغیر د مور او پلار نه پیدا شویدی، نو هغوی په پیدائش کی د عیسیٰ ؑ نه ډیر ناشنا دی نو که عیسیٰ ؑ پدغه صفت سره اله گرځی نو بیا خو پکار ده چه ملائك هم آلهه وگرځی۔ (ابن عادل والآلوسی)

پدے سره دا اشکال ختم شو چه دلته ترقی د اعلیٰ نه ادنیٰ ته شویده ځکه چه په نیز د اهل السنة والجماعة ملائك خو د انبیاء علیهم السلام نه افضل نهٔ دی۔

نو جواب وشو چه پدے کی رد دے په مشرکانو چه هغوی به د ملائکو عبادت کولو او هغه به ئے د الله لونړه گنړلے او د انبیاء علیهم السلام نه به ئے هم افضل گنړل نو د هغوی د عقیدے مطابق ووېل شو چه تاسو کوم خلك افضل گنړئ هغه هم د الله د بندگئ نه انکار نکوی۔ دارنگه دا د ملائکو جزئی فضیلت دے چه بی پلاره او بی موره پیدا شویدی او عیسیٰ ؑ صرف بی پلاره پیدا دے۔

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ : کله چه د عیسیٰ ؑ په باره کی صحیح حقیقت ښکاره شو نو نصاراؤ ووېل چه تاسو عیسیٰ ؑ ته بنده او رسول ووېلو دا خو د هغه بی عزتی ده نو الله تعالیٰ په هغوی باندے رد وکړو چه عیسیٰ ؑ خو د الله په بنده کیدو باندے فخر کوی۔

لکه دا کار په هره زمانه کې د باطل پرستو دے چه کله د یو عالِم اصلي حقیقي حالت بیان کړے شي او د هغه لائق صفت وکړے شي، نو دوی وائي چه دا خو د دغه عالِم بې عزتي ده مثلًا داسے ووېل شي چه قبرونو والا اولیاء څه نشي کولے، یا علماء مجتهدینؒ علماء کرام دي، د دین خادمان دي، دوی نه به پیغمبران نهٔ جوړوئ، نو دوی وائي چه دا خو د اولیاؤ او علماؤ بې عزتي ده۔

استنکاف: د نکف نه دے او نکف په معنیٰ د لرے کول او نفرت کولو سره، او استنکاف په عرف کې انکار کول دي په طریقه د نفرت سره۔ یعنی که عیسیٰ علیه السلام او ملائك مقربون ته دا ووېل شي چه دوی د الله بندګان دي، نو دوی ددے خبرے نه انکار او نفرت نهٔ کوي ځکه چه دا د دوی په شان کې حقیقت دے او د حقیقت نه هغوی انکار نکوی بلکه عیسیٰ علیه السلام به خپله ځان ته (عبد الله) ویلو۔ البته په مشرکانو باندے دا خبرے بدے لګي۔

او مخلوق ته عبد (بنده) ویل د هغوی په شان کې ښائسته نوم او صفت دے۔ او پدے کې اشاره ده چه هر کله عیسیٰ علیه السلام د الله د بنده کیدو نه نفرت او انکار نکوی نو دا لازمه ده چه هغه به د الله تعالیٰ همیشه بندګي کوي۔

وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ: اُوس خبره عامه کوي چه بندګي د هر بنده د شرافت او عزت صفت دے پدے وجه که څوك ددے عزت والا صفت نه انکار کوي او ځان لوی ګنړي نو الله به سزا ورکړي۔

**فائده:** د عبادت پریخودل په دوه قسمه دي (۱) علی سبیل النفرة والاستکبار۔ چه د الله د عبادت نه نفرت وکړي، یا ترے ځان لوی وګنړي۔ لکه مونځ پورے استهزاء کول، او ددے نه نفرت کول، نو دا کفر دے (۲) عَلٰى وَجْهِ الْكَسَلِ۔ د سستوالي د وجه نه د بنده نه عبادات پاتې شي نو دا معصیت او ګناه ده مګر کفر نهٔ دے۔ پدے وجه الله تعالیٰ د يَسْتَنْكِفْ نه روستو (يَسْتَكْبِرْ) لفظ ذکر کړو۔

## د استنکاف او استکبار فرق

۱ – د لغت په اعتبار سره دواړه په معنیٰ کې تفاوت لري، لیکن دلته يَسْتَكْبِرْ عطف تفسیر دے دپاره د (يَسْتَنْكِفْ) لکه دا معنیٰ د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت شویده۔ (ابن کثیرؒ)

(۲) استنکاف دے ته وائي چه د یو کار نه د نفرت کولو سره هغه پریږدي، یعنی هغه ورته

ناکاره او بد شکاره کیږي، او استکبار دے نه والي چه يو کار پريږدي، پدے وجه چه ځان تربے لوی ګنړي اګرکه څه کار في نفسه بد نه ګنړي ليکن صرف ځان تر ينه لوی ګنړي، نو استنکاف کې د استکبار نه معنی زياته ده. او هرکله چه د توحيد او د الله د طاعت او بندګۍ نه انکار کونکي دغه دوه قسمه خلك وي پدے وجه ئے دا دواړه الفاظ راوړل.

وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيَسْتَكْبِرْ : يعني څوك چه د الله د عبادت نه مخ واړوي او د کبر او غرور نه کار واخلي نو الله به دوی د قيامت په ورځ د وعدے مطابق راجمع کوي او د دوی په باره کې به خپله عادلانه فيصله کوي. (وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ) شرط دے او (فَسَيَحْشُرُهُمْ) (زردے چه سزا به ورکړي) ئے جزا ده. او فسيحشرهم ئے بيان دے.

| فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ |
|---|
| پس هر چه هغه کسان دي چه ايمان ئے راوړيدے او نيك عملونه ئے کړيدي نو پوره به ورکړي دوی ته |
| اُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ۚ وَاَمَّا الَّذِيْنَ |
| اجرونه د دوی او زياتي به ورکړي دوی ته د خپلے مهربانۍ نه او هرچه هغه کسان دي |
| اسْتَنْكَفُوْا وَاسْتَكْبَرُوْا فَيُعَذِّبُهُمْ |
| چه نفرت ئے کړے (د عبادت د الله نه) او ځان ئے لوئی ګنړلے دے نو عذاب به ورکړي دوی ته |
| عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ وَّلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۷۳﴾ |
| عذاب دردناك او نۀ به مومي دوی د خپل ځان دپاره سوی د الله نه دوست او نۀ مددګار. |

**تفسير** : په تير شوی آيت کې د الله د عبادت نه مخ اړونکو ته يو قسم دهمکي ورکړے شويده، نو پدے آيت کې ايمان او عمل صالح کونکو ته دا زيرے ورکړے شويدے چه الله به دوی ته د دوی د نيکيانو پوره پوره بدله ورکوي.

وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ : ۱- يو نيکي يو په لسه او يو په اووه سوه چنده به ورکړي.

۲- رُؤْيَةُ اللّٰهِ فِي الْجَنَّةِ. يعني زياتي مهرباني د الله دا ده چه په آخرت کې به الله تعالی ورته خپل ملاقات نصيب کړي.

او د مؤمنانو حال ئے مخکې بيان کړو دے دپاره چه د کافرانو د هغوی په ليدو سره حسرت او افسوس نور هم زيات شي.

وَلَا يَجِدُونَ لَهُمْ کی اشاره ده چه عیسیٰ علیه السلام او ملائك تاسو نشی خلاصولے او نهٔ ستاسو مدد کولے شی ځکه هغوی ستاسو دوستان نهٔ دی اے مشرکانو!۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُمْ بُرْهَانٌ مِنْ رَبِّكُمْ وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكُمْ |
| اے خلقو! یقیناً راغلے دے تاسو ته یقینی دلیل د طرفه د رب ستاسو نه او رالیږلے دے مونږ تاسو ته |
| نُورًا مُبِينًا ﴿١٧٤﴾ فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَاعْتَصَمُوا بِهِ |
| رڼا ښکاره ۔ پس هرچه هغه کسان دی چه ایمان ئے راوړے په الله او مضبوط ئے ونیولو دا قرآن |
| فَسَيُدْخِلُهُمْ فِي رَحْمَةٍ مِنْهُ وَفَضْلٍ وَ |
| نو زر دے چه داخل به کړی دوی لره په رحمت کی د خپل طرف نه او په مهربانئ کی او |
| يَهْدِيهِمْ إِلَيْهِ صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا ﴿١٧٦﴾ |
| روان به کړی دوی لره خپل ځان طرف ته په لاره نیغه (یا وبه ښائی دوی ته خپل طرف ته لاره برابره) |

**تفسیر:** په آخر کی الله تعالیٰ قرآن کریم ته ترغیب ورکوی او ایمان والو ته زیرے ورکوی یعنی د کافرانو د ټولو ډلو د عقیدو د رد کولو نه روستو الله تعالیٰ ټولو انسانانو ته د رسول الله ﷺ په رسالت باندے د ایمان راوړو دعوت ورکړو، او وے وئیل چه ددهٔ د نبوت په رشتین والی دلیل تمام شو او حق ښکاره کونکے نور (قرآن کریم) راغلو۔ نو اُوس چه کوم خلق په الله ایمان راوړی او په خپلو ټولو کارونو کی په الله بهروسه کوی، نو الله به د هغوی په حال رحم کوی او هغوی به جنت ته داخلوی او د هغوی درجات به پورته کوی او نیغے لارے طرف ته به د هغوی لارخودنه کوی۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه د مؤمنانو په دنیا او آخرت کی دا امتیازی شان وی چه دوی په دنیا کی په عقیده او عمل کی په نیغه لاره روان وی، او په آخرت کی به الله تعالیٰ دوی په نیغه لاره روانوی کومه چه جنت طرف ته تلے ده۔

**بُرْهَانٌ** : ددے نه معلومه شوه چه قرآن کریم اَدِله قطعیه دی دے، ته ظنی ویل تیك نهٔ دی لکه چه ځینی متکلمینو دا جرأت کړیدے، او قرآنی سُمعی ادله ؤ ته ئے ظنی او ادله اقناعیه وئیلی دی۔ (شرح العقائد) سفیان ثوریؒ او ابن عباس رضی الله عنهما ته منسوب دی چه د برهان نه مراد رسول الله ﷺ دے ځکه چه د.هغه بعثت او رسالت په منکرینو

باندې قطعي حجت دې.
نُوْرًا مُّبِيْنًا : ددې نه بعينه هم دا قرآن مراد دې، او د قرآن ډير نومونه دي. قرآن كريم د نور كتاب دې، ددې په وجه په زړونو او بدنونو كې رڼا اچوي او د قيامت په ورځ به هم د بنده مخې ته رڼا كوي.
مُبِيْنًا : دا صفت ئې د زيات تاكيد دپاره راوړو چه د نورانيت د وجه نه هيڅ شكوك او شبهات د خلكو نۀ پريدي.
وَاعْتَصَمُوْا بِهٖ : ١– يعني د الله دين ئې مضبوط راونيولو، (التحرير)
٢– يا ئې په الله بهروسه او توكل وكړو او د منافقانو په شان كارئې اختيار نكړو.
٣– يا عَصَمُوْا بِهٖ اَنْفُسَهُمْ مِمَّا يُرْدِيْهَا مِنْ زَيْغِ الشَّيْطَانِ. (قاسميؒ)
يعني بچ ئې كړو ځانونه خپل په الله تعالىٰ سره د هغه څه نه چه دوى لره هلاكوي چه هغه د شيطان وسوسې او فريبونه دي. او دا معنىٰ د توكل او ځان سپارلو ده.
٤– يا به ضمير قرآن ته راجع دې. يعني ايمان ئې په الله راوړو او عمل ئې د الله په كتاب وكړو. مګر دويم قول ظاهر دې. ځكه چه مخكې سورت كې (واعتصموا بالله واخلصوا دينهم لله) تير شو. (البحر المحيط)

## فِيْ رَحْمَةٍ مِّنْهُ وَفَضْلٍ : د رحمت او فضل فرق

١– رحمة اصل نعمت دې چه د حاجت مطابق وي، او فضل زياتې نعمت چه د حاجت نه زيات وي. ٢– يا رحمة د اُور نه بچ كول دي او فضل دا چه جنت ته به ئې داخل كړي.
٣– يا رحمة په اسلام باندې باقي پريخودل دي او فضل جنت ته داخلول.
٤– يا رحمت جنت ته داخلول دي، او فضل په جنت كې د الله تعالىٰ ملاقات او د هغه مخ ته كتل دي. (قاسميؒ)
٥– يا رحمة د نيك اعمالو توفيق دې او فضل د هغې قبلول دي. (البحر المحيط)
ابن عاشورؒ وائي: په رحمة او فضل كې داخلول عبارت دې د رضا نه. يعني دوى ته به الله راضي شي او الله تعالىٰ به دوى لره راضي كړي. (التحرير والتنوير)
وَيَهْدِيْهِمْ اِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا : ١– اليه ضمير الله ته راجع دې. اَيْ وَيَهْدِيْهِمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا اِلَيْهِ . په هغه لاره به ئې روان كړي چه هغه نيغه الله ته رسيدلې ده چه هغه جنت دې. يا په دنيا كې به ئې د هدايت په لاره روان كړي.

یا (الیه) متعلق د (یَهْدِیهِمْ) پورے یعنی روان به کړی دوی لره په لاره نیغه دے دپاره چه ورسیږی الله تعالیٰ ته۔ چه دا د دوی ارمان او مقصد دے۔ (ابن عاشورؒ)

بیا هدایت ئے روستو کړو د رحمت او فضل نه سره ددے نه چه رحمت او فضل د هدایت په وجه ملاویږی نو دے کی څه حکمة دے؟

نو وجه دا ده چه دے دپاره چه د مؤمن زړه په جلتئ سره ډیر خوشحاله شی په اصلی مقصد باندے چه هغه رحمة او فضل دے۔ (قاسمیؒ)

۲- یا الیه ضمیر مخکی (فضل) ته راجع دے او د هدایت نه مراد د زړه رهنمائی ده او معنیٰ دا ده: روان به کړی دوی لره دغه فضل ته په لاره برابره۔ یعنی زړه به ئے نیك اعمالو طرفته راواړوی۔ لکه بل آیت کی دی: ﴿سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ﴾ (محمد: ٦)

ابوحیان وائی دا څکه چه هدایت مخکی دوی ته حاصل شویدے کله چه دوی په الله ایمان راوړو او په هغه باندے ئے منګولے ولګولے نو بناء پدے باندے به د صراط مستقیم نه مراد لاره د جنت وی۔ (البحر المحیط)

| |
|---|
| يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي |
| تپوس کوی دوی ستا نه ته ورته ووایه! الله تعالیٰ حکم در کوی تاسو ته په باره |
| الْكَلَالَةِ إِنِ امْرُؤٌ هَلَكَ لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ وَلَهُ |
| د میراث د کلاله (میراث) کی که یو سړے مړ شی چه نهٔ وی د هغه دپاره بچی او د هغه دپاره |
| أُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ وَهُوَ يَرِثُهَا |
| خور وی نو د هغے دپاره نیمائی د هغه مال دے چه هغه پریخے وی او دا وروړ میراث به وړی |
| إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهَا وَلَدٌ فَإِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ |
| د ښځے (د ټول مال) که چرته نهٔ وی د هغے دپاره بچے پس که چرته وی دا دواړه دوه خویندے |
| فَلَهُمَا الثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ وَإِنْ كَانُوا إِخْوَةً |
| نو وی به دے دواړو لره دوه دریمے د هغه مال نه چه پریخے وی دهٔ او که وی وارثان وروڼه او خویندے |
| رِجَالًا وَنِسَاءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ يُبَيِّنُ |
| نارینه او ښځے نو د نارینه دپاره په شان د حصے د دوه ښځو دے۔ بیانوی |

اللّٰهُ لَكُمْ أَنْ تَضِلُّوا وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿۱۷۷﴾

الله تعالىٰ تاسو ته (احكام خپل) هسې نۀ چه گمراه شئ؛ او الله تعالىٰ په هر شي پوهه دے۔

**تفسير**: پدے آيت کې ميراث دے د اِخْوَه اَعْيَاني (مور او پلار شريك) او علاتي (صرف پلار شريکي) ورونو۔ اخيافي ( چه صرف په مور کې شريك وي) نو د هغوي حکم په ابتداء ددے سورت کې ذکر شويدے۔ يعني پدے آيتِ کريمه کې د کلاله د ميراث تفصيل بيان شويدے۔ د جمهورو علماؤ په نيز کلاله هغه مړي ته وائي چه د هغه نۀ اولاد وي او نۀ ئے والد (پلار) يعني اصول او فروع نۀ لري او ورونه يا خويندے ئے وي لکه ددے آيت د الفاظو نه معلوميږي او ددے تشريح ددے سورت د آيت (۱۲) د تفسير په ضمن کې تيره شويده۔

ربط: پدے کې د قرآن کريم د نورانية بيان دے او رد دے په يهود او نصاراؤ باندے چه هغوي به ورونه او خويندے د ميراث نه محرومولے۔

## شان نزول

د سيدنا عمر فاروق ﷺ د کلاله په باره کې ډير شك وو نو د رسول الله ﷺ نه ئے ددے د ميراث په باره کې تپوس وکړو هغه جواب ورکړو ليکن ذهن ئے پرے کولاؤ نشو بيا ئے په سينه يا په اړخ کې په گوته سره ووهلو او ورته ئے وفرمايل: تَكْفِيكَ آيَةُ الصَّيْفِ۔
ستا دپاره هغه آيت کافي دے چه په اوړي کې نازل شويدے او دا آيت ﴿يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيكُمْ﴾ ئے ورته ولوستلو۔ (صحيح مسلم: ۱۶۱۷)
بخاريؒ او مسلمؒ ددے آيت د نازليدو سبب دا ذکر کړيدے چه دا فتوىٰ جابر بن عبد الله ﷺ د رسول الله ﷺ نه تپوسلے وه هغه فرمائي: زۀ مريض اُوم نو رسول الله ﷺ سره د ابوبکر صديقؓ نه زما پوښتنے ته راغلل، زۀ بې هوشه وم نو رسول الله ﷺ د اوداسه اُوبه په ما باندے راواچولے، نو زۀ په هوش کې راغلم۔ گورم چه رسول الله ﷺ زما په کور کې دے، نو ما تپوس وکړو: [يَا رَسُولَ اللّٰهِ! كَيْفَ أَصْنَعُ فِيْ مَالِيْ كَيْفَ أَقْضِيْ فِيْ مَالِيْ فَلَمْ يُجِبْنِيْ بِشَيْءٍ حَتّٰى نَزَلَتْ آيَةُ الْمِيْرَاثِ] اے د الله رسوله! زۀ په خپل مال کې څه وکړم؟ په خپل مال کې څه فيصله وکړم؟ خو نبي کريم ﷺ هيڅ جواب ورنکړو تردے چه د ميراث آيت نازل شو۔ او په يو روايت کې دي: ما اُووئيل چه نۀ زما اولاد شته او نۀ زما پلار ژوندے دے، زما

د میراث په څه حکم وي ؟ نو دا آیت نازل شو۔ (صحيح بخاري: ٥٦٥١ ومسلم: ٤٢٣٠)
د جابر بن عبد الله رضي الله عنهما لس خویندې پاتې وې۔
ځینې روایاتو نه معلومیږي چه دا آیت د سعد بن الربیع ﷺ په باره کې نازل شویدې چه هغه د رسول الله ﷺ سره په اُحُد کې شهید شو نو د هغه بي بي رسول الله ﷺ ته د سعد دواړه لونړه راوستې او وې فرمایل چه سعد ستا سره په اُحد کې شهید شو او د هغه تره د هغه ټول مال واخستو، او ښځه خو د مال د وجه نه په نکاح کولې شي نو رسول الله ﷺ غلې شو تردې چه د میراث آیت نازل شو نو رسول الله ﷺ د سعد بن الربیع ورور راوغوښتو او وې فرمایل: [أَعْطِ ابْنَتَيْ سَعْدٍ الثُّلُثَيْ مَالِهِ وَأَعْطِ امْرَأَتَهُ الثُّمُنَ وَخُذْ أَنْتَ مَا بَقِيَ]
(سنن ابن ماجه: ٢٧٢٠ بسند حسن – الباني)
د سعد دواړو لونړو ته د مال دوه حصې ورکړه او ښځې ته د مال اتمه حصه ورکړه او څه چه پاتې شو هغه تهٔ واخله۔
لیکن ظاهر دا ده چه دا واقعه د (یوصیکم الله) آیت سبب د نزول ګرځي، نهٔ ددې آیت او د جابرؓ د الفاظو نه هم معلومیږي چه دا آیت زما په باره کې نازل شویدې۔
فِي الْكَلَالَةِ : کلاله په مذکر او مؤنث دواړو باندې اطلاق کیږي۔
هَلَكَ : په عربي ژبه کې هلاکت په معنیٰ د وفات سره وي۔ او کله نا کله په معنیٰ د هلاکت عرفي سره وي۔ (فَأُهْلِكُوا بِالطَّاغِيَةِ)
لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ : او ددې سره دا هم مراد ده چه والدئې هم نهٔ وي لکه روستو (وَلَهُ أُخْتٌ) تعیین پرې دلیل دې ځکه چه که والدئې وې نو بیا خو عصبه پلار دې هغه ته ټول مال پاتې کیږي نهٔ خور ته لکه ابتداء ددې سورت کې وئیل شویدي۔
وَلَهُ أُخْتٌ : یعني د هغه مړي دپاره اعیاني یا علاتي خور وي۔
صورت دا دې چه ورور مړ شو او پلار او بچي ئې نشته صرف یوه خور ترې پاتې شوه، نو د خور به نیم مال ورسیږي او باقي به نور عصبات اخلي لکه تره وغیره۔
وَهُوَ يَرِثُهَا : هُوَ ضمیر (امرؤ) ته راجع دې او په عربي ژبه کې دا عامه قاعده ده چه یو سړې کله مړ فرض کوي او کله ژوندې نو دلته برعکس دویم صورت بیانیږي۔
صورت دا دې چه خور مړه شوه پلار او بچي ئې نشته او د هغه نه ورور اعیاني یا علاتي پاتې شو نو دا ورور به ټول مال ددې خور وړي ځکه چه ورور پدې وخت کې عصبه دې۔
یرثها أَيْ جَمِيْعَ الْمَالِ۔ یعني دا ورور به ټول مال د خور وړي۔

فَإِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ : **صورت** : ورور مړ شو او د هغه نه دوه عيني يا علاتي خويندې يا زيات د دوو نـه پاتې شوې، نو دوه حصې مال به دغه خويندې واخلي او باقي يوه حصه به نور عصباتو ته واپس شي۔

وَإِنْ كَانُوٓا إِخْوَةً رِّجَالًا وَّنِسَآءً : **صورت** : سړے مړ دے او يو ورور او دوه خويندې يا زياتې ترې پاتې شوې نو مال به دوه حصې کړے شي، نيم به يو ورور او نيم به دوه يا زياتې خويندې واخلي۔

## فوائد او علوم

۱ – په مسند احمدؒ کې دي چه د زيد بن ثابت ﷺ نه د خاوند او خور په باره کې تپوس اُوشو نو هغه خاوند ته نيمه او خور ته نيمه حصه ورکړه او وې وئيل چه رسول الله ﷺ همدا فيصله کړې وه۔

۲ – که يو شخص يوه لور او يوه خور پريخوستو سره مړ شي، نو د جمهورو په نيز به لور نيمه (د فرض په حيثيت سره) او نيمه به خور (د عاصب کيدو په حيثيت سره) اخلي۔

د ابن عباس او ابن زبير رضى الله عنهم په نيز خور ته به هيڅ نۀ ملاويږي ځکه چه پدې آيت کې د خور د وارث کيدو دپاره دا شرط دے چه د مړي اولاد به نۀ وي۔

ليکن د جمهورو مذهب صحيح دے ځکه چه رسول الله ﷺ خور د لور سره عصبه گرځولې ده۔ او همدا مذهب د زيد بن ثابت او عبد الله بن مسعود رضى الله عنهما هم دے۔ سنن الدارمي (۲/ ۸۰٤) ح (۲۸۸۱) (تحقيق التحقيق للذهبي رقم المسألة: (۵۸۰) لکه روستو مسئله کې راځي۔

۳ – که يو شخص يوه لور، يوه نمسۍ او يوه خور پريخوستو سره مړ شي نو لور ته به نيمه، نمسۍ ته به شپږمه حصه او باقي دريمه حصه به خور ته ملاويږي۔ عبد الله بن مسعود ﷺ همدا فيصله وکړه، او وې ويل چه رسول الله ﷺ همدا فيصله کړيده۔ ولابنة الابن السدس تكملة الثلثين۔ (بخاريّ: ٦٧٣٦)۔

٤ – که د يوې ښځې اولاد يا پلار نۀ وي، او د هغې ورور وي نو ورور به ئې د تمام جائيداد وارث وي۔ او همدا خبره په نفس آيت کې ذکر شوه۔

٥ – که د ښځې خاوند يا د هغې د مور د طرف نه کوم ورور وي، نو هغه به خپله حصه اخلي او باقي مال به سکه ورور ته ملاويږي۔

٦- کـه د مړی دوه یا زیاتے خویندے وي، نو هغوی ته به ثلثان یعنی دوه دریمے حصے مال ملاویږی. جمهورو د دوه لونړو د میراث حکم ددے آیت نه اخستے دے.

٧- کـه د مړی ورور او خور دواړه وی نو سړی ته به د ښځو دوچنده ملاویږی. وتقدم فی نفس الآیة.

## د اعیانی خویندو حالات

اعیانی (سکه) خویندے پنځه حالات لری:

١- یوه خور نیمائی مال اخلی.

٢- دوه یا زیاتی دوه دریمے (دوه ثلثه) اخلی.

٣- د اعیانی ورور سره عصبه کرځی چه دوه خویندے د یو ورور سره په برخه کی برابری دی.

٤- د مړی په لور او همدارنګه د مړی په لمسیٔ (بنت الابن) سره عصبه کرځی.

٥- د مړی په ځوی او پلار سره ساقطیږی.

## د علاتی خویندو حالات

عـلاتـی (نـاسکه) خویندے ټول اُوه حالتونه لری چه پنځه حالته ئے د اعیانی خویندو په شان دی، او دوه نور حالته ئے دا دی:

١- یوه علاتی خور، که یوه اعیانی خور ورسره ملګرے وه، شپږمه برخه اخلی، دے دپاره چه دوه ثلثه پوره شی، پدے باندے د علماؤ اجماع ده.

٢- په دوه اعیانی خویندو باندے دوی ټولے ساقطیږی.

**یُبَیِّنُ اللّٰهُ لَکُمۡ اَنۡ تَضِلُّوۡا**: الله تـعـالـیٰ ددے خپـل احکامو بیانولو حکمت بیانوی چه مونږ تاسو ته دا احکام پدے وجه بیان کړیدی چه چرته تاسو حقه خبره پرینږدیٔ او د خپل طرف نه کومه غلطی ونکړیٔ او په خپل ګمان سره د حق نه وانهٔ وړیٔ. معلومه شوه چه د الله په حکم باندے عمل کول بعینه حق او عدل دے او په همدے کی د ظلم نه بچاؤ دے.

## د عربیت قانون

پدے مقام کی مفسرین داسے کلام کوی چه د (اَنۡ تَضِلُّوۡا) نه مخکی (لام) مقدر دے

يعنى (لِئَلَّا تَضِلُّوا) الله تعالىٰ تاسو ته دا احكام دے دپاره بيانوى چه تاسو گمراه نشئ.
(۲) ځينى علماء ورته (كَرَاهِيَةَ) لفظ پټ راوباسى. يعنى الله تاسو ته دا احكام ځكه بيانوى چه ستاسو بى لارے كيدل نهٔ خوښوى. (روح المعانى ۶/۴۵)
او مفعول د يبين به پټ وى: (اى يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ أُمُوْرَ دِيْنِكُمْ وَمِنْ أَهَمِّهَا تَفْصِيْلُ هٰذِهِ الْفَرَائِضِ) (المنار) الله تاسو ته ستاسو د دين كارونه (احكام) بيانوى چه د هغے نه بعض اهم احكام د ميراث ددے احكامو تفصيل دے، نو (ان تضلوا) به مفعول له وى.
(۳) مگر كه كلام په خپل ظاهر باندے پريخودے شى غوره ده نو (أَنْ تَضِلُّوا) به مفعول به وى دپاره د يُبَيِّنُ او معنىٰ به دا وى: (يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ ضَلَالَكُمْ مِنْ هِدَايَتِكُمْ) الله تعالىٰ تاسو ته ستاسو گمراهى ستاسو د هدايت نه جدا بيانوى. يا الله تعالىٰ تاسو ته گمراهى بيانوى چه ځان ترے وساتئ.
(۴) بل متبادره معنىٰ دا هم كيږى چه الله تعالىٰ تاسو ته خپل احكام ددے دپاره بيانوى چه تاسو به گمراه شئ كه دا احكام درته بيان نكړى. (البحر المحيط ۴/۱۵۳ طبع دار الفكر بيروت وعزيز التفاسير)
ددے نه دا فائده معلومه شوه چه د الله تعالىٰ د احكامو نه غير په بله طريقه باندے عمل كول گمراهى ده.
فَسُبْحَانَ مَنْ جَلَّتْ عَظَمَتُهُ وَأُحْكِمَتْ آيَتُهُ.

## امتيازات او خصوصيات د سورة النساء

۱- كَثْرَةُ الْأَحْكَامِ الْإِنْتِظَامِيَّةِ. د معاشرے د جوړيدو دپاره ډير انتظامى احكام بيان شو، چه غټ غټ احكام پكى اتلس يو دى، او پنځه ويشت نور دى، اتلس پكى د تدبير منزل سره متعلق وو او پنځه ويشت عام احكام وو، او واړه احكام پكى ډير زيات دى.
۲- إِزَالَةُ رُسُوْبِ الْجَاهِلِيَّةِ. د جاهليت (پريوتى) گندونه او رواجونه پكى زائل شويدى لكه د زنا ډير والے او مسئله د ايراث النساء.
۳- بَيَانُ الْمُحَرَّمَاتِ تَفْصِيْلًا. د محرماتو بيان پكى زيات شويدے چه داسے په نورو سورتونو كى نهٔ دے شوے.
۴- بَيَانُ نِكَاحِ الْإِمَاءِ. د وينځو د نكاح بيان پدے سورت كى شويدے.

۵- کَثْرَةُ صِفَاتِ الْمُنَافِقِيْنَ وَالْيَهُوْدِ۔ د منافقانو او یهودیانو ډیر بد صفات ئې بیان کړل۔
٦- احکام المیراث ددې سورت خصوصیت دې۔

❁❁❁❁❁❁❁❁

الحمد لله د سورة النساء تفسیر ختم شو،
د شعبان په ۱٤٣۵/۲۰ هـ چه د هاړ د میاشتې خلورمه ورځ ده، سخته گرمی ده۔
والشیخ ابو محمد یدرس القرآن فی ایبت آباد فی هذا الوقت۔

بسم الله الرحمن الرحيم

| رکوعاتها (١٦) | (٥) سورة المائدة مدنية (١١٢) | آیاتها (١٢٠) |
|---|---|---|

سورة المائده مدنی ده، پدے کی یو سل شل آیتونه او شپاړس رکوع دی۔

## تفسیر سورة المائده

**نوم**: ددے سورت نوم (المائده) دے، په آیت (١١٤) کی دا لفظ ذکر شویدے۔ چونکه د مائدے متعلق قصه پدے سورت کی په ذکر شوی اُمورو کی د ټولو نه زیاته عجیبه او ناشنا ده چه الله تعالیٰ د آسمان نه ډك دسترخوان نازل کړیدے او بنی اسرائیل ئے پرے هاره کړیدی، او بیا پرے هغوی کافر شویدی او الله ترے خنزیران او شادوګان جوړ کړیدی نو دا ډیره د هیبت خبره وه پدے وجه د سورت نوم همدا کیخودے شو۔ او پدے سورت کی الله تعالیٰ مؤمنانو ته تنبیه ورکوی چه تاسو بی ځایه سوالونه مه کوئ لکه څنګه چه بنی اسرائیلو سوال کړے وو بیا پرے کافر شو نو الله ورله عذاب ورکړو۔

٢- بل نوم دے: سُوْرَةُ الْعُقُوْدِ۔ (د لوظونو سورت)۔

٣- سورةُ الْمُنْقِذَه۔ هغه سورت چه د حرامو نه بچ کونکے دے۔

**د نزول زمانه**: پدے کی یو سل شل (١٢٠) آیتونه دی او په اجماع سره مدنی سورت دے۔ د سورة التوبه نه مخکی او د سورة الفتح نه روستو نازل شویدے۔ یعنی تقریباً د اوم کال نه روستو۔ او ددے نه روستو سورة التوبه او بل إِذَا جَآءَ نَصْرُ الله نازل شویدی نو دا یو سل دولسم سورت دے چه نازل شویدے۔

ترمذیؒ د عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه سورة المائده او سورة الفتح د نزول د زمانے په اعتبار سره آخری سورتونه دی۔ او حاکمؒ د جُبَیر بن نُفَیر نه روایت کړیدے چه ما حج وکړو نو د عائشے رضی الله عنها خوا ته ورغلم، هغوی ووئیل چه اے جبیر! آیا ته سورة المائده لولے؟ ما اُووئیل: آؤ! نو هغے اُووئیل چه دا آخری سورت دے چه نازل شوے وو۔ پدے کی چه کوم څیزونه حلال خودلے شویدی هغه حلال اُوګنړه او چه کوم حرام خودلے شویدی هغه حرام اُوګنړه، حاکمؒ وائی چه دا حدیث د شیخینو د شرط مطابق صحیح دے۔

امام احمدؒ، عبد بن حُمَيدؒ، ابن جريرؒ، طبرانيؒ او بيهقيؒ وغيرهم د اسماء بنت يزيد رضي الله عنها نه او ابوعبيدؒ د محمد بن كعب قُرظيؒ نه روايت كړيدي چه سورة المائده په حجة الوداع كي د مكے او مديني ترمينځ نازله شويده. (د اسماء بنت يزيدؒ د روايت سند ته علامه شاكرؒ صحيح وئيلے دے).

## د سورة المائده فضائل

دا په هغه سَبع طِوَال كي داخل دے چه د هغے په يادولو سره بنده په علماؤ كي شامليږي. لكه حديث داسے دے: [مَنْ أَخَذَ السَّبْعَ الْأُوَلَ مِنَ الْقُرْآنِ فَهُوَ حَبْرٌ] (احمد ٦/٧٣ وقيام الليل لابن نصر ص (٦٩) والحاكم (١/٥٦٤) الصحيحة (٥/٣٨٥) بسند صحيح)

٢- پدے سورت كي الله تعالىٰ اتلس فرضي احكام نازل كړيدي چه بل سورت كي نشته.

٣- عائشه رضي الله عنها فرمائي: [عَلِّمُوْا رِجَالَكُمْ سُوْرَةَ الْمَائِدَةِ وَعَلِّمُوْا نِسَاءَ كُمْ سُوْرَةَ النُّوْرِ]. خپلو سړو ته سورة المائده ورزده كړئ او خپلو زنانو ته سورة النور. ځكه چه په سورة المائده كي د حلال او حرامو (بيوع، خوراكي موادو، د قسمونو، شرابو، ښكارونو، نذرونه وغيره) احكام دي او په سورة النور كي د عِفت (حياء او پاكدامنئ) مسائل دي.

(الدر المنثور وسنن سعيد بن منصور والبيهقي).

## ربط او مناسبت

١- سورة النساء كي الله تعالىٰ رد وكړو په يهوديانو باندے تفصيلًا او دارنګه په منافقانو نو دلته الله تعالىٰ د اهل كتابو د دوستئ (موالات) نه منع كوي.

٢- هلته عام خطاب وو په (يٰا ايها الناس) سره نو دلته خاص خطاب راوړي (يٰا أيها الذين آمَنُوْا) يعني چه عام خلك خبره نۀ مني نو اے مؤمنانو! تاسو ئے ومنئ. دے ته تخصيص بعد التعميم وائي.

٣- مخكي د جاهليت رسمونه رد شو نو اُوس قوانين شرعيه بيانيږي چه دغه كارونه پريدئ او دا كارونه وكړئ. لكه يو تن چه رد د بدعاتو وكړي نو بيا سنت بيانوي.

٤- سورة النساء كي رد د شرك اعتقادي وو چه د عيسىٰ عليه السلام په باره كي مشركان مۀ جوړيږئ، نو دلته رد د شرك في التحليل والتحريم كوي چه د ځان نه حلال حرام مۀ جوړوئ بلكه شريعت ته پدے كي نظر وكړئ. نو ګويا كه هلته توحيد الوهيت وو او دلته

توحید حاکمیة او توحید التشریع دے۔
۵- مخکی امور انتظامیه بیان شو چه په هغے نظام برابریږی، نو دلته بیان د محرماتو دے چه ددے نه ځان وساتئ پدے سره په تاسو کی فساد راځی لکه حرام خوریانی۔
٦- مخکی امور انتظامیه ذکر شو نو دلته په هغے باندے د وفادارئ امر کوی۔

## موضوع او مقصد د سورت

١- زمونږ ځینی مشائخ وائی چه پدے کی رد د شرك فی التحلیل والتحریم موضوع ده چه دے ته شرك فعلی وائی۔ ٢- او د بعض اهل علمو په نیز پدے کی د حاکمیة او د دین تشریح ده چه د الله په قانون او دین او کتاب باندے به فیصله کولے شی لکه ﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ﴾ کی ذکر کیږی۔ او دے ته تَحْكِيْمُ الْقَوَانِيْنِ الشَّرْعِيَّةِ وَرَدُّ الْقَوَانِيْنِ الْوَضْعِيَّةِ وائی۔ یعنی په قوانین شرعیه ؤ به فیصلے کولے شی او وضعی قوانینو باندے به فیصلے نشی کولے۔ او دے ته اسلام وائی لکه الله به د اسلام فضائل هم بیانوی۔ (اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ)
٣- ظاهره دا ده چه دلته دوه مقاصد بیانیږی یو [اَلْاَمْرُ بِالْوَفَاءِ بِالْعُقُوْدِ] الله تعالیٰ د لوظونو په وفادارئ باندے امر کوی۔ او ددے مثالونه به راوړی چه چرته د الله لوظ مات نکړئ ورنه ذلیله به شئ، نو کوم خلك چه د عهدونو پابندی نکوی د هغوی قباحتونه او بد حال او عذابونه بیانوی۔ او ددے نه داسے تعبیر هم کولے شی،
[بَيَانُ الْعُقُوْدِ وَالْوَفَاءِ عَلَيْهَا] یعنی عقود (اتلس لوی حکمونه) ئے بیان کړیدی او د هغے په وفادارئ ئے حکم فرمایلے دے۔ ددے مثال داسے دے لکه چه یو تن چا ته ووائی چه یو څو خبرے درته کوم په هغے پابندی وکړه۔
دویمه موضوع - [بَيَانُ أَنَّ التَّحْلِيْلَ وَالتَّحْرِيْمَ مِنَ اللَّهِ]
ددے خبرے بیان دے چه حلالول او حرامول به د الله د طرف نه وی او د ځان نه به د یو شی حلالول او حرامول غلط وی۔ لکه مشرکانو بحیره، سائبه او وصیله او حام د ځان نه حرام کړی وو، نو د آیت په اول کی به ووائی ﴿أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيْمَةُ الْأَنْعَامِ﴾ دا وجه ده چه پدے سورت کی ئے مسئله د تحکیم راوړیده ﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ﴾ او دا مرض د یهودو وو، پدے وجه الله تعالیٰ به په هغوی باندے هم ردونه کوی۔ او ددے د متعلقاتو نه مسئله د موالات ذکر کوی چه څوك ددے احکامو پابندی کوی د هغوی سره دوستی وکړئ او چه څوك ددے مخالفت کوی نو د هغوی سره به دشمنی کوئ۔

دا سورت گویا که په داسې طرز روان دې چه الله فرمائي : ما تاسو ته لوی اسلام راولیږلو پدې کې ما تاسو ته احکام نازل کړل چه هغه لوظونه دي نو یو به اسلام نعمت گنړئ، پدې وجه پدې سورت کې به د نعمت لفظ زیات ذکر کیږي. اشاره ده چه دا پابندیاني د الله نعمت دې او عذاب نهٔ دې. نو الله یو دین راولیږو په هغې کې احکام او پابندیاني دي او هغې ته اسلام وائي او دا د الله لوی نعمت دې. او د ځان ته به په دین کې خبرې نهٔ تنباسئ او د ځان نه به ترې څه نهٔ وباسئ، او ددې مثال به په بني اسرائیلو ورکوی چه بني اسرائیلو ته الله تعالیٰ لوظونه راولیږل لیکن هغوی مات کړل، الله تعالیٰ پرې څو مره پریشانیاني راوستې، د قابیل او هابیل واقعه هم ددې دپاره راوړي، او دغه شان غلهٔ او ډاکوان ئې ذلیله کړل او یهود او نصاریٰ ئې ذلیله کړل، نو د یهودو او نصاراؤ قباحتونه به هم ددې غرض دپاره راوړي چه هغوی په حلال او حرامو کې ورانې کوي.

## حاصل د یوې رکوع

الله تعالیٰ پدې آیت کې څلور خبرې کړیدي (۱) [اَلْاَمْرُ بِالْوَفَاءِ بِالْعُقُوْدِ].
په لوظونو باندې د وفادارئ حکم. (۲) وَالرَّدُّ عَلَى النَّكْثِ. د لوظونو په ماتولو باندې رد.
(۳) بیا التحلیل العام. د عامو څیزونو د حلالوالي ذکر.
(٤) بیا استثناء د بعض څیزونو. بیا الله تعالیٰ د خپل قانون مطابق حکمت بیان کړیدې ﴿اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيْدُ﴾ بیا اولنې عقد دې چه د شعائر الله بې عزتي به نهٔ کوئ، په تعاون علی البر والتقویٰ باندې ئې امر کړیدې، بیا بیان د محرماتِ الهیه ؤ دې چه بعض څیزونه الله تعالیٰ حرام کړیدي نو د هغې نه ځان وساتئ ځکه چه په هغې کې د بندگانو ضرر دې. ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ﴾ او په مینځ کې الله تعالیٰ د اسلام کمال بیانوی او اسلام ته ترغیب ورکوي.
﴿فَمَنِ اضْطُرَّ﴾ کې استثناء د حرامو ده. بیا بیان د محللاتِ الهیه ؤ دې یعني کوم څیزونه چه الله حلال کړیدي د هغې بیان دې په (يَسْئَلُوْنَكَ مَاذَآ اُحِلَّ لَهُمْ) کې.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ اُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيْمَةُ الْاَنْعَامِ

اې ایمان والو! پوره کړئ لوظونه، حلال کړې شویدي ستاسو دپاره څارپیان د حیواناتو نه

إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنتُمْ

مگر هغه چه لوستلے شي په تاسو باندے، (شئ) نهٔ حلال کنړونکي د ښکار چه تاسو

حُرُمٌ إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ﴿۱﴾

په حالت د احرام کی يئ، بيشکه الله تعالیٰ حکم (فيصله) کوی د هغه څه چه وغواری.

**تفسير** : الله تعالی پدے آیت کریمه کی مؤمنانو ته خطاب کولو سره پنځه اهم احکام بیان کړیدی :

۱- د عقود او عهودو (لوظونو) خیال او لحاظ ساتل.

۲- د چارپیانو د غوښے حلالوالے.

۳- د څه حیواناتو حراموالے چه د هغے بیان به روستو راځی.

٤- د مُحرم دپاره او په حدودو د حرم کی د ښکار حراموالے.

۵- غیر مُحرم دپاره او د حرم نه بهر د ښکار حلالوالے. (قرطبی، واللباب)

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا : الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته ددے تولو لوظونو پوره کولو حکم کړیدے، ځکه چه د ایمان همدا تقاضا ده چه مؤمن د الله نافرمانه نهٔ وی او نهٔ په خپل اجتماعی ژوند کی خائن، بد لوظه یا دهوکه ورکونکے جوړ شی.

دا کلمه پدے سورت کی شپاړس کرته ذکر شویده او په هر یو کی الله تعالیٰ مؤمنانو ته احکام بیان کړیدی چه داسے وکړه او داسے مهٔ کوئ.

أَوْفُوا : دا د وفاء نه اخستے شویدے او وفاء د غدر (خیانت) په مقابل کی استعمالیږی نو معنیٰ دا جوړیږی : چه اے مؤمنانو ! په تولو عقدونو باندے وفاء (ساتنه) وکړئ او خیانت پکی مهٔ کوئ. معلومه شوه چه څوك ددے احکامو پابندی نکوی هغه به خیانتګر وی.

أَوْفُوا بِالْعُقُودِ :

عقود جمع د عَقْدْ ده او عقد غوټے ته وائی، دلته ترے لوظونه مراد دی.

لفظ د عقود عام دے، ددے نه مراد تول هغه احکام دی چه الله په بندګانو فرض کړیدی لکه دا عقائدو ته هم شاملیږی چه الله کوم عقائد په بندګانو فرض کړیدی د هغے وفاداری به کوی، توحید به اختیاروی، شرك به نکوی لکه نصاراؤ عیسیٰ ﷺ د الله سره شریك کنړلے دے چا نور پیغمبران شریکان کړیدی. دارنګه اعمال لکه مونځونه وغیره شو او د

حلال او حرامو په باره کې لوظونه لکه دا شې حلال دې حلال ئې وګڼړئ، او دا حرام دې حرام ئې وګڼړئ او ځان ترې وساتئ، او دارنګه دغه لوظونه په باب د مشروباتو او ماکولاتو او منکوحاتو کې هم شویدي نو دا عقود ټولو ته شامل دي. دارنګه هغه تمام لوظونه چه د انسانانو ترمینځ د دنیوي معاملاتو په باره کې مقرریږي.

## د عهود او عقود فرق

په شریعت کې عقد دوه طرفه لوظ ته وائي لکه بائع او مشتري یا د ښځې او د خاوند ترمینځ. او عهد کله هغه لوظ ته وائي چه د یو طرف نه وي لکه یو سړے په خپل ځان باندې یو شے نذر کړي. (روح المعاني)

## د عقودو نه څه مراد دي؟

دلته مفسرینو مختلف مصداقات نقل کړیدي:

(١) ځینې مفسرین وائي چه دلته عقود الجاهلیة مراد دي. (قتادة- زاد المسیر)

یعنې تاسو چه د جاهلیت په زمانه کې کوم لوظونه کړي وي هغه په اسلام کې هم مضبوط وساتئ. لیکن دا یو نیمګړے مصداق دے اګرکه د آیت الفاظ دے ته هم شاملیږي.

(٢) ځینې وائي چه عقود الیمین والبیع والشراء والنکاح مراد دي. یعنې کوم جائز قسم دې وکړو نو د هغې پوره والے وکړه، کومه بیع چه وشوه نو د هغې وفاداري لازمه ده، لکه مال او سودا سپارل وغیره، او د نکاح په باره کې چه خاوند په ځان کوم مهر وغیره ومنلو نو هغه پوره کړئ. یا دې خور لور چا ته ورکړه نو بیرته ئې ترې مه واپس کوه بلکه دا عقد ورسره پوره کړه. (ابن کثیر)

(٣) ظاهر هغه تفسیر دے چه کوم ابن عباس رضی الله عنهما ذکر کړیدے چه [اَلْعُقُوْدُ الَّتِیْ اَوْجَبَهَا اللّٰهُ تَعَالٰی مِنَ الْحَلَالِ وَالْحَرَامِ وَالْحُدُوْدِ وَالْفَرَائِضِ] چه دلته هغه عقدونه مراد دي چه الله تعالیٰ په بندګانو لازم کړیدي چه هغه حلال او حرام او حدود او فرائضو سره تعلق لري. لکه روستو (اُحِلَّتْ لَکُمْ بَهِیْمَةُ الْاَنْعَامِ) تعقیب پرې دلالت کوي. یعنې عقود الْحِلِّ وَالْحُرْمَةِ . او ددې پوره والے دا دے چه حلال حلال وګڼړئ او حرام حرام وګڼړئ او د حدود خوا ته مه ورځئ او په فرائضو باندې عمل وکړئ. لکه بنکار حلال وګڼړئ او د

مرداروته ځان وساتئ۔ (او دا وجه د ربط هم شوه د دواړو جملو – اَوۡفُوۡا بِالۡعُقُوۡدِ – او اُحِلَّتۡ لَكُمۡ – ترمينځ) يعني پوره كړئ لوظونه هغه لوظونه كوم دي هغه لوظونه د حل او د حرمت دي۔

ظاهر دا ده چه دا هر قسم عقد ته شامليږي لكه مخكې ئے بيان وشو۔

**اُحِلَّتۡ لَكُمۡ :** اول نه الله تعالىٰ د حلال او حرامو مسئلے شروع كړے ځكه چه د عربو جاهليت والو به د ځان نه حلال حرام جوړول لكه بحيره، سائبه، وصيله او حام چارپيان به ئے د باطلو معبودانو په نومونو پريښي وو او د هغے غوښے به ئے نۀ استعمالولے۔

**بَهِيۡمَةُ الۡاَنۡعَامِ :** اَيِ الَّتِيۡ حَرَّمُوۡهَا عَلٰى اَنۡفُسِهِمۡ ۔ يعني هغه چارپيان حلال كړے شويدي چه د عربو مشركانو په خپلو ځانونو باندے بتانو ته د ځان نزدے كولو دپاره حرام گرځولي دي نو الله فرمائي چه دغه درله حلال دي او د ځان نه ئے مۀ حراموئ۔ دويم پدے كې دے ته اشاره ده چه د الله تعالىٰ تاسو سره څومره لوى احسانات دي چه ټول حيوانات ئے درله حلال كړل نو د هغه شكر وكړئ، او د ځان نه ئے د بتانو په نومونو مۀ حراموئ۔

عربو به نور هم ډير څيزونه د خپلو بتانو دپاره حرام گنړل لكه غوړي، وازدے وغيره ليكن د چارپيانو په باره كې شرك ډير وو او واضحه وو نو ځكه ئے هغه بيان كړو۔

## د بهيمه څه معنى؟

**بَهِيۡمَةُ الۡاَنۡعَامِ :** بهيمة د بُهۡمَةٌ نه اخستے شويدے، بُهمة سختے گټے (كانړي) ته وائي او پدے وجه د كوم شي چه په محسوساتو كې په حواسو باندے پوهيدل سخت وي او په معقولاتو كې په عقل باندے تميز درونډ وي هغے ته مُبهم وائي۔ او پدے وجه ځاروي ته بهيمة وائي چه په آواز كې ئے ابهام (پټوالے) دے، سړے نۀ پوهيږي چه د څه دپاره رمباړے وهي، مگر په عام عرف كې د ((بهيمة)) كلمه هغه ځاروو پورے مختصه گرځولے شويده چه د مرغانو او د څيرونكو ځناورو نه په غير وي۔ (مفردات راغب ص:۱۴۹)

ورنه بهيمة په اصل لغت كې هر څلورو خپو والا حيوان ته وائي۔ (كشاف، قرطبى)

او بَهِيۡمَةُ الۡاَنۡعَامِ هغه چارپيان دي چه خوراك كولو نه روستو هغه دوباره راكرځوي، يعني هغه حيوانات چه لرے لري۔ نو پدے سره خر او قچر او سپى ترے ووتل۔ او ميخه او غواكانى او اُوښان او چيلئ او گډان پكې داخل شول۔

لكه ډير باطل پرست چه قرآن او سنت ناقص گنړي هغوى په اهل حقو باندے دا

اعتراض کوی چه تاسو مونږ ته په قرآن او حدیث کی میخه وښایئ، مطلب ئے دا دے چه دین نیمګرے دے، دا ډیر مره خطرناك سوال دے چه انسان پرے شعوری یا غیر شعوری طریقے سره د ایمان نه ووځی؟!!۔

او انعام جمع د نَعم ده، نعم اُوښ، غوا، چیلو ته وائی۔ د ابن عباس رضی الله عنهما او حسن بصریؒ همدا قول دے۔

یعنی ستاسو دپاره ددے حیواناتو غوښه خوړل حلال کړے شویدی۔ خطرناك او ښکار کونکی حیوانات مثلاً شیر او زمرے او پړانګ او نوکونو والا حیوان په اَنۡعَام کی داخل نهٔ دی۔

د کومو نورو حیواناتو حلت چه د قرآن او سنت په صریح نصوصو سره ثابت دے د هغے خوراك هم حلال دے، مثلاً اُوسئ او ځنګلی خر وغیره۔

الله د سورة الانعام په آیت (۱٤٥) کی فرمایلی دی :

﴿ قُلۡ لَّاۤ اَجِدُ فِیۡ مَاۤ اُوۡحِیَ اِلَیَّ مُحَرَّمًا عَلٰی طَاعِمٍ یَّطۡعَمُهٗۤ اِلَّاۤ اَنۡ یَّکُوۡنَ مَیۡتَةً ﴾

ته اُووایه ! چه کوم کتاب چه ما ته د وحی په ذریعه راکړے شویدے په هغے کی د هیڅ خوړونکی دپاره هیڅ شے حرام نهٔ مونده کوم سوئ د هغے نه چه مردار حیوان وی الخ۔

او نبی کریم ﷺ فرمایلی دی : [ یُحَرَّمُ کُلُّ ذِیۡ نَابٍ مِّنَ السَّبُعِ وَمِخۡلَبٍ مِّنَ الطَّیۡرِ ] [مسلم، احمد، ترمذی]۔ هر داړے والا درنده او هرے پنجے والا مارغه حرام دے۔

دے نه معلومه شوه چه ددے نه سِوئ حیواناتو خوړل حلال دی۔ بعض صحابه کرامؓ ددے نه دلیل نیولو سره د ذبح شوی حیوان د ځیټے بچے هم خوړل حلال ګرځولی دی۔ (ابن عمرؓ، وابن عباسؓ – زاد)

## سوال وجواب

(بهیمة الانعام) کی بهیمه هم چارپیانو ته وائی او انعام هم نو بیا دا اضافت ولے شویدے؟

(۱) جواب : دا اضافت بیانی دے د تاکید دپاره ذکر شویدے۔

(۲) جواب : بهیمه نه مراد هر څلورو خپو والا ځاروی دی او د انعام نه مراد ګډه، بزه، غوا او اُوښه ده نو دا اضافت د عام دے خاص ته لکه د شجر الاراك په شان۔ (التحریر والتنویر)

او بهیمه ئے ورسره زیات کړو اګر که په انعام باندے اکتفاء سره خبره پوره کیده؟، وجه دا ده چه پدے کی زیات تعمیم ته اشاره ده، دے دپاره چه صحرائی حیوانات هم پکی داخل شی

لکه اُوسیٔ، صحرائی خرهٔ، او غواګانی او میخے۔ (زاد المسیر)
علامه ابن عاشورؒ وائی پدے کی دفع ددے تو هم ده چه د انعام نه مراد به خاص اُوښان وی ځکه چه انعام غالباً اُوښانو دپاره استعمالیږی نو بهیمه ئے ورسره زیات کړه چه ځلورو وارو چارپیانو ته شامل شی، اوښان، غواګانے، ګډے او بزے۔ (التحریر والتنویر۵/۱۲)
او ځینی علماء وائی چه د بهیمه کلمے زیادت کی دے ته اشاره ده چه ځاروی خو ستاسو دپاره پیدا کړے شویدی، دوی خو بهائم دی، خطاب ورته متوجه نهٔ دے، ستاسو غوندے نطق (خبرے) نشی کولے نو تاسو له پکار دی چه د الله د هدایت مطابق ترے فائده واخلئ او په ځانونو باندے ئے حرام ونه ګرځوئ۔ (عزیز التفاسیر)
**فائده** : (أُحِلَّتْ لَكُم بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ) کی ځه تعیین نهٔ دے شوے، نو معلومه شوه چه د حیوان ټول اندامونه او د هغے هډوکی او څرمنے پاکے دی او هر قسمه جائز فائده اخستل ترے جائز دی۔ (ابن عادل الدمشقیؒ)
نو حیوان کی صرف وینه حرامه ده باقی حلال دی، کوم روایت کی چه د اوه ځیزونو حرمت ذکر دے هغه مرسل دے لکه فتاوی الدین الخالص (٦) کی ئے ګورئ۔
إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ : أَيْ تَحْرِيمُهُ فَهُوَ حَرَامٌ) مګر هغه چه لوستلے شی په تاسو باندے حراموالے د هغے نو هغه حرام دے) (اللباب)
پدے کی ئے د مخکنی حلالوالی نه هغه حیوانات مستثنیٰ کړیدی چه د هغے د خوړلو حرمت په قرآن یا په سنت کی بیان شویدے۔ لکه د سورة المائده په آیت (۳) ﴿ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ ﴾ الآية کی چه څه بیان شویدی، یا د نبی کریم ﷺ هغه قول چه مخکی تیر شو چه هر نوك والا حیوان او هر پنجے والا مارغه خوړل حرام دی۔
د آیت نه دا هم معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ هر سنت په کتاب الله کی داخل دے، ځکه چه رسول الله ﷺ د کومو حیواناتو او مارغانو خوړل حرام ګرځولی دی هغه ټول په اتفاق د علماؤ په ﴿ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ﴾ کی داخل دی۔ ددے یو دلیل د هغه مزدور والا حدیث هم دے چه د هغه پلار راغلو رسول الله ﷺ ته ئے اُووئیل چه اے د الله رسوله ! زما دے ځوی د فلانی سره مزدوری کوله او د هغه د ښځے سره ئے زنا کړیده، پدے باره کی فیصله اُوکړه، نو نبی ﷺ اُوفرمایل : [لَأَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللهِ]
چه زهٔ به ستاسو د دواړو ترمینځ د کتاب الله مطابق فیصله کوم) حالانکه رجم په قرآن کریم کی منصوص نهٔ دے۔

**فائده** : مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ (هغه محرمات چه روستو لوستلے کيږي هغه) په دوه قسمه دي (۱) يو هغه دي چه د هغے حرمت عارضي او موقت دے لکه په حالت د احرام يا حرم کې ښکار کول دي نو هغه په (غير محلى الصيد) سره ذکر کوي (۲) او دويم هغه دي چه د هغے حرمت هميشه (دائمي) ابدي وي نو هغه روستو (حرمت عليکم) کې بيانيږي.

﴿ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ ﴾

غَيْرَ منصوب دے، (كُوْنُوْا) فعل پټ دے. يعني شئ تاسو نۀ حلال ګنړونکي د ښکار. يعني په حالت د احرام کې ښکار کول حرام دي. او د ښکار نه سوئ حيوانات په احرام او غير احرام دواړو حالتونو کې حلال دي.

يا غَيْرَ منصوب دے حال دے د (أُحِلَّتْ لَكُمْ) ضمير نه يعني تاسو لره چارپيان پداسے حال کې حلال کړے شويدي چه تاسو نۀ يئ حلال کونکي د ښکار.

په حالت د احرام کې ښکار ولے حرام شو؟ پدے کې د الله تعالىٰ ډير حکمتونه دي يو د هغے نه روستو ذکر کيږي چه په بندګانو باندے امتحان غرض دے. ﴿ لِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ ﴾ چه الله راښکاره کړي چه څوك د هغه نه په حالت د غائبوالي کې يره کوي. او بل پدے وجه چه مُحرم سړے د الله ملنګ دے، دۀ خپل ځان الله ته فارغ کړيدے نو دے به د خواهشاتو نه بند وي.

**وَأَنْتُمْ حُرُمٌ** : حُرم جمع د مُحرم ده أَیْ وَأَنْتُمْ فِيْ حَالَةِ الْإِحْرَامِ.

کله چه تاسو په حالت د احرام کې يئ. دا حال دے د ضمير د (مُحلى الصيد) نه.

او بل مطلب : (وَأَنْتُمْ حُرُمٌ) أَیْ وَأَنْتُمْ دَاخِلُوْنَ فِي الْحَرَمِ. کله چه تاسو په حرم کې دننه يئ نو ښکار به نۀ کوئ دا د حرم بي عزتي ده. (قرطبيؒ)

**إِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيْدُ** : پدے کې الله تعالىٰ د خپلو حکمونو حکمت بيانوي چه دا احکام الله تعالىٰ پدے وجه په تاسو باندے کيخودل چه هغه حکيم او عليم دے، د جاهليت د ګندونو نه ستاسو صفا کول غواړي. او دا علت دے د (أَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ) دپاره. يعني په عقدونو وفاداري ځکه وکړئ چه الله تعالىٰ ستاسو په فائدو باندے خبردار دے، نو هغه درته د هغه شي حکم کوي چه ستاسو پکې سراسر فائدے وي.

ابن عاشورؒ ليکي چه دا جواب د يو سوال دے چه الله تعالىٰ ولے په حالت د احرام کې ښکار حرام کړو او په حالت د غير احرام کې ئے حلال کړو؟ نو جواب وشو چه (ان الله يحکم ما يريد الله) ب- الله تعالىٰ د کوم شي اراده وکړي د هغے حکم کوي هغه د بندګانو مالك دے

او پـه مالك بـانـدے هیڅ اعتراض نۀ وی، او کوم څیزونه چه الله بند کړیدی نو په هغے کی بندګانو دپاره ضرر دے۔

## بلاغة او ناشنا قصه

فیلسوف الـکندی په نوم باندے یو تن ته چا ووئیل چه مونږ دپاره څه ولیکه چه د قرآن کریم مقابله پرے وکړو نو هغه ووئیل چه تول لیکل ګران دی لیکن لږ څه به درله ولیکم، نو څه وخت د خلکو نه غائب شو او ځان ته ئے پوره فرصت ورکړو، لیکن ډیر کوشش ئے وکړو په هیڅ بـانـدے قادر نشو، پـه لاره تیـریدو سره ئے د یو تن نه دا آیت واوریدو نو وے فرمایل: [وَاللّٰهِ لَا يُطِيْقُ هٰذَا أَحَدٌ] قسم په الله که ددے د مقابلے طاقت څوك لرلے شی، ځکه چه پدے یو آیت کی الله تعالیٰ څو مره بلاغت کړیدے، أَمَرَ بِالْوَفَاءِ بِالْعُقُوْدِ وَنَهٰى عَنِ النَّكْثِ ثُمَّ بَيَّنَ تَحْلِيْلًا عَامًّا – اول ئے د عقدونو په وفاداریٔ حکم وکړو او د لوظ ماتولو نه ئے منع وکړه بیا ئے داسے عام لفظ ووئیلو چه د هر شی په حلال والی باندے ښکاره دلیل دے، او بیا ئے دوه استثناء ګانے کړیدی او په آخر کی ئے د خپلے ارادے او حکمت بیان کړیدے۔ او بیا ئے ووئیل: دومره مطالب په ډیرونو جلدونو کی راغونډولے شی۔ (المحرر الوجیز)

**فائده:** أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيْمَةُ الْأَنْعَامِ الـفـاظ دلیل دے چه اصل په اشیاؤ کی اباحت دے نو تول حیوانات حلال دی مګر هغه چه الله او رسول په هغے پابندی لګولی وی او هغه ډیر لږ دی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْىَ وَلَا

اے ایمان والو! بیعزتی مۀ کوی د نخو د الله تعالیٰ او نۀ د میاشتے عزتمنے او نۀ د قربانیٔ او نۀ

الْقَلَآئِدَ وَلَا آمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِنْ رَّبِّهِمْ

د امیل والا ځاروی او نۀ د قصد کونکو د کور عزت والا چه طلب کوی فضل د رب خپل

وَرِضْوَانًا وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ

او رضا مندی او کله چه ووځئ تاسو د احرام نه نو ښکار کوئ (درله حلال دے) او تیز دِے نۀ کړی

شَنَاٰنُ قَوْمٍ أَنْ صَدُّوْكُمْ

(جرم کی دِے وانچوی) تاسو لره بغض (دشمنی) د یو قوم پدے وجه چه دوی منع کړی وئ تاسو

| عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى وَلَا |
|---|
| د مسجد حرام نه چه د حد نه تیر شئ او مدد کوئ د یو بل سره په نیکئ او په تقوىٰ کی او |
| تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۲﴾ |
| مدد مهٔ کوئ د یو بل سره په گناه او په ظلم باندے او یره وکړئ د الله نه یقیناً الله سخت عذاب والا دے |

**تفسیر**: پدے آیت کی د مخکی عقودو تفصیل بیانیږی.
ربط ومناسبت: مخکی آیت کی د حج ځینی شعائر بیان شو چه د هغے احترام وکړئ نو دلته د ځینو شعائرو نومونه اخستل شویدی چه د سپکاوی احتمال ئے زیات وو.
۲- مخکی مُحرم د ښکار نه منع شو نو دلته د دغه تحریم انتهاء بیانه شویده چه د احرام د پرانستلو پورے به وی.
لَا تُحِلُّوْا : د إحلال نه مراد بی عزتی کول دی، په اصل کی د حل نه اخستلے شویدے او حل د غوټی پرانستلو ته وائی لکه ﴿وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِيْ﴾(طه:۲۷)
دلته ترے مراد بیعزتی او سپکاوے دے ځکه چه یو شے الله حرام کړے وی او بنده هغے ته راتلل کوی نو دا د هغه بی عزتی شوه. او مفسرینو ئے په (لَا تَعْتَدُوْا) سره معنیٰ کړیده یعنی تجاوز مهٔ کوئ.
شَعَآئِرَ اللّٰهِ : ۱- قرطبیؒ معنی کوی : [لَاتَعْتَدُوْا حُدُوْدَ اللّٰهِ فِيْ أَمْرٍ مِّنَ الْأُمُوْرِ]
د الله د حدودو نه په هیڅ کار کی تجاوز مهٔ کوئ. (قرطبی۶/۳۷)
(۲) د ابن عباس رضی الله عنهما په نیز د شعائر نه مراد د حج مناسك (کارونه) دی.
لکه انصارو به د صفا او مروه ترمینځ سعی نکوله، او مکے والا به عرفات ته نهٔ تلل نو الله ورته وفرمایل چه ددے کارونو نه هیڅ شے مهٔ پریدئ. او ددے بیعزتی دا هم ده چه څوك ددے کارونو نه حاجیان منع کړی، یا ددے د احترام خیال ونهٔ ساتی. (قاسمیؒ)
د ابن عباسؓ نه دا هم نقل دی چه مشرکانو به حجونه کول نو هدی به ئے ځای سره راوانے کړے دلته به مسلمانانو اراده وکړه چه په دوی باندے حمله وکړی نو الله تعالیٰ دوی لره ددے کار نه منع کړل. (اللباب والبغوی)
(۳) اَیْ مُحَرَّمَاتُهُ الَّتِیْ أَمَرَکُمْ بِتَعْظِیْمِهَا وَعَدَمِ فِعْلِهَا ] (تفسیر السعدی)
د الله حرام کړی ځیزونه چه الله تاسو ته د هغے په تعظیم باندے حکم کړے او د هغے د نهٔ

کولو حکم ئے کړیدے۔ یعنی الله تعالیٰ مؤمنانو ته حکم اُوکړو چه ددے محرماتو لحاظ اُوساتی او دا د خپل ځان دپاره حلال نکړی۔ نو دا نهی عامه ده د محرماتو کولو او د هغے د حلالولو الی عقیده ساتلو ته۔ دغه شان پدے حکم کی په حالت د احرام کی محرمات او په حدودو د حرم کی محرمات ټول داخل دی۔ (سعدیؒ)

(٤) جَمِیۡعُ مَا اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖ وَنَهٰی عَنۡهُ فَهُوَ مِنۡ شَعَائِرِ اللّٰهِ۔ (عطاء بن ابی رباحؒ– قرطبیؒ)

ټول هغه څیزونه چه الله تعالیٰ د هغے په کولو حکم کړے او د هغے نه ئے منع کړے نو هغه د شعائر الله نه دی۔

عطیهؒ د ابن عباسؓ نه نقل کړی چه شعائر الله بیعزتی دا ده چه ته ښکار وکړے پداسے حالت کی چه ته مُحرم ئے۔ (بغوی)

(٥) (مَعَالِمُ دِیۡنِهٖ– اَوۡ مَا یُعۡرَفُ بِهٖ دِیۡنُ اللّٰهِ) (قاسمیؒ) شعائر الله هر هغه شے دے چه الله ورته عزت ورکړیدے او د دین نخه ئے ګرځولے ده لکه شعیره هغه شی ته وائی چه په هغے باندے د الله دین پیژندلے شی لکه الله تعالیٰ مسجد حرام، کعبه، قرآن، علماء کرام، عزتمنے میاشتے، هدی او قلائد ته عزت ورکړیدے نو حاصل معنیٰ ئے دا ده چه د الله د حدودو نه مهٔ اوړئ۔ او حسن بصریؒ وائی چه شعائر الله د الله تعالیٰ ټول دین ته وائی۔ (الماوردیؒ)

وَلَا الشَّهۡرَ الۡحَرَامَ : دا تخصیص بعد التعمیم دے، دا څیزونه په شعائر الله کی داخل وو لیکن چونکه ددے څیزونو د هغه وخت سره تعلق وو او د بی عزتیٔ احتمال ئے زیات وو، نو ځکه ئے دا د شعائر الله نه جدا هم ذکر کړل۔

د ((شهر حرام)) نه ١– مراد یا هغه څلور میاشتے دی چه په هغے کی قتال کول حرام وو یعنی ذی القعده، ذی الحجه، محرم او رجب میاشتے، او ددے بی عزتی دا ده چه پدے کی ګناهونه وکړے شی۔ ٢– زمخشری وائی چه شهر حرام د حج میاشتے ته وائی چه په هغے کی روستو والے او مخکی والے وکړے شی، دائے بی عزتی ده۔

وَلَا الۡهَدۡیَ : د ((هدی)) نه مراد هغه حیوان دے چه د الله کور ته به هدیه لیږلے کیدله۔ هدایا عام دی، کله د اُوښانو نه وی او کله د غواګانو او کله د ګډو بزو نه هم وی۔ بیا د هغے په غاړه کی کله پړے اچولے کیدو او کله نهٔ۔ ددے بیعزتی دا ده چه دا ووژلے شی یا وتښتولے شی۔

او د ((قلائد)) نه مراد هغه حیوانات دی چه هغے ته به ئے چپړه وغیره واغوستله او بیت الله طرف ته به ئے لیږل، نو قلائد خاص شو د هدایا نه۔

د جاهلیت په زمانه کی ددې ځیزونو عادت راروان وو چه هغوی به کله حرم ته یو حیوان لیږلو نو په غاړه کی به ئې ورته چپړه یا بل شے وروا چولو دے دپاره چه معلومه شی چه دا حیوان حرم ته روان دے، نو خلك به ئې بیعزتی نکوی او ورسره اشعار به ئې وکړو یعنی مثلاً د اُوښ قوب به ئې زخمی کړو او وینه به ئې پرے راښکله، نو غلو او ډاکوانو به دے ته څه نهٔ ویل لیکن کله چه اسلام راغلو نو ډاکے ختمے شوے، لیکن دا حکم الله باقی پریخودو، اګرکه سبب ئې ختم شویدے، رسول الله ﷺ به هم چه کله حج ته تللو نو هدی (قربانی) به ئې زخمی کړه، او وینه به ئې ورله په قوب باندے راښکله او په غاړه کی به ئې ورله پړے یا امیل وا چولو۔ اشعار صرف د اُوښ یا د غواګانو دپاره کیږی نهٔ د ګډو بزو دپاره۔ (تفسیر المنار)

دا امیل به کله د مزو نه وو او کله به د بل شی نه جوړ شوے وو، او چپړه زوړندول به د نظر ماتی دپاره نهٔ وو، هغه خو شرکی کار دے بلکه د عربو د دستور مطابق د معلومات دپاره وو چه دا د حرم قافله ده۔

﴿وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ﴾ : آمین جمع آمٌّ ده، د اَمٌّ نه اخستے شویدے، په معنیٰ د قصد او ارادے سره دے یعنی د هغه کسانو بیعزتی هم مهٔ کوئ چه قصد کونکی د کعبے وی یعنی کعبے ته روان وی۔ یعنی کوم خلق چه د حج یا عمرے دپاره مکے ته ځی نو هغه دِے منع نکړے شی لکه روستو یبتغون فضلا من الله ورضوانا پرے دلیل دے۔

په ابتداء کی دا حکم مسلمانانو او مشرکانو ټولو دپاره عام وو لیکن کله چه د سورة التوبه آیت (۲۸) ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا﴾ نازل شو نو د مشرکانو په باره کی دا حکم منسوخ شو۔ پدے وجه په سنه (۹ هـ) کی چه کله رسول الله ﷺ ابوبکر صدیقؓ د حاجیانو امیر اُولیږلو نو علی ؓ ئې هم وروسے اُولیږلو، هغه د رسول الله ﷺ په نیابت کولو سره د مشرکانو نه د براء ت اعلان اُوکړو او دا چه ددے کال نه روستو به هیڅ مشرك حج نهٔ کوی او هیڅوك به په بربنډه د بیت الله نه طواف نهٔ کوی۔ ځینو مفسرینو وئیلی دی چه دا آیت صرف د مسلمانانو په باره کی نازل شوے وو، پدے وجه دا مخکی هم مُحکم وو او اُوس هم محکم دے۔

(فتح القدیر للشوکانی ومحاسن التاویل للقاسمی)

ددے آیت په معنیٰ کی دا هم داخل دی چه که یو شخص مسجد حرام ته د ګناهونو کولو او شر خورولو په نیت سره داخلیدل غواړی، نو د حرم د احترام تقاضا دا ده چه هغه

ډېے منع کړے شي لکه چه الله د سورة الحج په آیت (۲۵) کې فرمایلي دي : ﴿ وَمَنْ یُّرِدْ فِیْهِ بِاِلْحَادٍ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ اَلِیْمٍ ﴾ چه ((څوك هم دلته د ظلم سره د الحاد اراده لري نو مونږ به هغه ته دردناك عذاب ورأوڅکوو))- (تیسیر الرحمن)

یَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ : دا قید د ترغیب دپاره لګوی چه پکار ده چه حاجی د الله د فضل او د هغه د رضا کولو په نیت حج ته لاړ شي، ریاء او شهرت ډې د هغه مقصد نهٔ وي- دارنګه پدے کې ترغیب دے چه هرکله یو تن د الله د فضل او رضا پسے روان دے، نو د هغه بې عزتي کول خو ډیر ناروا کار دے نو ځان ترے وساتئ- دریم پدے کې دے ته اشاره ده چه بیت الحرام ته تلونکي دوه قسمه دي یو په صحیح نیت او بل د جرم او فساد دپاره نو که د جرم او فساد دپاره تللو نو د هغوی منع کول جائز دي-

وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا : دا حکم د اباحت دپاره دے یعنی کله چه تاسو احرام کوز کړو نو ښکار کول درله جائز دي، کولے ئے شئ- دلیل پرے د رسول الله ﷺ عمل دے چه هغه د حج او عمرے نه روستو ښکار نهٔ دے کړے-

وَلَا یَجْرِمَنَّکُمْ : پدے جمله کې دوه معانی دي (۱) یوه منسوخه (۲) او بله غیر منسوخه- منسوخه معنیٰ دا ده چه په سنه (۶ ھ) کې چه کله رسول الله ﷺ او صحابه کرامؓ حُدَیبیه مقام ته راورسیدل نو د مکے مشرکانو هغوی د عمرے ادا کولو نه منع کړل- د بعض مسلمانانو په زړونو کې مدینے ته د رسیدو نه روستو د هغوی ددے بد سلوك په وجه د عامو مشرکانو نه د بدلے اخستو جذبه پیدا شوه چه ولے ډې هغه مشرکان حرم طرف ته د تللو نه منع نشي چه مدینے خو اته تیریږي او مکے ته روان وي-

او مفسرینو ددے په شان نزول کې د شُریح بن ضبیعة قصه هم لیکلے ده چه دا یو کافر وو نبي کریم ﷺ ته راغے او څه بحث مباحثه ئے وکړه او بیا ئے وویل چه زهٔ به په ایمان راوړو کې د ملګرو سره مشوره وکړم او د مدینے نه روان شو نو په لاره کې ئے د صحابه کرامؓ نه څه مالونه لوټ کړل او د ځان سره ئے بوتلل، صحابه کرامؓ وروپسے وګرځیدل لیکن لاس ته ورنغلو، بل کال چه نبي کریم ﷺ د عمرے قضائي راوړه نو شُریح هم د کعبے د زیارت په نیت روان شوے وو چه ډیر تجارتي مالونه او ډیر ملګری ورسره وو، کله چه د صحابه کرامؓ په نظر راغے نو قصد ئے وکړو چه د دوی مخه ونیسي او هغه خپل مالونه ترے بیرته واخلي لیکن نبي کریم ﷺ اجازه ورنکړه او دا ذکر شوے آیت نازل شو-

(تفسیر البغوی ۶/۲ والقرطبی ۴۳/۶)

الله تعالىٰ مسلمانان ددے ارادے نه منع كړل۔ نبي كريم ﷺ فرمايلي دي چه امانت، امانت والو ته اُورسوه او د خيانتګر سره خيانت مهٔ كوه۔ (ابو داودؒ بسند صحيح)۔

دا هغه زمانه وه چه د مشركانو مسجد حرام ته راتلل لا منع شوي نهٔ وو۔ مګر ددے منسوخے معنىٰ فائده به بيا هم باقي پاتي وي هغه دا چه تا ته چا ضرر دركړے، ته ئے د نيكئ نه منع كړے ئے نو ته ئے مهٔ منع كوه اګركه كافر دے۔ بلكه د هغه سره په نيكئ كي تعاون وكړه ځكه وروسته روستو ﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ﴾ قانون بيانوي۔

(۲) غير منسوخه معنىٰ دا ده چه يو سړي ته په حالت د كفر كي د نيكئ نه منع كړے وے بيا هغه ايمان راوړو نو مسلمان به اُوس د هغه نه بدله نهٔ اخلي ځكه چه هغه مخكي ستا دشمن وو اُوس ستا ورور دے، كه تا ته ئے مخكي هر څومره ضرر دركړے وي هغه ټول به ورته معاف وي، ځكه چه اسلام ټول مخكني ګناهونه معاف كوي۔ نو پدے آيت كي الله تعالىٰ ډير عجيب قانون بيان كړو چه د چا سره به په كينه كي دومره نهٔ راځے چه تاسو د الله د حدودو نه تجاوز وكړئ، ډير خلك د ذاتي دشمنئ او كينے په وجه د خلكو نيكي او خير ټول ضائع كوي او د هغه بدي بيانوي۔

اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ : اَيْ فِيْ حَالَةِ الْكُفْرِ۔ يعني د كفر په حالت كي۔

وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى : دا دوه لفظونه ډير خواره دي، او ډيرو احكامو ته شامل دي، او دا يو عجيب قانون دے چه مفتيانو او متقيانو دپاره ډير فائده مند دے، په زرګونو احكام پدے كي داخليږي۔ يعني هر چا چه د نيكئ او د تقوىٰ كار كولو نو د هغوي سره مدد وكړئ، او د مسلمان طريقه به زياتے كول نهٔ وي، بلكه د نيكئ او د تقوىٰ په كارونو كي د يو بل سره مرسته كول وي، او مسلمانان به په خپل مينځ كي د ګناه او د ظلم او زياتي په كارونو كي مرسته نكوي۔

تعاون درے قسمه خلكو ته شامليږي (۱) علماء، (۲) اغنياء (مالدارو) (۳) شجعانو (بهادرانو) ته، علماءٔ به خلكو ته د نيكئ او د تقوىٰ لاره ښائي او د ګناهونو نه به ئے منع كوي۔ او په بدعت او شرك او ظلم او زياتي خودلو سره به معاونت نكوي، او نهٔ دا چه د صحيح دين نه ئے واړوي۔ او مالداره به په خپل مال سره د خلكو مدد كوي، مدرسے او مساجد به جوړوي، د علماء او طلباؤ كفالت به كوي، او عام رفاهي كارونه به كوي (پُلونه، لارے، هسپتالونه به جوړوي) او د كمزورو مرسته به كوي۔ او مالدار به بي ځايه مال نهٔ لګوي، او د مال په وجه به خلك د دين نه نهٔ اړوي۔ او بهادران به خلكو سره منده ترړه

وهي، بدني خدمت به ئې کوي، او ظالمان به ترې اروي او جهادونو کې به شرکت کوي.

**فائده** : تقوی یو داسې شی دی چه یو اځې په یو تن باندې پوره نهٔ ادا کيږي، ترڅو پورې چه نور خلك ورسره يو ځاى شوى نهٔ وي او د هغه سره ئې د تقوىٰ په کارونو کې مدد نهٔ وي کړې لکه د يو تن د تقوىٰ اراده ده ليکن معاشره او کورئې خراب دې، نو دا پوره تقوىٰ نشي اختيارولې ترڅو پورې چه هغوی ورسره د تقوىٰ په کارونو کې مدد ونکړي، نو ځکه الله تعالىٰ د يو بل سره په تقوىٰ او نيکئ کې د مرستې کولو حکم وکړو.

د برَ او تقوىٰ فرقونه

بر نيکئ ته او تقوىٰ د الله يرې ته وائي ليکن مصداقات ئې دا دي :

۱- بر : اسلام او تقوىٰ : سنة نبوي ته وائي. يعني د يو بل سره په اسلام او د رسول الله ﷺ په سنتو مرسته کوئ.

۲- بر : مُتَابَعَةُ الْأَمْرِ او تقوىٰ : اِجْتِنَابُ النَّهْيِ ته وائي، يعني د الله په حکمونو کې او د حرامو څيزونو نه په ځان ساتلو کې د يو بل مرسته کوئ.

۳- البر : مَا يَشْمُلُ الْوَاجِبَ وَالْمَنْدُوْبَ وَالتَّقْوٰى مَا يَشْمُلُ الْوَاجِبَ . (ابن عطية) برَ هغه څيز ته وائي چه واجب او مستحب دواړو ته شامل وي، او تقوىٰ صرف واجباتو ته شامليږي. نو په ضروري او غير ضروري توکو کې د يو بل سره مدد وکړئ.

٤- بر حق الله دې او تقوىٰ حق الناس دې. (فتح البيان) يعني يو بل سره د الله په حقوقو او د بندګانو په حقوقو کې مرسته کوئ.

وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ : پدې هم ډير احکام حل کيږي. مثلاً ټي وي، وي سي آر خرڅول اخستل ناروا دي، ځکه چه دا د يو بل سره په ګناه باندې مدد دې. د نائي دپاره ګيره خريول او په هغې باندې پيسې اخستل حرام دي، ځکه چه دا په ګناه باندې مدد دې. د شرابو ، نسوار او سيګرټ خرڅول حرام دي، هغه بليډ، پاکي خرڅول چه صرف ګيره پرې خرئيلې شي حرام دي، لنډه دا چه يو شي باندې صرف ګناه کيدله د هغې خرڅول صحيح نهٔ دي، البته که ګناه او نيکي دواړه پرې کيدله يا پرې نيکي غالبه وي او ګناه مغلوبه نو د هغې خرڅول جائز دي. لکه انګور خرڅول د شرابو دپاره يا انډې خرڅول چه صرف د جوارئ دپاره وي هم صحيح نهٔ دي.

يا يو تن ناجائز قتل کوي، يا ګناه له روان دې، هغه ته به پناهي نهٔ ورکوي، د بې حيائي

اسباب به چاته نۀ فراهم کوی، د مسلمانانو په خلاف به د کافر سره تعاون نۀ کوی، جاسوسی به نکوی، لاربے به ورته نۀ ښائی۔

## د اثم او عدوان فرقونه

۱- اثم کفر او عدوان بدعت دے۔ ۲- اثم گناه ته وائی چه د الله د حقوقو سره متعلق وی او عدوان هغه گناه او زیاتے دے چه د بندگانو سره متعلق وی۔

۳- بنه فرق دا هم دے چه اثم مَا كَانَ مُحَرَّمَ الْجِنْسِ ۔ اثم هغه دے چه جنس ئے حرام وی لرِ وی که ډیر لکه شراب شو۔ او عدوان هغه دے چه جنس ئے حرام نۀ وی لیکن زیادت او اسراف پکې حرام وی لکه اوبه او خوراك، دعا، د بدعت په طریقه خیراتونه کول ناروا دی۔

وَاتَّقُوا اللَّهَ : یعنی په هر حال کی د الله نه یره کوئ، الله چه کوم څیزونه حرام کړځولی دی د هغے نه بچ شئ، ځکه چه څوك د الله نافرمانی کوی او د محرماتو په کولو کی جرأت کوی نو الله د داسے خلقو دپاره ډیر سخت عذاب تیار کړیدے۔

| حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ |
|---|
| حرام کړے شویده په تاسو باندے مرداره او وینه او غوښه د خنزیر او هغه چه آواز پورته شی |
| لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ |
| د غیر الله د نزدیکت دپاره په هغے باندے او هغه حیوان مرئ خفه کړے شوے او تهکولے شوے |
| وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا |
| او راغورځیدلے او په ښکر وهلے شوے او هغه چه خوړلے وی درنده (ځناور) مگر هغه |
| ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ |
| چه حلال ئے کړئ تاسو او هغه چه ذبح کړے شوی وی په بتانو (او د غیر الله په درگاهونو) |
| وَأَنْ تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ ذَٰلِكُمْ فِسْقٌ |
| او (حرام شوی دی دا) چه تاسو تقسیم معلوموئ په غشو سره دا (کارونه) نافرمانی ده لویه |
| الْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ دِينِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ ۚ |
| نن ورځ نا امیده شول کافران د دین ستاسو نه پس مۀ یریږئ د دوی نه او یریږئ ځما نه |

| الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَ |
|---|
| نن ورځ پوره کړو ما تاسو لره دین ستاسو او پوره کړو ما په تاسو باندے نعمت خپل او |
| رَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ |
| غوره کړیدے ما تاسو لره اسلام دین پس څوك چه مجبوره شو په سخته لوږه کی |
| غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِإِثْمٍ ۙ فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٣﴾ |
| نه وو دے کړیدونکے گناه ته نو یقیناً الله بخونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** : د عقودو نه دا بل عقد دے پدے کی محرماتِ الٰهیه بیانیږی یعنی هغه څیزونه چه الله حرام کړیدی، چه بعض د ماکولاتو (خوراکی څیزونو) سره تعلق لری او بعض عقیدوی دی، او بعض ذاتی حرام دی، او بعض د غیر د وجه نه لکه مثلاً مرداره، وینه، او خنزیر کی ذاتی فساد دے پدے وجه حرام کړے شویدی، او بعض په اعتبار د ذات سره حرام نهٔ وی لیکن د غلط نیت د وجه نه په هغے کی فساد راغلے وی لکه کله خپله حلاله ده لیکن کله چه د غیر الله په نوم نذر شی نو د نذر کونکی غلط نیت په کږه کی فساد پیدا کړو۔ نو دلته دواړه قسمه بیانیږی۔

ربط

مخکی (إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ) استثناء وه نو دلته ددغه استثناء تفصیل بیانیږی، چه دا راتلونکی څیزونه په تاسو حرام کړے شویدی۔

د مردارے، او وینے او د خنزیر د غوښے او هغه حیوان چه د غیر الله په نوم ذبح کړے شوی وی ددے د حرمت بیان د سورة البقرے آیت (۱۷۳) کی تیر شویدے۔

د ((المیتة)) نه مراد هر هغه حیوان دے چه په غیر د ذبح کولو نه یا په غیر د ښکار کولو نه خپله مړ شوے وی، ځکه چه پدے کی بهیدونکی (مرداره وینه) بنده پاتے شوه نو هغه په ټول بدن کی تاثیر کوی۔ دارنگه د حدیث په بنیاد کوم حیوان باندے چه قصداً بسم الله ونهٔ وئیلے شی هغه هم مرداره کی داخله ده۔ البته که هیره شوه نو حیوان نهٔ مرداریږی ځکه چه د هر مؤمن په زړه کی د الله نوم پروت دے۔ او دا رأی د امام شافعیؒ ده، مګر حقه دا ده چه بسم الله پریخودو سره حیوان حرامیږی برابره ده قصداً ئے پریخی وی یا ترے هیره شوی وی لکه ددے تفصیل په فتاوی الدین الخالص (٦) کی وګوره۔

او د ((الدم)) نه مراد هغه وینه ده چه د حیوان نه د ذبح کولو په وخت په تیزئ سره د هغه د بدن نه خارجیږی چه هغې ته د فقه اسلامی په اصطلاح کی (دَم مَسْفُوْح) وائی۔ د وینې په خوړلو سره د بنده نه قاتل جوړیږی۔

الله تعالیٰ په سورة الانعام کی فرمایلی دی: ﴿ اَوْ دَمًا مَّسْفُوْحًا ﴾ یعنی الله تعالیٰ چه کوم خوراکی څیزونه حرام کړیدی په هغې کی بهیدونکے وینه هم ده۔

او د ((الخنزیر)) نه کورنی او ځنګلی دواړه قسمه خنزیران مراد دی۔ او د هغه د غوښې نه مراد د هغه د جسم تمام اجزاء دی، په هغې کی وازدهٔ او هډوکی هم داخل دی۔

په خنزیر کی بی غیرتی او بی حیائی ده، او د کومو څیزونو نه چه منع شویدے په هغې کی ډیر حرص لری نو د هغې د غوښے په وجه په بنده کی دغه بد صفتونه پیدا کیږی۔

((منخنقة)) نه مراد هر هغه حیوان دے چه د مرئ په خفه کولو سره مړ شی، برابره ده چه څوك د هغه مرئ خفه کړی، ساه ورله بنده کړی یا خپله په پړی کی ئے ساه بنده شی۔

((موقوذة)) هغه حیوان ته وائی چه په لرګی یا ډنډے سره اُووهلے شی او مړ کړے شی۔ د جاهلیت په زمانه کی به خلقو چیلئ په لرګو سره وهلے وهلے، مړے به ئے کړے بیا به ئے د هغې غوښه خوړله۔

امام بخاری رحمه الله د عدی بن حاتم ﷺ نه روایت کړیدے چه ما اُووئیل اے د الله رسوله! زهٔ ښکار په پلن غشی سره اُولم او هغې سره اُولګی (نو ددے څه حکم دے؟)

نبی کریم ﷺ وفرمایل:

[اِذَا أَصَابَ بِحَدِّهٖ فَكُلْ وَاِذَا أَصَابَ بِعَرْضِهٖ فَقَتَلَ فَلَا تَأْكُلْ فَاِنَّهٗ وَقِيْذٌ]

که هغه په تیرو په ښکار اُولګی نو هغه خوره او که په پلن طرف اُولګی او قتل شی نو مه ئے خوره ځکه چه دا وقیذ دے یعنی په لرګی سره وهلے شوے وژلے شویدے نو دا مهٔ خوره۔

امام شوکانیؒ ددے حدیث نه دلیل نیولے دے او ویلی ئے دی چه په توپك سره ښکار کړے شوی حیوان غوښه حلاله ده ځکه چه د هغې ګولئ د حیوان جسم څیری او بل طرف ته ترے اُوځی او نبی کریم ﷺ فرمایلی دی چه ((که ښکار په یو پلن غشی سره اُوولے او هغه د هغه جسم څیری کړی نو هغه خوره))۔

د ((مترديه)) نه مراد هغه حیوان دے چه د غر نه خکته راپریوتے وی، یا کوهی ته پریوتے وی او مړ شوے وی۔

((نطیحة)) هغه حیوان دے چه یو بل حیوان په جنګ کی په ښکرو وژلے وی.

وما اکل السبع : دغه شان د هغه حیوان غوښه هم حرامه ده چه د هغه بعض حصه یو بل حیوان خوړلی وی، او هغه حیوان مړ شوے وی. جاهلیت والو به د داسے حیواناتو غوښه خوړله.

اِلَّا مَاذَکَّیۡتُمۡ : اَیۡ فَهُوَ حَلَالٌ. یعنی که تاسو ئے ذبح کړئ نو هغه به حلال وی. دا د (وَالۡمُنۡخَنِقَةُ) نه روستو ذیزونو سره متعلق دے نه د (مَا اُهِلَّ) سره. یعنی ذکر شوی حیوانات که د مرګ نه مخکی د الله په نوم اخستو سره ذبح کړے شی نو د هغے خوړل به جائز وی. د ابن عباس رضی الله عنهما قول دے چه که په ذکر شوو حیواناتو کی روح باقی وی او هغه ذبح کړے شی نو د هغے خوړل به جائز وی.

علی بن ابی طالب ﷺ وائی چه که موقوذه او متردیه او نطیحه حیوان لاس یا ښپه خوزوی او هغه ذبح کړے شی نو د هغے خوړل به جائز وی. د طاؤس، حسن، قتاده او ضحاك رحمهم الله وغیرهم همدا قول دے او د جمهورو فقهاؤ هم دا مذهب دے.

ذکیتم : د ذکاة نه اخستلے شویدے او د ذکاة معنیٰ ده ذبح کول. او ددے حد دا دے چه په مرئ کی صرف شق (څیریدل) وشی او وینه ترے وبهیږی نو دا د حلالوالی دپاره کافی ده او که د مرئ درے رګونه پریکړے شو نو دا ئے اعلیٰ درجه ده. او د رګونو د تعیین په باره کی صحیح روایتونه نشته.

وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ : عَلٰی په معنیٰ د لام سره دے اَیۡ لِاَجۡلِ النُّصُبِ. یعنی د وجه د نصبو نه. یا مضاف پټ دے اَیۡ عَلَی اسۡمِ النُّصُبِ. یعنی هغه چه ذبح کړے شی په نوم د نُصُبو. نُصُب کلمه مفرد ده او جمع ئے اَنۡصَاب ده، او ځینی وائی چه نصب جمع ده او نِصَاب ئے مفرد دے لکه کتب او کتاب. (کشاف)

د مکے مشرکانو د بیت الله نه ګیر چاپیره ډیر کانړی نصب کړی وو چه په هغے به ئے حیوانات ذبح کول او د هغے غوښے به ئے ټکړے کولے، او بیا به ئے د همدغه ځارو غوښے وریاندے ایښودے چه فقیران ئے ترے واخلی، دوی دغه کار د الله په نیز د تقرب او نزدیکت ذریعه ګنړله او د خپلو بتانو دپاره ئے تعظیم ګنړلو. او دوی به ددے کانړو تعظیم کولو او ددے نه به ئے یره کوله، او د ذبح په ذریعه به ئے ددے کانړو د تقرب نیت کولو، دے کانړو ته به ئے ((انصاب)) وئیل.

حافظ ابن کثیر رحمه الله وائی چه مسلمانانو لره ئے د داسے کار نه منع کړل او دغه ذبائح

ئے حرام اُوګرځول اګرکه د ذبح په وخت په هغې باندے د الله نوم اخستے شوے وی ځکه چه د داسے کانړو خوا کی ذبح کول د الله سره شرک دے چه الله او د هغه رسول حرام کړیدے۔

## سوال وجواب

په (اَلْمَيْتَةُ) کی دا لاندے حرام شوی ځاروی داخل وو نو جدا ذکر کولو کی ئے څه حکمة دے؟ جواب: د جاهلیت په زمانه کی اَلْمَيْتَة صرف هغې مردارے ته ویل کیده چه هغه به په کوم مرض باندے مړ شوے وو او ذکر شوی حرام ځاروی تول حلال ګڼړل کیدل۔ پدے وجه الله پرے صراحت وکړو چه د جاهلیت رواج ختم کړی۔ (القرطبی، المحرر الوجیز، البحر المحیط)۔

## د وثن، نصب او صنم فرقونه

اوثان او انصاب دواړه څپل مینځ کی فرق نۀ لری دواړه هغه شی ته ویل کیږی چه د عبادت دپاره نیغ ودرولے شوی وی، خو دا پکی شرط ده چه په څپل اصلی خلقت باندے پاتی وی لکه کانړی او یا نور څیزونه چه په مصنوعی توګه پرے نقش او سنګار نۀ وی کړے شوے او صنم یا اصنام هغه مجسمو ته وائی چه انسانانو په نقش او ډول او سنګار باندے جوړ کړی وی، برابره خبره ده چه د هر جنس نه وی لکه سره زر، سپین زر، ګټے، ختے او داسے نور۔ (احکام القرآن للجصاص)

## د ما اهل او ما ذبح علی النصب ترمینځ فرق

((وما اهل لغیر الله)) کی تقریباً همدا حکم بیان شویدے، لیکن په دواړو کی فرق دا دے چه ((وما ذبح علی النصب)) کی د هغه حیواناتو حکم بیان شویدے چه هغه د بتانو دپاره ذبح کړے شوی وی او ((وما اهل لغیر الله)) کی د هغه حیواناتو چه هغه د انبیاؤ علیهم السلام او اولیاؤ دپاره ذبح شوی وی۔

یا دا چه (ما اهل لغیر الله) هغه دے چه د غیر الله د تقرب دپاره ذبح شوی وی، او ما ذبح علی النصب هغه ځاروی دی چه د الله نوم پرے اخستے شوے وی مګر په داسے مقام کی ذبح کړے شی چه هلته د بتانو تعظیم رواج وی۔

په اسلام کی د الله دپاره هم په دغسے ځای کی ذبح کول جائز نۀ دی چرته چه د غیر الله دپاره ذبح کولے شی۔ ابوداوٗد د ثابت بن ضحاك ﷺ نه روایت کړیدے چه یو شخص په

((بُوانه)) مقام کې د اُوښ ذبح کولو نذر اُوکړو، نو هغه د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اُوکړه نو نبي ﷺ پوښتنه اُوکړه چه [هَلْ كَانَ فِيهَا وَثَنٌ مِنْ أَوْثَانِ الْجَاهِلِيَّةِ يُعْبَدُ] آیا د جاهلیت په زمانه کې هلته د یو بت عبادت کیدو؟ خلقو اُووئیل: نه، نبي ﷺ اُوفرمایل: [هَلْ كَانَ فِيهَا عِيدٌ مِنْ أَعْيَادِهِمْ ؟] آیا هلته د جاهلیت کوم عید (اختر) مناویدو؟ خلقو اُووئیل: نه، نو نبي ﷺ هغه سړي ته اُووئیل چه خپل نذر پوره کړه. ځکه چه د داسې نذر پوره والې نشته چه د الله په نافرمانئ سره وي، او نه داسې نذر چه د هغې بنده مالك نه وي.

بیا انصاب او نصب: [كُلُّ مَا نُصِبَ وَعُبِدَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ مِنْ شَجَرٍ وَحَجَرٍ وَقَبْرٍ]

هر هغه شے چه ودرولے شي او د الله نه سوئ د هغه بندگي کیدے شي که ونه وي، که کاڼړے او که قبر. (مجالس الابرار)

حافظ ابن تیمیة په ((اقتضاء الصراط المستقیم)) کې لیکي: [اَلنُّصُبُ كُلُّ مَا يُنْصَبُ وَيُعْبَدُ مِنْ دُونِ اللّٰهِ] هر هغه شے چه ودرولے شي او د الله نه سوئ د هغه بندگي کیږي، که هغه قبر دے که کاڼړے او که دیوال وغیره. نور مصداقات به ئې په آیت (۹۰) کې راشي.

او ډیر خلك د بعض دیوالونو او غارونو تعظیم کوي چه هلته یو شخص ناسته کړې وي او هلته ذبح کوي، او شمعې بلوي او د هغې نه یره کوي دا هم انصابو کې داخل دي.

وان تستقسموا بالازلام: ازلام جمع د زَلَم ده لکه جَمَل، یا د زُلَم لکه د صُرَد جمعه ده (لسان العرب لابن منظور۱۲/۲۶۹) ازلام په اصل کې هغه غشو ته وائي چه تیره څوکه نه لري او د هدف د ویشتو یا د ښکار کولو دپاره نه وي مقرر شوي بلکه د لرگي نه به جوړ وو.

د جاهلیت په زمانه کې د عربو دستور وو چه هغوی به د غشو په ذریعه د خیر او شر فیصلې معلومولې، په بیت الله کې به درې قسمه غشي پراته وو، یو باندې به لیکلے شوي وو چه ((وکړه)) بل باندې به لیکلے شوي وو چه ((مه کوه)) او دریم به خالي وو.

بعض خلقو لیکلي دي چه په یو باندې به لیکلے شوي وو چه (أَمَرَنِي رَبِّي) زما رب ما ته حکم کړیدے) په بل به لیکلے شوي وو چه (نَهَانِي رَبِّي) (زۀ خپل رب منع کړے یم) او دریم به خالي وو. کله چه به یو سړي د سفر یا وادۀ وغیره اراده اُوکړه نو د بیت الله منجورانو خوا ته به راغلو او وئیل به ئې چه زما دپاره یو غشے راوباسه، دغه غشي به په یو کڅوړه کې پراته وو، نو د کعبې منجور به د غشو ښه خوزولو نه روستو یو غشے راویستو، که د حکم او اجازت والا غشے به وو نو هغه کار به ئې کولو، او که د منع والا به وو نو د خپلې ارادې نه به واپس کیدو، او که خالي غشے به وو نو د غشو ړقولو او یو بل غشي راویستلو عمل به

دويم خـلي كيـدو. الله تـعالىٰ دے كار ته فسق اُووئيلو او حرام ئے اُوگرځولو. ځکه چه دا په علـم غيـب كـي مـداخلت دے چه هغه د الله نه علاوه هيچا ته معلوم نهٔ دے. دے نه سوئ پدے كي د بتانونو نه يو قسم مشوره او استعانت (مدد طلب كول) دى، چه په هر حال كي شرك دے. چونكه دا رسم خالص په جهل، شرك، او هام پرستئ او افتراء على الله باندے بناء وو پدے وجـه قـرآن كـريـم پـه مختلفو ځايونو كي په ډيره سختئ سره ددے حرمت ښكاره بيـان كـړيـدے او دلتـه ئے ازلام د نـصـب سـره ذكـر كړو او د مردارے، وينے، او د خنزير وغيره نهايت خبيث او گـنده څيزونو د تحريم په سلسله كي ئے يو ځاى كړل نو ددے نه دا ښكاره شـوه چـه ددے معنوى او اعتقادى نجاست او خباثت د دغه څيزونو نه كم نهٔ دے لكه په بل آيت كي ئے دے ته ﴿ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ﴾ وئيلى دى.

ددے په بدله كي رسول الله ﷺ مسلمانانو ته د استخارے تعليم وركړو، دے دپاره چه د يو كـار كـولو نه مخكي د الله نه د خير دعا اُوكړى. امام احمدؒ، بخاريؒ او اصحاب السنن د جابر بـن عبد الله رضى الله عنهما نه روايت كړيدے چه رسول الله ﷺ به مونږ ته په ټولو كارونو كـي د الله نـه د استخارے (خير طلب كولو) داسے تعليم راكولو لكه څنگه چه به ئے موږ ته د قرآن د يو سورة تعليم راكولو.

دارنـگـه د مـكـے د مشركانو د غشو بله مجموعه اُوه غشي وو چه په هر يو باندے به يوه يـوه خبـره ليـكـلے شوے وه چه دوى به په هغے باندے خپلے فيصلے معلومولے، دا به د هُبَل بـت پـه خـوا كـي پـراتـه وو كـوم چه په كعبه كي دننه پروت وو، او د مكے والو مركز او لوى مـرتبـے والا بـت وو، دوى بـه څـه شرينى وركولو نه روستو كاهن يا منجور ته د هغے نه د يو غشـي راوېستو حـكـم كـولو او په هغے به ئے خپلے فيصلے حل كولے. لكه عبد المطلب د عبـد الله پـه باره كي دا استسقام بالازلام كړے وو چه ترسلو اُوښانو به هغه تش راختل آخر دا راوختلو چه دا كار مهٔ كوه.

دريم قسم د غشو مجموعه ددے دپاره منتخب شوے وه چه دوى به د هغے نه د قمار بازئ (جـوارئ) كـار اخستـلـو او د اُوښـانـو غـوښے به ئے پرے تقسيمولے مثلاً ډيرو كسانو به يوه اُوښـه پـه شـريـكـه واخستـه نـو يو شان به ئے نهٔ تقسيموله بلكه په غشو به ئے حصے مقرر كړے په يو غشي به ئے درے برخے او په بل به ئے دوه برخے او په بل به ئے كم يا زيات، او بل به ئے خالى پريخودو او بيا به ئے دغه غشي يو بوجئ كي واچول او هر يو تن ته به ئے ويل چه ددے نـه يـو غشـے راوباسـه، نـو د چا بـه زياته برخه راختله او د چا كمه، او د چا به هيڅ نهٔ

راختـل، بیا چه بـه د چا برخه راوختله نو هغه به د فخر په طریقه دغه برخه بل ته ورکوله خپـل ځان بـه ئـے پرےـ لـوی ښـکاره کولو، دغسے موقعو ته به فقیران هم حاضریدل نو د هغـوی بـه هم پکی فائده وشوه، پدے وجه په سورتِ بقره کی الله تعالیٰ ددے قسم جوارئ په باره کی وئیلی وو چه پدے کی لږ منافع شته هغه دا چه ددے سره رياء او فخر به پکی وشـو او د فـقیـرانـو حاجت به پوره شو. او دا قسم جواری بعینه د لاټرئ بعض صورتونو ته شامـل ده، بـانـډونه هم ددے په حکم کی دی. او بیمه زندگی چه انشورنس او تأمین ورته ویـل کـیږی دا ټول جواری ده او حرام کار دے اګرکه ډیر په کی واقع دی او د خلکو پرے هیڅ پرواه نشته والله المستعان۔

نـو دلتـه الله تـعالیٰ ایمان والو ته وائی چه تاسو د یو کار په کولو یا نهٔ کولو کی د غشو نه کـار مـهٔ اخـلئ بلکه شرعي استخاره وکړئ. او دارنګه د مسلمانیدو نه روستو په کفری او شـرکـی لاره بـاندے لاړ نهٔ شئ بلکه خپلے فیصلے د شریعت په رڼا کی حل کړئ او د فالګرو پسے مـهٔ ځئ، ستاسو شریعت په هر اعتبار سره کامل دے، او ددے ګندونو هیڅ ځای پکی نشتـه، ډیر خلك فالګرو لوټ کړل، د مال ډیاره ورته نصیبونه ښائی، او ډیر مسلمانان پدے ګـندونو اخته شو. او دارنګه قمار بازی (جواری) مهٔ کوئ او مهٔ د جاهلیت د رسم او د رواج په شان د جوارئ په غشو باندے خپلے برخے معلوموئ. دلته دا درے واړه قسمه غشی مراد کول صحیح دی او د ټولو ترمینځ هیڅ منافات نهٔ شته۔

نو کومه اوښه چه په دغه طریقه تقسیم شوه هغه هم حرامه شوه، ځکه چه جواری پرے وکړے شوه، او د جوارئ مال حرام وی، اوکه خپل قسمت معلوموی، نو هم دا کار غلط دے ځـکه چه دغه پیر یا بابا او منجور په غیبو نهٔ پوهیږی چه دا ووائی چه دے کار ته لاړ شه دا کیږی او دے تـه مهٔ ځه دا نهٔ کیږی، دا علم خو صرف الله تعالیٰ سره دے او دا د ځان نه هسے وهـم او خیـال جوړ شویدے چه منجور او بابا به ستا نصیب او قسمت معلوموی او ستا په خیر او شر به پوهه وی، هسے ځان ته دهوکه ورکول دی۔

ذٰلِكُمْ فِسْقٌ : اشـاره ده مـخـکنی حرامو څیزونو ته. یعنی دغه څیزونه استعمالولو سره بنده فاسق ګرځی. د فسق دلته دوه مصداقه دی (۱) خُرُوْجٌ مِنَ الدِّیْنِ۔

(د دین نه وتل) . او (۲) بل خُرُوْجٌ مِنَ الطَّاعَةِ . (د طاعـت نه وتل) په بعض اوقاتو کی به انسـان د هغے په استعمال سره ګناهګار ګرځی او کله چه هغه جائز وګنړی یا شرکی عمل وکـړی لـکـه پـه نصب باندے ذبح بیا به کافر کیږی. نو کله به فاسق فی الاسلام وی او کله

به فاسق في الكفر وي۔

اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : دا او (اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ) دا نازل شوي وو په عرفات کې چه د عرفې او د جمعې په ورځ د مازيګر په وخت چه رسول الله ﷺ د العضباء نومې اُوښه باندې سور وو، دعائې کوله او ددې نه روستو رسول الله ﷺ يو اتيا (۸۱) ورځې پس وفات شو۔

يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : اَيْ مِنْ اِبْطَالِهٖ۔ يعنې د دين د ختمولو نه۔

دويم دا چه د کافرانو دا طمع وه چه مسلمانان به په جنګونو سره تنګ کړو او بيرته به ئې خپل دين ته راستانه کړو۔

اليوم : ددې نه کومه ورځ مراد ده؟ نو ددې نه مراد هغه ورځ ده چه په هغې کې لاندې مهم کارونه پوره شوي وو، يو دين پکې کامل او پوره شويدې، دويم نعمتونه پکې تمام شويدي، دريم د اسلام دين مونږ دپاره غوره کړې شويدې، او څلورم دا چه کافران پکې ددې نه نا اميده شويدي چه دين اسلام ختم کړي او بيرته شرك راواپس کړي، او بت پرستي عامه شروع کړي۔ تر اُوسه پورې به کافرانو دا طمع لرله او يهود او نصارئ او منافقانو بلکه د ټولې دنيا کافرانو دا کوشش کولو چه مدينه کې اسلامي خلافت ختم کړي، او دين اسلام وران کړي او مسلمانان بيرته ګمراه کړي، ليکن کله چه د الله تعالىٰ قوانين نازليدل او مسلمانانو په هغې باندې عمل کولو او يوه ښائسته فضاء او معاشره برابره شوه، نو اُوس کافران نا اميده شو چه دين اسلام ختم کړي او شرك بيرته راواپس کړي۔ ځکه چه مسلمانانو ته حدود مقرر شو او قانون ورته ملاؤ شو او د څيزونو فائدې او ضررونه ورته ښکاره شو نو اُوس د حق نه اړول څه آسان کار نۀ دې، اُوسه پورې کافرانو خپلو بتانو ته خلك رابللې شو ځکه چه د مسلمان دپاره نظام نۀ وو۔

ددې معنىٰ وضاحت په هغه حديث سره هم کيږي چه هغه امام مسلم په خپل صحيح رقم (۷۲۸۱) کې د جابر ﷺ نه روايت کړيدې چه رسول الله ﷺ وفرمايل :

[اِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ اَيِسَ اَنْ يَّعْبُدَهُ الْمُصَلُّوْنَ فِيْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ وَلٰكِنْ فِي التَّحْرِيْشِ بَيْنَهُمْ]

شيطان ددې خبرې نه نا اُميده شويدې چه په جزيرة العرب کې مونځ کونکي د هغه عبادت اُوکړي، ليکن هغه به د مسلمانانو په مابين کې اختلاف پيدا کوي)۔

فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ : يعنې ددې احکامو په عملي کولو کې د کافرانو نه مۀ يريږئ چه د هغوي عظمت په زړه کې راولئ او زما حکمونه د هغوي د وجه نه مات کړئ او حرام وکړئ د هغوي د وجه نه، لکه ډير انسانان د خلکو د يرې د وجه نه حرامه کوي، او د حلالو

نه ځان ساتي د خلکو د رسم او د رواج د يرے نه. نو الله فرمائي چه پدے کې صرف زما نه يره وکړئ.

اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ : الله تعالىٰ په امتِ اسلاميه باندے خپل عظيم نعمت او لوئى احسان ذکر کړيدے چه الله دوى ته يو مکمل دين ورکړو چه دوى ته اُوس نهٔ د بل کوم دين ضرورت شته، او نهٔ د بل کوم نبي. ځکه چه دا قانون دے چه کله حلال او حرام بيان شي نو پدے سره دين پوره کيږي.

دارنګه الله تعالىٰ امتِ اسلاميه ته د اطاعت او استقامت توفيق ورکړو، د روحاني غذاګانو او د دنياوي نعمتونو دسترخوان ئے ستاسو دپاره خور کړو، د قرآن کريم د حفاظت، د اسلام غلبه، او د عالم د اصلاح سامان ئے تيار کړو. او د الله د نعمتونو نه يو لوى نعمت دا هم دے چه د اسلام د تکميل اعلان ئے وکړو.

امام احمدؒ او بخاريؒ او مسلمؒ د طارق بن شهاب ﷺ نه روايت کړيدے چه يو يهودي د عمر بن خطاب ﷺ خوا ته راغلو او وے وئيل چه اے امير المؤمنين! تاسو په خپل کتاب کې يو داسے آيت لولئ چه که هغه په مونږ نازل شوے وے نو هغه ورځ به مونږ د اختر ورځ جوړه کړے وے. هغوى تپوس وکړو هغه کوم آيت دے؟ نو يهودي ووئيل: ﴿اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ﴾ الآية نو عمر ﷺ ووئيل چه قسم په الله! زهٔ هغه ورځ او هغه وخت ښه پيژنم چه کله دا آيت په رسول الله ﷺ نازل شوے وو. دا آيت د جُمعے په ورځ د عرفے په ماښام نازل شوے وو. (صحيح بخاري: ٤٥: مسلم: ٧٧١٠)

(مطلب دا چه دا دواړه زمونږ د خوشحالئ ورځے دي، نورے د خوشحالئ ورځو پيدا کولو ته ضرورت نشته، دے يهودي په عمر ﷺ باندے بدعت پيدا کولو او يا د يهودو غلط عادت بيانول غرض وو ځکه چه دا يهودي مسلمان شويدے، ددے نه کعب الاحبارؒ مراد دے.

## حکمة

دلته دوه لفظونه استعمال دي، اَكْمَلْتُ او اَتْمَمْتُ. اکمال په کمياتو (مقاديرو) کې او اتمام په کيفياتو (طريقو) کې استعماليږي، نو دين په اعتبار د کميت او کيفيت دواړو سره کامل شو، نو په دين کې مقدار د عملونو هم بيان شويدے مثلاً پنځه مونځونه فرض دي که څوك شپږم فرض کنړي دا به غلو في الدين وي، تحية المسجد او وتر مونځ چه څوك فرض کنړي غلط وائي، او کيفيت د هر عمل مقرر شويدے چه مونځ به په کومه طريقه

کوي، روژه، زکاة او حج وغیره. مګر بعض داسې عبادات دي چه الله تعالیٰ بندګانو ته سپارلي دي لکه د عام غیر موقت ذکر مقدار ئې نۀ دې مقرر کړې اګر که د ذکر کیفیت ئې بیان کړیدې. سبحان الله به وائي او غیر شرعي اذکار به نۀ وائي لکه هُو هُو وغیره.

دارنګه اکمال په کلیاتو کې استعمالیږي او اتمام په جزئیاتو کې نو دین په اعتبار د کلیاتو او جزئیاتو ټولو سره کامل مکمل دې.

## د دین د کمال څه معنیٰ ؟

مفسرینو د ﴿أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ﴾ ډیر مصداقات بیان کړیدي چه ځینې لاندې ولوله:

۱- د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت شویدې چه د دین فرائض او حدود او سنن (طریقې) او احکام او جهاد او حلال او حرام پوره شو چه ددې آیت نه روستو هیڅ تحلیل او تحریم نۀ دې نازل شوې. (بغويٌ)

۲- سعید بن جبیرؒ او قتاده وائي: [أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ فَلَمْ يَحُجَّ مَعَكُمْ مُشْرِكٌ]

تاسو له مې دین پوره کړو چه هیڅ مشرك تاسو سره په حج کې شریك نشو.

۳- أَظْهَرْتُ دِينَكُمْ وَأَمَّنْتُكُمْ مِنَ الْعَدُوِّ.

یعنې ما ستاسو دین ته غلبه ورکړه او هغه مې په خلکو کې ښکاره کړو او ستاسو دشمنان مې د ذلت سره مخامخ کړل او تاسو مې ترې په امن کې کړئ.

٤- أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ: بِتَمَامِ النَّصْرِ، وَتَكْمِيلِ الشَّرَائِعِ الظَّاهِرَةِ وَالْبَاطِنَةِ، الْأُصُولِ وَالْفُرُوعِ وَلِهَذَا كَانَ الْكِتَابُ وَالسُّنَّةُ كَافِيَيْنِ كُلَّ الْكِفَايَةِ فِي أَحْكَامِ الدِّينِ أُصُولِهِ وَفُرُوعِهِ].

ما ستاسو دین پوره کړو چه پوره مدد مې درسره وکړو او ښکاره او باطني احکام مې پوره کړل اصول وي که فروع، پدې وجه کتاب او سنت د دین په اصولو او فروعو ټولو احکامو کې کافي دي، ددې وجه نه کوم شخص چه دا ګمان کوي چه خلکو دپاره د عقائدو او احکامو په پیژندلو کې د کتاب او سنت د علومو نه علاوه نورو علمونو ته ضرورت دې لکه علم کلام او فلسفه وغیره نو دې جاهل دې او په خپله دعوه کې باطل پرست دې او دې ګمان لري چه دین به صرف په هغه څه پوره کیږي چه دې ئې وائي یا دې ورته دعوت ورکوي، او دا ډیر لوی ظلم دې او د الله او د رسول نه لویه ناخبري ده. (تفسیر السعدي ۲۱۹/۱)

## نکته

خینې روایاتو کې راغلي دي چه کله دا آیت نازل شو نو ابوبکر صدیق ﷛ په ژړا شو او پدې خبره پوهه شو چه د رسول الله ﷺ د مرګ نیټه رانژدې شوه، او د رسول الله ﷺ وظیفه پوره شوه چه هغه د دین پوره والې دې. او بیائې وفرمایل: [مَا كَمُلَ شَيْءٌ اِلَّا نَقَصَ] هیڅ شې کمال ته نۀ رسیږي مګر په هغې کې به نقصان پیدا کیږي.

(التحریر والتنویر ۳/۲٤۰)

۵- د کمال معنیٰ دا هم ده چه دغه شریعت به په بل شریعت باندې نۀ منسوخ کیږي.

۶- زجاج رحمه الله وائي: د دین کمال ددې نه عبارت دې چه د مسلمانانو نه د دشمنانو یره ختمه شوه نو ځکه الله وفرمایل: (فَلَا تَخْشَوْهُمْ) یعنې ددوی نه مۀ یریږئ.

(القرطبي، وزاد المسیر)

دا ټول مصداقات صحیح دي او خپل مینځ کې ئې هیڅ منافات نشته.

**فائده**: دلته الله وفرمایل: ما تاسو ته دین پوره کړو او دا خبره ښکاره معلومه ده چه د مونځ، زکاة، روژې او حج او د جهاد او نورو حدودو وغیره تفصیلات په قرآن کریم کې نۀ دي نازل شوي بلکه هغه سنتِ رسول الله ﷺ بیان کړیدي نو معلومه شوه چه دین په قرآن او سنت دواړو کې دې، او قرآن او سنت دواړه کامل دین دې. نو دلیل شو چه د رسول الله ﷺ احادیث هم په امت باندې حجت دې، او صحیح احادیث داسې یقیني دي لکه د قرآن په شان.

**فائده ۲**: ددې آیت نه معلومه شوه چه دین کامل دې سره د عقائدو او فروعو او ټولو ضروري احکامو نه نو ددې نه روستو چه څوك دین ناقص (نیمګړې) ګڼړي نو دا پدې آیت سره کافر دې. او بل په حدیث د رسول الله ﷺ سره چه هغه فرمائي:

[مَا مِنْ شَيْءٍ يُقَرِّبُكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ وَيُبَاعِدُكُمْ مِنَ النَّارِ اِلَّا وَقَدْ اَمَرْتُكُمْ بِهِ] نشته یو شې چه تاسو جنت ته نژدې کوي او د اُور نه مو وړاندې کوي مګر ما تاسو ته په هغې حکم کړې.

السنن الکبری: ۱۳۸۲۵) والحاکم (۲۱۳۶) وسنده صحیح)

نو خینې مقلدین چه شعوري یا غیر شعوري طور سره دین ناقص ګڼړي او دا وائي چه په قرآن او حدیث کې لسمه حصه د دین هم نشته بلکه دا علماؤ په قیاسونو سره پوره کړیدې، نو دوی ځان د ډیرې خطرې سره مخامخ کړو چه الله به ورسره سخت حساب کوي. کله دوی دا سوال کوي چه په قرآن او حدیث کې نیا وبنایئ او کله وائي چه میخه

پکښې راته وښايه. کله به وائي فرض، واجب سنت وښايه مطلب ئې دا دے چه دين ناقص
دے، صرف امام ابوحنيفهؒ پوره کړيدے. جواب دا دے چه اول خو د امام ابوحنيفهؒ خپل
کتاب نشته نو کوم ځاى کې هغه ويلي دي بيا د هغه خبره حجت نۀ دے په امت باندے
ځکه چه هغه يو عالِم دے د علماؤ د امت نه. د هغه خبره خپله دليل د قرآن او حديث ته
محتاجه ده.

**فائده ۳:** لَکُمْ دِيْنَکُمْ کې ئې نسبت بندګانو ته وکړو او (نِعْمَتِيْ) کې ئې د نعمت نسبت
ځان ته وکړو دے کې څه حکمت دے؟ نو حکمت دا دے چه بندګان په دين ولاړ دي، په دين
به بندګان عمل کوي او د نعمت ورکونکے الله تعالىٰ دے نو ځکه ئې ځان ته نسبت کړيدے.

**فائده ٤:** دين ته ئې نعمت وويلو ځکه چه د دين هر حکم نعمت نعمت دے، دا د
کاميابۍ لاره ده، او جنت ته رسيدلے ده، پدے وجه دا به تکليف نۀ شي ګنړلے بلکه دے ته به
په ډير محبت او شوق سره منډه وهي لکه يو تن چه نعمت طرفته منډه وهي. نو د دين
احکامو ته تکاليف ويل صحيح نۀ دي.

**فائده ٥:** په کتاب او سنت کې تر قيامته پورے هره مسئله چه واقع کيږي د هغے حل
شته لکه حافظ ابن القيمؒ ددے تفصيل په اعلام الموقعين کې ليکلے دے.

## سوال وجواب

آيا د دغه وخت نه مخکې دين ناقص وو؟ که داسے وي نو ډير صحابه کرامؓ به په ناقص
دين باندے وفات شوي وي؟ ددے جواب دا دے چه دين په هر وخت کې کامل وو، د
مسلمانانو چه کومو احکامو ته ضرورت وو هغه پوره وو، مګر په ابتداء کې د مسلمانانو
د جماعت احوال کم وو، بيا وخت په وخت فراخه کيدل نو احکام به هم ورته نازليدل، نو د
دوى د فراخۍ په اندازه به دوى ته د دوى د حاجاتو مطابق کافي دين نازليدو، ځکه چه د
دين تعليم په طريقه د تدريج سره شويدے، دے دپاره چه په خلکو کې ښه مضبوطوالے
ونيسي، تردے چه ټول احکام د دين د امت د فراخۍ په اندازه پوره شو. او ددے دا معنىٰ نۀ
ده چه دين مخکې نه ناقص وو ليکن د امت احوال پوره نۀ وو راښکاره شوي مګر کله چه
احوال پوره شو نو دين هم ورته کامل شو. (التحرير والتنوير)

او ددے نظير داسے دے چه د يوے مدرسے د يو ټولګي دپاره بيل بيل نصاب ټاکلے شوے
وي هر يو په خپل ذات کې کامل دے مګر په نظر سره پورته ټولګي ته ناقص دے تردے چه

آخری تولګی ته ورسیږی او نصاب کامل شی۔

وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا : اُوس ددې دین نوم ښائی چه دغه دین ته اسلام وائی چه دا ما ستاسو دپاره د دین او د عمل په طور پسند کړو۔

اسلام د ټولو انبیاؤ علیهم السلام دین وو او خصوصی طور سره ددې امت دین دې او مخکنو امتونو اکثرو اسلام پرینښې وو او نور دینونه ئې غوره کړی وو۔

فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ : مخمصه : د غذاء نه د خیټې خالی والی ته وائی۔ یعنی لوږه۔

او دا جمله متعلق ده د مخکې (حرمت علیکم المیتة) سره اَیْ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ اِلَى آخِرِهَا كُلَّ وَقْتٍ اِلَّا فِي وَقْتِ الْاِضْطِرَارِ۔ په تاسو دغه څیزونه حرام کړې شویدی په هر وخت کې مګر که مجبوره شوئ د خپل ځان د بچ کولو دپاره نو ددې حرامو څیزونو نه د یو شی په استعمال سره نۀ ګناهګاریږئ۔

یعنی د حلال او حرام قانون خو مکمل شو، پدې کې به هیڅ تغیر او تبدل نشی کیدې مګر که مضطر یو حرام شے وخوری وځکی دې دپاره چه ځان ئې بچ شی نو الله تعالیٰ به ئې نۀ راګیروی، او دا هم د اتمامِ نعمت یوه حصه ده۔

غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ : یعنی نۀ وی مائل ګناه طرفته۔ یعنی زیاتے او تجاوز کونکے نۀ وی۔ متجانف د جَنَف نه دې په معنیٰ د میلانُ سره۔

بیا دلته ئې صرف د لوږې مجبورتیا ذکر کړه، وجه دا ده چه ددې آیت د نزول زمانه د پخوانه جدا ده، دا هغه دور دې چه اسلام پکې غالبه شویدې څوک نشته چه په مسلمانٌ باندې د مردارې وغیره په خوړلو زور وکړی، نو که داسې وویل شی چه که په تاسو کافرانو زور وکړو نو دا به ډیر ناشنا ولګی، ځکه ئې صرف لوږه ذکر کړه نۀ اِکراه۔

يَسْأَلُونَكَ مَاذَا أُحِلَّ لَهُمْ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ

تپوس کوی ستا نه چه څه حلال شوی دی دوی لره ووایه حلال کړې شویدی تاسو لره

الطَّيِّبَاتُ وَمَا عَلَّمْتُم مِّنَ الْجَوَارِحِ

پاک څیزونه او هغه چه تعلیم ورکړې وی تاسو د ښکار کونکو حیواناتو نه

مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ

چه زغلونکے یئ تاسو، خودنه کوئ تاسو دوی ته د هغه څه نه چه خودنه کړیده تاسو ته

| اللهُ فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ |
|---|
| الله تعالیٰ نو خورئ د هغې نه چه بند ساتلي وي دوی تاسو لره او یادوئ نوم د الله تعالیٰ |
| عَلَيْهِ وَاتَّقُوا اللهَ إِنَّ اللهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٤﴾ |
| په هغې باندې او ویریږئ د الله نه یقیناً الله زرد حساب کونکے دے۔ |

**تفسیر**: اُوس نور مُحللاتِ الٰهیه بیانیږی۔

په ذکر شوی آیت کښې هغه خبائث بیان شو د کومو خوراك چه انسان ته نقصان ورکونکے وی، اُوس دلته طیب او حلال څیزونه بیانیږی چه فائده ورکوی۔

## شان نزول

طبرانیؒ، حاکمؒ، بیهقیؒ او ابن جریرؒ وغیرهُم د ابورافع ﷺ نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ دوی ته د سپو د وژلو حکم اُوکړو نو خلقو تپوس اُوکړو چه اے د الله رسوله! زمونږ دپاره د کومو څیزونو خوراك حلال دے؟ نو نبی کریم ﷺ غلے شو تردے چه دا آیت نازل شو۔

ابن ابی حاتمؒ د سعید بن جبیرؒ نه روایت کړیدے چه د طیٔ قبیلے عدی بن حاتم او زید بن مُهلهل رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوکړو

[إِنَّا قَوْمٌ نَصِيدُ بِالْكِلَابِ وَالْبُزَاةِ فَمَا ذَا يَحِلُّ لَنَا مِنْهَا؟] چه مونږ د سپو او بازونو په ذریعه ښکار کوو نو زمونږ دپاره ددے نه څه حلال دی؟ نو دا آیت نازل شو۔ (بغویؒ)

الطیبات: د «طیبات» نه مراد هر هغه شے دے چه خبیث نهٔ دے، او هر هغه شے خبیث نهٔ دے چه د هغې حرمت په قرآن او سنت کښې نهٔ دے راغلے۔ نو ددے نه هم معلومه شوه چه اصل په اشیاؤ کښې اباحت او طهارت دے۔ نو ټول خوراکونه، څکاکونه، جامے، لباسونه، حیوانات، میوه جات، تجارتونه، معاملات او کاروبارونه حلال دی مګر هغه چه شریعت پرے پابندی ولګوی، نو دا د مُفتی دپاره ډیره لویه قاعده ده او ډیر مسائل ددے لاندے راځی۔ او د شریعت فراخي او آساني پکښې پرته ده۔

**فائده**: طیبات: كُلُّ مَا لَمْ يَأْتِ تَحْرِيمُهُ فِي الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ۔ هر هغه شے چه د هغې حراموالے په کتاب او سنت کښې نهٔ وی راغلے۔ دا پوره تعریف دے۔ او تفسیرِ ابوالسعود کښې دی: (وقیاس مجتهد) نو دا غلط قید دے ځکه چه د مجتهد په قیاس سره په امت باندے

یو شے نه حرامیږي۔
او دا هم معلومه شوه چه د مردارو او خبائثو نه په غیر ټول پاکیزه څیزونه حلال کړے شویدي نو دے ته ضرورت نشته چه تاسو ته د هغے فهرست نازل شي ځکه چه پاك څیزونه دنیا کي زیات دي، د هر یو بیان ته ضرورت نشته۔
وما علمتم من الجوارح : دا په (طیبات) باندے عطف دے او دلته مضاف پټ دے أَيْ صَيْدُ مَا عَلَّمْتُمْ۔ یعني ښکار د هغه حیواناتو چه تاسو ورته تعلیم ورکړے وي۔
د ((جوارح)) نه مراد هغه حیوانات دي چه هغه انسان د ښکار کولو دپاره ساتي، او لیږي لکه سپے، پړانګ، باځه، باز شاهین وغیره۔
جوارح جمع د جَارِحَةٌ ده د جَرْحٌ نه اخستے شویدے، جرح په معنیٰ د کسب سره هم دے، او په معنیٰ د زخم سره هم، او دلته دغه حیوانات هم په خپلو پنجو او اندامونو سره کسب کوي او حیوانات زخمي کوي لکه د انسان اندامونو ته هم جوارح وائي ځکه چه دا د کسب آلات دي۔ او دے ته ئے جوارح ځکه وویل چه د ښکاري حیوان زخمي کول په ذبح او حلالولو الی کي د چاړه او د چاقو په شان دي۔
په آیت کي کلمه د ((مُكَلِّبِين)) په لام حرف باندے زیر او زور دواړه لوستلے شویدي چه په لام زیر وي نو معنیٰ به دا وي : چه هغه حیواناتو ته ددے فن ماهرینو تربیت ورکړے وي، او د زور په صورت کي به معنیٰ دا وي چه د هغه اموخته شوي حیواناتو د ښکار کړي حیوان د حلالیدو شرط دا دے چه هغوی ته به ښه تربیت ورکړے شوي وي او داسے خلقو به تربیت ورکړے وي چه ددے فن ماهرین وي۔
نو مكلبين په اول صورت کي حال دے د (عَلَّمْتُمْ) ضمیر نه یعني په داسے حال کي چه تاسو زغلونکي او لیږونکے یئ دغه ښکاري سپي وغیره لره۔
نو جمهور اهل علم وائي چه که یو ښکاري سپي د مالك د لیږلو نه په غیر یو ښکار ونیولو او مالك د هغے ذبح لاندے نکړه بلکه ښکاري سپي وژلے وو، نو ددے خوراك به حلال نه وي ځکه چه سپي پدے وخت کي د خپل ځان دپاره نیولے دے نه د مالك دپاره، ځکه چه د مالك څه عمل پکي رانغے، نو پدے باندے دا قول د نبي ﷺ نه صادقیږي چه [إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ الْمُعَلَّمَ] کله چه ته خپل تعلیم یافته سپے ولیږے، او دا مذهب د امام مالك او شافعيؒ او ابو ثورؒ او اصحاب الرائي دے۔ (القرطبی ٦٨/٦)
تکلیب : په معنیٰ د زغلولو او لیږلو سره دے۔ او مُكَلِّب مُعَلِّمُ الْكِلَابِ وَمُضَرِّيهَا ته وائي

یعنی سپو ته تعلیم ورکونکے او هغه په ښکار باندے تیزه ونکے او زغلونکے۔ ځینی وائی : مکلب : صائد (یعنی ښکاری) ته وائی۔ (القرطبی)

تُعَلِّمُوْنَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ أَیْ بِالْاَحَادِیْثِ النَّبَوِیَّةِ وَبِالْفِطْرَةِ۔ یعنی تاسو ته الله تعالیٰ تعلیم درکریدے په نبوی احادیثو سره او په فطرت سره او د تعلیم صورت دا دے چه سپے او مارغه وغیره ستا په خبره ځی، ښکار نیسی او ستا په خبره راواپس کیږی۔

تعلمونهن ددے جملے مضمون په (وما علمتم من الجوارح) کی ذکر شو خو دویم ځل ددے دپاره ذکر شو (والله اعلم) چه د ښکاری حیواناتو ښودنے او تعلیم ته پکار ده چه دوام ورکرے شی ورنه ښودل شوی آداب ترے هیریږی او بیرته عادی حالت ته واپس کیږی، ددے وجه نه ئے (تُعَلِّمُوْنَهُنَّ) د مضارع په صیغه سره استعمال کړه چه په تجدد باندے دلالت وکړی او دا ځکه چه د علم اصلی مستعد انسان دے۔

فَكُلُوْا مِمَّآ اَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ : یعنی هغه اموخته تربیت ورکړی شوی حیوانات چه کوم حیوانات ښکار کړی او د هغے څه حصه ئے نۀ وی خوړلی نو د هغے خوړل جائز دی اگرکه هغه ئے وژلے هم وی۔

## مسئله

که یو تن ښکاری سپے وغیره د ښکار پسے ولیږی او هغه ئے د مرئ په خفه کولو، یا زمکے ته په راوپشتلو مړ کړی او هیڅ زخم پرے نۀ وی، وینه ترے نۀ وی بهیدلی، نو آیا ددے خوراك حلال دے ؟ حافظ ابن کثیر رحمه الله پدے کی ډیر اُوږد اختلاف نقل کړیدے او آخر کی ئے دے ته ترجیح ورکړیده چه داسے قسم حیوان خوړل حلال نۀ دی، دلیل دا دے چه عدی بن حاتم ﷺ د رسول الله ﷺ نه په غشی باندے د ښکار کولو متعلق تپوس وکړو نو هغه وفرمایل : که د غشی په پلن طرف باندے ولگی او حیوان مړ کړی نو مه خوره)) (صحیحین) نو د غشی په زور سره یا د حیوان په زور سره مړ شوے ښکار به حلال نۀ وی ځکه د دواړو علت مشترکه یو دے۔ او دا قسم حیوان به د (مما امسکن علیکم) د عموم نه مستثنیٰ وی ځکه چه دغه عموم محفوظ نۀ دے ځکه چه (مما امسکن) کی هر مردار حیوان هم داخلیږی کوم چه په بندګانو حرام وی مگر هغه ترے په نورو نصوصو سره مستثنیٰ دے۔ دارنګه دا قسم ښکار د میته په حکم کی دے ځکه چه ددے وینه او ددے ردی رطوبات په همدے کی باقی پاتی شویدی، نو په کومه وجه چه مرداره حرامه ده همغه وجه دلته هم شته۔ دارنګه کوم حیوان چه د غشی په پلن طرف ولگی نو هغه به

نۀ خوړلے کیږی ځکه چه هغه وقیذ (ټکولے شوے) دے، او د وقیذ تحریم د آیت یو فرد دے نو دغـه شان که ښکاری سپے حیوان لره په خپل زور او بوج او سخت نیولو سره قتل کړی نو دا د نطیح (ټکولے شوی، په ډغره وهلے شوی) په حکم کی دے او حلال نۀ دے. البته که هغه زخمی کړی نو دا د تحلیل د آیت په حکم کی دے او یقیناً حلال دے۔

مګر راجح دا ده چه په حدیث د بخاری او مسلمؒ کي ددے اجازه راغلے ده، د عدیؓ په روایت کی دی : [اِذَا أَرْسَلْتَ كِلَابَكَ الْمُعَلَّمَةَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللّٰهِ فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ وَإِنْ قَتَلْنَ]

کله چه تـه تربیت یافتـه سپی ښکار پسے ولیږے او د الله نوم پرے یاد کړے نو خوره هغه ښکار چه تاں له ئے نیولے وی اګرکه هغه ئے وژلے وی۔ (صحیح بخاری : ۵۴۸۳)

وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ : یعنی د دغـه اموختـه حیواناتو ښکار ته د پریښودو نه مخکی بسم الله اُووایئ او دا بسم الله د هغه بسم الله قائمقام ده چه په وخت د ذبح کی وئیلے کیږی۔

امام بخاریؒ په کتاب الذبائح والصید کی د عدی بن حاتم ؓ نـه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل : ((کـه تـه خپل تعلیم یافتـه سپے پریدے او بسم الله اُووائے نو کوم ښکار چه هغه ستا دپاره اُونیسی هغه خوره اګرکه هغه مړ کړی))۔

معلومه شوه چه د داسے ښکار د حلالیدو دپاره دوه شرطونه دی : یو دا چه په دغه ښکاری حیوان ئے د پریښودو نه مخکی بسم الله وئیلی وی، او دویم شرط دا دے چه د ښکار شوی حیوان څه حصـه به دے ښکاری حیوان نۀ وی خوړلی۔ البتـه که د رانیولو دپاره ئے پرے هسے چکونه لګولی وی او خوراك ئے نۀ وی کړے نو جائز ده۔ او نور شرطونه دا دی چه تا به لیږلے وی، بل دا چه سپے به ښکاری وی۔

امام احمدؒ او ابوداوؒد د عدی بن حاتم ؓ نـه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : ((کـه تـه یو سپے یا باز اموختته کولو سره ښکار پسے پریدے او بسم الله اُووائے نو کوم ښکار چه هغه ستا دپاره ساتلے اُونیسی نو هغه خوره۔

عدیؓ وائی : اګرکـه هغه ئے وژلے وی ؟ نبی ﷺ اُوفرمایل : اګرکه هغه ئے وژلے وی، او د هغے څه حصه ئے نۀ وی خوړلی، نو ګویا که هغه دا ستا دپاره رانیولے وو))۔

امام بخاریؒ د عدی بن حاتم ؓ نه روایت کړیدے چه ما د نبی کریم ﷺ نه تپوس اُوکړو، نـو هغه وفرمایل چه ((کـه تـه خپل تعلیم ورکړے شوے سپے ښکار پسے پریدے او هغه ئے قتل کړی نو هغه خورۀ او که د هغے نه ئے څه اُوخوړله نو مۀ خوره، ځکه چه هغه د خپل ځان دپاره نیولے وو۔ ما اُووئیل چه زۀ خپل سپے پریدم نو د هغه سره یو بل سپے ملګرے

شي ؟ نو نبي كريم ﷺ اُوفرمايل چه مه خوره ځکه چه تا د خپل سپي دپاره بسم الله وئيلے وه نهٔ د نورو دپاره.

امام بخاريؒ د عدي بن حاتم ﷺ نه په كتاب الذبائح والصيد كې روايت كړيدے چه ما اُووئيل چه اے د الله رسوله ! مونږ تعليم يافته سپي د ښكار پسے پريدو ؟

نو نبي ﷺ اُوفرمايل : ((كوم ښكار چه هغه ستا دپاره اُونيسي، هغه خوره ، ما تپوس اُوكړو چه اګركه هغه ئے وژلے وي؟ نبي ﷺ اُوفرمايل : اګركه هغه ئے وژلے وي.

ما تپوس اُوكړو چه مونږ په پلن غشي سره ښكار كوو؟ نو وے فرمايل چه كه د هغے تيرهٔ طرف د هغه په بدن كې داخل شي نو هغه خوره او كه په پلن طرف سره په ښكار اُولګي نو مهٔ خوره)). (بخاري : ٥٤٧٧)

**فائده** : هر كله چه په سپي باندے ښكار او هغه ته تعليم وركول جائز شو نو د بعض سپو ساتل هم جائز دي چه په احاديثو كې د هغے نه درے قسمه ذكر شويدي، ابو هريره ﷺ فرمائي رسول الله ﷺ وفرمايل : [مَنْ أَمْسَكَ كَلْبًا يُنْقَصُ مِنْ عَمَلِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطٌ إِلَّا كَلْبَ حَرْثٍ أَوْ كَلْبَ مَاشِيَةٍ وَفِي رِوَايَةٍ : إِلَّا كَلْبَ غَنَمٍ، أَوْ حَرْثٍ أَوْ صَيْدٍ]

چا چه سپے وساتلو د هغه د عمل نه به هره ورځ يو قيراط كميږي سوئ د فصل يا د ګډو بزو يا د ښكار سپي نه. (بخاري : ٢٣٢٤و٢٣٢٢)

وَاتَّقُوا اللهَ: دے تقوىٰ كې د دغه شرطونو رعايت ته اشاره ده، او د سعيد بن جبير نه نقل دي چه پدے كې دا حكم دے چه په كوم حيوان باندے بسم الله نهٔ وي ذكر شوي نو هغه حلال مهٔ ګڼړئ. (احسن الكلام)

| اَلْيَوْمَ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا |
|---|
| نن ورځ حلال كړے شويدي تاسو لره پاك څيزونه او خوراك د هغه كسانو چه وركړے شويدے |
| الْكِتَابَ حِلٌّ لَّكُمْ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ وَالْمُحْصَنَاتُ |
| كتاب حلال دے ستاسو دپاره او خوراك ستاسو حلال دے د هغوي دپاره او پاكدامنے ښځے |
| مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلِكُمْ |
| د مؤمنو ښځو نه او پاكدامنے د هغه كسانو نه چه وركړے شويدے كتاب مخكې ستاسو نه |

| إِذَا آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ مُحْصِنِينَ غَيْرَ |
| --- |
| کله چه ورکوئ تاسو هغوی ته مهرونه د هغوی، نکاح کونکی به یئ نهٔ به یئ |
| مُسَافِحِينَ وَلَا مُتَّخِذِي أَخْدَانٍ وَمَن يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ |
| بد کاری کونکی او نهٔ به یئ نیونکی د پټو یارانو او څوك چه کافر شو په ایمان باندے |
| فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴿٥﴾ |
| پس یقیناً برباد شو عمل دده او دا به په آخرت کی د تاوانیانو نه وی۔ |

**تفسیر**: نور مُحللات (حلال شوی څیزونه) بیانیږی۔

اَلْيَوْمَ : دا جمله ئے دوباره راواپس کړه پدے کی په امت مسلمه باندے بیا امتنان (احسان) غرض دے، او بل تاکید غرض دے۔ او د روستو (وَطَعَامُ الَّذِيْنَ ) دپاره د مقدمے په طور دے۔

الیوم نه مراد حاضر وخت دے۔

الطَّيِّبٰتُ : ددے طیبات نه مراد په مخکښې آیت کی ذکر شوی طیبات دی، یا دا چه مخکی د ذبائحو د انواعو متعلق طیبات مراد وو او دلته نور پاك خوراکونه مراد دی۔

وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا : دلته په اتفاق د مفسرینو د طعام نه مراد ذبائح (ذبح شوی حیوانات) دی او دا د ابن عباسؓ، مجاهدؒ او سعید بن جبیرؒ وغیره نه روایت شویدی۔ وجه دا ده چه بغیر د ذبائحو نه د ټولو کافرانو طعام حلال دے لکه مثلاً چینیان، بدھ مت وغیره باطل دین والا یو مسلمان ته خوراکی مواد ورکړی مسلمان له د هغے استعمالول جائز دی ترڅو چه په هغے کی بل څه شرعی مانع نهٔ وی موجود۔ (القاسمی)

## آیا د اهل کتابو ذبائح حلال دی؟

بیا د اهل کتابو ذبائح ولے حلال کړے شو؟ وجه دا ده چه اهل کتاب د مسلمانانو سره په اصل دین توحید کی شریك دی، د یهود او نصاراؤ دین هم توحید وو، او بله دا چه دوی هم د مسلمانانو په شان د غیر الله دپاره ذبح حرامه ګنړی۔ او اګرکه دوی د الله سره نور شریکان کوی او د هغه دپاره اولاد ګنړی لیکن د ذبح په وخت د الله نوم اخلی۔

مګر هغوی خپل اصلی دین بدل کړے او اکثر پکی دهریان شویدی چه د هیڅ دین قائل نهٔ دی، او ډیر پکی بت پرست ګرځیدلی دی، نو که هغوی په مشین باندے ذبحه وکړی

هغه به حلاله نهٔ وی۔ یا داسے ذبحه وکړی چه قصداً د الله نوم یاد نکړی یا د بل چا د نوم آواز پرے پورته کړی، یا د حیوان په مرئ زور وکړی او مرئے کړی نو د هغے خوراك به جائز نهٔ وی۔ او که په یقین سره دا معلومه نهٔ وی چه هغوی بسم الله وئیلے ده یا نهٔ نو د هغے خوراك نهٔ حرامیږی۔ (الفقه الاسلام وادلته)

دلیل پرے دا دے چه رسول الله ﷺ د هغه وریتے شوے چیلئ غوښه اُوخوړه چه یهودئ (زنانه) د هغه دپاره د خیبر د فتح په ورځ د تحفے په شکل رالیږلے وه او په هغے کی ئے زهر اچولی وو۔ (صحیح البخاری :۲۶۱۷) او الکیا الطبریؒ او ابن کثیرؒ ددے روایت نه دلیل نیولو سره د داسے ذبیحے د خوړلو په حلالوالی باندے د اسلام د علماؤ اجماع نقل کړیده۔

استدلال داسے دے چه دلته رسول الله ﷺ دا تپوس ونکړو چه تاسو پدے باندے بسم الله وئیلے ده او که نهٔ ؟۔

او بل دلیل : د عبد الله بن مغفل ؓ هغه حدیث دے چه بخاریؒ او مسلمؒ روایت کړیدے چه د خیبر په ورځ هغوی ته د وازدے یوه کسوړه (حَلته) ملاؤ شوه چه هغه هغوی ځان دپاره اُوساتله او وے وئیل چه زهٔ به ددے نه هیچا له څه نهٔ ورکوم، رسول الله ﷺ چه دا واوریدل نو وے خندل۔ (ابن کثیر)

دارنګه رسول الله ﷺ ته یو یهودی دعوت وکړو نو هغه ته ئے د غنمو روټئ او وچه وازده (چربی) پیش کړه۔ (احمد ۳/ ۲۱۱،۲۱۰ صحیح بخاری کتاب البیوع : ۲۰۶۹)

دلته هم رسول الله ﷺ تپوس ونکړو چه تاسو چه د کوم حیوان وازده پیش کړه ددے د ذبح په وخت کی تاسو بسم الله وئیلے ده او که نهٔ او آیا دا ستاسو په دین کی حرامه وازده ده او که حلاله؟۔

علامه شوکانیؒ د هغه ذبائحو په باره کی چه هغه په بسم الله وئیلو سره نهٔ وی ذبح کړے شوی، یا د بل په نوم اخستو سره ذبح کړے شوی وی د اسلام د علماؤ اختلاف بیان کړیدے او د سیدنا علی، عائشه او ابن عمر رضی الله عنهم وغیرهم قول ئے نقل کړیدے چه که کتابی د ذبح په وخت د غیر الله نوم واخستو نو هغه مهٔ خورئ۔

محمد الدلیمی السوسی المالکیؒ په خپله فتاوی کی د ابوبکر ابن العربیؒ دا قول نقل کړیدے چه که یو نصرانی د چرګ سر پریکړی نو مسلمان دپاره د هغے خوراك حلالیږی ځکه چه الله تعالیٰ د هغوی خوراك زمونږ دپاره حلال کړیدے۔ او که هغوی د خپل دین مطابق یو حیوان ذبح کوی نو زمونږ دپاره د هغے خوراك حلالیږی، دا څه ضروری نهٔ ده

چه هغوی ز مونږ په شان ذبح اُوکړي، ځکه چه دا د الله د طرف نه رخصت او آسانی راکړے شویده. ددے نه به هغه شے مستثنیٰ وی چه هغه الله په ښکاره توګه حرام ګرځولے دے.
(تیسیر الرحمن)

علامه بغویؒ وائی : که یو نصرانی یا یهودی د غیر الله په نوم ذبح وکړی لکه نصرانی د عیسیٰ علیه السلام نوم واخلی نو په دے کی اختلاف دے. سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه وائی حلال نهٔ دے او دا قول د ربیعهؒ دے او اکثر اهل علم وائی چه حلال دے او دا قول د شعبیؒ، عطاءؒ، زهریؒ، او مکحولؒ دے،

د شعبیؒ او مکحولؒ نه ددے په باره کی تپوس وشو نو هغوی وویل : حلال ده ځکه چه الله تعالیٰ د دوی ذبائح مونږ دپاره حلال کړیدی او هغه پوهه دے په هغه خبرو چه اهل کتاب ئے وائی.

او حسن بصریؒ وائی چه کله یهودی یا نصرانی ذبح کوی او د غیر الله نوم واخلی او ته ئے واورے نو مه ئے خوره او کله چه ستا نه غائب وی نو خوره ئے ځکه چه الله تعالیٰ تا دپاره حلال کړیدے.(معالم التنزیل للبغوی ۱۸/۳)

لیکن راجح دا ده چه یو مسلمان چه بسم الله پریدی یا مشینی ذبح وکړی یا د غیر الله نوم واخلی هغه مرداره ده نو د اهل کتابو هم مرداره ده، او د هغوی ذبح هغه وخت جائز ده چه ښکاره د دین خلاف نهٔ وی، دلیل پرے دا قول د الله تعالیٰ دے :

﴿ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ ﴾ او د بعض سلفو دغه قول کمزورے دے.

**وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ** : اَیْ فِیْ اَنْ تُطْعِمُوْهُمْ.(زجاج- بغویؒ)

یعنی د مسلمانانو ذبائح د اهل کتابو دپاره حلال دی، یعنی د مسلمانانو دپاره دا حلال دی چه هغوی په اهل کتابو باندے خپله ذبیحه اُوخوروی کله چه حربی کافر نهٔ وی.

دا دفع د وهم ده چه زمونږ ددے سره څه تعلق دے چه زما طعام د اهل کتابو دپاره حلال دے، هغوی دپاره حلال وی او که حرام زمونږ ورسره څهٔ؟ په بل عبارت : پدے احکامو مونږ مکلف یو نهٔ اهل کتاب، او ددے نه خو معلومیږی چه اهل کتاب که ستاسو ذبائح خوری نو هغوی پرے نهٔ ګناهګاریږی؟ نو دا وهم په دغه قید سره ختم شو.

ددے نه معلومه شوه چه د کافرو سره دنیاوی تعلقات ساتل او اخلاق کول جائز دی.

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه دا د باب د مکافات او بدلے نه دے ځکه چه هر کله تاسو ته اهل کتاب څه تحفه راولیږی، نو د هغوی بدله ورکول جائز شو لکه رسول الله ﷺ عبد

الله بن ابی ابن سلول ته قمیص واغوستو کله چه هغه وفات شو څکه چه هغه عباس رضی الله عنه ته قمیص ورکړے وو کله چه هغه مدینے ته راغلے وو- نو نبی ﷺ ورله بدله خلاصه کړه، او په کوم حدیث کی چه راغلی دی [وَلَا يَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّا تَقِيٌّ] ستا طعام دِے متقی وخوری- نو هغه په استحباب باندے حمل دے آه- (ابن کثیر ۴۱/۳)

او بل مطلب ئے دا دے چه د متقیانو سره ملګرتوب کوه-

امام بغویؒ په تفسیر معالم کی لیکی: روستو ئے د زنانو حکم ذکر کړیدے او دا ئے نهٔ دی ذکر کړی چه مسلمانانے ښځے د هغوی دپاره حلالے دی نو ګویا که داسے ئے وفرمایل: حَلَالٌ لَكُمْ أَنْ تُطْعِمُوهُمْ حَرَامٌ عَلَيْكُمْ أَنْ تُزَوِّجُوهُمْ] ستاسو دپاره هغوی ته طعام ورکول حلال دی مګر هغوی ته خور لور په نکاح ورکول حرام دی-

وَالْمُحْصَنٰتُ: ((محصنات)) نه مراد پاکدامنے مسلمانے ښځے دی چه هغوی زنا نهٔ وی کړی- اګرکه نوره بزرګه مؤمنه وی خو چه زناکاره وی نو نکاح ورسره نهٔ ده جائز-

## د اهل کتابو د ښځو سره نکاح کول

وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ : دلته د محصنات نه مراد د اهل کتابو پاکدامنے ښځے دی، چه هغوی زنا نهٔ وی کړی- امام شعبیؒ وائی: د کتابیه احصان دا دے چه د زنا نه ځان ساتی او د جنابت نه غسل کوی-

ابن جریرؒ د سلفو علماؤ دیو جماعت قول نقل کړیدے چه ددے نه مراد هره پاکدامنه کتابیه ده، که آزاده وی او که وینځه- ځینو خلقو د محصنات نه مراد آزادے کتابی ښځے اخستی دی، د هغوی په نیز د کتابیه وینځے سره نکاح کول جائز نهٔ دی-او دا قول امام مجاهدؒ طرفته منسوب دے- (ابن کثیر) او همدا ظاهر دے، دلیل پرے دا قول د الله تعالیٰ دے: ﴿وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا أَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنٰتِ فَمِمَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ مِّنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ﴾ (النساء:۲۵) نو دلته ئے د وینځے د نکاح سره قید د ایمان ولګولو-

بیهقیؒ، عبد الرزاقؒ او ابن جریرؒ وغیرهم د سیدنا عمر ﷺ قول نقل کړیدے چه مسلمان د نصرانیه ښځے سره واده کولے شی لیکن نصرانی سرے د یوے مسلمانے ښځے سره نکاح نشی کولے-

ډیرو صحابه کرامو د نصرانی ښځو سره نکاح کړے وه او په هغوی باندے هیچا انکار نهٔ دے کړے- عثمان ﷺ د نائله بنت الفرافصه سره واده کړے وو چه نصرانیه وه- طلحه بن

عبيد الله ﷺ د يو يهودۍ ښځې سره واده کړې وو چه د شام نه وه. القاسميؒ)

ابن عمر رضي الله عنهما به نصرانيه زنانو سره نکاح ناجائز ګڼړله او فرمايل به ئې چه ددې نه لوئې شرك بل کوم کيدې شي چه عيسیٰ ﷺ خپل رب ګڼړي. (صحيح بخاری کتاب الطلاق: ٥٢٨٥)

او هرکله چه دوی مشرکان شو او د مشرکانو ښځو سره نکاح قرآن منع کړيده.

او ابن ابی حاتمؒ د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت کړيدې چه هر کله د مشرکو ښځو سره د نکاح نۀ کولو حکم نازل شو نو صحابه کرامؓ ددې نه منع شو تردې چه ددې نه روستو آيت د اهل کتابو د پاکدامنو ښځو سره د نکاح کولو په رخصت کې نازل شو نو صحابه کرامؓ د اهل کتابو ښځو سره نکاح وکړه.

(المعجم الکبير للطبراني (١٢٦٠٧ وابن ابی حاتم وسنده حسن) (ابن کثير)

سيدنا حذيفه ﷺ د يوې کافرې يهودۍ ښځې سره نکاح وکړه، سيدنا عمر فاروق ﷺ ورته وليکل چه دا پريږده، هغه ووېل : آيا دا حرامه ده ؟ دۀ ووېل : نۀ ! حرامه نۀ ده خو زۀ يريږم چه چرته به عفته ښځه په نکاح وانه خلې يعنی کافران خو د عفت چندان خيال نۀ ساتي. (القاسمي)

اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ : د کتابيه ښځو سره د نکاح د جواز دپاره شرط لګولې شويدې چه د هغوی مهر به ادا کړې شوی وی او مقصد به نکاح کول او عفت حاصلول وی، په ښکاره يا پټه سره به د زنا کولو نيت نۀ وی.

حافظ ابن کثير رحمه الله ليکلی دی چه پاکدامنی لکه څنګه چه په ښځه کې شرط ده نو دغه شان په سړی کې هم شرط ده. پدې وجه الله تعالیٰ ﴿ غَيْرَ مُسَافِحِيْنَ ﴾ اُووئيل يعنی واده کونکی سړی دپاره دا شرط دې چه هغه به زانی نۀ وی.

**فائده** : د اهل کتابو د زنانو سره نکاح ولې جائز شوه ؟ پدې کې حکمت دا دې (والله اعلم) چه د اسلام دعوت عام شی څکه چه ښځه د خاوند نه متأثره وی، مسلمان خاوند به هغې ته د اسلام خوبيانی بيان کړی او دعوت به ورکړی، نو اسلام به قبول کړی، دارنګه که انکار کوی نو تورات يا انجيل به پسې راواخلی چه پدې کې ئې د دين اسلام صفت بيان کړيدې نو اسلام به قبول کړی، دارنګه دا خاوند به خپلې سخرانې کره څې راځي نو هغوی ته به د اسلام دعوت ورکړی، کيدې شي چه ددۀ په وجه اسلام ته راشي.

ليکن پدې زمانه کې اهل کتابو خواهشات ډير فراخه کړيدی نو ډير مسلمانان چه د

هغوی سره نکاح وکړی نو دوی خان سره خراب کړی، اسلام ورته په وحشیانه انداز سره بد ښکاره کړی، او خپل خان ورته بشر دوست او تربیت یافته ښکاره کړی، او بل فساد دا چه ددهٔ بچی بیا د حکومتونو په قبضه کی وی، خپل صحیح تربیت ته ئے نهٔ پریدی بلکه هغوی ئے گمراه کړی، نو پدے کی ډیر لوی ضررونه دی، ددے نه حتی الوسع خان ساتل پکار دی لکه تجربه پدے خبره شاهده ده، البته که یو انسان بیخی مجبوره شی، د زنا خطره زیاته شی نو بیا جائز ده۔

مُسٰفِحِیْنَ : سفاح ښکاره زنا کول دی۔

اَخْدَانِ : جمع د خِدْنٌ ده پټ دوست چه د عشق په طور د هغه سره پټه بدکاری کوی۔ خِدْن لفظ په مذکر او مؤنث دواړو کی شریك دے۔

وَمَنْ یَّکْفُرْ بِالْاِیْمَانِ : دا جواب د سوال دے، که څوك ووائی چه د یهود او نصاراؤ ښیزونه استعمالول او د هغوی د زنانو سره نکاح کول جائز شو نو د هغوی دین به ښه وی؟ نو الله وفرمایل چه دغه ښیزونه د اهل کتابو جائز دی لیکن دین ئے برباد دے، ځکه چه دوی کفر د ایمان سره گډوډ کړیدے، نو که څوك د هغوی دین قبول کړی نو لوی تاوانی شو۔

یعنی فقط دا دنیاوی احکام دی او په آخرت کی هر کافر تباه دے، که نیك عمل هم کوی نو نهٔ قبلیږی۔ (القرطبی)

دارنگه دا سوال ذهن ته راځی چه د اهل کتابو ښځے به څنگه په نکاح کی جائز شی حال دا چه هغوی خو زمونږ د دین مخالف دی؟ نو جواب وشو چه الله تعالیٰ ښه معلومه ده چه کفر ډیر بد شے دے انسان پرے تاوانی کیږی مگر په دنیا کی ئے مسلمانانو ته د هغوی د زنانو سره نکاح جائز کړه د مسلمانانو د فائدے دپاره۔ (المنار)

دارنگه ددے مناسبت په وجه هم دا ووبل شو چه د کتابی ښځو سره نکاح کولو اجازه وشوه نو ددے فائده دا کیدل پکار دی چه د ښځے په زړه کی د مؤمن حقانیت کینی او اسلام قبول کړی نهٔ دا چه یو تن په کتابیاتو باندے فتنه کی واقع شی او اتله خپل ایمانی سامان پریدی او دنیا په آخرت غوره کړی او خسر الدنیا والآخره وگرځی، او چونکه د کافرے ښځے سره په نکاح کولو کی ددے فتنے قوی احتمال کیدے شی پدے وجه ئے (ومن یکفر بالایمان) تهدید ډیر په محل کی ذکر کړو۔

د من یکفر بالایمان څه مطلب؟ ۱– نو یو مطلب دا دے چه [مَنْ یُّخْتَلِطِ الْکُفْرَ بِالْاِیْمَانِ] چا چه د ایمان سره کفر یو ځای کړو چه الله هم منی او خپل معبودان هم، خپل رسولان

مني او د آخري رسول نه انکار کوي۔

٢- يا د ايمان نه مراد د اسلام احکام دي۔ او مقصود د الله د حلال کړي او حرام کړي څيزونو عظمتِ شان بيانول او هغه خلقو ته تنبيه ورکول دي چه ددے الهي احکامو مخالفت کوي۔ يعني چا چه انکار وکړو د اسلام ددے احکامو نه نو عمل ئے برباد او دے تاوني شو۔ (ابوسليمان الدمشقيؒ) (البحر المحيط)

٣- ابن عباسؓ او مجاهدؒ وائي : [وَمَنْ يَكْفُرْ بِاللّٰهِ الَّذِيْ يَجِبُ الْإِيْمَانُ بِهٖ]

چا چه کفر وکړو په هغه الله باندے چه په هغه باندے ايمان لرل واجب دي۔ يعني د ايمان نه مراد مؤمن به دے۔ ٤- کلبيؒ وائي : بِكَلِمَةِ التَّوْحِيْدِ وَهِيَ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ۔

د ايمان نه مراد کلمه د توحيد ده۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ |
| اے ايمان والو ! کله چه تاسو پاڅيږئ مانځه ته نو ووينځئ مخونه خپل او لاسونه خپل |
| إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوْا بِرُؤُوْسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ وَإِنْ |
| تر څنګلو پورے او مسه کوئ په لوندو لاسونو خپلو او پښو خپلو تر ګيټو پورے او که چرته |
| كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَى أَوْ عَلَى سَفَرٍ |
| يئ تاسو ناپاکه (جنب) نو ځان پاک کړئ (په غسل سره) او که يئ تاسو بيماران يا په سفر باندے |
| أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا |
| يا راشي يو تن ستاسو نه د اودس ماتي نه يا مسه کړي وي تاسو ښځو لره او نۀ موندۀ کوئ |
| مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَأَيْدِيْكُمْ مِنْهُ |
| اوبه نو تيمم وکړئ په خاوره پاکه پس مسه وکړئ په مخونو او په لاسونو خپلو ددے خاورے نه |
| مَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ وَلٰكِنْ يُرِيْدُ لِيُطَهِّرَكُمْ |
| نۀ غواړي الله چه مقرر کړي په تاسو باندے تنګسيا ليکن غواړي چه پاک کړي تاسو |
| وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٦﴾ |
| او دے دپاره چه پوره کړي نعمت خپل په تاسو باندے دے دپاره چه شکر اوکړئ۔ |

**تفسير** : ددې ځای نه بل عقد بيانيږي چه هغه د طهارت په باره کې دې چه اې ايمان والو ! ځانونه پاك کړئ.

مناسبت: ۱- مخکې هم عقود بيان شو اُوس بل عقد بيانيږي.

۲- مخکې طهارت باطني وو يعني د حلال او حرام تميېز کول نو اُوس ظاهري طهارت بيانوي او پدې سره باطني طهارت هم راځي چه ګناهونه پرې زائل کيږي. په بل تعبير هلته دنياوي نظافت وو دلته اخروي نظافت بيانيږي.

۳- دارنګه پدې آيت کې رخصتونه ذکر کيږي چه دا د اتمام نعمت يوه حصه ده.

د نيشاپوريؒ د قول مطابق پدې آيت کې (٦٨) احکام دي او علامه قرطبيؒ (۳۲) احکام ليکلي دي، مګر تفصيلات ئې ددې نه هم زيات دي.

## شان نزول

په يو اُوږد حديث کې دي چه عائشه رضي الله عنها د نبي کريم ﷺ سره بني المصطلق غزا ته تلې وه، دوی په البيداء مقام کې وو چه د هغې نه د غاړې هار ورك شو، ملګرې د هغې د پيدا کولو دپاره ګرځيدل چه پدې سره تول قافله ايساره شوه چه په دغه ځای کې نه اُوبه وې او نه د قافلې والو سره وې، پدې وجه ابوبکر صديق ﷺ خپلې لور (عائشېؓ) ته غصه شو چه د يو هار دپاره دې تول قافله پدې شاړ ميدان کې ايساره کړيده !! نو الله تعالیٰ په دغه وخت کې دا آيت کريمه نازل کړو او تيمم جائز وګرځولې شو. (صحيح بخاري)

د اودس حکم اګرکه د مخکې نه وو ليکن دلته ئې تلاوت نازل شو او د تيمم حکم نوې راغلو. او ځينې مفسرينو دا شان نزول د سورة النساء د آيت په باره کې ليکلې دې، ليکن د سلف صالحينو دا طريقه وه چه هغوی به په مصداقاتو باندې هم د شان نزول اطلاق کولو کما في القاسمي ۲۷/۱ والمنار ٦٤٢/۹) نو په دوارو آيتونو کې د تيمم تشريع شويده او ذکر شوې واقعه د دوارو آيتونو دپاره ډير مزيدار مصداق جوړيدلې شي.

## فوائد الآيات

**اِذَا قُمْتُمْ** : دلته ذکر د قيام دې او مراد ترې نه اراده د قيام ده، ځکه چه کله سړې مانځه ته ودريږي نو بيا خو مخ لاسونه وينځل نه کيږي. او دا مراد ځکه اخلو چه قيام فعل د بنده دې او د هر بنده فعل مسبوق بالاراده وي، (مخکې اراده غواړي)

فَاغۡسِلُوۡا وُجُوۡهَكُمۡ : دا امر د وجوب دپاره هم دے او د استحباب دپاره هم، په طريقه د عموم مشترك سره پدے طريقه چه كه د يو شخص اودس وى نو امر استحبابى دے، او كه اودس د مخكى نه نۀ وى نو امر وجوبى دے، او دليل پدے باندے قول او عمل د رسول الله ﷺ دے چه كله به د هغه اودس وو نو دوباره اودس كول ئے لازم نۀ دى گنړلى۔ مسند احمدؒ وغيره كى دى چه رسول الله ﷺ به هر مانځه ته تازه اودس كولو، د مكے د فتح په ورځ ئے اودس وكړو او په موزو باندے ئے مسح وكړه او په همدے يو اودس باندے ئے ډير مونځونه وكړل، نو عمر فاروق ﷺ ورته ووئيل : اے د الله رسوله !

[صَنَعۡتَ الۡيَوۡمَ شَيۡئًا لَمۡ تَكُنۡ تَصۡنَعُهُ]

نن تا داسے كار وكړو چه مخكى به دے نۀ كولو۔ رسول الله ﷺ وفرمايل :

[عَمۡدًا صَنَعۡتُهُ يَا عُمَرُ] اے عمره ! (ما په هيره سره داسے نۀ دى كړى بلكه) ما قصداً داسے وكړل۔ (صحيح مسلم كتاب الطهارة باب جواز الصلوات كلها بوضوء واحد رقم : ٢٧٧، ابوداود : ١٧٢، ترمذى : ٦١، احمد : ٥/٣٥٠)

لهذا دے قيد ته ضرورت پاتے نشو چه بعض علماء ئے لگوى [اِذَا قُمۡتُمۡ اِلَى الصَّلٰوةِ وَاَنۡتُمۡ مُحۡدِثُوۡنَ] كله چه تاسو مانځه ته ودرېږئ او بے اودسه يئ نو مخونه وينځئ ځكه چه (فَاغۡسِلُوۡا) امر استحبابى دے كله چه اودس د مخكى نه موجود وى۔

ددے په باره كى د علماؤ مختلف اقوال حافظ ابن كثير دلته ذكر كړيدى : (١) چا د مانځه دپاره اودس ضرورى گنړلے دے، برابره ده چه د انسان اودس باقى وى او كه مات شوے وى۔ (٢) ځينو نورو وئيلى دى چه په آيت كى هر مونځ نه مخكى د اودس حكم د استحباب دپاره دے۔

(٣) يو بل دريم ډلے وئيلى دى چه ددے آيت مطابق د هر مانځه نه مخكى اودس كول ضرورى وو ليكن د مكے د فتح په وخت دا حكم منسوخ شو۔

مگر دے اقوالو ته هيڅ ضرورت نشته۔

د جمهورو اهل علمو رائے ده چه اودس صرف په هغه شخص باندے واجب دے چه د هغه اودس مات شوے وى۔ امام شوكانىؒ همدے رائے ته ترجيح وركړيده۔

**فائده :** بعض علماء كرامو ددے آيت نه دليل نيولو سره په اودس كى نيت واجب گنړلے دے ځكه چه د آيت معنىٰ دا ده چه كله د مانځه دپاره د اودريدو اراده اُوكړئ نو خپل مخونه اُووينځئ۔

د اودس شروع کولو نه مخکې بسم الله وئيل ضروري دي. احمدؒ، ابوداودؒ او ابن ماجهؒ وغيره هم د ابو هريرهؓ نه روايت کړيدے [لَا وُضُوءَ لِمَنْ لَمْ يُسَمِّ] چه چا د اوداسه په ابتداء کې بسم الله ونه وئيله نو د هغه اودس نۀ کيږي. (ابوداود: ۱۰۱، ابن ماجه: ۳۹۹)

شيخ الباني رحمه الله دا په ارواء الغليل: ۸۱) کې حسن ګرځولے دے.

لوښي ته د لاس ننويستلو نه مخکې درې واره لاسونه وينځل مستحب دي. او د خوب نه رابيداريدو نه روستو داسے کول ضروري دي. ځکه چه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: ((کله چه ستاسو نه يو تن د خوب نه راپاڅيږي نو لاس دې دے درے ځلو وينځلو نه مخکې اوبو ته نۀ داخلوي ځکه چه دا نۀ پو هيږي چه ددۀ لاس چرته شپه تيره کړيده)). (متفق عليه).

په اوداسه کې مخ وينځل واجب دي او هغه د سر د ويختو راختلو ځاى نه تر لاندے د زنے پورے او د غوږ نه تر غوږ پورے ځاى دے. که ګيره ګنړه وي نو په هغے کې ګوتے داخلولو سره خلال کول مستحب دي. امام احمدؒ د شقيقؒ نه روايت کړيدے چه عثمان ؓ درے ځله په ګيره کې خلال اُوکړو او وے وئيل چه ما رسول الله ﷺ پداسے کولو سره ليدلے وو. (الدارقطني رقم: ۳۲/۳٤) ورقم (۲۸٦) والبزار) بسند حسن- صحيح ابي داود: ۹۸)

د دواړو لاسونو وينځل هم واجب دي او د زياتو عالمانو په نيز په لاس کې څنګلے هم داخل دي. امام مسلمؒ د ابو هريره ؓ نه روايت کړيدے چه هغوى ښے او ګس لاس د څنګلو نه بره مټ پورے اُووينځلو. او د اوداسه نه فارغ کيدو نه روستو ئے اُووئيل چه په داسے اودس کولو ما رسول الله ﷺ ليدلے دے. د جمهورو رائے دہ چه ښے لاس په ګس لاس مقدم کول سنت دي. که يو شخص ددے خلاف اُوکړي نو دۀ ته به د سنت فضيلت نۀ حاصليږي، ليکن اودس به ئے صحيح وي. د جمهور اهل علمو مسلك دے چه په زخم يا مات شوي هډوکي باندے تړلے شوے پټئ باندے مسح کول صحيح دي.

ابوداودؒ او دارقطنيؒ د جابر بن عبد الله ؓ نه روايت کړيدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل: ((د هغه دپاره دا کافي وه چه تيمم ئے کړے وے او په زخم ئے پټئ تړلو سره په هغے باندے مسح کړے وے او باقي بدن ئے وينځلے وے)).

په ټول سر باندے مسح کول واجب دي، او دا راجح قول دے، او دا قول د امام مالكؒ، او امام بخاريؒ وغيره دے او شيخ الاسلام ابن تيميهؒ او حافظ ابن قيمؒ او ابن کثيرؒ وغيره محققينو راجح ګرځولے دے، د رسول الله ﷺ نه هيڅکله د سر په بعض حصه باندے مسح ثابت نۀ ده، او په کوم ځاى کې چه راغلے ده نو هلته ئے اتمام په پټکي باندے کړيدے او صرف په

بعض حصه باندے مسح چه په غیر د تکمیل نه په پتکی وی هیڅکله ثابته نهٔ ده۔
لکه امام مسلمؒ د مغیره بن شعبه ﷺ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ په خپل تندی او پټکی باندے مسح اُوکړه او په دوارو موزونے مسح اُوکړه۔
حافظ ابن القیم رحمه الله په ((زاد المعاد)) کی لیکلی دی چه په هیڅ یو حدیث سره هم دا ثابت نهٔ دی چه رسول الله ﷺ صرف د سر په بعض حصه باندے مسح کړے ده بلکه که نبی ﷺ به په تندی مسح کوله نو په پټکی به ئے مسح پوره کوله، آؤ، د هر ویښته راګیرول ضروری نهٔ دی لیکن په مجموعه سر باندے مسح ضروری ده او په همدے قول باندے عمل کولو کی احتیاط دے۔
امام ابن کثیرؒ په خپل تفسیر کی د ټول سر د مسح په فرضیت باندے ډیر احادیث ذکر کړیدی او بیا ئے دے ته ترجیح ورکړیده۔
او دلته برؤوسکم : کی باء د تکمیل او د الصاق دپاره ده۔ لکه عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا اَیْ يُرْوَى مِنْهَا۔ که باء نهٔ وی نو نفس شکل مراد دی او د باء سره کامل شکل چه د هغے په وجه مرښ راشی۔ او باء د تبیعض دپاره اختتل په محل د نظر کی دی۔
وَاَرْجُلَكُمْ اِلَى الْكَعْبَيْنِ : پدے کی دوه قراء ته دی (۱) د لام نصب (زور) دے۔ (۲) او یو قرائت کی د اَرْجُل په لام زیر دے۔ که په زور سره شی نو دا به عطف وی په (وُجُوهَكُمْ) باندے نو د خپو وینځل به هم فرض وی، د ټول اهل اسلام مذهب همدا دے چه د سر د مسح نه روستو د دوارو خپو وینځل واجب دی۔ او ددے قرأت په بناء جمهورو په اوداسه کی ترتیب واجب ګرځولے دے۔ د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ترتیب شرط نهٔ دے۔ یعنی که یو شخص اول دواړه قدمونه اُووینځی بیا د سر مسح اُوکړی بیا دواړه لاسونه اُووینځی بیا مخ اُووینځی نو اودس به صحیح وی۔
لیکن راجح مسلك د جمهورو دے۔ او ترتیب د اوداسه د صحت دپاره شرط دے۔ څکه چه رسول الله ﷺ په هیڅ وخت کی بی ترتیبه اودس نهٔ دے کړے۔
د صحیحین او د احادیثو په نورو کتابونو کی چه کوم صحیح احادیث راغلی دی، د هغے نه همدا ثابته ده چه دواړه خپے تر ګیټو پورے وینځل د اوداسه د صحت دپاره شرط دی۔
دویم قراءت ((وَاَرْجُلِكُم)) کی د لام په زیر سره دے او دا هم جائز قراءت دے، دا به عطف وی په (بِرُؤُوْسِكُمْ) باندے نو شیعه ګان ددے نه دلیلٌ نیسی چه د دواړو خپو مسح کول لازم دی نهٔ وینځل۔ اهل سنت ددے نه جواب ورکوی چه په تفسیر د قرآن کی د ټولو نه

اعلیٰ شے عمل د رسول الله ﷺ او د هغه د اصحابؓ دے او دا د الله د کتاب تشریح ده او هغوی په تول ژوند کی هیځکله په بربنډو خپو باندے مسح نه ده کړے، مګر که موزے او جورابے به ئے اچولے وے نو بیا به ئے پرے مسح کوله لکه مخکی حدیثونه تیر شو۔ نو د حدیث په بناء به ددے تشریح داسے شی چه (تاسو په خپو باندے مسح وکړئ کله چه تاسو موزے یا جورابے اغوستی وی)۔

ابن العربیؒ وائی چه په اوداسه کی د دواړو خپو وینځلو په وجوب باندے د امت اتفاق شوېدے۔

په جورابو باندے مسح په اجماع د اهل علمو ثابته ده، صرف پدے کی اختلاف دے چه جورابے به کوم قسم وی؟ نو چا د تجلد او تنعل قید لګولے دے او چا د ثخانة وغیره، هغه د هغوی اجتهادات دی چه ظاهری نصوص ورسره نشته بلکه مطلقاً کوم شے چه خپے ته اغوستولے شی دپاره د یخنئ یا ګرمئ دفع کولو وغیره، نو هغه به د موزو په حکم کی وی او مسح به پرے جائز وی۔ او ددے زیات تفصیل دپاره ((الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح)) ته رجوع پکار ده۔

ځینی اهل علمؒ وائی چه په (وَأَرْجُلِكُمْ) کی جر (زیر) د جوار (نزدے والی) په وجه سره راغلے دے، لکه عربئ کی دا کار ډیر کیږی۔ عرب وائی (جُحْرُ ضَبٍّ خَرِبٍ) نو خَرِبٍ باندے زیر د ضَبٍّ سره د نزدی راتللو په وجه دے، ورنه خرب باندے رفع (پیشونه) دی۔

او بعض اهل علم د جر للجوار دپاره دا نکته بیانوی چه (وَأَرْجُلِكُمْ) مجرور وویل شو پدے کی دے خبرے ته اشاره ده چه د خپو د وینځو حالت داسے جوړ کړه لکه د مسح په شان چه اُوبه پکی کمے ولګوه ځکه چه اکثر خلك د خپو په وینځو کی د اسراف حد ته رسیږی، رسول الله ﷺ به په خپه باندے اُوبه نهٔ راړولے بلکه هغه به په لاس کی اُوبه راخستے او چنګاؤ به ئے پرے کولو۔ (بخاری عن ابن عباسؓ)

نو دا وینځل مشابه دی د مسح سره پدے وجه ئے مجرور راوړیدے۔

وان کنتم جنبا : مخکی طهارتِ صغریٰ (اودس) بیان شو اُوس طهارتِ کبریٰ بیانوی چه (غُسْلُ الْجَنَابَةِ) دے او د دواړو دپاره ئے علتونه هم ذکر کړیدی، د طهارتِ صغری علت بول او براز دی او د طهارتِ کبریٰ علت جنابت دے چه هغه د زنانه سره ملاویدل دی۔ بیا د طهارتِ صغریٰ او کبریٰ دواړو دپاره بدل (او خلیفه) تیمم خودلے شویدے، او یو تیمم د دواړو د طرفنه کافی کیږی۔ دا د قرآن کریم بلاغت دے ددے وجه نه کوم علماء کرام چه

وائی د (لَامَسْتُمْ) نه مراد لمس بالید (لاس وروړل) اخلی نو دا قول مرجوح دے۔
او د احادیثو نه علاوه د قرآنی بلاغت خلاف دے ځکه چه بیا به د اوداسه دپاره دوه سببونه راشی او د غسل دپاره به هیڅ سبب ذکر نشی. لکه تفصیل ئے مخکې په سورة النساء کښې ذکر شوید ے۔

وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا : جنابت د منی په وتلو سره راځی کله چه په توپ او شهوت طریقے سره وی، یا د خاوند او ښځے دواړه عورتونه یو بل سره ملاؤ یدو په وجه راځی نو ددے دپاره مخ لاسونه او دغه اندامونه وینځل نه کافی کیږی بلکه د هغے دپاره به (فَاطَّهَّرُوْا) زیاته صفائی کولے شی هغه دا چه ټول بدن به په اُوبو باندے وینځی سره د خولے او پوزے نه او نیت نه.

فَاطَّهَّرُوْا : په شد سره دلالت کوی په کامل طهارت باندے چه ټول بدن وینځی یعنی غسل کول.

وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰى : که سړے جنب یا مریض وی یا په حال د سفر کې وی یا د قضاء حاجت نه فراغت حاصل کړی، یا یو تن د خپلے ښځے سره جماع اُوکړی او د طهارت حاصلولو دپاره دۀ ته اُوبه ملاؤ نشی نو پاکے خاورے سره به تیمم وکړی او خپل مخ او دواړو لاسونو باندے به مسح وکړی. (په سورة النساء کی ددے آیت تفسیر تیر شویدے)

اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ : امام بخاریؒ ددے الفاظو نه باریك استدلال کړیدے پدے خبره چه د مَا خَرَجَ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ نه علاوه خیزونو باندے اودس نۀ ماتیږی هغه داسے چه دلته الله تعالیٰ د اودس دپاره دا سبب وخودلو چه یو تن ستاسو د کندے نه راشی او په کنده کی د انسان د دواړو لارو نه بول او براز او هوا خارجیږی. نو په وینه او قیء باندے اودس نۀ ماتیږی، ولے که پدے ماتیدلے نو الله به داسے وئیلی وے چه یا اوځی د یو تن ستاسو نه نجاست.

فَلَمْ تَجِدُوْا : دلته الله تعالیٰ د ټولو ذکر شوو خیزونو دپاره (فَلَمْ تَجِدُوْا) نۀ موندل ذکر کړل حال دا چه مریض خو ډیر کرته اُوبه مونده کوی، او الله وفرمایل چه که تاسو اُوبه نۀ مونده کویٔ نو تیمم ووهئ. ددے وجه دا ده چه عَدَمُ الْقُدْرَةِ عَلَى الشَّيْءِ بِمَنْزِلِ عَدَمِ الْوِجْدَانِ.
په یو شی باندے نۀ قادریدل داسے دی لکه نۀ موندل، لکه په حج یا جهاد باندے قادر نۀ وی نو په هغه باندے حج او جهاد نشته.

صَعِيْدًا : صعید وجه الارض ته وائی نو په هر هغه شی باندے تیمم جائز دے چه د جنس

د زمکې نه وي، خاورې، لوټي، شګې، کاڼي وغیره باندې هم جائز دي۔

او په حدیث کې هم دي [عَلَيْكَ بِالصَّعِيْدِ] (بخاري: ۳٤۸)

په تا باندې لازم دي چه په مخ د زمکه کوم څیز وي په هغې تیمم ووهه،

او بل رسول الله ﷺ او صحابه کرامؓ چه کله تبوك ته تلل نو په لاره کې به صحراوونه راتلل، خاورې به نۀ ملاويدې او ډیرش زرره فوج ورسره وو، او په هیڅ باندې ئې دا پابندي نۀ وه لګولې چه ځان سره خاورې یا لوټي راواخلئ چه تیمم پرې ووهئ، او په کومو روایتونو کې چه د خاورو ذکر راځي نو هغه د تخصیص دپاره نۀ دې بلکه هغې ته تنصیص علی بعض افراد العام وائي۔ یعنې د عام شي په بعض افرادو باندې تصریح کول دي، او دا تخصیص نۀ راولي، صرف افضلیت ثابتوي چه په خاوره باندې تیمم بهتر دې۔

وَأَيْدِيْكُمْ مِنْهُ : امام ترمذيؒ د ابن عباسؓ نه نقل کړیدي چه أَيْدِيْ په قرآن کریم کې د ورغوو په معنیٰ استعمال دي لکه ﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا﴾ (مائده:۳۸)

دلته أَيْدِيْ لفظ راغلې دې او رسول الله ﷺ د غلا په حد کې لاسونه تر مړوندونو پورې پریکړي دي۔ دارنګه (فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ) کې ورسره الی المرافق راغلې دې۔

نو دلته به هم د أَيْدِيْ نه مراد لاسونه تر مړوندونو پورې وي۔ او د بخاريؒ او د مسلمؒ په روایاتو کې د رسول الله ﷺ نه د تیمم په طریقه کې تر مړوندونو پورې راغلي دي۔

مَا يُرِيْدُ اللهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ : [أَيْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ وَلِذٰلِكَ أَبَاحَ لَكُمُ التَّيَمُّمَ]

پدې وجه ئې درله تیمم مباح کړو۔

پدې کې الله تعالیٰ په بندګانو باندې د احسان زیاتونه کوي چه د طهارت او د تیمم په وجه ئې بندګان په تکلیف او تنګئ کې وانچول، که دا حکم ئې کړې وې چه په هر حالت کې به اودس او غسل کوئ اګرکه اوبه نۀ وي، نو دا به ډیره سخته وه، که چا پرې عمل نشوې کولې نو اور ته به تللې نو بس د هغه شکر پکار دې۔

او پدې کې اشاره ده چه په دغه کارونو باندې عمل کول حرج نۀ دې بلکه دا د بندګانو د وس مطابق دي۔

دارنګه کوم أَحْدَاث (بې اودسیاني) چه ډیرې واقع کیږي په هغې کې ئې د ټول جسم وینځل ضروري نکړل صرف هغه اندامونه چه عام انسانان ئې کولاو پریدي لکه (مخ، لاسونه او خپې او سر) نو د هغې وینځل او مسحه کول ئې ضروري کړل، دې دپاره چه تنګي او مشکلات رانشي، آؤ، حدث اکبر یعنې جنابت چه کله کله راپیښیږي او په بدن کې د

هغے په وجه ډیره تبدیلي پیدا کیږي، د هغے د زائله کولو دپاره ئے د ټول بدن وینځل فرض کړل. بیا د مرض او د سفر وغیره حالاتو کې ئے څو مره آساني راولیږله، اول خو ئے د اُوبو په ځاې خاوره پاکونکے وګرځوله، بیا ئے د اَوداسه په اندامونو کې نیمائي تخفیف پدے طریقه وکړو چه کوم شي کې د مخکې نه تخفیف وو یعنې د سر مسح نو هغه ئے بیخي ختمه کړه او د خپو وینځل ئے پدے وجه ساقط کړل چه هغه عموماً په خاورو کې یا خاورو ته نزدے وي، او د ټول بدن اندامونه په خاورو ککړولو کې ډیر مشکلات دي چه د هغے دپاره په دوباره غسل کولو ته ضرورت راپیښیږي نو په هغے باندے د خاورو لاس راښکل بیکاره وو نو صرف دوه اندامونه ئے پریخودل چه هغه مخ او لاسونه دي دا زمونږ د دین آساني شوه.

وَلَـٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ : بلکه الله خپل بندګان صفاکوي. ددے طهارت نه ظاهري طهارت هم مراد دے چه هغه په اوداسه او غسل کې دے. او طهارت باطني هم مراد دے چه ګناهونه پدے سره ورژیږي. او یو دریم قسم طهارت هم دے چه هغه طهارت عَنِ التَّمَرُّد دے چه کله انسان بې اودسه او د جنابت په حالت کې وي نو دهٔ کې یو قسم تمرد (سرکشي) وي او د شیطان تسلط پرے زیات وي، نو په اودس او غسل سره هغه تمرد ختم شي.

رسول الله ﷺ د اوداسه نه روستو یوه دعا ښودلے ده ګویا که هغه ددے آیت نه لاندے ده په مسند احمدؒ او صحیح مسلمؒ کې د عقبه بن عامر ﷺ نه روایت دے چه مونږ په نمبر په نمبر اُوښان څرول، زهٔ د خپل نمبر په شپه د ماسخوتن په وخت لاړم ومے لیدل چه رسول الله ﷺ په ولاړه خلکو ته څه وائي، کله چه ورسیدم نو په هغه وخت ما د هغه نه واوریدل چه ((کوم مسلمان په ښه شان سره اودس وکړي او د زړه په توجه سره دوه رکعاته مونځ وکړي، د هغه دپاره جنت واجب دے)). ما وویل واه واه! دا خو ډیره مزیداره خبره ده. نو زما دا خبره زما یو ملګري واوریده چه زما نه مخکې ناست وو هغه وویل : ددے نه مخکې چه کومه خبره رسول الله ﷺ وکړه هغه ددے نه زیاته بهتره ده. ما چه په غور سره وکتل نو هغه عمر فاروق (ﷺ) وو. هغه ما ته ووېل : ته اُوس راغلے، ستا د راتللو نه مخکې نبي ﷺ وفرمایل : ((څوك چه په ښه شان سره اودس وکړي بیا ووائي :

" أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰـهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ"

د هغه دپاره د جنت اته واړه دروازے کولاوي شي چه د کوم نه غواړي داخل دے شي.

(صحیح مسلم باب الذکر المستحب عقب الوضوء، ۲۳۴؛ ابوداود : ۱۶۹)

او په روایت د ترمذیؒ کې ورسره دا الفاظ هم زیات دي:
[اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ] (ترمذی: ٥٥).
او په یو روایت کې دي چه کله مسلمان اودس کوي نو د هغه د مخ وینځلو په وخت د هغه د سترګو نه ټول ګناهونه د اوبو سره یا د آخري څاڅکي سره پریوزي او کله چه لاسونه وینځي نو د هغه د لاسونو نه تمام ګناهونه او د خپو د وینځلو په وخت د هغه د خپو نه تمام ګناهونه پریوزي تردې چه د ټولو ګناهونه صفا وځي.
(صحیح مسلم: ٢٤٤، ترمذی: ٢)
او په یو روایت کې ورسره د سر د مسح سره د ګناهونو رژیدل هم ذکر دي.
(احمد ٤/ ٢٣٤، ٢٣٥ و سنده صحیح لغیره)
**وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ**: د نعمت د پوره کیدو مصداقات
١- بِتِبْيَانِ الشَّرَائِعِ. یعنی احکام بیانول.
٢- بِالتَّرْخِيْصِ فِي التَّيَمُّمِ فِي الْمَرَضِ وَالسَّفَرِ. د مرض او سفر په وخت کې په تیمم کې رخصت ورکول لوی نعمت دے.
٤- بِغُفْرَانِ الذُّنُوْبِ. (نعمت دربانديے پوره کوي چه ګناهونه درته معاف کوي.
٥- [تَمَامُ النِّعْمَةِ دُخُوْلُ الْجَنَّةِ وَالنَّجَاةُ مِنَ النَّارِ]. د نعمت پوره والے دا دے چه بنده جنت ته داخل شي او د اور نه خلاص شي. نو الله تعالیٰ پدے احکامو سره تاسو جنت ته رسوي او د اور نه مو خلاصوي (نقله القرطبی٦/ ١٠٨).
٥- تفسیر مهایمیؒ کې لیکي: تَمَكُّنُكُمْ مِنْ عِبَادَتِهِ فِيْ كُلِّ حَالٍ. ستاسو قادریدل په بندګئ د الله بانديے په هر حال کې، دا لوی نعمت دے، وجه دا ده چه کچرته انسان په بعض اوقاتو کې عبادت کولے شوے او په بعضو کې نشوے، نو دا پوره مصیبت وو نو هرکله ئې چه مونږ لره داسے پروګرامونه راکړل چه هر وخت عبادت کولے شو نو دا داسے ده لکه زمونږ تجارت او کتبه چه روانه وي، په سفر کې هم د الله بندګي کولے شو، او په حضر کې هم، که اوبه موجودې وي او که نۀ وي.
مؤمن بنده که دے ته سوچ وکړي نو د الله ډیر محبت به ئې په زړه کې پیدا شي چه زمونږ رب په هر وخت ملاویږي، شپه وي که ورځ، سفر وي که حضر، د هغه دروازه کولاوه ده، که یوه بندګي په یوه موقعه کې نشے کولے په بله بانديے ورته ځان نزدې کړه. یو سړے حج او جهاد ته نشي تلے نورے بندګیانې کمے نۀ دي. یو تن د جنابت یا زنانه د حیض

د وجه نه یوه بندګی نشی کولے لکه مونځ نو ذکر دے کوی، د بندګانو سره دِے احسان کوی. که د اُوبو د نهٔ موندلو په صورت کی عبادت نشوے کیدے نو ځینو کسانو ته به یوه میاشت پورے اُوبه نهٔ ملاویدے نو هغه به الله تعالیٰ ته یوه میاشت سجده نشوه لګولے نو د څو مره خیر نه به محرومه وے!.

۶- د الله نعمت پوره والے دا دے چه بنده ته ئے د خپلے بندګئ طریقے وخودلے او بیا په ظاهری بدن باندے اُوبه اچولو یا په اندامونو باندے خاوره راښکلو سره دننه پاکی راویستل دا هم لوی نعمت دے.

او پدے کی اشاره ده چه تیمم پدے امت باندے خصوصی نعمت دے، پخوانو امتونو دپاره نهٔ وو.

لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ: دے دپاره چه تاسو پدے نعمتونو او آسانیانو باندے د الله شکر ادا کړئ. په قرآن کریم کی الله تعالیٰ دا جمله ډیره استعماله کریده چه بندګانو نه الله تعالیٰ د شکر مطالبه کوی ځکه چه شکریو مقصودی شے دے. د شکر په داسے مقام کی دوه مصداقات وی (۱) یو دا چه پدے نعمت باندے بهرنے شکر کول وی یعنی شاید چه پدے ذکر شوی نعمتونو سره تاسو نور طاعتونه وکړئ، الحمد لله به ووایئ چه بنه دے چه اودس شته، او بنه دے چه غسل شته ځکه چه مؤمن بنده په جنابت او بی اودسئ کی ډیر تنګ وی، او چه غسل او اودس وکړی نو خوشحاله شی لکه ګویا که چه د قید نه آزاد شو نو د الله نه رضا شی. نو یو شکر کول دی ددے نعمتونو په وجه په طاعاتو کولو سره. امام قرطبیؒ ددے نه داسے تعبیر کریدے [لِتَشْكُرُوْا نِعْمَتَهٗ فَتُقْبِلُوْا عَلٰى طَاعَتِهٖ] -دے دپاره چه تاسو د هغه د نعمت شکر وکړئ چه د هغه طاعتونو او بندګیانو ته متوجه شئ. (القرطبی۱۰۸/۶)

(۲) دویم دا چه په دغه نعمتونو باندے عمل کول بعینه د الله شکر ګزاری ده مثلاً بنده چه د جنابت نه غسل وکړی، او د ناپاکئ نه اودس وکړی، نو دهٔ د الله شکر ادا کړو په دغه نعمت سره ، د الله امرئے ومنلو، که دائے نهٔ کولے نو د الله شکر ګزار به نهٔ جوړیدلے.

او کیدے شی چه بلال رضی الله عنه تحیة الوضوء ددے (لعلکم تشکرون) نه معلوم کړے وی چه هغه به هرکله اودس وکړو شپه به وه که ورځ، نو خامخا به ئے په هغے باندے مونځ کولو. دے دپاره چه د الله شکر ګزار بنده جوړ شی.

لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ : ددے بله معنیٰ دا هم ده چه دے دپاره چه تاسو عمل وکړئ په طریقه د تعلیم د الله تعالیٰ باندے.

| وَاذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ وَمِيْثَاقَهُ الَّذِيْ وَاثَقَكُمْ |
|---|
| او یاد کړئ نعمت د الله په تاسو باندے او وعده د الله هغه چه مضبوطه کړے ئے ده تاسو سره |
| بِهٖۤ اِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا وَاتَّقُوا اللهَ |
| هغه، کله چه ووئیل تاسو، مونږ واوریدل، او تابعداری کوو او ویریږئ د الله نه |
| اِنَّ اللهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۷﴾ |
| یقیناً الله تعالیٰ پوهه دے په هغه خبرو چه په سینو کې دی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کې الله تعالیٰ دغه مخکنی نعمتونه چه د ابتداء د سورت نه شروع دی بیا اجمالًا رایادوی او د شکر تلقین ورکوی۔ او د (اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ) تاکید ئے بیا راوړیدے چه په دغه لوظونو باندے پابندی وکړئ کوم باندے چه تاسو لوظ کړیدے۔

وَاذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ : دلته ټول نعمتونه د الله یادول هم مراد دی۔ (بغوی وزاد)

او خصوصاً نعمت د اسلام هم مراد دے۔ یعنی د ایمان په نعمت باندے د هغه شکر ادا کړئ ځکه چه تاسو مخکې د یو بل دشمنان وئ نو په اسلام سره ئے په تاسو کې الفت پیدا کړو، دارنګه په ګمراهئ روان وئ نو الله تاسو ته په اسلام او ددے احکامو په نازلولو سره د جنت لاره وخودله۔ (المنار)

وَمِيْثَاقَهُ الَّذِيْ وَاثَقَكُمْ بِهٖ : او هغه لوظ رایاد کړئ چه الله تعالیٰ تاسو سره مضبوط کړیدے په قرآن کریم کې او په ژبه د رسول الله ﷺ سره۔ او د لوظ په وخت کې مو دا اقرار کړے چه مونږ به په هر حالت کې خبره منو او تابعداری به کوو۔

## . د میثاق نه څه مراد دے؟

ددے میثاق (لوظ) نه مراد دا دے چه هر مؤمن چه ایمان راوړی نو په هغه وخت کې د الله سره دا لوظ کوی او په ژبه دا اقرار کوی چه د خپل رب بندګی به کوی او د هغه د رسول اطاعت به کوی۔ نو الله فرمائی : د دغه لوظ تقاضا دا ده چه تاسو اُوس د الله په دغه عقودو باندے عمل وکړئ کوم چه پدے سورت کې بیان شو او بیانیږی۔ او پدے کې هغه عهد ته هم اشاره ده چه د سورت بقرے په آخر کې الله تعالیٰ د مؤمنانو د ژبے نه نقل کړے وو ﴿وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ﴾۔

صحابه کرامو چه به کله د رسول الله ﷺ په لاس باندے بیعت کولو نو په هغه وخت کی به ئے دا اقرار کولو چه مونږ به په هر حال کی د خپل استطاعت موافق ستا هره خبره آورو او منو به ئے، برابره ده چه زمونږ د منشاء او طبیعت موافق وی یا خلاف وی۔ دا یو عام عهد وو، ۲- دے نه روستو به د اسلام په بعض ارکانو یا د حال مناسب د اهمو څیزونو متعلق خصوصی طور سره عهد هم اخستلو۔ نو الله فرمائی : دغه لوظونه رایاد کړئ او عمل پرے وکړئ۔ نو صحابه کرامو چه کوم لوظونه کړی وو نو هغه ئے پوره پوره ادا کړل جَزَاهُمُ اللهُ عَنْ نَبِيِّهِمْ وَعَنِ الْإِسْلَامِ خَيْرَ الْجَزَاءِ وَرَضِيَ عَنْهُمْ وَأَرْضَاهُمْ۔

۳- مجاهد وغیره نه نقل دی چه ددے نه د عالم الارواح (أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ؟) لوظ مراد دے چه الله تعالیٰ د ټولو بندګانو نه اخستے وو نو هغه اګر که مونږ ته یاد نهٔ دے لیکن صادق پیغمبر مونږ ته د هغے خبر راکړیدے نو جائز ده چه مونږ ته د هغے په وفادارئ باندے حکم وکړے شی۔ (القرطبیؒ وابن کثیرؒ)

٤- څینی وائی چه دا خطاب یهودیانو ته وو چه د الله نعمت رایاد کړئ او هغه وعده چه تاسو نه الله اخستے ده په تورات کی چه په آخری رسول به ایمان راوړئ۔ نو اُوس ددے وفاداری وکړئ۔ اول قول اظهر دے ځکه په هغے کی عموم دے او دویم ظاهر دے۔

وَاتَّقُوا اللهَ : یعنی د الله د حکمونو د مخالفت نه ځان وساتئ او د الله د بی انتهاء نعمتونو په وجه تاسو چرته په غرور کی واقع نشئ او چرته ددے نعمتونو بی قدری او د خپل اقرار هیڅ پرواه ونکړئ۔ نو همیشه دا الله نه یره کوئ هغه په یوه لمحه کی تاسو نه ټول نعمتونه اخستے شی، او د ناشکرئ او د لوظ ماتولو په سزا کی تاسو سخت رانیولے شی، نو د الله تعالیٰ د یرے تقاضا دا ده چه مونږ د هغه مخلصانه اطاعت او وفاداری وکړو ځکه چه هغه د زړونو په خبرو پوهه دے، صرف په ژبه سره (سَمِعْنَا او أَطَعْنَا) ویل، یا د شکر ګزارئ رسمی او ظاهری نمائش سره مونږ هغه ته دوکه نشو ورکولے۔

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ وَ |
|---|
| اے ایمان والو! شئ تاسو مضبوط ولاړ د الله دپاره ګواهی کونکی په انصاف سره او |
| لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَىٰ أَلَّا تَعْدِلُوا اعْدِلُوا |
| په جرم کی دِ نه وانچوی تاسو لره بغض (دشمنی) د قوم پدے چه انصاف ونکړئ، انصاف کوئ |

| هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا |
|---|
| دا ډیر نژدے کونکے دے تقویٰ ته او ویریږئ د الله نه یقیناً الله خبردار دے په هغه عملونو |
| تَعْمَلُونَ ﴿٨﴾ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَ |
| چه تاسو ئے کوئ۔ وعده کړیده الله تعالیٰ د هغه کسانو سره چه ایمان ئے راوړیدے او |
| عَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿٩﴾ وَالَّذِينَ |
| عملونه ئے کړیدی نیك، د دوی دپاره بخنه ده او اجر لوئی دے۔ او هغه کسان |
| كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿١٠﴾ |
| چه کفر ئے کړیدے او دروغجن ئے ګڼړلی دی آیتونه زمونږ دا کسان اُور والا دی۔ |

**تفسیر** : ربط : مخکی الله تعالیٰ مؤمنانو ته د احساناتو او د خپل عهد او لوظ یادولو حکم وکړو نو دلته وائی چه صرف په ژبه سره یادول نهٔ بلکه دے ته عملی جامه ورکول مقصود دی۔

پدے آیت کی بل عقد ذکر دے هغه دا چه دلته الله تعالیٰ مؤمنانو ته حکم کوی چه دوی د الله تمام حقوق ادا کړی، د حق ګواهی ورکړی، او د یو قوم دشمنی دوی په بے انصافئ باندے راپورته نکړی۔ او دا تنبیه ورکړے شویده چه که تاسو خپل اقرار او لوظ نهٔ وی هیر کړے نو لازم ده چه د الله تعالیٰ حقوق ادا کړئ او د الله چه کوم حکم راځی هغے ته فوراً راپورته شئ، او د الله د حقوقو سره د مخلوق په حقوقو کی هم پوره جدوجهد او اهتمام وکړئ۔

(قوامین لله) کی حقوق الله او په (شهداء بالقسط) کی حقوق العباد طرفته اشاره ده۔

قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ : یعنی په اخلاص سره ودریږئ چه د مخلوق رعایت پکی نهٔ وی۔

یا لِاَجْلِ ثَوَابِ اللّٰهِ، فَقُوْمُوْا بِحَقِّهٖ)

یعنی د الله نه د ثواب طلب کولو دپاره د هغه حقوق ادا کونکی شئ۔ (القرطبی)

قوامین : مبالغه ده په قائمین کی۔ یعنی د الله دپاره د هغه په حقوقو باندے مضبوط او کلك ودریږئ چه د الله هیڅ حکم درنه مات نشی او هغه پوره پوره ادا کړئ۔

او شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ : ګواهی کونکی په انصاف سره۔ یعنی ګواهی چه کوئ نو د الله

دپاره نے کوئ او په حق سره ئے کوئ او بل په انصاف سره ئے کوئ، خپلوانو ته پکی مهٔ مائله کیږئ او په دشمنانو باندے پکی ظلم مهٔ کوئ۔ (قرطبیؒ)
حافظ ابن کثیرؒ داسے معنیٰ کوی: كُونُوا قَوَّامِيْنَ بِالْحَقِّ لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ لَا لِأَجْلِ النَّاسِ وَالسُّمْعَةِ وَكُوْنُوا شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ اَیْ بِالْعَدْلِ لَا بِالْجَوْرِ۔ یعنی په دوه خبرو حکم شویدے یو دا چه په حق باندے مضبوط ودریږئ صرف د الله دپاره نهٔ د خلکو د وجه نه او نهٔ د سُمعت د وجه نه، او دویم دا چه شئ گواهی کونکی په انصاف سره، نهٔ په ظلم سره۔
دا گواهی دینی او دنیاوی دواړه مراد ده، دنیاوی دا ده چه تهٔ په یو ځای کی په یوه معامله کی گواه جوړ شوے ئے، حالت دے لیدلے دے، نو بیا د انصاف گواهی ورکړه د هیڅا رعایت پکی مهٔ کوه۔
او دینی گواهی دا ده چه د زجاجؒ نه نقل دی: شهداء بیان کونکی او قسط معنیٰ دین دے یعنی بَيِّنُوا دِيْنَ اللّٰهِ۔ د الله د دین بیانونکی جوړ شئ۔ دا معنیٰ هم صحیح ده۔

## حکمة

دا قسم آیت په سورة النساء کی هم تیر شو هلته بالقسط لفظ مخکی او دلته (لله) لفظ مخکی شویدے ددے حکمة (والله اعلم) دا دے چه هلته د مخکی نه د حقوق العباد تذکره راروانه وه او دلته د اول نه په حقوق الله باندے زور ورکړے شویدے نو ځکه هلته بالقسط مقدم شو او دلته د (لله) لفظ مقدم شو۔
وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ: اجرام په جرم باندے راپورته کولو ته وائی۔
شَنَآنُ: دشمنی او باطنی بُغض ته وئیلے شی۔
انسان چه د عدل نه وځی او بی انصافی کوی نو د هغے یو سبب د یو قوم سره دشمنی وی، نو الله فرمائی چه تاسو دے د یو قوم دشمنی په بی انصافئ باندے راپورته نکړی۔
د عدل او انصاف مطلب دا دے چه د یو شخص سره په غیر د افراط او تفریط نه هغه معامله کول، د کوم چه هغه واقعی مستحق دے، د عدل او انصاف تله داسے صحیح او برابریدل پکار دی چه لوی نه لوی محبت او سخت نه سخت عداوت هم د هغے د دواړو چابړو نه یو هم کوږ نکړی۔
د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامؓ د عدل مثالونه وگورئ هغوی به د یهودو سره هم عدل کولو اگر که کافر وو۔

نبي كريم ﷺ منافق له چه په ظاهره كې مسلمان وو هغه له ئې فيصله ونكړه او يهودي له ئې وكړه ځكه چه هغه حق بجانب وو.

سيدنا عمر فاروق رضي الله عنه په خپل دور خلافت كې د خيبر والا يهوديان د خيبر نه شړل نو د هغوى سره ئې عدل وكړو نو يهودو وويل چه تا بالكل عدل وكړو او پدې عدل باندې آسمانونه او زمكه ولاړ دي.

رسول الله ﷺ عبد الله بن رواحه رضي الله عنه لره د خيبر والو د ميوه جاتو د اټكل اندازې دپاره وليږلو نو يهوديانو لالچ وركړو دې دپاره چه اټكل اندازه كې د هغوى طرفداري وكړي، نو هغه وويل چه ما ته تاسو د خنزيرانو او شادوګانو نه بد تريږ لیکن زما دا دشمني ستاسو سره به ما دې ته راپورته نكړي چه زۀ بې انصافي وكړم. نو هغوى وويل : چه په همدې عدل باندې آسمان او زمكه ولاړ دي.

عدل په اقوالو كې وي، په اعمالو كې، په تقسيماتو كې، د دوه ښځو ترمينځ، د اولادو ترمينځ. لكه رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

(اِعْدِلُوْا بَيْنَ أَوْلَادِكُمْ) تاسو د خپلو اولادو ترمينځ انصاف كوئ. (بخاري ومسلم)

نبي كريم ﷺ به ددې دومره اهتمام كولو چه د هغه په مجلس كې د يو صحابيؓ ځوى راغلو نو هغه ښكل كړو او په غېږه كې ئې كينولو بيا ئې لور راغله نو هغه ئې خوا كې كينوله نو نبي كريم ﷺ وفرمايل : [هَلَّا سَوَّيْتَ بَيْنَهُمْ] تا د دوى ترمينځ مساوات ولې ونكړو. (مسند البزار : ٦٣٦١) ومجمع الزوائد ١٥٦/٨ وسنده ضعيف).

نعمان بن بشير ﷺ ته پلار غلام وركړو او نورو بچو ته ئې نۀ وو وركړې، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : د اولادو ترمينځ انصاف كوئ چه يو ته تحفه وركوې نو بل ته به ئې هم وركوې.

(صحيح بخاري :٢٥٨٦)

ډير انسانان په خبرو كې بې عدلي كوي، د خپلولۍ، د خپلې رائې، د خپل مذهب او پارټۍ طرفداري كوي، دا انصاف په هغه چا كې راتلې شي چه هغه د اسلام نه علاوه بل مذهب او پارټۍ نۀ لري لكه اهل الحديث والسنة شو چه د هر عالِم سره آيت او حديث وي. بس د هغوى ملګرتيا كوي كَائِنًا مَنْ كَانَ (هر څوك چه وي).

او د تقليد والو طريقه دا ده چه هر څنګه وي خپل مذهب به مضبوطوي اګركه آيت او حديث ئې خلاف وي، او دا بې عدلي ده ، خپل مذهب خلكو ته قوي ښكاره كوي حال دا چه هغه د ټولو نه ضعيف وي، دا هم بې عدلي ده.

اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰی : په شریعت کې د تقوىٰ د پیدا کیدو ډیر اسباب دي، په تمامو نیك اعمالو او بهترین خصلتونو سره تقوىٰ پیدا کیږي. دلته یو دا خودلے شویدے چه عدل او قسط یعنې د دوست او دشمن سره یو شان انصاف کول او د حق په معامله کې د محبت او د عداوت د جذباتو نه قطعاً نۀ مغلوب کیدل، دا خصلت د تقوىٰ د حاصلیدو دپاره ډیر مؤثر او نزدے سبب دے. همیشه دپاره په هره معامله کې د انصاف نه کار اخستلو نه روستو د تقوىٰ کیفیت انسان ته زر حاصلیږي.

او تقوىٰ دیته وائي چه کوم څیزونه شرعاً مُهلك (هلاکونکي) یا په یوه درجه کې مُضر (ضرر ورکونکي) وي، د هغے نه همیشه بچ وسیدو نه چه کوم خاص نوراني کیفیت بنده ته په زړه کې راسخ (مضبوط) شي د هغے نوم تقوىٰ دے.

هُوَ اَقْرَبُ : یعنې دا نزدے کونکے دے تقوىٰ ته، یعنې د تقوىٰ اَهم سبب دے یا دا نزدے دے تقوىٰ ته څکه د تقوىٰ اعلیٰ برخه ده.

لِلتَّقْوٰی : تقوىٰ شرعي هم مراد ده او لغوي هم مراد کیدے شي یعنې عدل نزدے کونکے دے بچاؤ لره د اُور د جهنم نه.

اِنَّ اللّٰهَ خَبِیْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ : په انصاف کولو سره بنده ته تقوىٰ په آسانۍ حاصلیږي او د هغې د حصول دپاره واحده ذریعه د الله نه یره او د هغه د انتقام نه خوف دے او دا خوف ددے نه پیدا کیږي چه انسان د (ان الله خبیر بما تعملون) مضمون بار بار مراقبه کړي، کله چه د مؤمن په زړه کې دا یقین حاضر شي چه زمونږ هیڅ پټ یا ښکاره حرکت د الله نه پټ نۀ دے، نو د هغه زړه کې به یره پیدا شي نو ددے نتیجه به دا شي چه هغه به په تمامو معاملاتو کې د عدل او انصاف لاره اختیاروي او د الله تعالیٰ احکامو باندے عمل کولو دپاره به تیار وسیږي نو ددے په نتیجه کې به ورته دغه ثمره ملاویږي کوم چه په روستو آیت کې ذکر شویده چه الله به د دوی ګناهونه معاف کوي او جنت ته به ئے داخلوي.

وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ : یعنې قرآني آیتونه او د رسول الله ﷺ معجزات ئے دروغجن کړیدي.

يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ إِذْ هَمَّ قَوْمٌ

اے ایمان والو! یاد کړئ د الله احسان په تاسو کله چه اراده کړے وه څه خلقو

أَنْ يَّبْسُطُوْا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ فَكَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ

چه را اُوږده کړي تاسو ته لاسونه خپل نو بند ئے کړل لاسونه د هغوی ستاسو نه

وَاتَّقُوا اللهَ وَعَلَى اللهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿۱۰﴾

او ویریږئ د الله نه او خاص په الله دې ځان وسپاری مؤمنان

**تفسیر** : اُوس بیا امتنان (زیادنه) بیانول دی او مقصد پکې شکر کول دی په دې نعمتونو. مخکې عمومي احسانات بیان شول اُوس خصوصي نعمت بیانوی

د آیت مطلب دا دې چه الله تعالیٰ اسلام راولیږلو چه دا ډیر لوی نعمت دې نو ددې دشمنان زیات دی، او ددې د ختمولو کوشش د پخوانه شروع دې او شروع به وی او الله تعالیٰ تاسو ته دا دین سره د ډیر کوشش د کافرانو نه باقی روغ جوړ پریخودو. اهل ایمان ئې ختم نکړل او دین ئې درله باقی پریخودو نو پدې باندې شکر وکړئ یعنی کافران به تاسو ته لاسونه را اُوږدوی لیکن الله تعالیٰ به ئې دفع کوی نو دین درله نشي ختمولے. لهذا پدې دین باندې عمل وکړئ. یهودیانو او د عربو مشرکانو او منافقانو دا کوشش کولو چه رسول الله ﷺ ختم کړی، او ټول کفار اسلام ته یو شویدی لیکن هسې به ځان ستړې کړی او مقصد ته به ونهٔ رسیږی، آخر دا د چا نظام دې؟!

اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللهِ : د نعمت رایادولو کې مقصد د هغې شکر کول دی نو د نعمتونو د شکر کولو یوه حصه دا ده چه هغه رایاد کړې شی او د نعمت ناشکری دا ده چه انسان د هغې نه غافل شی.

إِذْهَمَّ قَوْمٌ : د یو قوم د ارادې څه مصداقات دی؟

۱- ددې قوم نه مراد بنو نضیر دی چه رسول الله ﷺ یوه ورځ د دیت د طلب کولو دپاره د هغوی خواته ورغلو چه مونږ سره قرض وکړئ. زمونږ یو مسلمان په خطاء سره قتل کړیدې، دوه عامریین ئې وژلی دی نو هغوی ورته وویل چه راشه درکوی ئې. رسول الله ﷺ سره د خپلو ملګرو نه هلته لاړو او د یو دیوال سوری لاندې کیناستو نو دوی خپل مینځ کې سلا مشوره وکړه چه سرې دلته راغلے دې راځئ چه د جرندې د پل په اندازه ګټه پرې د بره نه راګوزار کړو چه ترې خلاص شو،

نو یو روایت کې دی چه جبریل ؑ خبر ورکړو، رسول الله ﷺ هیڅ ته څه ونهٔ ویل او په آرام سره د هغه ځای نه پاڅیدو او مدینې ته راغے. ملګری د انتظار نه روستو مدینې ته راغلل نو رسول الله ﷺ حکم وکړو چه ځانونه تیار کړئ په بنو نضیرو باندې حمله ده، نو

حملہ پرے وشوه او هغوی محاصره شو لکه تفصیل به ئے په سورة الحشر کی راځی ان شاء الله تعالیٰ۔ نو الله دلته دے واقعے ته اشاره کوی۔

۲- بخاری کی راځی چه په غزوه د ذات الرقاع کی یو اعرابی د رسول الله ﷺ پسے توره راویستله کله چه هغه د ونے لاندے اُوده وو نو ورته ئے وویل : [مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي؟] ما نه به دے څوك بچ کړی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالیٰ۔ د هغه لاس نه توره پریوته، رسول الله ﷺ راپورته کړه او هغه ته ئے وویل : تا به ما نه څوك بچ کړی؟ نو هغه وویل :

[كُنْ خَيْرَ آخِذٍ] ما سره احسان وکړه۔ زۀ تا سره عهد کوم چه زۀ به تا سره جنګ نکوم او نۀ به د هغه چا ملګرتیا کوم چه تا سره جنګ کوی۔ رسول الله ﷺ هغه پریخودو نو خپل قوم ته ورغے وے ویل :

[جِئْتُكُمْ مِنْ عِنْدِ خَيْرِ النَّاسِ] زۀ د ډیر غوره انسان د خوا نه راغلم۔

۳- دریم دا په عُسفان علاقه کی نازل شوے وو چه کله خالد بن الولید په صحابه کرامؓ حمله کوله نو الله تعالیٰ صلاة الخوف نازل کړو او د هغوی پروګرام ئے شنډ کړو۔

لیکن ظاهر دا ده چه دا آیت عام دے په دفع کولو د کافرانو کی چه په هر دور کی الله تعالیٰ د ایمان والو نه کافران اړوی۔ هر کافر د مسلمان د ختمولو دپاره لاسونه اُوږدوی خاصکر کوم چه په کی سرکرده او د اسلام داعیان وی د هغوی د قتلونو کوشش کوی لیکن الله مدافعت کوی۔

وَاتَّقُوا اللَّهَ : اشاره ده چه داسے نعمت په تقویٰ او توکل علی الله سره حاصلیږی۔

وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ : یعنی هرکله چه کافران په مؤمنانو پسے کوشش کوی چه ختم ئے کړی، نو دوی نه خو یریدل پکار دی نو الله فرمائی : مؤمنانو له پکار دی چه الله ته ځان وسپاری، ټول پروګرامونه هغه برابرونکے دے۔

| وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ |
|---|
| او یقیناً اخستے وه الله تعالیٰ مضبوط وعده د بنی اسرائیلو نه او مقرر کړی وو مونږ د دوی نه |
| اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيبًا وَقَالَ اللَّهُ إِنِّي مَعَكُمْ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَاةَ وَ |
| دولس مشران او ووئیلی وو الله تعالیٰ یقیناً زۀ ستاسو سره یم که تاسو قائموئ مونځ او |
| آتَيْتُمُ الزَّكَاةَ وَآمَنْتُمْ بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ |

| ورکوئ زکاة او ایمان مو راوړو په رسولانو زما او مدد مو وکړو د دوی او قرض مو ورکړو |
|---|
| اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّأُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَ |
| الله تعالیٰ ته قرض ښائسته خامخا لرې به کړم ستاسو نه ګناهونه ستاسو او |
| لَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ فَمَنْ |
| خامخا داخل به کړم تاسو جنتونو ته چه بهیږي به لاندې د هغې نه نهرونه پس چا |
| كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿۱۲﴾ |
| چه کفر وکړو روستو ددې نه ستاسو نه نو یقیناً دا ګمراه شو د نیغې لارې نه. |

**تفسیر**: ددې نه روستو الله تعالیٰ زمونږ د عبرت دپاره د بني اسرائیلو لوظونه او عهدونه او بیا د هغوی خیانتونه او بې لوظي بیانوي چه هغوی د الله تعالیٰ د لوظونو هیڅ پرواه ونکړه او غداري ئې وکړه، نو هغوی څنګه خوار او ذلیله شو نو الله د لوظ ماتونکو پریشاني او بد حالي او پښیمانتیا بیانوي، نو ایمان والو له پکار دي چه د هغوی په شان کار ونکړي، او د الله په لوظونو باندې مضبوط اوه وسیږي. لکه مثلاً یهودیانو د الله دا لوظ مات کړو چه د جهاد حکم ورته وشو لیکن د هغې نه ئې بزدلي وکړه او دا حکم ئې مات کړونو په زمکه کې څنګه حیران شو (يَتِيْهُوْنَ فِي الْأَرْضِ شو). قابیل د هابیل سره جنګ وکړو او هغه ئې قتل کړو نو څنګه پښیمانه شو (فَأَصْبَحَ مِنَ النّٰدِمِيْنَ).

مُحاربین (یعنې د الله او د رسول مخالفت کونکي) د الله لوظ ماتوي نو دنیا کې به پرېـ پریشاني راځي. او په آخرت کې عذابونه د هغوی په انتظار کې دي. دارنګه د قسوة قلب لعنت پرېـ وشو لکه په روستو آیت کې راروان دي.

نو زمونږ په مسلمانانو کې چه څوك د الله د لوظونو او حکمونو مخالفت کوي او دا ماتوي نو الله به ئې د دغه یهودو په شان پریشانه کوي، کله به په یوغم کې اخته وي، او کله په بل، د الله په حکمونو باندې عمل کولو کې امن او سکون او مزیداره ژندګي ده، الله به په فتنو او پریشانیو کې دننه د سکون او آرام او جنتي ژوند ورکوي او چه څوك د الله حکمونه ماتوي نو په باغونو او مزیدارو محلونو کې وسیدو او د مالدارئ سره سره به پریشانه ژندګئ او مصیبتونو کې اخته وي، او د الله د طرفنه پریشانیانې په انسانانو قسماقسم طریقو سره راځي.

نو دلته الله تعالیٰ فرمائی چه ما د بنی اسرائیلو نه د پنځه کارونو لوظ اخستے وو. د مانځه پابندی، د زکاة ورکول، په رسولانو باندے ایمان راوړل، د هغوی اکرام کول او الله لره قرض ورکول. نو د الله د طرفنه ورسره دا وعده وه چه ګناهونه به مو معاف کوم او جنت ته به مو داخلوم. او کله چه هغوی وعده ماته کړه نو الله تعالیٰ په هغوی باندے پنځه قسمه عذابونه راولیږل. الله تعالیٰ پرے لعنت وکړو، د زړه سختی ئے پرے راوسته، د کلماتو په تحریف کی ئے واچول او نسیان ئے پرے راوستو او خائنان ئے ترے جوړ کړل.

دارنګه نصاراؤ دا وعدے ماتے کړے نو الله د دوی ترمینځ عداوت (دشمنی) او بغضونه پیدا کړل نو د الله د لوظونو په ماتولو کی دغه قسمه عذابونه دی، ددے وجه نه روستو (۱۵) آیت کی د الله او د رسول اطاعت ته ترغیب ورکوی، او قرآن ته ئے ترغیب ورکړیدے بیا ئے د نصاراؤ په عقیده باندے رد کړیدے او دا د لوظ د ماتولو مثالونه وو چه یهودیانو څنګه لوظ مات کړو هغه دا چه اول ئے د توحید عقیده پریخوده مشرکان ترے جوړ شول، او بیا بل مرض ئے دا وو چه د شرک سره به ئے خپل ځان د الله محبوبان ګڼړل بیا ئے په (۱۹) آیت کی د الله او د رسول اطاعت ته ترغیب ورکړیدے.

بیا ئے د مثال دپاره د موسیٰ علیه السلام واقعه راوړیده چه هغه بنی اسرائیلو ته د الله نعمتونه راياد کړل او بیا ئے ورته د شکر امر وکړو او بیا ئے ورته یوه مسئله رایاده کړه چه هغه جهاد دے لیکن هغوی مخالفت وکړو نو الله په میدان تیه کی څلویښت کاله حیران پریخودل، بیا ئے د قابیل او هابیل واقعه د حیرانتیا بیانولو دپاره راوړیده.

**ربط** : مخکی آیتونو کی د الله لوی نعمتونه بیان شو چه الله تعالیٰ ستاسو دین کامل کړو او ستاسو قوت ئے مضبوط کړو، د کافرانو نه یره مهٔ کوئ.

او په آینده کی هم الله تعالیٰ اراده لری چه تاسو پاك کړی او په حرج کی مو نهٔ اچوی. نو ددے خطره وه چه پدے امت کی هم څوك د احساناتو او نعمتونو نه الټه نتیجه واخلی او د اهل کتابو په شان کار (ناشکری) شروع کړی نو ځکه پدے آیتونو کی د اهل کتابو څه حالات د عبرت دپاره بیان شو.

اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ : دا لوظ الله تعالیٰ په ژبه د موسیٰ علیه السلام او بل په تورات کی اخستے وو.

بنی اسرائیل : یعنی لوظونه اخستل صرف د امتِ محمدیه خصوصیت نهٔ دے بلکه د مخکنو امتونو نه هم لوظونه اخستے شویدی.

چه هغه ټول په کتاب الله کې ذکر دي، مسلمانانو ته ئې وويل ﴿أَوْفُوا بِالْعُقُودِ﴾ او ﴿وَمِيثَاقَهُ الَّذِي وَاثَقَكُمْ بِهِ﴾ نو دغه شان بني اسرائيلو نه ئې لوظونه اخستي وو. امت محمديه ته ئې وئيلي وو ﴿وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ﴾ (آلعمران: ١٠٤) نو دغه شان ئې د بني اسرائيلو نه دولس نقيبان مقرر کړي وو.

مسلمانانو ته ئې وئيلي وو ﴿وَاللَّهُ مَعَكُمْ﴾ (محمد: ٣٥) نو بني اسرائيلو ته ئې هم وئيلي وو ﴿إِنِّي مَعَكُمْ﴾. دارنګه مسلمانانو ته ئې وئيلي وو ﴿وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ﴾ او بني اسرائيلو ته ئې هم وويل:

﴿لَأُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّاتٍ﴾. هغوی ته ئې وئيلي وو:

﴿وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذَلِكَ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ﴾ نو مسلمانانو ته ئې هم وويل:

﴿وَمَنْ كَانَ فِي هَذِهِ أَعْمَى فَهُوَ فِي الْآخِرَةِ أَعْمَى وَأَضَلُّ سَبِيلًا﴾ (الاسراء: ٧٢) (عزيز التفاسير)

**وَبَعَثْنَا:** بعث په معنیٰ د مقررولو سره.

**نَقِيبًا:** نقيب د قوم مشر ته وائي، د نقب نه اخستې شويدے په اصل کې په ديوال يا په لرګي يا پوستکي کې سوري کولو ته وائي. (مفردات راغب) او په معنیٰ د تفتيش او تالاش سره هم استعمال شويدے او دلته هم دا معنیٰ مراد ده. (روح المعاني)

ځکه چه د قوم مشر هم د خپل قوم او رعيت د احوالو تحقيق کوي نو نقيب معنیٰ ده اَلْخَبِيرُ بِأَحْوَالِ الْقَوْمِ. د خلکو د حالاتو خبر اخستونکے. او ((مَنْقَبَةٌ)) هم ددے نه اخستې شويدے چه جمع ئې مناقب راځي په معنیٰ د فضائلو سره او ترڅو چه يو تن د چا په باره کې تالاش ونکړي د هغه فضائل نشي معلومولے.

او ددے نقيب مقررولو فائده دا وي چه د ټولو مشر د قوم د حالاتو نه ډير نۀ خبريږي نو هغه واړه واړه مشران مقرر کړي دے دپاره چه هر مشر د خپل قوم حالات معلوم کړي او بيا ئې مشر ته پيش کړي چه هغه ئې تپوس او پوښتنه وکړي، د فسادیانو مخنيوے وکړي او د ضرورتمندو ضرورت پوره کړي. او دے نقباؤ ته عُرَفَاء هم وائي يعنې نګرانان.

د الله تعالیٰ په حکم سره موسیٰ عليه السلام د بني اسرائيلو د دولسو قبيلو دولس نمائنده ګان چانړ کړل او هغوی ته ئې حکم اُوکړو چه هغوی د خپلو خپلو قبيلو خلقو نه د الله او د هغه د رسول او د هغه د کتاب بيعت واخلي، او د خپلو قبيلو د احوالو نګراني وکړي.

ځيني وائي کله چه موسیٰ عليه السلام بني اسرائيلو لره د جبارين (سرکشانو) قوم د حال او د هغوی د قوت او شوکت اندازه کولو دپاره ليږل، نو د هغوی د هرے قبيلے نه ئې دولس

سرداران چانړ کړل، او مفسرینو د هغوی نومونه هم ذکر کړیدي : د روبیل قبیلے سردار شامون بن رکون وو او د شمعونینو سردار شافاط بن حري او د یهوذا سردار "کالب بن یوقنا" او د اتین سردار میخائیل بن یوسف او د افرایم سردار یوشع بن نون او د بنیامین قبیلے سردار فلطم بن دفون او د زبولون سردار جدي بن شوري او د منشا سردار جدي بن موسی او د دان سردار خملائیل بن حمل او د اشار سردار ساطور او د نفثالي سردار بحر او د یساخر سردار لایل مقرر کړل، ابن کثیر وائي چه د تورات په څلورم جزء کی د بنو اسرائیلو د قبیلو د سردارانو نومونه ددے نه لږ څه مختلف ذکر شویدي والله اعلم. (ابن کثیرؒ)

کله چه هلته اُورسیدل نو وے لیدل چه هغوی د ډیر لوی قوت مالکان دي او د هغوی مقابله نشي کیدے. نو دوی خپل مینځ کی دا خبره فیصله کړه چه بنی اسرائیلو ته دا خبره نهٔ وایو، صرف موسیٰ علیه السلام ته به ئے اُووایو. لیکن د واپس راتلو نه روستو ددوی نه لسو کسانو خیانت اُوکړو او خپلو خپلو رشته دارو ته ئے اُووئیل او خبره خوره شوه او د دوی نه د جنګ معامله مشکله شوه او بنی اسرائیلو موسیٰ علیه السلام ته اُووئیل چه ((ته او ستا رب دِے لاړ شی جنګ دِے اُوکړی)).

او حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه (عجیب اتفاق دا دے چه) په ابتداء د اسلام کی په مکه مکرمه کی د عقبے په شپه کی کله چه رسول الله ﷺ د انصارو نه بیعت اخستو نو د هغوی شمار هم دولس وو. درے (۳) د اَوس قبیلے، اُسَید بن حُضَیر، سَعد بن خَیثَمَه او رِفَاعَه بن عَبد المُنذِر رضی الله عنهم او په بعض روایاتو کی ددهٔ په ځای اَبُوالهَیثَم بن التَّیهَان رضی الله عنه ذکر دے او نهه (۹) سرداران د خزرج وو. ابو اُمامه اَسعَد بن زُرَارَه، سعد بن رَبِیع، عبد الله بن رَوَاحه، رافع بن مالك بن عجلان، براء بن معرور، عباده بن صامت، سعد بن عُبَاده، عبد الله بن عَمرو بن حَرَام، منذر بن عمرو بن خُنَیس رضی الله عنهم. دا خلق مدینے ته راغلي وو او د رسول الله ﷺ دپاره ئے د خلقو نه بیعت اخستے وو. (د دوی تفصیلی دلکش واقعه زمونږ په کتاب ((سیرت رسول)) کی ضرور وګورئ).

او امام بخاريؒ او مسلمؒ د جابر بن سمره رضی الله عنه نه یو حدیث روایت کړیدے چه د هغے نه معلومیږی چه د اسلام د خلفاؤ شمار به هم دولس (۱۲) وی او هغه ټول به قریشیان وی.
(بخاری کتاب الاحکام باب : ۷۲۲۲) صحیح مسلم : ۱۸۲۱)

لیکن دا به هغه دولس (۱۲) اماماں نهٔ وی د کومو چه شیعه ګان روافض باطله عقیده لري چه د هغے هیڅ دلیل په قرآن او سنت کی موجود نهٔ دے.

دارنګه حافظ ابن کثيرؒ ليکي چه ددے والياتو (خلفاؤ) نه مراد دا دے چه دوی به نيک بخت وی چه په حق باندے به قائم وی او په خلکو کې به انصاف کوی، ددے نه دا نۀ ثابتيږی چه دوی به پرله پسے د يو بل نه روستو وی نو ځلور خو پرله پسے وو او پنځم عمر بن عبد العزيز رحمه الله دے. د بنو عباسو نه هم بعض دغه شان خلفاء وو او د قيامت د قائميدو نه مخکې مخکې به د هغه دولسو شمار پوره کيدل ضروری وی او ددے نه به يو امام مهدی رحمه لله وی چه د هغه زيرے په احاديثو کې راغلے دے. (ابن کثيرؒ)

او مفسرينو د تورات نه نقل کړيدی چه اسماعيل عليه السلام ته الله وفرمايل :

((زۀ به ستا د اولادو نه دولس سرداران پيدا کوم)).

غالباً دا هغه دولس خلفاء دی چه د جابر بن سمره رضي الله عنه په حديث کې ذکر دی. (ابن کثيرؒ)

إِنِّي مَعَكُمْ : يعنی زۀ به ستاسو مدد کوم او په هيڅ وخت کې ما د خپل ځان نه جدا مۀ ګنړئ، تاسو چه هره معامله ښکاره يا پټه کوئ هغه په هر ځای او هر وخت کې زۀ وينم او آورم زۀ به د هغے بدله درکوم نو ښه په سوچ سمجهـ سره عمل کوئ.

لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَاةَ : الله تعالىٰ بنی اسرائيلو ته اُووئيل چه که تاسو مونځ کوئ، زکوٰة ورکوئ، زما په رسولانو باندے ايمان راوړئ، د هغوی سره مدد کوئ او د فرض زکوٰة نه سوی د خپل مال نه د الله په لاره کې خرچه کوئ نو زما نصرت او حمايت به تاسو سره وی، دارنګه زۀ به ستاسو ګناهونه معاف کوم او تاسو به جنتونو ته داخلوم.

وَآمَنتُم بِرُسُلِي : ايمان خو په الله او په ملائکو او کتابونو باندے هم ضروری دے خو دلته ئے د بنی اسرائيلو د حال مطابق په رسولانو باندے د ايمان دعوت ورکړو ځکه چه دوی کې دا مرض وو چه دوی به د انبياؤ عليهم السلام ترمينځ تفريق راوستو، د خپل کلی به ئے منلو او د نورو کلو به ئے نۀ منل، حسد پکې زيات وو.

وَعَزَّرْتُمُوهُمْ : په هغوی کې بل مرض دا وو چه ايمان به ئے راوړو نو بيا به ئے بی ادبی د پيغمبرانو کوله لکه د موسیٰ عليه السلام سره ئے څه کارونه کړی وو؟

مخکې سورتِ بقره کې تير شويدی چه ځانونه ئے پرے ناژولی کړی وو چه دا نۀ خورو او دا خورو او ناجائز مطالبے به ئے کولے. او روستو آيتونو کې راځی چه مونږ جنګ نشو کولے تۀ او ستا رب دے لاړ شی جنګونه دے کوی، دا ټول مره بی ادبی وه. نو الله ورته وفرمايل : چه تاسو به د رسولانو تعظيم کوئ.

د تعزير معنیٰ ده : اَلْمَعُونَةُ وَالنَّصْرُ وَالتَّعْظِيمُ وَالتَّوْقِيرُ . يعنی د رسولانو سره به تعاون او مدد

کوئ او د هغوی تعظیم او اکرام به کوئ. د هغوی د حکم خلاف به نکوئ او د هغوی د دین نه به دخلکو شبهات دفع کوئ او پدے کی دعوت او جهاد ته اشاره ده.

(زاد المسیر ۲/۲۵۱)

د تعزیر بله معنیٰ ده: رد کول او وهل چه د حد نه کم وی. عرب وائی: عَزَّرْتُ فُلَانًا: اَیْ اَدَّبْتُهُ وَرَدَدْتُهُ عَنِ الْقَبِیْحِ. ما د فلانی تعزیر وکړو یعنی هغه ته مے ادب ورکړو او د بد کار نه مے راواپس کړو. نو معنیٰ دا شوه چه تاسو به د انبیاؤ نه د هغوی دشمنان اړوئ، او مدد به ئے کوئ. (القرطبی ۶/۱۱۱)

وَاَقْرَضْتُمُ اللّٰهَ . یعنی د زکاة نه علاوه نور نفلی صدقات به کوئ.

فَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ : یعنی ددے مخکنی خیزونو نه که چا انکار وکړو نو هغه کافر دے او پدے پنځه وارو خبرو کی یوه خبره هم د هغوی پورے خاص نهٔ ده بلکه امتِ اسلامیه دپاره هم دغه وعدے دی.

| |
|---|
| فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ لَعَنّٰهُمْ وَ |
| پس په سبب د ماتولو د دوی لوظ خپل لره لعنت وکړو مونږ په دوی باندے او |
| جَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قٰسِيَةً يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَنَسُوْا |
| وګرځول مونږ زړونه د دوی سخت، بدلوی کلمے د الله تعالیٰ د خپلو ځایونو نه او هیره کړه دوی |
| حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ |
| یوه حصه د هغے نه چه نصیحت ورکړے شوے وو دوی ته په هغے سره او همیشه به ته خبریږے |
| عَلٰى خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ |
| په خیانت د دوی باندے، مګر لږ د دوی نه، نو معافی کوه د دوی نه او مخ اړوه (د ملامته |
| اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳﴾ |
| کولو د دوی نه) یقیناً الله تعالیٰ مینه کوی د احسان کونکو سره. |

**تفسیر:** د تعهداتو نتیجه

اُوس د دوی دپاره سزاګانے بیانوی په سبب د ماتولو د دوی لوظونو لره، دوی پیغمبران وژل شروع کړل، سپکے سپورے خبرے ئے ورته شروع کړے او مالونه به ئے د خلکو نه

راجمع کول، او خپله به ئے نهٔ ورکول. لنډه دا چه عقیدةً او عملاً ئے خپل لوظونه مات کړل.

لَعَنّٰهُمْ : د خپل رحمت نه مے لرے کړل او خپل حمایت او مدد مے ترے بیرته واخستو او د هدایت نه جدا شو. د ابن عباسؓ نه نقل دی : [عَذَّبْنَاهُمْ بِالْجِزْيَةِ]

مونږ دوی ته په جزیه سره عذاب ورکړو.

حسنؒ او مقاتلؒ وائی : [بِالْمَسْخِ] مونږ په مسخ (شکلونو) بدلولو سره عذاب ورکړو.

(القرطبی)

وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قٰسِيَةً : زړونه مے ورله سخت کړل چه د وعظ او نصیحت نه به ئے فائده نشوه اخستے او پوهه ئے خرابه شوه. او د زړونو سختی ډیره لویه سزا ده، د زړه سختی د یهودو مشهور مرض دے چه د الله د عذابونه نهٔ یریدل، د هغه د آیتونو نه پند نهٔ اخستل او پیغمبران وژل او هر قسم فساد ته په جرأت او بهادرئ سره ورتلل د هغوی ذاتی صفت وو.

قسوة القلب دے ته وائی چه انسان د الله د آیتونو نه هیڅ اثر نهٔ اخلی.

او هغه شخص سخت زړے دے چه د الله حکم راشی او دے پرے هیڅ پرواه نهٔ لری، که یو تن ته ژړا نهٔ ورځی لیکن د الله چه کوم حکم راځی د هغے نه اثر اخلی او عمل پرے کوی، او یریږی چه که عمل ونکړم نو هلاکیږم نو دا انسان سخت زړے نهٔ بلکه نرم زړے دے.

اګر که دا اُوچته مرتبه ده چه انسان آیت یا حدیث واوری او زړه ئے راډک شی او د الله د یرے نه ژړا وکړی او بیا په دغه حکم باندے عمل هم وکړی.

قرطبیؒ د قاسیةً معنیٰ کوی : [أَيْ لَيْسَتْ بِخَالِصَةِ الْإِيْمَانِ أَيْ فِيْهَا نِفَاقٌ]

یعنی زړونه ئے خالص ایمان والا پاتے نشو بلکه منافقت پکی راغلو.

نحاسؒ وائی : دا غوره قول دے ځکه چه په عربئ کی (دِرْهَمٌ قَسِيٌّ) هغه روپئ ته وائی چه په هغے کی د تانبے غش (ګډون) شوے وی، کوټه وی.

يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ : د الله تعالیٰ په کلام کی به ئے باطل تاویلونه کول، کوم چه به حقیقی مراد وو د هغے نه به ئے د الله کلام اړولو او نور مطلبونه به ئے بیانول، او هغه مسائل به ئے بیانول چه هغه به الله نهٔ وو ویلی او دوی به د هغے نسبت الله تعالیٰ ته کولو.

او آیة د رجم او د رسول الله ﷺ صفات ئے په تورات کی بدل کړی وو.

وَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا : یعنی په تورات کی او د موسیٰ علیه السلام په ژبه چه دوی ته کوم نصیحت شوے وو، او د توحید خبرے او هغه لوظونه چه الله تعالیٰ د دوی نه په رسول الله

ﷺ باندے د ایمان راوړلو په باره کې اخستې وو هغه ئے هیر کړل۔ (قرطبیؒ)
دلته نسیان په معنیٰ د ترك (پریخودو) سره دے، نهٔ غیر اختیاری هیریدل ځکه چه په هغې باندے بنده ګناهګار نهٔ دے، او د اسبابو د نسیان نه نقض العهود والمعاصی دی (یعنی لوظونه ماتول او ګناهونه کول) ددے په وجه بنده نه ډیرے قیمتی د کامیابئ خبرے هیرے شی۔ د امام شافعیؒ نه نقل دی:

| فَأَرْشَدَنِيْ اِلٰى تَرْكِ الْمَعَاصِيْ | ۞ | شَكَوْتُ اِلٰى وَكِيْعٍ سُوْءَ حِفْظِيْ |
|---|---|---|
| وَنُوْرُ اللّٰهِ لَا يُعْطٰى لِعَاصِيْ | ۞ | فَاِنَّ الْعِلْمَ نُوْرٌ مِنْ اِلٰـــه |

ما وکیع بن الجراح رحمه الله ته (چه د امام شافعیؒ استاذ دے) د حافظے د خرابوالی شکایت وکړو نو هغه ما ته رهنمائی وکړه چه ګناهونه مهٔ کوه ځکه چه علم د الله د طرفنه نور دے او د الله نور ګناهګار بنده ته نهٔ ورکړے کیږی۔
دا شعر هم ددے آیت نه اخستلے شویدے۔
**فائده**: دا عذابونه په یو بل باندے مرتب دی کله چه انسان باندے لعنت وشی نو زړه ئے سخت شی او چه زړه ئے سخت شی نو هر بد عمل ورته آسان شی، د الله په آیتونو په زړه ورتیا سره ورخیژی او تحریف پکې کوی، ځکه وجه د صحابه کرامو زړونه نرم وو نو هغوی به په قرآن کې یوه خبره هم د ځان نه نهٔ کوله [أَيُّ سَمَاءٍ تُظِلُّنِيْ وَأَيُّ أَرْضٍ تُقِلُّنِيْ اِذَا قُلْتُ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ مَا لَا أَعْلَمُ] ډیر احتیاط به ئے کولو۔ نو کله چه بنده د الله کتاب بدل کړی نو نصیحت به د کوم ځای نه واخلی نو ټولے خبرے به پریدی، نو دوی نه د نصیحت خبرے هیرے شوے۔
**وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ**:
دا بل مرض دے چه اے نبی! او اے مخاطبه! ته به هر وخت د دوی په خیانت باندے خبریږے چه یهودی نن دا فساد کړے، غلا، قتل او چغلی ئے کړیده۔
تطلع: أَيْ تَقِفُ۔ ته به خبریږے۔ خائنة: په لغت کې په معنیٰ د خیانت سره استعمال دے۔ ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی: د خائنة نه مراد معصیت (ګناه) ده،
ځینی وائی: کذب (دروغ) او فجور (بدکاری) مراد ده۔ او د دوی خیانت دا وو چه د رسول الله ﷺ سره ئے لوظ مات کړو او مشرکانو ئے د رسول الله ﷺ په جنګ راپورته کړل او د هغوی سره ئے مددونه وکړل لکه په غزوه خندق کې دغسے وشول۔

او دارنګه د رسول الله ﷺ د قتل او کنځلو قصدونه ئې کړي وو۔ (القرطبي)

خائنة کله ډیر خیانتګر شخص ته وائي لکه د نسابۃ او علامۃ په شان یعني ډیر خیانتګر۔ یا موصوف پټ دے۔ أَيْ طَائِفَةٍ خَائِنَةٍ : ډله خیانتګره۔ او مطلب دا دے چه غدر او خیانت د دوی او د دوی د مشرانو همیشه عادت راروان دے چه هیڅکله ئې نۀ پریدی او نۀ ئې پټوي نو تۀ به ئې همیشه دغسے وینے۔ (القاسمي)

إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ : أَيْ لَمْ يَخُونُوا : مګر لږو خلکو د دوی نه خیانت نۀ دے کړے۔ (قرطبي)

فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ : پدے کې ځینې علماؤ وئیلی دي چه دا په آیت السیف سره منسوخ دے۔ (۲) لیکن ظاهر دا ده چه دا اخلاق دي او اخلاقو کې نسخ نۀ جاري کیږي نو معنیٰ داده چه د خپلو حقوقو په باره کې دوی ته معافي کوه او مخ ترے اړوه، سزا مۀ ورکوه که چرته ستا کوم حق ضائع کړي، او کله چه د الله امر ماتوي او الله حکم وکړي چه قتل ئې کړئ نو بیا به ئې قتل لازم وي۔

(۳) ځینې وائي : فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ مَا دَامَ بَيْنَكَ وَبَيْنَهُمْ عَهْدٌ وَهُمْ أَهْلُ الذِّمَّةِ]

یعنې دوی ته معافي کوه کله چه ستا او د دوی ترمینځ وعده او لوظ وي یعني د اهل ذمه ؤ سره د عفو او صفحے معامله وکړه۔ (القرطبيؒ)

او یو بل ښکاره مطلب دا هم دے چه دوی ته تر هغه وخته پورے معافي وکړه چه تر څو پورے تاسو سره په لوظ باندے ولاړ وي او یا جزیه درکوي او که لوظ ئې مات کړو، یا جزیه نۀ درکوي نو بیا ورسره جنګ وکړئ، لکه د سورة التوبه آیت (۲۹) کې د سوچ کولو نه دغه مطلب ښکاره کیږي، الله فرمائي :

﴿ قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّىٰ يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ ﴾۔

فَاعْفُ عَنْهُمْ : یعنې سزا مۀ ورکوه حافظ ابن کثیرؒ وائي : دا عین کامیابي او مدد دے۔ او پدے کار سره به د هغوی زړونه حق ته مائل شي او کیدے شي چه الله ورته هدایت وکړي۔ (قاسمي وابن کثیر)

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ : پدے کې د عفو او صفح نه روستو دریم خوئي ذکر دے یعني احسان کول یعني ښه انعام ورکړه او احسان ورسره وکړه دے دپاره چه زړونه ئې اسلام ته مائل شي۔

| وَمِنَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ أَخَذْنَا مِيثَاقَهُمْ |
|---|
| او د هغه کسانو نه چه وائی مونږ نصاری یو اخستے وو مونږ مضبوط لوظ د دوی نه |
| فَنَسُوا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا بِهِ |
| نو هیر کړو دوی یوه برخه د هغے نه چه نصیحت ورکړے شوے وو دوی ته په هغے |
| فَأَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ |
| نو تیز کړو مونږ د دوی په مینځ کی دشمنی او کینه تر ورځے د قیامته پورے |
| وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللَّهُ بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ ﴿١٤﴾ |
| او زر دے چه خبر به ورکړی دوی ته الله تعالیٰ په هغه څه چه دوی ئے کوی۔ |

**تفسیر** : پدے کی اُوس د نصاراؤ د وعدو تذکره او بیا د هغے د ماتولو بیان او بیا د هغے سزا بیانوی۔

یعنی لکه د یهودو په شان مونږ د هغه کسانو نه هم مضبوط لوظونه اخستی وو چه خان ته به ئے نصاری وئیل او د عیسیٰ علیه السلام د مددگاری دعوه به ئے کوله لیکن دوی هم پکی ناکام شو، او خائنان ترے جوړ شو۔

قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ : ځینی علماء وائی چه داسے ئے ونهٔ وئیل (مِنَ النَّصَارَىٰ) پدے کی اشاره ده چه دوی نصرانیت د خان نه جوړ کړے وو او خانونو ته ئے دا نوم ایښے وو۔ (القرطبی)

دارنګه پدے کی اشاره ده چه دوی چه د (نَحْنُ أَنْصَارُ اللَّهِ) کومے دعوے کړے وے نو هغه ئے رشتینی نکړے، د الله د دین هیڅ مدد ئے ونکړو۔ او د دوی اقوال او افعال یو تر بله متناقض او مخالف شول۔ (ابو السعود، القاسمی)

أَخَذْنَا مِيثَاقَهُمْ : دا لوظونه په توحید او په محمد ﷺ باندے د ایمان راوړلو وو، او دا په انجیل کی لیکلے شوی وو۔ دارنګه د دین په احکامو باندے د عمل کولو لوظونه ترے اخستے شوی وو۔ او قاسمیؒ وائی چه د شرك نه د خان ساتلو او د عیسیٰ علیه السلام د شریعت د حفاظت لوظ ترے اخستے شوے وو۔ (محاسن التاویل)

فَنَسُوا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا بِهِ : دوی هم دغه لوظونه پریخودل او عمل ئے پرے ونکړو او خواهشاتو پسے روان شو۔

فَأَغْرَيْنَا : دا اُوس سزا بیانوی۔

اغـریـنـا : د اغـراء نـه دے او اغـراء د "غَـراء" نـه دے، غراء انښلولو او سریش کولو ته وائی (مفرداتِ راغب والقرطبی) او اغـراء راتیزولو ته وائی۔ نو معنیٰ دا ده چه مونږ د دوی په مینځ کـی دشـمـنـی او بـد بیـنـی او بـغـض او کـیـنـه داسے کلکه اونښلوله او سریش مو کړه چه د قیـامـت د ورځـے پـورے به ونهٔ شکیږی او تر څو چه ژوندی وی د دشمنئ او کینے په اُور کی به سوزی۔ او د بغض او حسد د وجه نه ونختل۔

او اغـراء کـلـه پـه مـعـنـیٰ د ایلاع (اموخته کول، محبوبولو) سره راځی لکه عرب وائی : أُغْـرِيْـتُ الْكَلْبَ أَىْ أَوْلَعْتُهُ بِالصَّيْدِ] سپی لـه مے اغراء ورکـړه یعنی په ښکار مے اموخته او عادت کـړو۔ نـو مـعنیٰ به دا جوړه شی چه مونږ د دوی ترمینځ دشمنی او کینه اموخته او عـادت کـړه او یـو بـل تـه مـو مـحـبـوبـه وګـرځـولـه چـه هیڅکله بـه تر ے نـهٔ جدا کیږی۔ (القرطبی ۱۱۸/٦)

بَيْنَهُمْ : ددے نـه مراد یهود او نصاریٰ دواړه دی۔ ځینی وائی : صرف نصاریٰ مراد دی چه د دوی خـپـل مـیـنـځ کی اختلافات راپیدا شول، یعقوبیه، نسطوریه او ملکانیه او اریوسیه ډلے پکی پیدا شوے او یو بل ته ئے کافران وویل۔ (ربیع بن انسؒ -قرطبی وابن کثیر)

**فائده** : آسـمـانـی سبق او وحی ضائع کول او هغه هیرول دا نتیجه ورکوی چه انسان به په اختلافاتو کی واقع کیږی، د دوی سره چه کومه آسمانی اصلی رڼا وه هغه ئے ضائع کړه نو د او هـامـو او د خـواهشـاتو په تیارو کی د یو بل سره ونښتل، اصلی مذهب ئے ختم شو صرف جګړے ورته پاتے شوے، او په شلګونو فرقے پیدا کیدو سره د یو بل سره وجنګیدل او دغه فرقه واریت آخر په سختو دشمنیانو او بغضونو او حسدونو باندے ختم شو، پدے کی هیڅ شك نشتـه چه زمـونږ پـه مسـلـمـانانو کی هم بیحده تفرقے او مذهبی اختلافات او جـګـړے موجـودی دی، لـیـکـن چونکه زمونږ سره وحی الٰهی او آسمانی قانون الحمد لله بـالـکـل روغ او مـحـفـوظ مـوجـود دے، پـدے وجـه اګرکـه اختـلافـات موجود دی لیکن د مسـلـمـانانو یو لوی جماعت په حق او صدق باندے کلك ولاړ دے او ولاړ به وی، لکه د الله رسـول دا پیشـنګوئی ورکړیده [لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي ظَاهِرِيْنَ عَلَى الْحَقِّ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ أَوْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللّٰهِ وَهُمْ ظَاهِرُوْنَ عَلَى النَّاسِ] (مسلم:٥٠٦٤)

زمـا د امـت نـه بـه یـوه ډلـه هـمـیشه په حق باندے ښکاره ولاړه وی، دوی ته به هغه څوك ضـرر نشـی ورکولے چه د دوی مدد پریدی یا ترے مخالفت کوی تردے چه د الله امر به راشی

او دوی به په خلکو باندے غالب وی۔
او نن سبا چه "پروتستنت" او "رومن کیتهولك" وغیره په خپل مینځی اختلاف کی اخته دی د هغوی نه یوه ډله هم د حق په لاره روان نهٔ دی، او نهٔ د قیامت پورے روانیدے شی ځکه چه دوی د وحی رڼا د خپلو بی اعتدالیانو او غلط کاریانو په وجه ضائع کړیده د کوم نه چه بغیر انسان نهٔ الله تعالیٰ او نهٔ د هغه قوانین صحیح پیژندلے شی۔ د کوم محرف بائبل پسے چه نن سبا دوی روان دی نو د قیامته پورے محاله ده چه دوی ددے بی اصوله اختلافاتو او د فرقه واریت د بغض او حسد د تیارے نه رابهر شی او د حق لاره وینی او د نجات په ابدی لاره روان شی۔
إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ : یعنی د عیسیٰ علیه السلام د راکوزیدو زمانے پورے او هغه زمانه قیامت ته نژدے ده۔
وَسَوْفَ : یعنی په آخرت کی پوره طریقے سره او په دنیا کی د بعض واقعاتو په ذریعه به دوی ته د خپلو کړو نتیجه معلومه شی۔
يَصْنَعُونَ : صنع په هغه عمل کی استعمالیږی چه همیشه کیږی نو نصاریٰ هم په باطل دین اختلافات او جګړے همیشه کوی ځکه چه دا دین ګنړی۔

## د نصاراوو د اختلافاتو منشاء

مفسرینو لیکلی دی چه د نصاراو د شدید اختلاف اصلی منشاء دا وه چه یو یهودی چه د هغه نوم بولس وو خپل ځان په ظاهره کی نصرانی جوړ کړو دے دپاره چه نصرانیت دین خراب کړی نو دهٔ په نصاراؤ کی ډیر مقبولیت حاصل کړو او د پاپ درجے ته ورسیدو او ډیر خاص خاص شاګردان ئے پیدا کړل او هر شاګرد ته ئے په خصوصی طور سره بیله بیله عقیده ورزده کړه او دا پابندی به ئے پرے لګوله چه بل چا ته به حال نهٔ وائی، صرف حقه عقیده همدغه ده۔ کله چه ددهٔ یقین راغے چه هر یو شاګرد بیله بیله عقیده په کلکه یاده کړه، نو هر یو ته ئے جدا جدا وویل چه زما د مرګ نه روستو همدغه عقیده په خلکو کی خوروه او دا ستا وظیفه شوه۔ بیا دغه یهودی خپل ځان قتل کړو نو ددهٔ نه روستو هر یو شاګرد خپلے زده کړے عقیدے ته خلك راوبلل چه همدغه عقیده حقه ده او هر یو خپل ځان ته ډله جوړه کړه چه په نتیجه کی په نصاراو کی اختلافات او عداوتونه او حسدونه راپورته شو او د یو بل مخالف عقائد رابښکاره شو چه د نن ورځے پورے په همدغه

اختلافاتو باندې اخته دي. (القرطبي ۲۴/۶)

دا واقعه څینې مفسرینو لیکلې ده لیکن ددې په ثبوت باندې پوره یقین نشي کیدې. او یو اځې د اختلافاتو د راپیدا کیدو همدا قصه سبب جوړ شي . ددې ډیر وجوه دي

(۱) یوه وجه دا ده چه د یهود او نصارا او اختلاف ډیر زوړ او د پخوا نه راروان دې دوی یو بل ته هیڅ قناعت نهٔ کوي لکه بقره (۱۳۳) کې تیر شوي وو چه دوي به یو بل په هیڅ معتبر دین باندې نهٔ گڼړل.

(۲) دارنګه په (فَأَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ) کې بعض مفسرینو ضمیر یهود او نصارا دواړو ته راجع کړیدې لکه مخکې تیر شو: هغې نه معلومیږي چه د یهود او نصارا دشمني دائمي او د پخوا نه راروانه ده.

(۳) دارنګه قرآن وائي چه یهودیان په ژوند ډیر حرص کونکي دي نو دا یقین نشي کیدې چه بولس یهودي به خپل ځان وژلې وي.

نو ددې اختلافاتو اصلي سبب مخکې ذکر شو هغه دا چه (فَأَغْرَيْنَا) یعني هرکله چه دوي د الله لوظونه مات کړل نو الله د سزا په طور سره په دوي کې تر قیامته پورې ډیر اختلافات او بغضونه واچول چه د جنګونو او جګړو په اُور کې به سوزي.

او بل سبب ئې څینې مفسرینو دا لیکلې دې (چه هغه مونږ مخکې سورة النساء کې بیان کړیدې) چه دوي د تثلیث عقیده اختیار کړې وه. (وَلَا تَقُولُوا ثَلَاثَةٌ انْتَهُوا خَيْرًا لَّكُمْ) او هغې پریشانئ او اختلافاتو ته رسولي وو.

علامه سید قطبؒ وائي : دوي ددې اختلاف د ختمولو دپاره ډیرې غونډې او جرګې کړیدي لیکن په نتیجه کې اختلاف لا زیات شویدې او کم شوې نهٔ دې. بیا هغه وائي : دوي په ذکر شوې عقیده کې په دومره جګړو او دنګلو کې واقع دي چه په (۳۲۵) میلادي کال کې ددې مشکل د حل کولو دپاره اته څلویښت (۴۸۰۰۰) زره پاپان او دیني مشران په قسطنطنیه کې راغونډ شوي وو خو نتیجه دا شوه چه دغه لویه اجتماع په دومره وړو وړو ډلو تقسیم شوه چه د ټولو نه د غتې ډلې افراد ایله درې سوه اتلس (۳۱۸) کسان پاتې شو چه د وخت بادشاه د همدې ډلې نظر غوره کړو. (او امانتِ کبرئ نوم ئې ورله کیخودو چه په حقیقت کې خیانتِ کبرئ دې، ابن کثیر سورة بني اسرائیل. ابو محمد)

او نظر ئې دا وو چه مسیح بعینه اِله دې. (لکه الله به پرې روستو آیت کې رد وکړي) او نور خلك ئې پدې مکلف کړل چه د همدوي نظر ومني نو ځکه دغه اجتماع د ډیرو جګړو

او اختلافاتو سبب جوړه شوه۔

(فی ظلال القرآن ۲/۸٦٤)

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمۡ كَثِيرٗا

اے کتاب والو! یقیناً راغلے دے تاسو ته رسول زمونږ ښکاره بیانوی تاسو ته ډیرے (مسئلے)

مِّمَّا كُنتُمۡ تُخۡفُونَ مِنَ ٱلۡكِتَٰبِ وَيَعۡفُواْ عَن كَثِيرٖۚ قَدۡ

د هغے نه چه تاسو پټولے د کتاب د الله تعالیٰ نه، او معافی کوی د ډیرو نه، یقیناً

جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٞ وَكِتَٰبٞ مُّبِينٞ ﴿١٥﴾ يَهۡدِي بِهِ ٱللَّهُ

راغلے دے تاسو ته د الله د طرف نه رڼا او کتاب روښانه. هدایت کوی په دے سره الله تعالیٰ

مَنِ ٱتَّبَعَ رِضۡوَٰنَهُۥ سُبُلَ ٱلسَّلَٰمِ وَيُخۡرِجُهُم

هغه چا ته چه تابعداری کوی د رضا د الله تعالیٰ لارو د سلامتیا ته او راوباسی دوی لره

مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ بِإِذۡنِهِۦ وَيَهۡدِيهِمۡ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴿١٦﴾

د تیارو نه رڼا ته په حکم خپل سره او هدایت کوی دوی ته لارے نیغے ته۔

**تفسیر**: ربط: مخکی آیتونو کی ئے د اهل کتابو لوظ ماتول او بیا په لعنت او عداوت باندے اخته کیدل بیان کړل، نو پدے آیت کی د دوی د لعنت او د عداوت نه د بچ کیدو لاره خودلے شویده چه هغه په آخری رسول باندے ایمان راوړل دی۔

نو پدے کی الله تعالیٰ اهل کتابو ته په اسلام کی د داخلیدو دعوت ورکوی او د دوی په حال باندے رحم کوی چه تاسو ته زما رشتینی رسول راغے په دهٔ ایمان راوړئ، دهٔ د رشتینوالی نښه دا ده چه دا نبی د وحی په ذریعه هغه ډیرے خبرے راښکاره کوی چه تاسو ئے پټوئ چه څوک پرے خبر نهٔ شی، د مثال په توګه د محمد ﷺ بعثت، په تورات کی د رجم والا آیت او د نبی کریم ﷺ په باره کی د عیسیٰ علیه السلام بشارت (زیرے)۔ او دا نبی ډیرے خبرے نهٔ بیانوی دے دپاره چه د حد نه زیات ونهٔ شرمیږئ او خجالته نشئ۔

اهل کتاب اګرکه ددے سورت د نازلیدو په وخت د مدینے نه شړلے شوی وو مګر په خیبر او خواوشا علاقو کی موجود وو، او بل قرآن کریم عالمی کتاب دے نو ټولو باندے ئے دا حجت قائم کړیدے او د هغوی عذر او بهانه ئے زائله کړیده چه د رشتینی رسول د راتللو نه

روستو که تاسو ایمان رانهٔ وړو نو بهانه مو قبوله نهٔ ده.

يُبَيِّنُ لَكُمْ : **فائده** : پدے کی اشاره ده چه د حق والو نښه دا ده چه هغه مسائل به ښکاره کوی کوم چه باطل پرستو ملیانو پټ کړیدی.

مِمَّا كُنتُمْ تُخْفُونَ : اهل کتابو د توحید خبرے، د رسول الله ﷺ د رسالت او داسے نورے خبرے پټے ساتلے کوم چه په تورات او انجیل کی موجودے وے دے دپاره چه عام خلق حق ونهٔ پیژنی هسے نهٔ چه په نبی کریم ﷺ باندے ایمان راوړی او زمونږ قلنګونه د مینځه لاړ شی، ځینی احکام به ئے د رشوتونو دپاره، او ځینی ئے د نورو اغراضو دپاره خلکو ته نهٔ ښکاره کول لکه د نبی کریم ﷺ صفات، د زانی دپاره رجم، او د اصحاب السبت قصه (چه دوی پکی شادوګان شوی وو).

نو که رسول الله ﷺ په حقه رسول نهٔ وے نو ستاسو پټ حالات به ئے نهٔ وے بیان کړی کوم چه تاسو د خپلو تابعدارو نه هم پټ ساتلی دی.

وَيَعْفُو عَنْ كَثِيرٍ : پدے کی اشاره ده چه نبی کریم ﷺ حق پیغمبر دے هغه څه بیانوی چه الله ورته اجازه ورکړی وی، ورنه هغه ته خو ستاسو ډیر پټ پټ قبائح معلوم دی که بالفرض غیر نبی ته دا معلومات وے نو تاسو به ئے ډیر زیات رسوا کړی وے.

عن كثير : ددے نه مراد هغه مسائل دی چه ددے آخری رسول د دین سره ئے تعلق نشته بلکه پدے دین کی منسوخ شویدی.

قصه

علامه قرطبیؒ وغیره یوه قصه لیکلے ده چه یوه ورځ د نبی کریم ﷺ خوا ته د یهودیانو یو دینی مشر راغلو تپوس ئے وکړو چه څه شے دے چه تا مونږ ته د هغے د بیان عفوه کړیده؟ (د یهودی مقصد دا وو چه د نبی ﷺ خبرو کی تناقض پیدا کړی) نبی کریم ﷺ غلے پاتے شو او بیان ئے ونکړو نو هغه شخص خپلو ملګرو ته ورغے، وے ویل چه ګومان کوم چه دا په حقه پیغمبر دے، د الله د اجازے نه په غیر څه شے نهٔ بیانوی. یعنی که عفوه شوی خیزونه ئے راته بیان کړی وے نو دا جمله (وَيَعْفُوا عَنْ كَثِيرٍ) به دروغ شوے وے. (القرطبی ۱۸۸/۶)

يَعْفُوا : ددے یوه معنیٰ ده پریخودل د بیان، او بله معنی ده تجاوز کول.

**حکمة** : رسول الله ﷺ د یهودیانو ټولے بدے خبرے ولے نهٔ راښکاره کولے؟ دے کی حکمة (والله اعلم) دا دے چه O یو خو پدے سره داعی ته خبره سختیږی،

O او بله دا چه د اُوچتو اخلاقو تقاضا دا ده چه د خپل مخالف سره پوره نکته چینی ونکړی، یو تن لس نقصانات کړی وی نو ټول به ورته نهٔ ذکر کوی پدے باندے انسان بد اخلاقه ښکاره کیږی، بلکه دوه درے چه بیان شی مقصد پوره کیږی او رسول الله ﷺ ډیرو اُوچتو اخلاقو والا وو۔ O بل ددے دپاره دا خلك کیدے شی حق ته مائل شی۔

قَدْ جَآءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّكِتٰبٌ مُّبِيْنٌ : یعنی یو ځل بیا په غور سره دا خبره واوریٔ چه تاسو ته ډیره رڼا او کتاب راغلے دے چه د هغے په وجه الله تعالیٰ هغه چا ته چه د الله د رضا طلبګاروی د آخرت د عذاب نه سلامتیا طرف ته لارخودنه کوی او د کفر د تیارو نه ئے اُوباسی او د ایمان د نُور توفیق ورکوی، او حق دین طرف ته ئے لارخودنه کوی۔ نو اُوس د تیارو وخت تیر شو او لویه رڼا راغله نو راشئ ددۀ نه فائده واخلئ او دشمنی ورسره مۀ کوئ که غواړئ چه د هر قسمه تیارو نه راوځئ او د سلامتیا په لاره روان شئ نو ددے نبی تابعداری شروع کړئ ورنه د قیامته پورے ستاسو د تیارو نه راوتل ممکن نۀ دی۔

## نُور څه شے دے؟

د نور نه مراد پدے مقام کی قرآن کریم دے او (وَكِتٰبٌ مُّبِيْنٌ) ئے عطف تفسیر دے۔او مطلب دا دے چه قرآن داسے رڼا ده چه ددے په وجه بنده د تیارو د جهالت او د ګمراهئ نه راوځی او دا هغه کتاب دے چه هر هغه څه ئے راښکاره کړیدی چه بندګان هغے ته په دینی او دنیاوی امورو کی محتاج وی چه هغه په الله او د هغه په اسماء او صفاتو او افعالو علم دے او د هغه په احکام شرعیه او جزائیه ؤ علم دے۔ (تفسیر السعدی)

او دلیل پدے باندے دا دے چه مخکی سورة النساء آیت (۱۷۵) کی تیر شو ﴿وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكُمْ نُوْرًا مُّبِيْنًا﴾ مونږ تاسو ته ښکاره رڼا نازله کړیده چه هغه قرآن دے۔ او سورة التغابن (۸) آیت کی دی: ﴿فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالنُّوْرِ الَّذِيْٓ اَنْزَلْنَا﴾

پس ایمان راوړئ په الله او د هغه په رسول او په هغه رڼا چه مونږ نازله کړیده یعنی قرآن۔

او سورة الشوری (۵۲) آیت دی: ﴿وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا ؕ مَا كُنْتَ تَدْرِيْ مَا الْكِتٰبُ وَلَا الْاِيْمَانُ وَلٰكِنْ جَعَلْنٰهُ نُوْرًا نَّهْدِيْ بِهٖ مَنْ نَّشَآءُ﴾۔

او بل دلیل دا دے چه دلته روستو (يَهْدِيْ بِهِ اللّٰهُ) کی ضمیر مفرد راغلے دے که دوه څیزونه مراد وے نو (بِهِمَا) به ئے وئیلی وے۔ (المنار ۶/۲۵۲)

بریلیان ددے نه استدلال کوی چه د نور نه مراد رسول الله ﷺ او کتاب مبین نه قرآن

دے۔ جواب دا دے چه اول خو راجح دا ده چه دلته د نور نه كتاب واخستے شي لكه چه مخكې بيان شو، او كه ومنو نو بيا وايو چه رسول الله ﷺ نور هم دے او بشر هم۔ په اعتبار د ذات سره بشر دے ځكه چه انساني عوارض پرے راغلي وو، د نطفې نه پيدا وو، خوراك، څكاك، او واده ئے كړے وو، خوب، ستړي والے، تكليف به پرے راتلو او مرګ پرے راغلے دے۔ او د هغه په بدن كې الله تعالىٰ د نبوت رڼا اچولے وه، او د هغه په سبب الله تعالىٰ حق ښكاره كړيدے، او شرك ئے محو كړيدے او د اهل كتابو پټے خبرے ئے راښكاره كړيدى نو دا نورانيت د بشريت منافي نۀ دے۔ او كه څوك رسول الله ﷺ بشر نۀ ګڼړي او د ملائكو په شان ئے نور ګڼړي نو دا د مسلمانانو عقيده نۀ ده۔ د ﴿ اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ﴾ خلاف ده۔

د نُور دلته معنىٰ اسلام هم كيدے شي او قرآن او اسلام او نبي ته نُور پدے وجه وائي چه دا د بصيرت دپاره داسے دے لكه د سترګے دپاره رڼا، كه رڼا نۀ وے نو سترګو به هيڅ نۀ ليدلے نو كه دغه درے څيزونه نۀ وے، نو خلك به په تيارو او ګمراهيو كې پراته وے او د الله د دين حقيقت به ئے نۀ پيژندلے او د تورات او انجيل تحريفات به نۀ معلوميدلے او د جهل او كفر په تيارو كې به په پټو سترګو روان وے۔ (المنار) او څه وجے مخكې بيان شوے۔

يَهْدِىْ بِهِ اللّٰهُ : يعني د قرآن نه به هغه څوك فائده اخلي چه د الله د رضا پسے روانيږي او مقصد ئے خپل رب راضي كول وي، نو قرآن به ورته فائده وركړي۔ او كه قرآن د پيسو اخستو دپاره يا د بل غرض دپاره لولي نو هغه ته پرے هدايت نۀ كيږي۔

سُبُلَ السَّلَامِ : ۱– لارے د الله تعالىٰ ته، سلام د الله د نومونو نه يو نوم دے۔

۲– يا سلام مصدر دے يعني لارے د سلامتيا ته۔ قرآن كريم كې د سلامتيا لارے دي، څوك چه پدے پسے روان شو نو د هغه نفس، عزت او مال او دين به محفوظ وي۔

**حكمة** : سوال : په قرآن كريم كې سبيل لفظ مفرد ذكر كيږي، دلته ولے جمع شو، سبل وويل شو؟ جواب : كوم ځاي چه مفرد استعمال شي هلته ايمان او عقيده مراد وي، او هغه يو شے دے، او دلته د سبل نه احكام او قرآني اعمال مراد دي او هغه ډير دي، نو ځكه جمع راوړے شوه۔

مِنَ الظُّلُمٰتِ : د تيارو د شرك، بدعت، رواج او شك او ګناهونو نه۔

بِاِذْنِهٖ : يعني د الله په توفيق سره چه پدے كې به د بنده خپل واك نۀ وي۔

وَيَهْدِيْهِمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ : مخكې هم هدايت وو او دلته هم هدايت دے؟

۱– نو دا تاكيد دے ځكه چه هدايت سبل السلام ته دا بعينه هدايت دے صراط

مستقیم ته، لیکن عطف ئې د تغایر وصفي د وجه نه کړیدے ځکه چه کله یو د نیغه لاره وي لیکن سلامتیا پکې نهٔ وي او کله د سلامتیا لاره وي لیکن نیغه نهٔ وي نو ځکه ئې ورله دواړه صفتونه جمع کړل۔

۲– دویم دا چه مخکې د سبل السلام نه په دنیا کې د دین او هدایت لارے مراد دي، او دلته د جنت لاره مراد ده۔ (روح المعاني)

۳– یا اول هدایت د احکامو او اعمالو وو او دلته هدایت د عقیدے مراد دے۔

٤– یا هلته هدایت د مقاصدو او دلته د دلیلونو سره هدایت مراد دے۔ (احسن الکلام)

**فائده:** علامه محمد رشید رضا فرمائي: ددے نور الله تعالیٰ درے فائدے بیان کړے:

(۱) يَهۡدِي بِهِ ٱللَّهُ: څوك چه د الله د رضا پسے روانیږي او پدے نُور باندے ایمان راوړي، نو هغه ته هغه لارے ښائي چه د هغې په وجه به په دنیا او په آخرت کې د ټولو هلاکونکو او بد بختۀ کونکو څیزونو نه وساتي، نو په دنیا کې به د الله حقوق او د خپل نفس روحي او جسدي حقوق او د خلکو حقوق به ادا کړي۔ یعني داسے دین پسے به روان شي چه په هغې کې به ټولے هغه طریقے موندہ کړي چه په هغې سره نفس د دنیا او د آخرت د شقاوتونو نه بچ کیږي ځکه چه دا د سلامتیا دین او د الله دپاره د اخلاص دین دے او د هغه د بندګانو دپاره د مساوات او عدل او احسان او مهربانۍ دین دے۔

(۲) دویمه فائده: وَيُخۡرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ: د وثنیت او خرافاتو او هغه اوهامو نه راویستل– چه په هغې سره مشرانو ټول دینونه خراب کړي وو او د هغې اهل ئې غلامان جوړ کړي وو– د خالص توحید رڼا ته چه هغه توحید بنده لره د دنیا او د دین د مشرانو د غلامۍ نه آزادوي، نو د خلکو ترمینځ به آزاد عزتمند وي، او د خالق مخے ته به یواځے غلام عاجزي کونکے وي۔ او د باذنه معنیٰ ده په خپل مشیئت او توفیق سره۔ او اذن علم ته هم وائي یعني په خپل هغه علم سره به ئې د تیارو نه راویاسي چه په هغې سره ئې دا قرآن د تیارو د ختمیدو سبب ګرځولے دے۔ نو دا داسے راویستل دي چه په نفسونو کې تاثیر کوي په صحیح عقیدو او اخلاقو او اعمال صالحهٔ سره او د هغې اصلاح کوي۔

(۳) فائده: ٱلۡهِدَايَةُ إِلَى ٱلصِّرَٰطِ ٱلۡمُسۡتَقِيمِ۔ یعني داسے لاره ښائي چه دیني مقصد او هدف ته په لنډ وخت کې رسول کوي ځکه چه پدے کې کوږوالے نشته چه تلونکے پرے سُست شي یا په منزل کې ورك شي، او هغه دا چه په قرآن باندے په هغه صحیح طریقه سره منګولے ولګوي د کوم دپاره چه الله تعالیٰ دا نازل کړیدے –لکه د سلفو په شان مخکې د ښکاره

کیدو د اختلافاتو او تاویلاتو نه. - پدے طریقه چه ددۀ عقائد، آداب او احکام په تزکیه د نفس او د زړه په اصلاح او د اعمالو په ښائسته کولو کی تاثیر وکړی، نو ددیے ثمره به دا شی چه بنده به په دنیا او په آخرت کی سعادت ته ورسیږی. (تفسیر المنار٦/٢٥٢)

| |
|---|
| لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ قُلْ |
| یقیناً کافران دی هغه کسان چه وائی یقیناً الله همدا مسیح ځوی د مریم دیے. ته ووایه ! |
| فَمَنْ يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا اِنْ اَرَادَ اَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ ابْنَ |
| نو څوك اختیار لری د الله نه د څه شی که اراده وکړی الله ددیے چه مړ کړی مسیح ځوی |
| مَرْيَمَ وَاُمَّهٗ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَلِلّٰهِ مُلْكُ |
| د مریم او مور د هغه او هغه څوك چه په زمکه کی دی ټول او خاص د الله دپاره بادشاهی |
| السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا يَخْلُقُ مَا |
| د آسمانونو او زمکے ده او هغه څه چه په مینځ د دواړو کی دی، پیدا کوی څه چه وغواړی |
| يَشَآءُ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٧﴾ |
| او الله په هر شی باندیے قادر دیے. |

**تفسیر : ربط** : دا د (فَنَسُوْا حَظًّا) سره متعلق دیے، یعنی تورات او انجیل کی د الله توحید وو لیکن نصاریٰ راولګیدل، د الله توحید ئے هیر کړو او په شرك کی واقع شو چه عیسیٰ علیه السلام ئے د الله سره شریك کړو. او هغه ته ئے عین اله وویلو، نو پدیے کی الله تعالیٰ مونږه ته یره راکوی چه تاسو توحید هیر نکړیٔ کوم چه د الله په قرآن کی موجود دیے لیکن عامه دنیا د شرك نه ډکه شوه، د قبرونو، د اولیاؤ عبادتونه شروع شو. نیکانو بندګانو ته ئے غوث الثقلین نومونه ورکړل، او اکثر شرك د صوفیاؤ د وجه نه په مسلمانانو کی خور شو.

پدیے آیت کی الله تعالیٰ د هغه نصاراؤ کفر بیانوی چه هغوی عیسیٰ علیه السلام د الله تعالیٰ سره شریك کړیے وو، او دا هم د نقض عهد یو صورت دیے. او پدیے کی د دوی غلو او د الله تعالیٰ په حق کی د هغوی انتهاء درجه زیاتے بیان شویدیے، الله تعالیٰ قسم خوړلو سره اُوفرمایل چه کوم خلقو اُووئیل چه الله د مسیح ابن مریم نوم دیے نو دا کافران شو، څکه

چه دوی د الله دیو بنده نه (اِلـه) جوړ کړو کوم چه الله پیدا کړے وو۔
دلته په راتلونکو آیتونو کی د نصاراؤ د درے فرقو یعقوبیه، نسطوریه او ملکانیه درے قسمه عقیدے رد کړیدی او هریو ته ئے کفر وئیلے دے، په نصاراؤ کی تقریباً دوه اویا دلے وے چه دغه درے پکی غټی غټی وے۔ دلته د یعقوبیه ډلے عقیده بیانوی چه دوی به وئیل چه الله او عیسیٰ علیه السلام (العیاذ بالله) یو شے دے، په عرش باندے چه کوم رب دے هغه راکوز شویدے او د عیسیٰ علیه السلام شکل ئے جوړ کړیدے، او بیرته واپس ختلے دے۔
د نسطوریه عقیده دا وه چه عیسیٰ علیه السلام ابن الله دے، ملکانیه ډلے به وئیل چه آلهه درے دی او عیسیٰ علیه السلام پکی (ثَالِثُ ثَلَاثَةٍ) د دریو نه یو دے، او بل الله او دریم روح القدس یا مریم علیها السلام ده (بناء په اختلاف د اقوالو د دوی) او دوی وائی چه د کائناتو نظام دوی روان کړیدے لکه د نمر مثال به ئے ورکولو او دے ته به ئے اقانیم (اصول) ثلاثه وئیل۔ گویا که دا به ئے وئیل چه پدے درے اقطابو باندے عالَم آباد دے، او دا خبره بیا زمونږ د امت صوفیاؤ راواخسته او دا عقیده ئے اختیار کړه چه په دنیا کی اقطاب، اغواث او ابدال دی چه هغوی د دنیا نظام چلوی او دنیا په هغوی باندے ټینګه ده دا ټول کفری عقیدے دی۔
هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ : د نصاراؤ عقیده د حلول هم وه، دا به ئے وئیل چه الله تعالیٰ د مسیح په قالب کی حلول کړیدے۔ (معاذ الله)۔ ځینی وائی چه کله نصاریٰ د عیسیٰ علیه السلام د الوهیت قائل دی او بل طرفته دوی په ژبه سره د توحید اقرار هم کولو چه الله یو دے، نو ددے نه لازمی نتیجه دا راوځی چه د دوی په نیز د مسیح نه سویٰ بل اِلـه نشته۔
قُلْ فَمَنْ يَمْلِكُ : (أَيْ يَقْدِرُ أَوْ يَسْتَطِيعُ أَوْ يَمْنَعُ) څوك به قادر شی، طاقت به ولری او منع به کړی) دے نه روستو الله تعالیٰ خپل رسول ته په نصاراؤ باندے د حجت قائمولو طریقه اُوخودله چه فرض کړه که الله تعالیٰ مسیح ابن مریم، د هغه مور او د ټول جهان والا هلاکولو فیصله اُوکړی نو هغه به څوك منع کړی؟
ددے جواب به په قطعی توګه سره دا وی چه هیڅوك نشته، نو بیا د الله یو بنده څنګه ((الله)) کیدے شی، یا په معبود کیدو کی د هغه شریك څنګه جوړیدے شی؟۔ نو دا د غصے الفاظ دی چه اے مشرکانو! تاسو دا خبرے کوئ نو د الله کائنات ورانول غواړئ، بیا دِے تاسو عیسیٰ علیه السلام او د هغه موربچ کړی۔
لکه دا خبره الله تعالیٰ د مشرکانو په رد کی په سورة مریم (۹۰) کی هم کړیده :
﴿لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا، تَكَادُ السَّمَوَاتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنشَقُّ الْأَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا﴾۔

نزدے ده چه آسمانونه او زمکه او غرونه درهم برهم شي. او دلته وائي چه انسانان به ټول ختم کړم نو څوك به ئے خلاص کړي؟، عیسیٰ علیه السلام خپل ځان د مرګ نه نشي خلاصولے نو ستاسو به څه مدد وکړي؟!.

إِنْ أَرَادَ أَنْ يُهْلِكَ الْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُ : دلته هلاکت په معنیٰ د مرګ نۀ دے بلکه په معنیٰ د نیست او نابود کولو او فناء کولو سره دے.

**فائده** : الله تعالیٰ په بعض مقاماتو کي د انبیاء علیهم السلام په حق کي داسے خبره کوي دے دپاره چه د هغوي امتونه هغوي لره د بندګۍ د حد نه زیات پورته نکړي، ورنه الله تعالیٰ سره د خپلو انبیاؤ ډیره او چته مرتبه او شان دے. (شاه ولی الله الدهلویؒ)

وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا : سوال : دا ئے ورسره ولے ذکر کړو؟

۱- **جواب** : پدے کي اشاره ده چه د الله په نیز په فنا کولو کي عیسیٰ علیه السلام او نور مخلوق برابر دي، په الله باندے هیڅوك زورور نشته اګرکه یو نبي وي یا د هغه مور وي.

۲- جواب : اګرکه د هغه مور او ټول زمکے والا د عیسیٰ علیه السلام سره مدد وکړي هم د الله نه خپل ځانونه نشي بچ کولے کله چه الله تعالیٰ د هغوي د فنا کولو اراده وکړي.

ولله ملك السموات : یعني د آسمان او زمکے او د دواړو ترمینځ د هر شي ملکیت د الله دپاره دے، هغه چه څه غواړي پیدا کوي، هغه په هر شي قادر دے. هغه آدم علیه السلام د خاورے نه او حواء د آدم علیه السلام نه پیدا کړیده. دغه شان که هغه عیسیٰ علیه السلام د مریم نه بغیر د پلار نۀ پیدا کړو نو په عقلي یا شرعي توګه باندے څنګه ضروري شوه چه هغه ((الله)) جوړ شي ؟!. په یو بنده کي د الله قدرت لیدلو سره د هغه نه معبود څنګه جوړ شي؟ الله خو په هر شي قدرت لرونکے دے بنده بغیر د پلار او مور نه هم پیدا کولے شي، او د هواء نه ئے هم پیدا کولے شي، لکه ټول کائنات ئے د اُوبو نه پیدا کړیدي، هغه ته هیڅ مشکلات نشته.

**فائده ۲** : د (فَمَنْ يَمْلِكُ) نه په خلورو طریقو سره په نصاراؤ رد دے (۱) دا عالَم سره د عیسیٰ علیه السلام نه فنا کیدونکے دے او د فنا کیدو نه څوك بچ کونکے نشته، او عیسیٰ علیه السلام هم فنا کیدونکے دے، ځان او نور مخلوق د فنا نه نشي بچ کولے نو څنګه به اِلٰه او مُدبر وګرځي. (۲) وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ : یعني نظام چلونکے د عالَم الله تعالیٰ دے او عیسیٰ علیه السلام خو په مابینهما کي داخل دے نو هغه رعیت او مملوك دے او د آسمان او د زمکے ترمینځ محدود او رابند دے نو اِلٰه نۀ دے.

(۳) یخلق : الله تعالیٰ خلق یعني پیدائش کولے شي او عیسیٰ علیه السلام خلق په معنیٰ د ایجاد

سره نشي کولے هغه صرف د مرغئ شکل جوړولو او هر شے نشي پیدا کولے۔
(٤) وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ : الله تعالیٰ قدرتِ مطلقه لري چه بغیر د اصل نه پیدائش کولے شي لکه آسمانونه او زمکه ئے بغیر د اصل نه ابتداءً پیدا کړیدي او په عیسیٰ علیه السلام کي دا صفتونه نشته۔ (احسن الکلام لشیخنا القمقام)

| وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى نَحْنُ اَبْنَاءُ اللّٰهِ وَاَحِبَّاؤُهٗ |
|---|
| او وائي یهودیان او نصاریٰ مونږ ځامن (نازولي) د الله تعالیٰ یو او دوستان د هغه یو |
| قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ |
| ته ووایه ! نو ولے عذاب درکوي تاسو ته په ګناهونو ستاسو بلکه تاسو بندګان یئ |
| مِّمَّنْ خَلَقَ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ |
| د هغه چا نه پیدا کړیدي الله تعالیٰ، بخنه کوي چا ته چه وغواړي او عذاب ورکوي |
| مَنْ يَّشَآءُ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوَاتِ وَالْاَرْضِ وَمَا |
| چا ته چه وغواړي او خاص د الله دپاره بادشاهي د آسمانونو او د زمکے ده او د هغه څه |
| بَيْنَهُمَا وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ﴿١٨﴾ |
| چه په مینځ د دواړو کي دي او خاص هغه ته ورګرځیدل دي۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کي په یهود او نصاراؤ بانـدے یو بل قسم رد او د هغوی تناقض بیانوي چه دوي سره د خیانتونو او ګمراهیو نه ځانونه د الله ابناء او محبوبان ګنړي۔ دا ډیره ناشنا خبره ده، ځکه چه بنده چه د الله محبوب کیږي نو هغه په نیك اعمالو سره، نۀ په خیانت سره او دوي ځانونه په خیانت سره د الله دوستان جوړوي۔
نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ : اَیْ مَعَ خِيَانَتِهِمْ۔ یعني سره د خیانتونو د دوي نه دوي ځانونه د الله محبوبان ګنړي۔

## اهل کتاب ځانونه ولے د الله تعالیٰ ځامن او محبوبان ګنړي؟

د یهود او نصاراؤ مقصد پدے کي څه وو چه مونږ د الله ځامن او محبوبان یو؟ نو یو خو د خپلو ځانونو شرافت بیانول وو چه مونږ اشرف المخلوقات یو۔ دویم مقصد دا وو چه

مونږ د مسلمانانو نه غوره يو، زمونږ ضرورت نشته چه په اسلام کې داخل شو، نو پدے سره ئې ځانونه د اسلام نه مُسْتَغْنِي کول غرض وو او ځان ته به ئې ويل :
(نَحْنُ شِعْبُ اللّٰهِ الْمُخْتَارَةَ) مونږ د الله غوره کړے شوي ډله يو۔ (قُلُوْبُنَا غُلْفٌ) تا ته زمونږ ضرورت نشته۔ يو سړے د الله محبوب شو نو هغه ته څه ضرورت دے چه د بل په دين کې داخليږي!۔ او دا ډيره غلطه خبره وه، ذهن ئې وران وو، نو الله ورله ذهن سازي کوي او د مؤمنانو تربيت کوي۔
أَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ : د دوي مطلب دا نۀ وو چه مونږ د الله تعالىٰ حقيقي اولاد يو، ځکه چه دوي دا خبره خو د عزير او عيسىٰ عليهما السلام په باره کې کوله نو مطلب ئې دا وو چه [نَحْنُ مُقَرَّبُوْنَ اِلَيْهِ مِثْلَ الْاَبْنَاءِ] مونږ الله ته داسے نزدے يو لکه بچي چه پلار ته نزدے وي۔ لکه (وَاَحِبَّاؤُهٗ) د هغے عطف تفسير دے۔ پدے کې چه کومو مفسرينو تقديرات راويستلي دي چه (نَحْنُ اَبْنَاءُ رُسُلِ اللّٰهِ) مونږ د الله د رسولانو ځامن يو يا (نَحْنُ اَشْيَاعُ اَبْنَاءِ اللّٰهِ) مونږ د الله د ځامنو (عيسىٰ او عزير عليهما السلام) ډله او تابعدار يو۔ (تفسير الكشاف ۱/۶۱۷)
نو دے ته ضرورت نشته۔
ځينې مفسرينو وئيلي دي چه يهودو په تورات کې موندلي وو: [يَا اَبْنَاءَ اَحْبَارِيْ] (اے زما د علماؤ ځامنو) نو دوي په کې تحريف وکړو او داسے ئې ولوستلو [يَا اَبْنَاءَ اَبْكَارِيْ] (اے زما د جينکو ځامنو) او دغه شان نصاراؤ د عيسىٰ عليه السلام نه نقل کړي وو چه هغه يو ځل وويل : [اِنِّيْ ذَاهِبٌ اِلٰى اَبِيْ وَاَبِيْكُمْ] زه خپل پلار او ستاسو پلار طرفته تلونکے يم۔ نو دوي وويل چه ددے نه معلومه شوه چه مونږ د الله ځامن يو۔ حال دا چه د دوي په کتابونو کې اب (پلار) لفظ د عزت او وقعت دپاره وو، نۀ حقيقي پلار۔ (ابن كثير، واحسن الكلام)
قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ : الله تعالىٰ په دوي باندے رد کوي چه تاسو زما دوستان نۀ يئ، ځکه چه بيا زۀ تاسو ته په گناهونو باندے ولے عذاب درکوم؟ آيا پلار چرته ځوي ته او دوست چرته دوست ته عذاب ورکوي؟ ځکه چه دا قانون دے [اَلْحَبِيْبُ لَايُعَذِّبُ الْحَبِيْبَ] يو دوست بل دوست ته عذاب نۀ ورکوي۔ نو لازمي نتيجه دا راووتله چه يهود او نصارىٰ د الله دوستان نۀ بلکه د الله دشمنان دي۔
حال دا چه تاسو په خپله ژبه سره اقرار کوئ چه مونږ به صرف څلوېښت ورځے اُور ته غورزولے شو، او تاسو ته الله تعالىٰ څو مره عذابونه درکړيدي، شادوګانو او خنزيران ئې درنه جوړ کړيدي، غرونه ئې درباندے راپورته کړيدي، او په پريشانو کې ئې اچولي يئ۔ حقيقت

دا دے چه دا گمان چه تاسو پرے اعتماد کوئ سراسر باطل دے۔

بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ : دا بل رد دے یعنی تاسو خو انسانان یئ د عامو انسانانو په شان، د الله تعالیٰ تعلق ستاسو سره د خالق د مخلوق سره او د مالك د بنده سره دے۔ او د عامو انسانانو په باره کی قانون دا دے چه څوك ایمان راوړی او نیك عمل كوی الله به ورته بخنه كوی او څوك چه كفر كوی او بد عملونه كوی، هغه له به عذاب وركوی، په هغه باندے هیڅ اعتراض نشته، ځكه چه د هر شی ملكیت د هغه دپاره دے۔

د یو عالِم نه چا ددے مقولے په باره كی تپوس وكړو چه آیا په قرآن كی دا چرته شته چه دوست دوست ته عذاب نهٔ وركوی نو هغه ورته دا آیت ولوستلو، (ابن كثیر)

او دا مقوله په یو مرفوع حدیث كی هم راغلے ده [وَاللّٰهِ لَا يُلْقِى اللّٰهُ حَبِيْبَهُ فِى النَّارِ] (صحيح الجامع : ٧٠٠٩ والصحيحة : ٢٤٠٧) قسم په الله، الله تعالیٰ خپل دوست اُور ته نهٔ گوزاری۔

او د الله تعالیٰ ددے امت سره مینه زیاته ده، نو پدے وجه رسول الله ﷺ فرمائی :

[أُمَّتِي أُمَّةٌ مَرْحُوْمَةٌ لَيْسَ عَلَيْهَا عَذَابٌ فِي الْآخِرَةِ] (ابوداود: ٤٢٧٨، صحيح الجامع : ١٣٩٦)

زما امت مرحوم دے په دے باندے به په آخرت كی عذاب نهٔ وی، د دوی عذاب په دنیا كی فتنے او زلزلے او قتلونه دی۔ نو مونږ چه د جنت دعوه كوو نو په نص سره ئے كوو او د یهود او نصاراؤ دعوے د خپلے خیتے نه دی۔

يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ : اَىْ اِذَا كَانَ اَهْلًا لَهٗ بِحِكْمَتِهٖ۔ یعنی چا ته چه وغواړی بخنه كوی كله چه د بخنے اهل وی او دا كار د الله په حكمت سره كیږی۔

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ : دا دریم رد دے یعنی تاسو د الله تعالیٰ مملوك یئ او د هغه د آسمانونو او زمكے ترمینځ راگیر یئ۔

وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ : دا بل رد دے یعنی په آخرت كی د هغه نه نشئ خلاصیدلے بلكه د جزاء او سزا دپاره به هغه ته وركرځئ۔

| يَا أَهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ |
|---|
| اے كتاب والو ! یقیناً راغلے دے تاسو ته رسول زمونږ چه ښكاره بیانوی |
| لَكُمْ عَلٰى فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ اَنْ تَقُوْلُوْا |
| تاسو ته (دین ستاسو) په وخت د بندیدلو د رسولانو كی چه ونهٔ وایئ |

| مَا جَآءَنَا مِنۢ بَشِيرٍ وَّلَا نَذِيرٍ فَقَدْ جَآءَكُم |
|---|
| نۀ دے راغلے مونږ ته زیرے ورکونکے او نۀ یره راکونکے نو یقیناً راغلے تاسو ته |
| بَشِيرٌ وَّنَذِيرٌ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٩﴾ |
| زیرے درکونکے او یره ورکونکے او الله په هر شي باندے قدرت لرونکے دے۔ |

**تفسير** : پدے کی بیا ترغیب دے اتباع د رسول الله ﷺ ته، اهل کتابو ته وائی چه ددے رسول تابعداری شروع کړئ او پدے کی مونږ ته هم ترغیب دے۔

ځینی مفسرین لیکی چه د هدایت رښا طرفته تلل په دوه څیزونو باندے موقوف دی، یو دا چه د الله صحیح معرفت حاصل کړئ، او د خالق او د مخلوق د تعلق په باره کی غلطه عقیده مۀ ساتئ تردے ځای پورے دا خبره بیان شوه، دویم شے دا دے چه په نبی ﷺ باندے ایمان راوړئ چه دا د پخوانو انبیاؤ د کمالاتو راجمع کونکے او د الٰهی شریعتونو د ټولو نه لوی او آخری شارح دے دلته دا خبره بیانیږی۔

يُبَيِّنُ لَكُمْ : أَيْ دِينَكُمْ ۔ یعنی تاسو ته ستاسو دین بیانوی، او ښکاره خبرے کوی چه ستاسو هیڅ شبهات باقی نۀ پاتی کیږی۔

عَلٰى فَتْرَةٍ : د فتور نه دے، سستوالی او هغه کمزورئ ته وائی چه د تیز حرکت نه روستو راشی۔ دلته ترے انقطاع مراد ده یعنی په وخت د انقطاع او ختمیدو د رسولانو کی چه د مخکنو انبیاؤ په شریعتونو باندے عمل سست شوے وو او د هغوی آثار منقطع او ختم شوی وو۔ ځکه چه د عیسیٰ علیه السلام نه تر محمد رسول الله ﷺ پورے هیڅ نبی نۀ دے راغلے لکه د بخاریؒ په روایت کی دی [لَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ نَبِيٌّ] (صحيح بخاري : ٣٤٤٢)

زما او د عیسیٰ علیه السلام ترمینځ هیڅ نبی نۀ وو، نو کوم مفسرین چه دا وائی چه د دوی ترمینځ څلور یا درے رسولان راغلی وو نو هغه ددے صحیح روایت خلاف دی۔

او دلته د فَتْرَة زمانه ذکر کولو فائده دا ده چه دے زمانه کی تیاره زیاته شوے وه، سخت ضرورت وو چه یو رسول راشی او رڼا راوړی نو د سخت حاجت په وخت کی الله راولیږلو لهٰذا ددۀ منل پکار دی۔ لکه یو ځای کی تیاره وی او ناڅاپه رڼا راپیدا شی نو د دغه رڼا ډیر قدر پکار وی، او که نور رسولان موجود وے او بیا رسول الله ﷺ راغلے وے نو بیا به رڼا لګیدلے وے خو دومره ډیر ضرورت به ورته نۀ وے۔

د فترت په موده کې د علماؤ اختلاف دے (۱) راجح قول چه د بخارئ نه معلومیږي سلمان الفارسي ﷺ وائي چه شپږ سوه کاله وو (صحیح بخاري: ۳۹۴۸)
بعض وائي: (۵٦٠) کاله او بعض وائي چه (۵٤٠) کاله وو.
اَنْ تَقُوْلُوْا : پدے کې د رسول الله ﷺ د رالیږلو حکمت بیانوي چه هغه عذرونه د بندګانو زائل کول دي. دلته (کَرَاهِيَةَ) یا (لِئَلَّا) کلمه مخکې پټه ده لکه تفصیل ئې د سورة النساء په آخري آیت کې ذکر شویدے.
بَشِيْرٍ وَّلَا نَذِيْرٍ : یعنې د دغه تیارو او جهالت او غفلتونو په وخت کې الله تعالیٰ ستاسو او د ټول جهان د اصلاح دپاره لوی هدایت کونکے بشیر او نذیر رالیږلو چه جاهلانو ته د کامیابئ لارے ښائي، غافلانو ته یره ورکوي او هغوي بیداروي، او ښکته همتونو والا په زیرې بیانولو سره راپورته کوي، نو په دۀ سره په ټول مخلوق باندے د الله حجت پوره شو اُوس ستاسو خوښه ده چه منئ او که نۀ.

| وَإِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يَا قَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ |
|---|
| او کله چه ووئیل موسیٰ (علیه السلام) قوم خپل ته اے قومه زما یاد کړئ نعمت د الله تعالیٰ |
| عَلَيْكُمْ إِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ أَنْبِيَآءَ وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا |
| په تاسو کله ئې چه پیدا کړیدي په تاسو کې پیغمبران او وے ګرځولي بادشاهان |
| وَآتَاكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ أَحَدًا مِّنَ الْعَالَمِيْنَ ﴿۲۰﴾ |
| او درکړے ئې دي تاسو ته هغه څه چه نۀ ئې دي ورکړي هیچ یو تن ته د مخلوقاتو نه. |

**تفسير** : پدے کې د بني اسرائیلو نقض عهد (لوظ ماتول) او بیا د هغوي تحیُّر (حیرانتیا) بیانول مقصود دي.
او پدے راتلونکي قصه ذکر کولو کې ډیر اشارات دي (۱) یو دا چه دا ښکاره شي چه لوظ ماتول یواځے د دوي د عوامو خاصه نۀ وه بلکه د دوي خواص مشران هم پدے مرض اخته وو چه د دولسو نقیبانو نه صرف دوه کسان د جهاد دپاره تیار شو، او لوظ ئې پوره کړو باقي لوظ ماتونکي وګرځیدل.
(۲) نبي کریم ﷺ ته تسلي ده چه ستا د وخت یهودیان د هغه پلارانو اولاد او د هغه استاذانو شاګردان دي چه د موسیٰ علیه السلام سره په کړو وعدو باندے ئې وفاداري نۀ وه کړے، نو

لکه څنګه چه هغه صبر کړے وو نو ته هم ورسره د صبر معامله وکړه۔

(۳) پدے کی یهودیانو ته د رسول الله ﷺ لویه معجزه ښکاره کول مقصد دے چه تاسو خو دا خپله بی لوظی پټوئ چه جهاد مو پریښے وو نو دے نبی تاسو ته پوره پوره بیان کړه سره ددے نه چه دا په هغه وخت حاضر نهٔ وو نو دا رشتینی نبی دے او دا به متعلق وی د (یُبَیِّنُ لَکُمْ کَثِیْرًا مِّمَّا کُنْتُمْ تُخْفُوْنَ) سره۔

(٤) او امتِ مسلمه ته دا سبق ورکوی چه که تاسو لوظونه مات کړل نو الله به دربانديے عذابونه نازل کړيدی، پریشانه به مو کړی او ښے ښے زمکے او نعمتونه به دربانديے بند کړی، لکه زمونږ د مسلمانانو نه خلافتونه واخستے شو او کفار غالبه شو او قسماقسم پریشانیانی پرے راغلے۔

نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَیْکُمْ : د جهاد د حکم نه مخکی ئے ورته د نعمتونو د رایادولو حکم وکړو دے دپاره چه د الله حکم ته تیار شی، او د نعمت د یادولو نه مقصد د هغے شکر کول دی۔

او درے قسمه نعمتونه ئے ورته بیان کړل۔

اِذْ جَعَلَ فِیْکُمْ اَنْبِیَآءَ : روحانی نعمتونه ئے د دنیاوی نعمتونو نه مخکی ذکر کړل ځکه چه روحانی او دینی نعمتونه غوره وی، دا د یو قوم لوی فضیلت دے چه الله په هغوی کی پیغمبران راولیږی او مخکی مونږ د ابن کثیرؒ په حواله لیکلی دی چه د لسو پیغمبرانو نه سوئ ټول پیغمبران په بنی اسرائیلو کی راغلی دی، او علامه آلوسیؒ لیکی چه څلور زره یا اویا زره پیغمبران پکی راغلی وو۔ (روح المعانی ۱/ ۳۱٦)

او پدے کی صحابه کرامو او ټول امت مسلمه ته اشاره ده چه تاسو سره الله تعالیٰ څومره احسان وکړو چه آخری رسول ئے راولیږلو، ددهٔ شکر وکړئ۔

وَجَعَلَکُمْ مُّلُوْکًا : **سوال** دا دے چه دوی خو ټول بادشاهان نهٔ وو او دلته وائی چه تاسو ئے بادشاهان وګرځولئ؟ **جواب** دا دے چه په کوم قوم کی چه بادشاهان وی نو هغه بادشاهی د ټول قوم حسابیږی لکه خلك وائی د عربو حکومت دے یا د عجمو۔

**۲- جواب** : د مَلِك (بادشاه) اطلاق په هغه چا کیږی چه د غلامئ نه آزاد وی، (لکه دوی د فرعون د غلامئ نه آزاد وو) او حدیث کی دی (مُلُوْکًا عَلَی الْاَسِرَّةِ) یعنی مجاهدین ټول بادشاهان دی ځکه چه د غلامئ نه آزاد دی)۔

دارنګه څوك چه ښځه او خادم او کور لری لکه دا د یو حدیث نه معلومیږی۔ د عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه یو سړی تپوس وکړو چه آیا مونږ کنے د فقراء

مهاجرینو نه نهٔ یو؟ عبد الله ورته وفرمایل : آیا ستا ښځه شته ؟ هغه وویل آؤ، آیا ستا کور شته ؟، آؤ، ورته ئے وفرمایل : [فَأَنْتَ مِنَ الْأَغْنِيَاءِ] ته خو د مالدارو نه ئے، بیا هغه ووېل : زما خادم هم شته. ورته ئے وفرمایل : [فَأَنْتَ مِنَ الْمُلُوكِ] ته خو د بادشاهانو نه ئے. (صحیح مسلم، کتاب الزهد، : ۲۹۷۹) وهو المنقول عن ابن عباس رضی الله عنهما ایضاً – ابن کثیرؒ)

او دا په ټولو بنی اسرائیلو کې موجود وو پدے وجه ئے (فِيكُمْ) لفظ ورسره ونهٔ وئیلو.

او په حدیث کې دی : [مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمْ مُعَافًى فِي جَسَدِهِ، آمِنًا فِي سِرْبِهِ، عِنْدَهُ قُوتُ يَوْمِهِ، فَكَأَنَّمَا حِيزَتْ لَهُ الدُّنْيَا بِحَذَافِيرِهَا] (ترمذی کتاب الزهد : ۲۳۴۶ بسند حسن)

څوك چه په داسے حال کې صبا کړی چه د هغه جسم صحیح سالم وی، د هغه نفس په امن او امان کې وی او د ورځے کافی خوراك ورسره وی نو گویا که د هغه دپاره ټوله دنیا راجمع کیدو سره راغله.

وَّ اٰتٰكُمْ مَّالَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ : أَيْ مِنْ خَوَارِقِ الْعَادَاتِ وَالْمُعْجِزَاتِ. یعنی تاسو ته ئے ناشنا ناشنا کارونه او معجزات د انبیاؤ درکړیدی، بنی اسرائیلو کې ډیر ناشنا واقعات راغلی دی چه مړی ورته راژوندی شویدی، ملائك ئے لیدلی دی، تقریباً هر څه ئے په سترګو لیدلی دی. او ددے نعمتونو نه دنیاوی نعمتونه هم مراد دی چه هغه سورة بقره کې تیر شویدی چه د دشمن هلاکول، د دریاب کولاویدل، د من او سلوی نازلول، او د اُوچ کانړی نه اُوبه راویستل او وریځه سورے کول.

او چونکه دوی په هغه زمانه کې د موسیٰ علیه السلام تابعدار وو او د توحید منونکی وو نو الله تعالیٰ دوی ته ناشنا کرامتونه ورکړی وو. (شربینیؒ)

الْعَالَمِيْنَ : ددے نه د هغه زمانے او د هغوی نه مخکنی خلك مراد دی.

| يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰى |
|---|
| اے قومه زما ! داخل شئ زمکے پاکے ته هغه چه لیکلے ده الله ستاسو دپاره او مهٔ اوړئ په |
| اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۲۱﴾ قَالُوْا يٰمُوْسٰى اِنَّ فِيْهَا قَوْمًا |
| شاګانو خپلو نو واپس به شئ تاوانیان. دوی ووېل اے موسیٰ ! یقیناً په دے کې قوم |
| جَبَّارِيْنَ وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْهَا |
| زورور دے او یقیناً هیچرے مونږ نهٔ داخلیږو دے ته تردے چه ووځی دوی د هغے نه |

| فَإِنۡ يَخۡرُجُوۡا مِنۡهَا فَإِنَّا دَاخِلُوۡنَ ﴿٢٢﴾ قَالَ رَجُلَانِ مِنَ |
|---|
| نو که چرته ووځي دوی د هغې نه نو یقیناً مونږ به داخلیدونکي یو۔ ووئیلے دوه سړو د |
| الَّذِيۡنَ يَخَافُوۡنَ اَنۡعَمَ اللّٰهُ عَلَيۡهِمَا ادۡخُلُوۡا |
| هغه کسانو نه چه یریدل (د الله نه) انعام کړے وو الله تعالیٰ په هغې دواړو باندے، داخل شئ |
| عَلَيۡهِمُ الۡبَابَ فَإِذَا دَخَلۡتُمُوۡهُ فَإِنَّكُمۡ غَالِبُوۡنَ |
| په دوی باندے دروازے ته نو کله چه داخل شوئ تاسو هغې ته نو یقیناً تاسو به غالبه یئ |
| وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوۡا إِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ﴿٢٣﴾ |
| او خاص په الله باندے پس توکل وکړئ که چرته یئ تاسو ایمان لرونکي۔ |

**تفسیر** : يٰقَوۡمِ : پدے کې اُوس د نعمت د شکر کولو طریقه بیانوی چه هغه د نبی خبره منل دی په جهاد کولو سره۔

ادۡخُلُوا : په تورات باندے الله تعالیٰ په بنی اسرائیلو جهاد فرض کړو، د دوی نه مخکې امتونو باندے جهادونه نهٔ وو نو دوی ته ووئیل شو چه تاسو مقدسے (پاکے) زمکے ته ننوځي د جهاد دپاره، چه دلته عَمَالِقَه قوم وسیدو (د عِمۡلِيۡق بن لَاوُذۡ بن سام بن نوح علیه السلام) دوی مشرکان، بت پرست وو، او ددے عَمَالقه ۇ نه عَمۡرو بن لُحَی الخزاعی د بحیره، سائبه وغیره شرکونه اخستي وو)

دوی ډیر مضبوط لاسونو او خپو والا وو، غټ غټ بدنونه ئے لرل، دلته ځینې مفسرینو د دوی د حد نه زیات قدونه او طاقتونه بیان کړیدی چه دوی کې عُوۡج بن عُنُق یو تن وو چه د هغه قدر درے زره درے سوه درے دیرش گزه وو او هغه به په وریځه کې اُوبه څکلے او د دریاب د مینځ نه به ئے ماهی رانیولو او په نمر به ئے پخولو بیا به ئے خوړلو، او د نوح علیه السلام د طوفان په وخت حاضر وو نو طوفان د هغه زنگنونو ته ورسیدو، او دغه شان نور ډیر فضائل ئے بیان کړیدی لکه قرطبيؒ وگوره، نو دا ټول د بنی اسرائیلو خبرے دی چه د خپلو مشرانو په حال باندے پرده اچوی چه د دومره لوی او قوی قوم سره که بنی اسرائیل نهٔ دی جنگیدلي نو معذوره دی۔ او د آدم ﷺ د قد نه لوړ انسانان په دنیا کې نهٔ دی پیدا شوی، حدیث کې دی چه هغه درے شپیته شرعي گزه وو او د هغه نه روستو

انسانان وخت په وخت په قد کې کمیږي. او حافظ عماد الدین ابن کثیرؒ وائي چه ددې خبرو د بیانولو نه یو مسلمان له حیاء پکار ده، داټول منکرت واقعات دي.

نو بني اسرائیلو ته حکم وشو چه د دوی سره به جهاد کوئ او دا علاقې به ترې نیسئ او دا علاقې به تاسو ته الله تعالیٰ په جهاد سره درکوي، نو هغوی اول چون وچرا وکړه دې ته نۀ تیاریدل لیکن په دوی کې دولسو مشرانو وویل چه مونږ به معلومات وکړو چه مونږ د دوی سره جنګ کولے شو او که نۀ، نو دوی جاسوسئ دپاره لاړل او کلي کې ئې معلومات وکړو نو هغوی ورته لوی او قوی ښکاره شو (ځکه چه د ایمان کمزوري په کې زیاته وه) نو په لسو کسانو باندې رعب راغے او دوه کسان (یوشع بن نون او کالب بن یوفنا) مضبوط پاتې شو او په الله ئې یقین وکړو چه مونږ سره الله مددګار دے او لسو کسانو خپلو قومونو ته وویل چه جنګ له به نۀ ځئ که لاړئ نو ختم به مو کړي. نو خلکو د خپلو مشرانو تقلید وکړو او د حق نبي موسی ﷺ د خبرے په خلاف ئې د هغوی خبره ومنله. دا هغه شرکي تقلید دے.

نو دوی موسیٰ ﷺ ته وویل چه ته او ستا رب دِے لاړ شي جنګ وکړئ، مونږ به دلته ناست یو، نو موسیٰ ﷺ هغوی ته ښیرے وکړے چه اے الله ! مونږ (ما او هارون علیه السلام) د بني اسرائیلو نه خلاص کړه، نو روایاتو کې راغلي دي چه دوی دواړه الله وفات کړل، اول هارون ﷺ وفات شو، (نو اسرائیلي روایاتو کې دي چه دوی په هغه باندے تهمت ولګولو چه دا موسیٰ ﷺ وژلے دے)

بیا نږدے وخت کې موسیٰ ﷺ د بیت المقدس په خوا کې (چه ایله د کاڼړي ګوزار ورسیدو) وفات شو. او الله تعالیٰ ددے بني اسرائیلو په باره کې دا حکم وکړو چه دوی به پدے میدان کې حیران ناست وي، او دغه ارض مقدسه ته به نشي تلے، هلته ډیرے مزے دي لیکن دوی له ئې الله تعالیٰ د سزا په طور نۀ ورکوي، نو دوی په دغه میدان کې پراته وو چه د هغے نه نشو وتلے، څلویښت کاله روستو الله تعالیٰ یوشع ﷺ نبي وګرځولو او مشران وفات شو نو کشرانو یو بل ته دعوت ورکړو چه راځئ چه د الله دا حکم ومنو او د عمالقه ؤ سره جهاد وکړو نو دوی د هغه په تابعدارئ کې روان شو مګر په دوی کې بعض مفسدان هم وو، دوی ته وویل شو چه کله دغه زمکے ته ورځئ نو الله ته به سجده لګوئ (یعني سر به ټیټوئ) او حِطَّةٌ به وایئ نو دوی هغه بدله کړه او په کناتو تُلیدو سره او د حِنْطَةٌ په وئیلو سره داخل شو، خو الله تعالیٰ دغه نیکانو له پکې فتح ورکړه،

جنګ د جُمعې د ماښګر په وخت وو نو یوشع علیه السلام د الله نه دعا وکړه چه نمر ورته ودروی ځکه چه سبهار له د خالی ورځ وه چه جنګ پکې حرام وو، نو الله ورته نمر ودرولو تردې چه فتح وشوه، او یوشع علیه السلام خپل قوم ته وئیلی وو چه ما سره به درې قسمه خلك جهاد ته نۀ ځی یو هغه چه کورئې جوړ کړیدې، او لا چهت ئې پرې نۀ دې اچولې،

دویم هغه چه کډې بزې ئې اخستی دی او د هغې د اولادو راوړو په انتظار کی دې،

او دریم هغه چه کوېژدن ئې کړیده او لا واده ئې نۀ دې کړې۔ (ځکه چه دا درې واړه کسان د جنګ نه راتښتی، د خپلو کارونو ډیر فکر ورسره وی) او دا دواړه صحیح حدیثونه دی، امام بخاریؒ راوړیدی، بعض منکرین حدیث ئې نۀ منی چه نمر څنګه ودریدې شی او دې ته نۀ ګوری چه دا معجزه ده؟!۔

بیا غنیمت ونیولې شو او هغه اُور نۀ خوړلو نو یوشع علیه السلام وفرمایل چه تاسو کی خیانت دې د هرې قبیلې نه دې ما سره هر یو مشر بیعت وکړی نو د یو مشر لاس د هغه د لاس سره ونښتو نو وې فرمایل چه ستا په قوم کی غلا ده نو یو تن دومره سرۀ زر غلا کړی وو لکه د غوائی د سر په مقدار کله چه هغه راوړل نو اُور راغلو او دغه غنیمت ئې وخوړلو، غنیمتونه پخوانو امتونو له حرام او دې امت له جائز شو۔

(صحیح بخاری: ٣١٢٤) ومسلم (٤٦٥٣)

پدې واقعه کی ډیر عبرتونه دی، هر مسلمان له پرې سوچ پکار دې۔

**اَلْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ** : ددې مقدسې زمکې نه مراد یا اریحا یا بیت المقدس دې، او قتادهؒ وئیلی دی چه دا د شام زمکه ده چه په هغې کی بیت المقدس، دمشق، فلسطین او د اُردن بعض حصه داخله ده۔ (القرطبیؒ) او حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه دا زمکه د یعقوب علیه السلام او د هغه د اولادو مسکن وو او کله چه هغوی سره د اهل وعیال نه د یوسف علیه السلام په حکم مِصر ته نقل شو نو دې باندې عمالقهؤ قبضه واچوله۔

**الَّتِیْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ** : ١-تقدیر کی الله لیکلې ده چه بنی اسرائیلو ته به دا زمکه په جهاد سره ملاویږی، نو اولنو بنی اسرائیلو جهاد ونکړو نو ملاؤ ورته نشوه او روستنو ته په جهاد ملاؤ شوه۔ ٢- یا فرض کړیدې الله تعالیٰ په تاسو باندې جهاد د هغې۔

**وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰۤى اَدْبَارِكُمْ** : د جهاد نه انکار ته ئې ارتداد ووئیلو او دارنګه څوك چه جهاد پریږدی هغه هم کبیره ګناه والا دې۔ او اشاره ده چه جهاد پریخودل اکثر د ارتداد سبب ګرځی۔ یا د (وَلَا تَرْتَدُّوْا) معنیٰ ده مۀ واپس کیږئ د جهاد نه د وجه د بزدلئ نه۔

قَالُوْا يٰمُوْسٰى : اُوس د دوی بزدلی او بې لوظی بیانیږی۔
جَبَّارِيْنَ : د جَبَّار جمع ده، د جَبْر نه اخستے شویدے، او جبر زور کولو ته وائی، چه څوك په بل چا باندے په زوره سره خپله خوښه او رایه نافذ کولے شی، یا د جَبَّارَةٌ نه دے د کجورے هغه لوړے ونے ته وائی چه د چا لاس نهٔ ورسیږی (لسان العرب) او جبار سرکش ته هم وائی (زجاج) دلته ترے مراد هغه خلك دی چه د هغوی مقابله گرانه وی۔
يَخَافُوْنَ : ۱– يَخَافُوْنَ اللّٰهَ ۔ یعنی د الله نه یریدل۔ ځکه ئے داسے غوره او د یقین خبره وکړه۔ ۲– یعنی د هغه بنی اسرائیلو نه وو چه د عمالقه ؤ نه یریدل نو په دغه دولسو کسانو کی دوی ونهٔ یریدل، او دا معنیٰ زیاته ظاهره ده۔
اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمَا : أَیْ بِالْإِیْمَانِ وَالنُّبُوَّةِ ۔ یو ورته قوی ایمان نصیب شوے وو، او دویم دا چه په حدیث سره ثابته ده چه یوشع عليه السلام نبی گرځیدلے وو، او مفسرین وائی چه کالب هم نبی وو۔ یا انعام دا وو چه الله ورته توفیق او صبر او بهادری او یقین ورکړو، دواړه مراد کول صحیح دی۔
الْبَابَ : یعنی د ښار او کلی دروازے ته په یو ځل ورننوځئ نو په دوی به رعب راشی او الله به تاسو ته غلبه درکړی، او دا خبره دوی کرامةً وکړه چه د الله عادت دا دے چه ایمان والو ته غلبه ورکوی او همدغسے وشوه۔
وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْآ : یعنی اگرکه مونږ سره اسباب کم دی لیکن الله مو شته په هغه ځان وسپارئ کارونه به مو هغه سنبالوی۔ پدے وجه اهل علم فرمائی : [اَلتَّوَكُّلُ مِنْ لَوَازِمِ الْإِیْمَانِ] توکل د ایمان سره لازم شے دے، او د ایمان شعبه ده، څوك چه مؤمن وی په الله به ځان سپاری۔ او توکل سره انسان د هر قسم پریشانئ نه بچ کیږی، او دا حیاتِ طیبه دے لکه په سورة النحل کی ورته اشاره شویده۔

| قَالُوْا يَا مُوْسٰٓى اِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَآ اَبَدًا |
|---|
| دوی ووئیل : اے موسیٰ ! یقیناً مونږ هیچرے نهٔ داخلیږو دے (زمکے) ته هیڅکله |
| مَّا دَامُوْا فِيْهَا فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَآ |
| ترڅو چه همیشه وی دوی په هغے کی نو لاړ شه ته او رب ستا نو جنگ وکړئ دواړه |
| اِنَّا هٰهُنَا قَاعِدُوْنَ ﴿۲۴﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّیْ لَآ اَمْلِكُ اِلَّا |

| |
|---|
| یقیناً مونږ به دلته ناست یو۔ ووېل موسیٰ اے ربه زما ! یقیناً زهٔ اختیار نهٔ لرم مگر |
| نَفْسِيْ وَأَخِيْ فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفَاسِقِيْنَ ﴿٢٥﴾ |
| د خپل ځان او د وروړ خپل نو جدائي راوله په مینځ زمونږ او په مینځ د قوم نافرمانو کې۔ |
| قَالَ فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ أَرْبَعِيْنَ سَنَةً |
| ووېل الله پس یقیناً دا ځمکه بنده کړے شوه په دوی باندے څلویښت کاله |
| يَتِيْهُوْنَ فِي الْأَرْضِ فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفَاسِقِيْنَ ﴿٢٦﴾ |
| چه حیران به ګرځي په دے ځمکه کې پس مهٔ خفه کیږه په قوم نافرمانو۔ |

**تفسیر** : قَالُوْا يٰمُوْسٰى : پدے کې د دوی بل خباثت ذکر دے چه دوی د الله تعالیٰ او د موسیٰ علیه السلام سخته بې عزتي وکړه او د هغوی د خبرے نه ئے انکار وکړو، او د صالحینو ناصحینو خبره ئے هم رد کړه۔

مَادَامُوْا فِيْهَا : د بني اسرائیلو د ایماني کمزورئ دا حال وو چه دغه جبارین ورته دومره لوی ښکاره شوی وو چه د دوی نه ئے زړونه وېستلي وو چه ګیدړان ورته زمري ښکاره کیدل، نو دوی ووېل چه ترڅو پورے چه دوی په دغه کلي کې وسیږي مونږ دو رتللو طاقت نهٔ لرو، آؤ که چرته الله پرے عذاب نازل کړو او کلے ئے پرېښودو نو بیا به ورداخل شو یا دا چه مونږ کې طاقت نشته او که ته ځامخا زور کوے نو بیا ته لاړ شه او ستا رب دِے لاړ شي تاسو جنګ وکړئ او بیا مونږ ته آواز وکړئ نو مونږ به درشو او په ښار کې به واړه وو، ددے نه په غیر په مونږ باندے خپل ځان ته تکلیف مهٔ ورکوه۔ دے تیار خوړو ته وګوره ! دغه د بني اسرائیلو حال دے!۔

## اشکال او د هغے جواب

فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ : دلته مفسرینو سوال اوجواب لیکلے دے چه د الله دپاره ذهاب ځنګه ثابتیږی سره ددے نه چه ذهاب (تلل) خو صفت د اجسامو دے؟ او موسیٰ علیه السلام دوی ته بیا هم څه نهٔ دی وئیلی چه تاسو د الله دپاره ځنګه ذهاب ثابتوئ؟

نو ځینو خو وئیلی دی چه پدے خبره دوی کافر شویدی چه د الله بې ادبي ئے کړیده (احکام القرآن للجصاص ۲/ ۴۰۰)

او چا وئیلي دي چه کافران شوي نهٔ دي بلکه فاسقان دي نو بیا ئې د دوی په خبرو کې تاویل کړیدے او وئیلي دي چه دلته تقدیرات دي [فَاذْهَبْ أَنْتَ وَيُعِينُكَ رَبُّكَ] ته لاړ شه او ستا رب دې تا سره مدد وکړي) یا (وَرَبُّكَ مَعَكَ) اوستا سره دې رب ملګرتیا وکړي۔
لیکن پدے کې بغیر د څه د ضرورت نه د قرآن ظاهر پریخودل دي، او ددے نه زیات شنیع تفسیر دا دے چه د رب نه مراد دلته مشر ورور (هارون علیه السلام) دے۔ دا ډیر بعید او غریب دے چه د رب اطلاق په هارون علیه السلام باندے وشي۔
دے کې صحیح خبره دا ده چه بني اسرائیل بې ادبه خلك وو او په بې ادبئ باندے اموخته وو نو د هغوی نه دفاع نهٔ ده پکار، مګر دلته ذهاب رب العالمین لره ثابت دے او دا د متشابهاتو نه دے، او پدے کې هیڅ بې ادبي نشته البته پدے کې بې ادبي پدے جهت ده چه د موسیٰ علیه السلام خبره ئې نهٔ ده منلے، نو که داسے لفظ بل څوك استعمال کړي نو دا به جائز وي۔ دلیل پرے حدیث د بخاري دے چه نبي کریم ﷺ د بدر په غزا کې کله بدر ته نزدے ورسیدو نو ملګرو سره ئې مشوره کوله چه دشمن راغلے دے څه وکړو؟ اول ابوبکر صدیق رضی الله عنه بیا عمر فاروق رضی الله عنه خبرے وکړے، بیا نورو مهاجرینو لیکن رسول الله ﷺ د هغوی خبرو ته دومره توجه ورنکړه ځکه چه هغوی خو تیار مهاجرین دي، نو انصارو ته ئې تعریض کولو چه د دوی څه رایه ده۔ نو په هغوی کې مقداد بن الاسود رضی الله عنه پاڅیدو او وے فرمایل: [يَا رَسُوْلَ اللهِ! لَا نَقُوْلُ كَمَا قَالَتْ بَنُوْ إِسْرَائِيْلَ: إِذْهَبْ أَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هٰهُنَا قَاعِدُوْنَ] مونږ داسے نهٔ وایو لکه چه بني اسرائیلو موسیٰ علیه السلام ته وئیلي وو ته لاړ شه او ستا رب دے لاړ شي مونږ به دلته ناست یو۔ بلکه مونږ وایو:
[إِذْهَبْ أَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا مَعَكُمَا مُقَاتِلُوْنَ] ته او ستا رب دے لاړ شي او جنګ کوئ یقیناً مونږ به هم تاسو سره یو ځای جنګ کوو۔ نو رسول الله ﷺ پدے خبره ډیر سخت خوشحاله شو۔ (مسند احمد ۱۸۳/٤) وابن کثیر ۷۸/۳)
نو وګوره که دا د بې ادبئ خبره وے نو رسول الله ﷺ به منع کړے وے او خوشحالي به ئې پرے نهٔ وے کړے، نو ددے نه معلومه شوه چه ځینې مفسرین د خپلے کمزورے رائے یا د غلطے نظریې دپاره په آیتونو او احادیثو کې د خپل ځان نه تاویلونه کوي۔
فَقَاتِلَا : دا ډیره لویه بې ادبي وه ځکه چه الله تعالیٰ خو دا کولے شوه چه ټول جبارین هلاك کړي او بني اسرائیلو ته د هغوی علاقه حواله کړي لیکن دا د الله قانون نهٔ وو ځکه چه الله تعالیٰ په هغوی جهاد فرض کړے وو او په هغوی باندے امتحان وو، او الله فرمائي:

﴿ وَلٰكِنْ لِّيَبْلُوَا بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ ﴾ الله تعالىٰ په انسانانو کې په يو بل باندې امتحان کوي، چه مسلمانانْ د کافرانو دپاره امتحان او کافران د مسلمانانو دپاره امتحان دے۔
اِنِّیْ لَاۤ اَمْلِكُ اِلَّا نَفْسِیْ وَاَخِیْ : اختيار نهٔ لرم مګر د خپل ځان او د خپل ورور۔ او دلته مالك کيدو نه مراد دا نهٔ دے چه هغه زما غلام دے، بلکه د د ملکيت نه مراد اطاعت دے۔
[اَیْ لَا یُطِیْعُنِیْ اِلَّا نَفْسِیْ وَاَخِیْ] زما طاعت نهٔ کوي مګر زما نفس او زما ورور۔ او تابعدار خلك داسے وي لکه د مملوك په شان۔
امام بغویؒ وائی : [لَاأَمْلِكُ اِلَّا نَفْسِیْ وَأَخِیْ لَایَمْلِكُ اِلَّا نَفْسَهٗ]
زهٔ د خپل ځان واکدار يم او زما ورور د خپل ځان واکدار دے۔

## سوال وجواب

په بنی اسرائيلو کې خو يوشع او کالب هم د موسىٰ عليه السلام خبره منلے وه نو بيا ئے هغه ولے ذکر نکړل چه صرف اکتفاء ئے د هارون عليه السلام په ذکر کولو وکړه؟
۱– جواب دا دے چه ددهٔ د هارون عليه السلام نه علاوه په نور چا پوره اعتماد نهٔ وو، يعنى زما يقين نشته چه هغوى به ما سره په دے طاعت باندے باقى پاتى شى، که بالفرض هغوى زما د اطاعت نه واوړى نو زما هيڅ وس نشته۔
۲– خطيب شربينیؒ وئيلى دى چه دلته د اَخِیْ نه يوه عامه معنىٰ مراد ده چه اخ فی الدين دے۔ أَیْ مَنْ یُّوَاخِیْنِیْ فِی الدِّیْنِ ۔ زهٔ اختيار نهٔ لرم مګر د هغه چا چه زما سره په دين کې ورورولى او ملګرتيا کوى)۔
۳– بل جواب دا دے چه د موسىٰ عليه السلام مطلب دا نه وو چه د منونکو او نهٔ منونکى ليست وړاندے کړى بلکه خپله بيچاره ګى ښکاره کول ئے مقصد وو چه د سوال کولو سره بنه مناسب وه۔
د موسىٰ عليه السلام سره ملګرى ډير سردردیٔ والا وو پدے وجه ئے د هغه ژوند تنګ کړے وو او ډيرے سختے تنګے ئے ورسره تيرے کړے آخر د دوى نه ئے جدائى د الله نه وغوښته۔
فَافْرُقْ بَیْنَنَا وَبَیْنَ الْقَوْمِ الْفٰسِقِیْنَ : فرق جدائى ته وائى يعنى ما ددوى نه جدا کړه او ما ترے واخله، لکه همدغسے وشوه۔ او فرق په معنىٰ د فيصلے کولو سره هم دے يعنى هر چا ته مطابق جزا ورکړه۔ (ابن عباسؓ)
قَالَ فَاِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ : نو الله تعالىٰ د موسىٰ عليه السلام دعا قبوله کړه او په دغه خلکو ئے

دنیوی عذاب حیرانتیا راوستله۔

مُحَرَّمَةٌ : یعنی بنده کړے شوی به وی د الله د طرفنه۔

اَرْبَعِیْنَ سَنَةً : یعنی څلویښت کاله به دوی دغه ارض مقدسه ته داخل نشی۔

یَتِیْهُوْنَ فِی الْاَرْضِ : دا د تَاه یَتِیْهُ، تَیْه نه دے حیرانتیا او پریشانتیا ته وائی او د دوی پریشانتیا دا وه چه ددے میدان نه نشو وتلے، او الله تعالیٰ پرے رزقونه هم بند کړل کوم چه د آسمان نه به راتلل نو ژوند ئے ګران شو۔ او دا کار په سبب د جهاد پریخودو سره وو، معلومه شوه چه د جهاد پریخودل د پریشانئ سبب دے۔

فَلَا تَاْسَ عَلَی الْقَوْمِ الْفٰسِقِیْنَ : یعنی د دوی په هلاکولو او په مصیبتونو باندے به غم نهٔ کوے، اسیٰ غم او افسوس ته وائی نو د فاسقانو او د کافرانو په عذابونو او مصیبتونو باندے د هغوی سره غم خوری او همدردی کول حرام دی لکه په سورة الاعراف (۹۳) کی هم داسے راغلی دی۔

## حكمة

بیا ددے څه حکمت دے چه الله وفرمایل چه د کافرانو په هلاکولو غم مهٔ کوه؟ نو وجه دا ده چه د انبیاء علیهم السلام کله نا کله زړه تنګ شی نو ښیرے وکړی خو بیا ډیر رحمدل وی، په امت ئے رحم راځی نو الله وفرمایل : داسے ونشی چه زهٔ ئے هلاك کړم او تهٔ بیا د رحم دلئ د وجه نه سوال کوے چه معاف ئے کړه۔ بیا دا خبره زده کړه چه د الله رحم د انبیاؤ نه زیات دے مګر پیغمبران د رحم سره کمزوری هم وی، بیرته ئے په مجرم باندے څه موده پس رحم راځی لکه دا د عامو انسانانو هم طریقه ده،

او الله تعالیٰ د رحم سره د طاقت والا دے، نو چه مجرم یو ځل راونیسی بیا ئے پرے رحم نهٔ راځی [حَتّٰی اِذَا اَخَذَهٗ لَمْ یُفْلِتْهُ] (بخاری : ٤٦٨٦ ومسلم : ٦٧٤٦)

دا د الله او د بنده د رحم فرق شو۔ د الله رحم هم ډیر دے او سزا ئے هم سخته ده او د بنده رحم او سزا دواړه آسان دی، بنده چه کله غصه وی حمله وکړی نو لږ وخت روسته ئے غصه سره شی نو دغه مجرم پریدی، او الله تعالیٰ په بنده رحم کوی تردے چه کله ئے راونیسی نو بیا ئے نهٔ پریدی۔

| وَاتْلُ عَلَیْهِمْ نَبَاَ ابْنَیْ اٰدَمَ بِالْحَقِّ اِذْ |
|---|
| او بیان کړه په دوی باندے خبر د دوه ځامنو د آدم (علیه السلام) په رشتیا سره کله چه |

| قَرَّبَا قُرۡبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنۡ أَحَدِهِمَا |
|---|
| قرباني وکړه دواړو قرباني جدا جدا نو قبوله شوه د یو د دواړو نه (چه هابیل وو) |
| وَلَمۡ يُتَقَبَّلۡ مِنَ ٱلۡاٰخَرِ قَالَ لَأَقۡتُلَنَّكَ |
| او قبوله نشوه د بل (یعنی قابیل) نه، وویل (قابیل) خامخا به وژنم زهٔ تا لره۔ |
| قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ ٱللّٰهُ مِنَ ٱلۡمُتَّقِينَ ﴿۲۷﴾ |
| وویل هغه یقیناً قبلوی الله تعالیٰ د تقویٰ والو نه۔ |

**تفسیر** : پدے کی د تحیر بله واقعه بیانوی چه څوك د الله لوظ مات کړی داسے به پریشانه او حیران شی لکه د قابیل په شان۔

دلته د آدم علیه السلام د حقیقی دوه زامنو واقعه بیانیږی، د حسن بصریؒ نه نقل دی چه دا په بنی اسرائیلو کی دوه کسان وو۔ مګر دا خبره ضعیفه ده، دلیل دا دے چه دلته الله تعالیٰ (اِبۡنَیۡ آدَمَ) وئیلی دی چه دا صریح دلیل دے چه دا د آدم علیه السلام صلبی اولاد وو (د هغه د شا نه پیدا وو) او بل حدیث کی راغلی دی:

[لَاتُقۡتَلُ نَفۡسٌ ظُلۡمًا اِلَّا کَانَ عَلَی ابۡنِ آدَمَ الۡاَوَّلِ کِفۡلٌ مِنۡ دَمِهَا]

هر نفس چه په ظلم سره قتل کړے شی نو د آدم علیه السلام په اولنی ځوی باندے د هغے د وینے برخه وی۔ نو ددے نه معلومه شوه چه ددے نه قابیل مراد دے نو حدیث همیشه د قرآن شرح وی۔ (بخاری: ۳۳۳۵) مسلم: (۴۴۷۳)

دا واقعه په دوه طریقو بیانیږی، یو ظاهر القرآن دے او بله تاریخی قصه ده۔

(۱) قصه دا ده چه د آدم او حواء علیهما السلام نه به په یو بطن (خیټه) کی دوه بچی یو هلك او بله جینۍ پیدا کیدله او په بل بطن کی به هم دغه شان کیده نو د یو بطن هلك به د بل بطن جینۍ ردو بدل اخستله، نو د قابیل سره په یوه خیټه کی د هغه خور (عُقَیلمه یا اقلیما) پیدا شوه او دا ښائسته وه او د هابیل سره خور (لبورا یا لبودا) وه چه د رنګ نه بدرنګه وه نو آدم علیه السلام قابیل ته حکم وکړو چه خپله خور هابیل ته ورکړی لیکن هغه دے ته تیار نشو او وے ویل چه زهٔ دا خپله اخلم ځکه چه دا ښائسته ده، نو آدم علیه السلام ورته د الله امر یاد کړو لیکن هغه منلو ته تیار نشو نو آدم علیه السلام ورته وویل چه قربانی پیش کړئ چه پته ولګی چه څوك په حقه دے؟ نو دا به ستاسو فیصله وی، دواړو قربانی پیش کړه،

قابیل لرې شان غنم بې اخلاصه راواخستل او یو خاې کې ئې کیخودل نو اُور وریسې رانغلو او هابیل مزیدار گډ وکتلو او هغه ئې په اخلاص سره پیش کړو نو اُور راغلو او هغه ئې پورته کړو لکه د اُور وړل به په هغه زمانه کې د قبولیت نښه وه۔

نو ورته وویل شو چه د هابیل حقانیت ښکاره شو او ته په باطله ئې، خور ورکړه لیکن هغه انکار وکړو او حسد کې راغلو چه څنگه ددۀ قرباني قبوله شوه او زما نۀ او زما نه خور اخلې نو د هغه د قتل اراده ئې وکړه او هغه ته ئې وویل چه زۀ دِې وژنم، هغه ورته وویل چه زۀ دِې نۀ وژنم۔

قابیل خپل حسد سر ته ورسولو او هغه ئې شهید کړو نو آدم ﷺ ترې سخت خفه شو ترڅو چه هغه یمن ته وتښتیدو او څینې وائي چه بیائې د اُور عبادت هم شروع کړو۔ مگر دا هسې تاریخي خبره ده، صحیح دا ده چه شرك د نوح ﷺ د زمانې نه شروع شویدې۔

نو قابیل اول قاتل دې چه بیا د مړي په خښولو هم نۀ پوهیدو حیران شو، نو په شا باندې ئې گرځاوه۔ څینې روایاتو کې دي چه یوه میاشت پورې ئې گرځولو، نو د مړي د حفاظت دپاره الله تعالیٰ هغه ته د خښولو طریقه د کارغه په واسطه وخودله چه کارغه ددۀ مخامخ کیناستو او په مکوخه سره ئې زمکه وکنستله، څوك وائي چه دوه کارغان وو یو ئې مړ کړو بیا ئې د هغه دپاره کنده وکنستله لیکن ظاهر د قرآن اول دې۔ نو ددۀ فکر شو چه دا کارغه ما ته اشاره راکوي چه دا مړې داسې خښ کړه، نو کارغه ئې استاذ شو او دۀ دغه شان کار وکړو او خپل ورور ئې په کنده کې خښ کړو او د هابیل پدې طریقه الله تعالیٰ حفاظت وکړو۔ (د مړي اکرام دا دې چه هغه دفن کړې شي ترڅو چه کافر به هم خښولې شي اگرکه په سنت بقه نۀ بلکه هسې یوه کنده به ورله وکنني او پکې خښ به ئې کړي)۔

نو ددې نه موثر ته الله تعالیٰ دا عقد پیش کوي چه قتل به نۀ کوئ پدې وجه روستو الله تعالیٰ فرمائي چه ما په بني اسرائیلو باندې هم د قتل حراموالې لیکلې وو او بیا ئې د قطاع الطریق چه قاتلان دي د هغوی حکم ئې بیان کړیدې۔

(۲) ظاهر د قرآن داسې دې چه دواړو ورونو یوه صدقه پیش کړه هرشې چه وي خو یوه الله قبوله کړه او بله ئې رد کړه ځکه اخلاص پکې نۀ وو، نو قابیل حسد او شح وکړو او د ورور قتل ته تیار شو۔ اگرکه دا خبره یقیني ثابته ده چه د آدم ﷺ لونړه به د ورورنو ترمینځ یو تربله واده کیدې او دا قانون تر د ابراهیم علیه السلام زمانې پورې جاري وو، بیا د هغه په دین کې حرامه کړې شوه او علماء کرامو دا واقعه د نسخ دپاره هم دلیل گرځولې دې۔

ربط

مخکې د یهودیانو حسد بیان شو چه په نبي کریم ﷺ د حسد د وجه نه ایمان نهٔ راوړی نو اُوس ئې وجه بیانوي چه دوی دا حسد د خپل مشر (قابیل) نه اخستې دې چه هغه هم هابیل ته نهٔ تسلیمیدو. یهودیانو پیغمبران وژلي دي او دا طریقه ئې هم د خپل مشر نه زده کړیده.

**وَاتْلُ عَلَيْهِمْ** : دا ضمیر بنی اسرائیلو ته یا دې امت ته راجع دې او همدا ظاهر دې ځکه بنی اسرائیل په دوی کې داخل دي.

**بِالْحَقِّ** : یعنی لِإِظْهَارِ الْحَقِّ چه خلکو ته حق راښکاره شي او وپیژني چه حقه لاره کومه یوه ده. یا په رشتیا سره ځکه چه نور خلك دا واقعه سره د کمې او زیاتي نه بیانوي او قرآن ئې رشتینې بیانوي.

**اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا** : یعنی دواړو نزدې کړه قرباني. قربان، كُلُّ مَا يُتَقَرَّبُ بِهٖ اِلَى اللّٰهِ ته وائي هر هغه شې چه بنده په هغې سره ځان الله ته نزدې کوي. اکثر اطلاق ئې په اُضحیه او ذبح باندې کیږي دلته ترې مطلق قرباني او صدقه مراد ده.

**اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ** : پدې کې ترغیب وو قابیل ته چه ته ځان نه متقي او اخلاص کونکې جوړ کړه نو ستا قرباني به هم الله قبوله کړي، او د ځان صفت کول ئې مطلب نهٔ دې او که په داسې ځای کې د خپل ځان صفت وشي هم صحیح ده.

**فائده** : د تقوىٰ د فوائدو نه یوه فائده دا ده چه په تقوىٰ سره د بنده اعمال قبلیږي او که تقوىٰ نهٔ وي نو اعمال به نهٔ قبلیږي، نو پدې کې مونږ ته یره پرته ده.

۲- **فائده** : خوارج استدلال کوي چه د هرې گناه نه بچ کیدل د عمل قبلیدو دپاره شرط دې، که گناه ئې کړې وي نو عمل به نهٔ قبلیږي معلومه شوه چه په گناه سره بنده کافر کیږي، اهل سنت جواب کوي چه دلته ادنیٰ تقوىٰ مراد ده چه هغه د شرك نه ځان ساتل دي نو د گناهګار نیك عمل هم قبلیږي.

۲- جواب : اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ ذٰلِكَ الْعَمَلِ . الله تعالىٰ د متقیانو نه عمل قبلوي چه په دغه عمل کې تقوىٰ وکړي لکه مثلاً اخلاص، اتباع السنة او په عمل کې توجه وي نو عمل به قبلیږي اګرکه په نورو ځایونو کې دې متقي نهٔ وي لکه مثلاً زنا، یا غیبت یا نورو گناهونو کې اخته وي، او مانځه له راشي په توجه سره ئې وکړي نو الله ورله دا عمل نهٔ بربادوي. (بدائع الفوائد لابن القیم)

خطيب بغدادیؒ نقل کړيدي چه عامر بن عبد الله (تابعي) د مرګ په وخت په ژړا شو چا ورته وويل: ته ولې ژاړې حال دا چه ته خو ډير عابد انسان وې؟ هغه وويل: لِأَنِّيْ أَسْمَعُ اللَّهَ يَقُوْلُ: إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ] زۀ د الله نه آورم چه وائي الله تعالیٰ د متقي عملونه قبلوي، نو کيدے شي چه زۀ متقي نۀ وم او زما ټول عمل ضائع شوے وي. دا ددۀ ډيره يره وه او د آيت نه فائده اخستل وو. (القاسميؒ عن الكشاف والسراج المنير ۱/۳۲۵)

بل طرف ته ابن عمر او ابو الدرداء رضي الله عنهما به وئيل چه که زۀ چرته پوهه شم چه الله تعالیٰ زما يو عمل (مونځ) قبول کړيدے نو ما ته د دنيا او مافيها نه غوره دے ځکه چه الله فرمائي: الله تعالیٰ د متقيانو عمل قبلوي نو زۀ به د متقيانو نه يم.

(ابن كثيرؒ عن ابي الدرداءؓ)

او دغه شان قول د فَضَالہ بن عُبيد انصاري ﷺ نه هم سير اعلام النبلاء (۳/۱۶۱) کې نقل دے. لَأَنْ أَعْلَمَ اَنَّ اللّٰهَ تَقَبَّلَ مِنِّيْ مِثْقَالَ حَبَّةٍ، أَحَبُّ إِلَيَّ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا لِأَنَّهُ تَعَالٰى يَقُوْلُ: إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ.

| لَئِنْ بَسَطْتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِيْ مَا أَنَا بِبَاسِطٍ يَدِيَ |
|---|
| که چرته را اُوږد کړو تا ما ته لاس خپل دے د پاره چه وژنې ما نو نۀ يم زۀ اُوږدونکے د لاس خپل |
| إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ إِنِّيْ أَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعَالَمِيْنَ ﴿۲۸﴾ |
| تا ته دے د پاره چه قتل کړم تا يقيناً زۀ يريږم د الله نه چه پالونکے د مخلوقاتو دے. |

**تفسير**: مَا أَنَا بِبَاسِطٍ: سوال دا دے چه يو تن تا وژني نو ته به ئے هم وژنې نو هابيل ولې وائي چه زۀ دِې نۀ وژنم؟ جواب دا دے چه په بعض اوقاتو کې به يو تن ستا د قتل اراده لري ليکن ته به ئے نۀ وژنې. سيدنا علي بن ابي طالب ﷺ ته چا وويل چه عبد الرحمن بن مُلجِم ستا د قتل اراده لري او تا ته معلومه ده نو ته ئے ولې نۀ وژنې؟ نو هغه ډير مزيدار جواب وکړو وے فرمايل: [ كَيْفَ أَقْتُلُ قَاتِلِيْ وَلَمْ يَقْتُلْنِيْ ] زۀ به خپل قاتل څنګه ووژنم حال دا چه زۀ ئے لا وژلے نۀ يم، يعني که زۀ ئے قتل کړم نو زۀ ئے بيا هم نشم وژلے (زما وارثان به ترے قصاص اخلي) او که زۀ ئے لا قتل کړے نۀ يم نو په اراده سره هغه څنګه قتل کړم.

دويم حکم دا دے چه يو تن راشي ټوپک يا طمانچه ورسره ده او تا ته ئے برابره کړي او حمله دريانده وکړي نو بيا به په دفاع کې هغه ويشتلے شي او ځان به ترے خلاصوے که

هغه مړ شو نو مردار دے او که ته ئے مړ کړے شهید ئے۔

نو په بعض اوقاتو کې به د حدیث مطابق [کُنْ کَخَیْرِ ابْنَیْ آدَمَ] (ابوداود) جوړېږے یعني د آدم د دواړو ځامنو نه د غوره ځوی په شان شه چه هغه هابیل دے، او د هغے صورت دا دے چه د مسلمانانو ترمینځ د فتنے جنګ وی، تا ته وائی چه توره راواخله او ما سره ملګرے شه دا بل مسلمان وولهٔ که نهٔ وی زه دے وژنم، نو حدیثونو نه معلومیږی چه ته به پدے وخت کې په مخ باندے خادر راواچوے او که ته چا مړ کړے شهید به ئے او که توره راخلے نو په فتنو کې به واقع کیږے، مسلمان به ستا د لاسه قتل کیږی۔

نو زمونږ په اسلام کې هم د فتنو دیرے نه، او دارنګه قاتل په اراده باندے نښی وژلے کیدے۔

ابن کثیرؒ د ایوب سختیانیؒ نه نقل کړیدی چه په امت محمدیه کې اولنے شخص چه هغه پدے آیت باندے عمل کړیدے هغه سیدنا عثمان بن عفان ﷺ دے چه هغه خپل ځان قتل ته تیار کړو لیکن په خپله خوښه سره ئے د مسلمان ګوته هم پرے نکړه۔

| إِنِّيٓ أُرِيدُ أَن تَبُوٓأَ بِإِثْمِي وَإِثْمِكَ فَتَكُونَ |
|---|
| یقیناً زهٔ اراده لرم ددے چه تهٔ به اخته شے په ګناه (د قتل) زما او په ګناه ستا نو شے به تهٔ |
| مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ وَذَٰلِكَ جَزَآءُ الظَّالِمِينَ ﴿٢٩﴾ فَطَوَّعَتْ لَهُ نَفْسُهُ قَتْلَ أَخِيهِ |
| د اُور والو نه او دا بدله د ظالمانو ده۔ نو خائسته کړو دهٔ ته نفس ددهٔ وژل د ورور خپل |
| فَقَتَلَهُ فَأَصْبَحَ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴿٣٠﴾ |
| نو قتل ئے کړو هغه پس وګرځیدو د تاوانیانو نه۔ |

**تفسیر: إِنِّيٓ أُرِيدُ** : دا تفصیل دے د (إِنِّيٓ أَخَافُ اللهَ)

## سوال وجواب

دلته چا دا سوال لیکلے دے چه د بل چا د ګناه اراده کول هم ګناه ده نو دلته هابیل څنګه وائی چه زما اراده ده چه ته به زما او په خپله ګناه اخته کیږے ؟ جواب ئے دا کړیدے چه دلته (لَا) مقدر دے [إِنِّيٓ أُرِيدُ أَلَّا تَبُوٓأَ] یعنی زهٔ چه تا ته نصیحت کوم پدے کې زما اراده دا ده چه تهٔ اخته نهٔ شے زما په ګناه او په خپله ګناه ورنه اُور ته به لاړ شے۔

مګر ظاهر دا ده چه دلته عبارت په ظاهر باندې بناء دې چه زما اراده ده چه ته به اخته شې زما په ګناه او په خپله ګناه او دا اراده په هغه وخت کې جائز ده چه کله یو ځای کې د دوه کسانو نه دیو تن په ګناه کې واقع کیدل راځي یا ته یا هغه نو پدې وخت کې به ته دا اراده کوې چه ته ګناه کې واقع نشې او هغه دې واقع شي. یعنی ته خو وائې چه قتل به خامخا کیږي نو زما اراده ده چه په تا دې واقع شي په ما دې دغه ګناه رانشي. نو دا اراده ده د خپل ځان د ګناه نه د بچ کولو. او دې کې دا مطلب نۀ دې چه زۀ پدې راضي یم او خوښه مې ده چه ته دا ګناه وکړه، بلکه دا د منع کولو یو شکل دې.

**بِإِثْمِي**: أَيْ بِإِثْمِ قَتْلِي. یعنی زما د قتل ګناه. ۲- يُحْمَلُ عَلَيْكَ إِثْمِي لِأَنَّكَ قَاتِلِي.

زما ګناهونه به په تا اچولې کیږي ځکه چه ته زما قاتل ئې او ځوك چه قتل وکړي نو په قیامت کې د مقتول ګناهونه په قاتل وراچولې کیږي.

**وَإِثْمِكَ**: الَّتِي عَمِلْتَهَا مِنْ قَبْلُ. او خپل هغه ګناهونه هم چه تا مخکې کړیدي.

دا معنیٰ مو ځکه وکړه چه دا سوال دفع شي چه په آیت کې دي ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ (انعام: ١٦٤) د قیامت په ورځ به د یو چا بوج په بل چا نۀ اچولې کیږي، نو جواب وشو چه دلته د قتل ګناه مراد ده او قتل د قاتل خپله ګناه ده.

**فَطَوَّعَتْ**: یعنی پدې نصیحتونو کار ونشو بلکه هغه ته نفس دا خبره ښائسته کړه چه ورور قتل کړه.

**فَطَوَّعَتْ**: د طوعت معنیٰ ده: خائسته کړو یا: د خوشحالئ او رضا کیدو معنیٰ ده.

**لَهُ نَفْسُهُ**: وسوسه شیطان هم اچوي او نفس هم، لیکن دده په نفس کې دومره خباثت وو چه شیطان ته ضرورت نۀ وو. ځینې خلکو له قتلونه خوند ورکوي او دا د نفس لوی خرابوالې دې.

**مِنَ الْخَاسِرِينَ**: ١- یو خسران په قتل د ورور شو چه ورور ترې لاړو. ۲: دویم: د الله په نافرمانئ کې اخته شو. ۳: دریم دا چه د ټول امت ګناهونه به په دۀ باندې اچولې کیږي ځکه چه دۀ د قتل بنیاد کیښودو لکه مخکې حدیث تیر شو. ٤: او ځینې وائي چه خسران ئې دا وو چه روستو ورپسې کافر هم شو. لیکن قرطبیؒ د هغې رد کړیدې.

٥- دنیا کې د خلکو په نظر کې مبغوض ښکاره شو.

(٦) د پلار او د نبی نافرمان هم شو.

| فَبَعَثَ اللّٰهُ غُرَابًا يَّبْحَثُ فِي الْأَرْضِ لِيُرِيَهٗ |
|---|
| نو راولیږلو الله تعالیٰ یو کارغهٔ چه کنستل ئے کول په زمکه کې دے دپاره چه وښائی دهٔ ته |
| كَيْفَ يُوَارِيْ سَوْءَةَ أَخِيْهِ قَالَ يَا وَيْلَتَا أَعَجَزْتُ أَنْ أَكُوْنَ |
| چه څه رنګه پټ کړی جُثه د ورور خپل، وویل دهٔ اے افسوس دے ما لره آیا عاجز شوم زهٔ چه شم |
| مِثْلَ هٰذَا الْغُرَابِ فَأُوَارِيَ سَوْءَةَ أَخِيْ فَأَصْبَحَ مِنَ النَّادِمِيْنَ ﴿۳۱﴾ |
| په شان ددے کارغهٔ چه پټ کړم جثه د ورور خپل پس وګرزیدو د پښیمانو نه (په وژلو د ورور) |

**تفسیر : فَبَعَثَ اللّٰهُ غُرَابًا** : ځینی وائی غراب جنس دے دوه کارغان وو، او ځینی وائی چه دا ملائك وو چه الله تعالیٰ د دوه کارغانو په شکل راولیږل۔ (روح المعانی ۱۱۶/۶)

لیکن دا ظاهر د قرآن نهٔ دے۔

**يَّبْحَثُ** : بحث د زمکے کنستو ته وائی دپاره د تالاش کولو د یو شی۔

**سَوْءَةَ** : جُثے ته وائی، او په اصل کی عورت ته وائی چه بنده د هغے په ښکاره کولو خفه کیږی او د مړی ټول بدن سوئی د مخ نه عورت دے، د هغه بدن ښکاره کول حرام دی نو د مړی د لمبولو په وخت به هغه ته ډیر کسان نهٔ ودریږی او بدن به ورله حتی الوسع پټ ساتی۔ او رسول الله ﷺ د سیدنا حمزه او مصعب بن عمیر رضی الله عنهما په باره کی فرمایلی وو چه د دوی په خپو باندے اذخر (سرګړے) واچوئ دے دپاره چه مړے پټ شی۔

**لِيُرِيَهٗ كَيْفَ يُوَارِيْ** : اشاره شوه چه ددهٔ مشر کارغه شو،

| إِذَا كَانَ الْغُرَيْبُ دَلِيْلَ قَوْمٍ | O | سَيَهْدِيْهِمْ سَبِيْلَ الْهَالِكِيْنَ |
|---|---|---|

سَيَهْدِيْهِمْ إِلٰى أَرْضِ الْجِيَافِ

کله چه کارغه د یو قوم لاربنودونکے شی نو زر دے چه لاره د هلاك کیدونکو به ورته وښائی۔

یا زر دے چه د مردارو زمکه به ورته وښائی۔

پدے کی ناشنا اشاره ده چه څوك د الله حکمونه ماتوی د هغه سره به دا کار کیږی، قرآن او حدیث چه څوك پریږدی نو د داسے چا پسے به روانیږی چه مور او پلار به ئے هم ورته نهٔ وی معلوم او دا پته به ورته نهٔ وی چه په ایمان کی وفات دے او که نه، او جنت ته تلے دے او که بل ځای ته۔ ځینی خلك په هغه چا منین دی چه نهٔ الله ښودلے او نهٔ رسول او نهٔ ئے

خپل ځان ښودلے چه ما پسے روان شئ نو دا د قرآن او سنت د نهٔ محبت په وجه دا سزا بنده ته ملاویږی.

لکه د یهودو مشران هم داسے د کارغانو په شان وو، چه کشرانو ته به ئے د گمراهئ لارے خودلے، ځکه چه یو قوم غلط وی نو الله پرے مشران هم دغه شان ناکاره راولی، قوم ناکاره وی نو امامان د مساجدوئے هم دغه شان وی.

**يَا وَيْلَتَا** : دا په اصل کی يَاوَيْلَتِيْ په زیر د تاء سره دے (هائے ارمان دے زما) لیکن په وخت د نِداء کی په تاء باندے زور راځی او دا کلمه عرب د هلاکت او د افسوس دپاره استعمالوی.

**أَعَجَزْتُ** : عجز په عربئ ژبه کی بیوقوفتیا او کم عقلتیا ته وائی. یعنی د عقل کمزورتیا. لکه [وَالْعَاجِزُ مَنْ أَتْبَعَ نَفْسَهُ هَوَاهَا وَتَمَنّٰى عَلَى اللّٰهِ].

نو معنیٰ دا ده: (آیا زهٔ کمزورے شوم عقلاً).

**فَأَصْبَحَ مِنَ النَّادِمِيْنَ** : سوال: ندامت خو توبه ده لکه دا په حدیث کی صراحةً راغلی دی. (اَلنَّدَمُ تَوْبَةٌ) (مسند احمد : ۴۰۱۲ بسند صحیح) آیا دهٔ توبه ویستله ؟

**جواب** : ندامت توبه ده پدے شرط چه روستو به ورسره عمل صالح کوی. لکه قرآن کریم کی هغه شرط راغلے دے ﴿ وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَإِنَّهُ يَتُوْبُ إِلَى اللّٰهِ مَتَابًا ﴾ (الفرقان)

۲- جواب: مِنَ النَّادِمِيْنَ عَلٰى حَمْلِ أَخِيْهِ. یعنی پښیمانه وو په گرځولو د لاش د هابیل باندے. ۳- جواب: نادم کله متحیر ته وائی یعنی حیران وگرځیدو چه دا مے څه وکړل خو زړه کی ئے توبه واقع نشوه.

| |
|---|
| مِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ أَنَّهُ مَنْ قَتَلَ |
| د وجه ددے قتل نه فرض کړل مونږ په بنی اسرائیلو چه بیشکه څوک چه قتل کړی |
| نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ |
| یو نفس په غیر د بدل د بل نفس نه یا بغیر د فساد نه په زمکه کی نو گویا که قتل کړل دهٔ |
| النَّاسَ جَمِيْعًا وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيْعًا |
| خلق ټول او چا چه ژوندے پریخودو یو نفس لره نو گویا که دهٔ ژوندی پریخودل خلق ټول |
| وَلَقَدْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنَاتِ ثُمَّ إِنَّ كَثِيْرًا مِنْهُمْ |
| او یقیناً راغلی وو دوی ته رسولان زمونږ په ښکاره دلائلو سره، بیا یقیناً ډیر د دوی نه |

بَعۡدَ ذَٰلِكَ فِي ٱلۡأَرۡضِ لَمُسۡرِفُونَ ﴿۳۲﴾

روستو ددے (راتلو) نه په زمکه کې خامخا زیاتے کونکي وو۔

**تفسیر** : ذلك اشاره ده قتل ته۔ یعنی هر کله چه قابیل قتل وکړو چه ددے په وجه د شر او فساد یوه لویه دروازه کولاوه شوه او دا د الله په نظر کې ډیر لوی جرم وو، نو پدے وجه الله تعالیٰ بنی اسرائیلو ته دا حکم وکړو چه تاسو به قتلونه نهٔ کوئ۔ او که چا قصداً قتل وکړو نو قصاص به ترے اخستلے کیږي۔ .

یعنی څوك چه چا لره ناحقه قتل کړي یا په زمکه کې د فساد خورولو دپاره داسے اُوکړي نو گویا که چه هغه ټول انسانان قتل کړل او څوك چه په معافی او یا په بلے طریقے سره د چا د ژوند د بقا سبب شو نو هغه گویاکه د تمامو خلقو د ژوند سبب جوړ شو۔

مِنۡ أَجۡلِ ذَٰلِكَ : ابوعبیدهؒ وائی چه اجل په معنیٰ د جرم او جنایت سره دے او (ذلك) اشاره ده قابیل ته یعنی د جرم او جنایت د قابیل د وجه نه۔ او اجل په اصل لغت کې معنیٰ ئے ده کشول او راښکل۔ اول تفسیر غوره دے۔

سوال

دا قتلونه خو په مونږ باندے هم حرام کړے شویدی نو د بنی اسرائیلو تخصیص ئے ولے وکړو؟

جواب : ۱- وجه دا ده : [لِأَنَّهُمۡ أَوَّلُ مَنۡ تُعُبِّدُوا بِذَٰلِكَ]

دوی اول مکلف وو پدے حکم باندے۔ (قاسمیؒ)

۲- وَلِكَثۡرَةِ ٱلۡقَتۡلِ فِي بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ظُلۡمًا۔

بل په بنی اسرائیلو کې ظلماً قتلونه زیات وو، تردے چه انبیاء علیهم السلام به ئے وژل او اُوس هم بمونه راخوشي کړي چه ماشومان او زنانه او بوډاگان او مسافر شهیدان کړي تردے چه په جنازو او ودونو باندے هم بمباری کوي، دا د یهود او نصاراؤ مرض دے او بیا خان ته بشر دوست وائي، دروغ وائي، دوی غټ قاتلان دي۔

۳- قرطبیؒ لیکي : دا حکم په ټولو ادیانو کې وو لیکن د اول ځل دپاره په مکتوبي (لیکلے شوي) شکل کې په بنی اسرائیلو باندے نازل شوے وو، د دوی نه مخکې فرض وو خو مطلق وو لیکلے شوے نهٔ وو۔ (تفسیر القرطبی۱۴۶/۶)

بِغَيۡرِ نَفۡسٍ : أَيۡ بِغَيۡرِ قَتۡلِ نَفۡسٍ۔

یعنې یو نفس یې وژلے نهٔ دے او څوك هغه ظلماً قتل کړي.
أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ : د فساد درے مصداقات دي (۱) زنا بعد الاحصان. (د واده نه روستو زنا) (۲) الارتداد. مرتد شو نو دا فساد دے، [مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ]. (بخاري: ۳۰۱۷)
(۳) قَطْعُ الطَّرِيْقِ. لارې شوکول لکه روستو راځي. (القرطبي والبغوي)
فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا : سوال:
د یو کس او د ډیرو په وژلو کې خو فرق دے نو دلته څنګه وائي چه چا یو نفس قتل کړو ګویا کهٔ دهٔ ټول خلك قتل کړل؟ ۱- ددے یو جواب ابن جریر الطبريؒ او بغويؒ ورکړیدے چه دلته د نفس نه مراد نفس د نبي او د امام عادل او عالِم دے، ځکه چه ((مَوْتُ الْعَالِمِ مَوْتُ الْعَالَمِ)). د عالِم مرګ د ټول عالَم مرګ دے. او دا د ابن عباسؓ ته منسوب ده.
دا تفسیر دلته ظاهر نهٔ دے ځکه چه دلته (نفس) کلمه نکره ده، د عموم معنیٰ ورکوي.
۲- جواب: دلته ئې (فکانما) یعنې د ګویا لفظ استعمال کړیدے یعنې دواړه قتلونه یو شان برابر نهٔ دي، یو کې به ګناه زیاته وي او بل کې به د هغې په نسبت کمه وي مګر تشبیه پدے کې ورکړے شویده چه د یو مؤمن په قتل کې هم د الله د یو دوست روح ویستل دي او د ډیرو مؤمنانو په قتل کې هم روحونه ویستل دي نو په اخراج الروح کې سره یو شان دي اګرکه په ګناه کې به فرق وي.
۳- دے کې ښه وجه دا ده چه دلته تشبیه پدے کې ده چه د یو مؤمن او د ډیرو مؤمنانو په وژلو کې یو شان اُورته تلل دي او په هغې کې همیشوالے دے ترڅو چه مانع موجود نهٔ وي. او دا وجه ابن جریر راجح کړیده او د احیاء په طرف کې ئې ویلي دي چه خلك به ددهٔ نه بچ شي کله چه دے ناحقه قتل حرام ګڼړي.
٤- دارنګه د یو کس قاتل او د ټولو خلکو قاتل په لاندے شیانو کې سره شریك دي اګرکه په کم او کیف کې به ئې فرق وي ۱- دواړه دوزخیان دي. ۲- دواړه د الله د لعنت او غضب مستحق دي. ۳- دواړه به قصاص کیدلے شي. ٤-دواړه د نورو قاتلانو دپاره مشران ګڼړلے کیږي. دغه شان که یو تن ته څوك نجات ورکړي یا ټولو خلکو ته نجات ورکړي نو د الله د رضا په حاصلولو کې سره شریك دي. (عزیز التفاسیر)
(٥) صاحب المنارؒ ډیره ښه وجه ذکر کړیده: چه پدے آیت دلیل دے پدے خبره چه کله د یو تن طاقت وي چه ټول انسانان د هلاکت نه بچ کړي کله ئې چه په هلاکت کې وینی نو

پدیے کې په تاخیر نهٔ کوی او خپله وسعه به استعمالوی او څوك چه دغه شان وی نو هغه به د بندګانو په هیڅ حق کې کوتاهی نهٔ کوی کوم چه په دهٔ باندیے لازم دی۔ نو ددیے نه دا خبره لازمی طور سره راوځی چه که ټول خلك یا اکثر خلك د هغه سړی په شان شی چه یو نفس په غیر د حق نه وژنی نو دا ټول به د قتل په وجه هلاکت ته پیش کیږی په هر وخت کی او که دوی د هغه سړی په شان شی چه یو نفس ئے ژوندیے کړو د وجه د احترام د هغه نه او د هغه د حقوقو د ادا کولو نه نو ناحقه مرګونه به د زمکے نه ختم شی او خلك به د یو بل سره په تعاون کی ژوند تیر کړی او ټول به وروڼه وروڼه شی نو دا آیت مونږ ته دا تعلیم راکوی چه بشریت کی وحدت او اتحاد ضروری دیے او هر یو تن لره د بل په ژوند باندیے حرص پکار دیے، او د هر چا د ضرر نه ئے ساتل پکار دی ځکه چه د یو تن بی احترامی دا د ټولو بی احترامی ده او د یو تن د حقوقو احترام کول پدیے اعتبار چه دا د نوع انسانی نه یو اندام او جزء دیے دا د ټولو د حقوقو احترام دیے ځکه چه ټولو دپاره حقوق شرعیه یو برابر دی۔ نو په آیت کی یوه اُوچته بهترینه معنیٰ پرته ده چه دغه ټولو معانیو لره راګیرونکے ده۔ (المنار ۲۸۹/۶)

وَمَنْ أَحْيَاهَا : أَیْ نَجَّاهَا مِنْ هَلَكَةٍ وَحُرْقٍ وَغَرْقٍ۔ یعنی نجات ورکړی یا ئے ژوندیے وساتی د هلاکت، یا سوزیدو یا شلیدو یا غرق کیدو نه۔ (المحرر الوجیز)

۲- د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه د عادل بادشاه سره کومك وکړی چه مفسدان ختم کړی۔

۳- امام مجاهدؒ وائی چه په وژلو ئے قادر شی خو قتل ئے نهٔ کړی۔

٤- حسن بصری رحمه الله وائی : د مقتول اولیاء د قصاص نه قاتل ته معافی وکړی۔ (بغویؒ)

٥- پدیے کی دا هم داخل دی چه خلك د قتل نه منع کوی او ددیے بدی د خلکو په زړونو کی کینوی او په معروف باندیے ورته حکم کوی۔

٦- امام بخاریؒ د ابن عباسؓ نه تعلیقاً دا هم ذکر کړیدی چه چا د یو نفس قتل حرام وګنړلو مګر په حق سره نو خلك به ددهٔ نه ژوندی پاتے شی۔ (بخاری کتاب الدیات باب ۱)

ددیے نه معلومه شوه چه د الله په نیز باندیے د انسان د نفس ډیر قدر او قیمت دیے خاصکر د مؤمنانو نفس۔ او بعض خلك په معمولی څیزونو هم انسانان وژنی۔

ابن جریرؒ روایت کړیدیے چه د حسن بصریؒ نه سلیمان بن علیؒ تپوس وکړو چه آیا پدیے

آیت کې موجود حکم د بنی اسرائیلو په شان زمونږ دپاره هم دے ؟ نو هغه وویل،
[أَیْ وَالَّذِیْ لَا إِلٰهَ غَیْرُهُ مَا کَانَتْ دِمَاءُ بَنِیْ إِسْرَائِیْلَ أَکْرَمَ عَلَى اللهِ مِنْ دِمَائِنَا]
آؤ، قسم په هغه ذات چه د هغه نه سوئ بل څوك معبود نشته، د هغوی وینه کوم شی زمونږ د وینے نه زیاته قیمتی جوړه کړه ؟۔ (وانظر البغوی ٤٧/٣)
**وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنَاتِ** : یعنی د ذکر شوی احکامو سره سره بنی اسرائیلو ته زمونږ پیغمبران راغلی وو او ښکاره دلیلونه او معجزات ئے دوی ته بیان کړی وو دے دپاره چه دوی خلك قتل نکړی او هغوی به ورته وخت په وخت دا حکم رایادولو، او د دوی د تورات په نسخو کې اُوس هم د قتل په باره کې انتهائی سختئی ذکر ده لیکن دوی کې بیا هم ډیر خلك مسرفان جوړ شو او د الله د حدودو نه واوړیدل ځکه چه دوی کې د حسد بیماری وه او په حسد گرباندے معجزات او دلیلونه اثر نکوی۔
او پدے کې رسول الله ﷺ ته یو قسم تسلی ده چه که دا یهودیان ستا په خلاف سازشونه کوی او ستا قتلول غواړی نو پدے سره خفگان مه کوه ځکه چه شر او فساد ددوی فطرت جوړ شویدے، دوی هر شر او فساد او جنگ جگړے د ښه پو هیدو نه روستو کړیدی۔
**لَمُسْرِفُوْنَ** : اسراف هر زیاتی ته وائی لکه ددے مصداق، شرك، قتل او د الله د حدودو نه تیروتل دی۔ صاحب المنار وائی : اسراف په عمل کې د حد نه تیریدلو ته وائی یعنی د حق او د مصلحت د حدودو نه تیروتل، او دا په امور شرعیهؤ کې په شریعت سره او په غیر شرعیو کې په عرف او عقل سره پیژندلے شی۔ او هرکله چه اسراف په یو نیك کار هغه شر گرځوی نو ستا څه گمان دے چه شر کار کې اسراف به څومره ضرر پیدا کوی۔ (المنار)

| إِنَّمَا جَزَآءُ الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَسْعَوْنَ فِي |
|---|
| یقیناً بدله د هغه کسانو چه جنگ کوی د الله او د رسول د هغه سره او کوشش کوی په |
| الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُّقَتَّلُوْا أَوْ يُصَلَّبُوْا أَوْ |
| زمکه کې د فساد کولو دا ده چه قتل دے کړے شی دوی یا دِے په سولئ (دار) کړے شی یا |
| تُقَطَّعَ أَيْدِيْهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ ذٰلِكَ |
| دِے پریکړے شی لاسونه د دوی او خپے د دوی ردوبدل یا دِے وشړلے شی د زمکے نه دا (سزا) |

| لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٣٣﴾ إِلَّا |
|---|
| د دوی دپاره شرمندګی ده په دنیا کې او د دوی دپاره په آخرت کې عذاب لوئې دے۔ مګر |
| الَّذِينَ تَابُوا مِن قَبْلِ أَن تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ |
| هغه کسان چه توبه ئے وویستله مخکې ددے نه چه قادر شئ تاسو په هغوی باندے |
| فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣٤﴾ |
| نو پوهه شئ چه بیشکه الله تعالیٰ بخنه کونکے رحم کونکے۔ |

**تفسیر**: ربط: ۱- مخکې د قتل مسئله وه، دلته د قطاع الطریق سزا بیانیږي۔
۲- مخکې د قتل حراموالے ذکر شو اُوس وائی چه د هغه چا قتل جائز دے چه څوك په زمکه کې فسادونه او تخریب کاري کوي۔ دا تفسیر د (او فساد في الارض) دے۔

## شان نزول

۱- اکثر اهل علم وائی چه دا آیتونه د عرنیین په باره کې نازل وو۔
بخاریؒ او مسلمؒ او نورو محدثینو د انس بن مالك ﷺ نه روایت کړیدے چه د عُرینه او عُکل څه کسان د رسول الله ﷺ خوا ته مدینے ته راغلل اسلام ئے قبول کړو لیکن د مدینے آب وهوا ورسره موافق نشوه پدے وجه رسول الله ﷺ هغوی ته اُوئیل چه دوی دِ ے د زکاة د اُوبنانو ځای ته لاړ شی او د هغے متیازے او پئ دِ ے اُوڅکی، هغوی هلته لاړل او دغسے ئے اُوکړل او کله چه صحتمند شو نو څه ورځے روستو ئے د اُوبنانو څرونکے قتل کړو او اُوښان ئے اُوتختول (او یمن طرفته روان شو، مرتد شو) نبی کریم ﷺ د دوی د رانیولو دپاره څه کسان دوی پسے اُولیږل، (او یو روایت نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ دوی پسے ښیرے وکړے چه اے الله! دوی باندے زمکه د څرمنے نه هم زیاته تنګه کړے چه مزل ونکړے شی)
کله چه راونیولے شو او راوستے شو نو د دوی لاسونه او خپے پریکړے شوے، او د دوی سترګے اُوداغلے شوے، او د دوی زخمونه همداسے بغیر د داغلو نه پریخودے شو تردے چه مړهٔ شول۔ امام مسلمؒ د انس ﷺ په یو بل روایت کې دی چه دے خلقو د شپونکی سترګے داغلے وے پدے وجه رسول الله ﷺ د هغوی هم سترګے اُوداغلے۔

نو دا آیتونه د دغسې مرتدانو په باره کې نازل شویدي.

۲- ځینې وائي چه دا د اهل کتابو په باره کې نازل شوې وو لکه د (مُسْرِفُوْن) سره ئې تعلق دې اُوس د هغوی اسراف ذکر کوي، دوی د رسول الله ﷺ سره معاهده کړې وه خو معاهده ئې ماته کړه او لارې ئې وشوکولې او په زمکه کې ئې فسادونه وکړل، دا قول ابن جریرؒ او قرطبيؒ د ابن عباسؓ او ضحاکؒ نه نقل کړیدې.

(تفسیر الطبری۲۰۵/٤ والقرطبی۱٤۹/٦)

۳- ابوداوُدؒ او نسائيؒ د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت کړیدې چه دا آیتونه د مشرکانو په باره کې نازل شوي وو. نو څوك چه د دوی نه توبه وباسي مخکې ددې نه چه مسلمانان په هغوی قادر شي نو په هغه به هیڅ سزا نۀ وي.

(زاد المسیر۲۷۰/۲ النسائی باسناد صحیح رقم: ٤۰٤٦)

٤- ځینې وائي: ذکر شوي آیتونه د مسلمانانو حکم بیانوي کله چه دوی د الله او د رسول سره محاربه شروع کړي او په زمکه کې فسادونه راپورته کړي او د اسلامي حکومت نه باغیان شي. (اختاره ابن حزم في المحلی).

لیکن صحیح دا ده چه حافظ ابن کثیرؒ وائي چه دا آیت عام دې مشرکین او غیر مشرکینو تولو ته شامل دې چه په چا کې دغه صفتونه پیدا شي اګرکه مسلمان وي. نو کوم خلك چه توپکیان او پاټکیان وي چه مسلمان یره وي او د هغوی نه مالونه اخلي نو د دغسې خلکو هم دغه حکم دې.

بیا دلته څلور سزاګانې دي پدې کې چه د وخت امام (حاکم) د چا دپاره کومه مناسبه ګنړي هغه ورکولې شي لکه دا ظاهر د آیت دې. بعض وائي چه څلور سزاګانې په څلورو کارونو مرتب دي که چرته صرف قتل ئې کړې وي نو قتل به کړې شي او که د قتل سره ئې مالونه هم اخستي وي نو بیا به په سولۍ کړې شي او که صرف غلا ئې کړیده نو لاس او خپې به ترې ردوبدل پرېکړې شي او که صرف خلك ئې یرولي وي او مال ئې نۀ وي اخستې نو بیا به جیل ته بوتللې شي او د ملك نه به وشړلې شي.

پدې وجه بعض خلقو وئیلي دي چه عکل او عرینه والو ته کومه سزا ورکړې شوې وه هغه ددې آیت په ذریعه منسوخ شویده او اُوس محاربه کونکو ته به هغه سزا ورکولې شي کومه چه پدې آیت کې بیان شویده. لیکن صحیح دا ده چه نسخ نشته هغه قصاص بالمثل دې او دا محاربه ده او د دواړو ترمینځ ډیر فرق دې.

**فائده**: کـه دغـسـې جرمونه کونکـې د ګرفتار کـيدونه مخکې توبه وباسي نو هم په هغه به حد قائم کيږي او دا قول د ابن عباسؓ دے۔ (القرطبی ١٤٩/٦)

ليکن روستو رائې چه راجح دا ده چه هغه معاف دي بنص القرآن۔

اِنَّمَا جَزٰٓؤُا: دے آيتـونو ته آياتِ محاربه وائي۔ د محاربے لغوی معنیٰ مخالفت دے او په اصطلاح د شريعت کې ددے اطلاق په کفر، ډاکه، لوټ مار او دهشت ګردئ باندے کيږي۔

يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ: اَیْ یُخَالِفُوْنَ اَحْکَامَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ۔ د الله او د رسول د احکامو مخالفت کوي، که په طريقه د ارتداد او کفر سره وي يا نهٔ وي۔

وَيَسْعَوْنَ فِي الْاَرْضِ فَسَادًا: فساد: قتل او مالونه اخستل او د خلکو يره ولو ته وائي۔

ددے نه معلومه شوه چه زمکه د مفسدانو نه پاکول او لارے د قتلونو او د مالونو اخستلو او د خلکو يرولو نه په امن کې کول ډيره لويه نيکي او عظيم طاعت دے او دا اصلاح في الارض ده۔ (السعدیؒ)

اَوْ يُصَلَّبُوْٓا: (اَوْ) کلمه د تخيير (اختيار ورکولو) دپاره ده چه حاکم وقت پدے سزاګانو کې هره يوه منتخب کړي نو صحيح ده۔ يا دا چه په مخکې طريقه به پرے عمل وکړے شي۔

اَوْ يُنْفَوْا: احناف وائي چه د نفي (شړلو) نه مراد جيل ته اچول دي او جمهور اهل علم وائي چه د ملك نه به شړلے شي۔ مګر نفي په معنیٰ د جيل ته اچول خطاء دي، لغت کې دا نشته او امام ابن حزمؒ په ((محلی ٨١/١١)) کې په احنافو باندے رد کړيدے او بيا ئے ډير مثالونه ذکر کړيدي چه نفي په معنیٰ د سجن سره نهٔ راځي۔

**سوال** دا دے چه شړلو سره خو د هغوی فساد لا عام کيږي نو دا څنګه د حل او اصلاح لره وګرځول شوه؟

جـواب دا دے چه کـلـه ډاره ماران، ډاکه مار خلك تس نس کړے شي نو د هغوی طاقت ختم شي که بل ملك ته لاړ شي، نو هلته ورته لارے ګودرے معلومے نهٔ وي، هلته ئے ځای د قـوت مـوجود نهٔ وي نو فسادونه نشي کولے، او د کلي نه په مسافر کولو سره د هغه ډيره اصلاح کيږي او پدے کې ډيرے فائدے او حکمتونه دي چه علم ئے د الله سره دے او په اسلامي خلافتونو کې مفسدان سر نشي وچتولے۔

د سيدنا عمر فاروق ﷺ په دورِ خلافت کې يو غلام او وينځے ام ورقه رضي الله عنها شهيده کړه او بيا وتښتيدل امير المؤمنين فرمان صادر کړو چه دوی هر ځای وي حاضر ئے کړئ، آخر ئے راپيدا کړل او په سولئ (پهانسئ) باندے ئے وخيژول، اوله سولئ (پهانسی)

په خلفاءِ راشدینو کې امیر المؤمنین عمر فاروق ﷺ وکړله۔

(ابوداود رقم: ۵۹۱ باسناد حسن- البانی)

﴿ ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾

دا دلیل دے چه محاربینو ته به په دنیا او آخرت دواړو ځایونو کې سزا ملاویږی۔ په دنیا کې د حد په قائمولو سره دوی نهٔ پاك کیږی، اګرکه هغوی مسلمانان وی۔ د حافظ سیوطیؒ او شعرانیؒ وغیرهم همدا رائے ده۔

## آیا د توبې نه روستو قطاع الطریق معاف کیږی؟

**اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا :**

پدے کې اهل علم داسے تشریح کوی چه که یو کافر دے او محارب ګرځیدلے دے او د خپله طبع سره راشی او توبه وباسی، اسلام قبول کړی نو هغه ته ټول ګناهونه معاف دی اګرکه غلا او قطاع الطریقی او قتلونه او نور فسادونه ئے کړی وی۔

[اَلْإِسْلَامُ يَجُبُّ مَا كَانَ قَبْلَهٗ] (اسلام ټول مخکنی ګناهونه ختموی)۔

او که مسلمان دے او قتلونه او غلاګانے او قطاع الطریقی کوی نو که په خپله طبع ئے توبه ویستله نو د الله حق به ورته معاف شی لیکن د بندګانو حقوق ورته نهٔ معاف کیږی، که مال ئے اخستلے وی هغه به واپس کړی او که قتل ئے کړے وی نو وژلے به شی قصاصاً او حد به پرے قائمولے شی۔ (السعدی)

پدے کې د امام احمدؒ مذهب دا دے چه دا شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ غوره کړیدے او حافظ ابن قیمؒ د ابو موسیٰ اشعری، علی بن ابی طالب، او ابو هریره رضی الله عنهم واقعات ذکر کړیدی چه که یو سړے مسلمان دے او قطاع الطریق ګرځیدلے دے، نو دا د کفارو په حکم کې دے که په خپله خوښه توبه وباسی، نو هر څه ورته معاف دی،

او دا آیت عام دے، کافر او مسلمان دواړو ته شامل دے۔

د مُراد قبیلے یو شخص ابو موسیٰ اشعری ﷺ خواته د کوفے په مسجد کې چرته چه هغه ګورنر وو د فرض مانځه نه روستو راغلو او وے ویل چه اے د کوفے امیره! زهٔ فلان بن فلان د مراد قبیلے یم، ما د الله او د هغه د رسول سره جنګ کړے، په زمکه کې مے فساد کړے لیکن ستاسو په ما باندے د قدرت مونډلو نه مخکې ما توبه ویستلے ده، اُوس زهٔ ستاسو نه د پناه حاصلونکی په ځای ولاړ یم (آیا زما توبه به قبوله شی؟) ابو موسیٰ

اشعري ﷺ ودریدو او وے فرمایل: اے خلکو ! دے سري ته به د توبې ویستلو نه روستو هیڅوك تكلیف نهٔ ورکوي که دے رشتیني وي نو ښه ده او که دروغژن وي نو دے به خپل گناهونه هلاك كړي، نو دے څه موده پورے صحیح وسیدو لیکن بیا راووتو نو الله په خپلو گناهونو کې راونیولو او قتل ئے کړو۔ (ابن کثیرؒ)

## نادره مسئله

د کفارو باره کې دا قانون دے چه کافر دوه قسمه دي، يو اصلي او بل مرتد، اصلي کافر که په هر ځای او هره موقعه کې ایمان راوړي اګرکه د تورے لاندے راشي او کلمه ووائي نو هغه به معاف کولے شي او د هغه وژل به حرام وي او دویم مرتد کافر دے چه اول مسلمان وي بیا کافر شي نو د هغوي په باره کې په نیز د عام اهل علمو قانون دا دے چه که هغه په خپله خوښه ایمان راوړي نو قبول به وي، او که د تورے لاندے راتلو سره ایمان راوړي نو د هغه ایمان به نهٔ قبلیږي، او د هغه وژل به په هر حال کې جائز وي ځکه چه هغه چل ولي او منافق وي، ټیك ده کـه الله ته ئے د زړه اخلاص معلوم وي نو هغه به ورله په آخرت کې توبه قبوله کړي لیکن د دنیا په احکامو کې به وژلے شي۔

غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ : پدے کې الله تعالیٰ توبې ته ترغیب ورکوي۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَابْتَغُوْا إِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ |
| اے ایمان والو ! ویریږئ د الله نه او طلب کړئ هغه ته نزدیکت (په بندګئ) |
| وَجَاهِدُوْا فِيْ سَبِيْلِهٖ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۳۵﴾ |
| او جهاد کوئ په لاره د هغه کې دے دپاره چه تاسو کامیاب شئ۔ |

**تفسیر** : د عقودو نـه دا بـل عـقد دے چه پدے کې الله تعالیٰ د درے خبرو حکم کړیدے، تقویٰ، وسیله او جهاد۔

## مناسبت

۱- دے سورت کې عقود بیانیږي او دا هم د عقودو نه یو عقد دے۔

۲- ددے مناسبت د (۱۸) آیت سره دے (نَحْنُ أَبْنَاءُ اللهِ وَأَحِبَّاؤُهُ) یعني په دعوه د محبوبیت د الله بانـدے كار نـهٔ كيږي او نـهٔ پدے نـجات شته بلکه عمل لره اعتبار دے، نو تاسو کې

ایمان، تقویٰ او جهاد نشته نو ځنګه د الله دوستان ګرځیدلئ شئ. (نیشاپوریؒ)

۳- محاربینو ته وائی چه تاسو ځان ته مؤمنان وایئ او حال دا چه د هغه بندګئ او صحیح ایمان درکی نشته د هغه نه مو مخ چرته اړولے دے. الله ته ځان نزدے کړئ په بندګیانو سره.

٤- مخکی دیهودیانو خباثتونه ذکر شو نو اُوس الله فرمائی : اے ایمان والو! هغوی خو دغه فسادونه کوی خو تاسو چرته د هغوی په نقش قدم روان نشئ بلکه الله ته ځان په طاعاتو نزدے کړئ او د هغه د مخالفتونو نه ځان بچ کړئ.

اتَّقُوا اللّٰهَ : د بعض علماؤ په نیز دلته د تقویٰ نه مراد ترك المنهیات (ګناهونه او حرام کارونه پریخودل) دی ځکه چه روستو (وَابْتَغُوْا اِلَیْهِ الْوَسِیْلَةَ) کی امتثال الاوامر ( په اوامرو باندے عمل کول) ذکر دی. او په (وَجَاهِدُوْا فِیْ سَبِیْلِهٖ) کی بل ته دعوت او بیا جهاد کول ذکر دی. یا (اتقوا الله) کی عموم دے او (وابتغوا اوجاهدوا) تخصیص بعد التعمیم دے.

فائده : توسل الله الی په ایمان سره او په اعمال صالحه ؤ سره فرض دے او ډیر خلك دد دے نه غفلت کوی حال دا چه الله تعالیٰ پدے باندے امر کړیدے.

## د وسیلے بحث

وسیله په معنیٰ د قربت (نزدے والی) سره دے، لکه دا په صاد سره هم استعمالیږی. (وَصِیْلَةٌ) یو ځائے والے. جوهریؒ په صحاح کی لیکی : وسیله : مَا یُتَقَرَّبُ بِهٖ اِلَی الْغَیْرِ. هغه شے دے چه په هغے سره بل شی ته نزدیکت کیږی.

او حافظ ابن کثیرؒ لیکی : مَا یُتَوَصَّلُ بِهٖ اِلٰی تَحْصِیْلِ الْمَقْصُوْدِ.

وسیله هغه شے دے چه په هغے سره مقصود ته رسیدل کیږی.

۲-د ابن زیدؒ نه نقل دی چه وسیله په معنیٰ د محبت سره دے. یعنی خپل رب سره مینه وکړئ. او هغه د محبت لائق دے ځکه چه هغه کمال، جمال، علم، قدرت، احسان والا دے او دغه څیزونه اسباب د محبت دی. او د بنده په عبادت کی چه اثر پیدا کیږی نو هغه دا چه د محبت په بنیاد باندے وشی، نهٔ د عادت په بناء.

۳- وسیله په یوه بله معنیٰ هم ده : مَنْزِلَةٌ فِی الْجَنَّةِ لَا تَنْبَغِیْ اِلَّا لِعَبْدٍ مِنْ عِبَادِ اللّٰهِ وَاَرْجُوْا اَنْ اَکُوْنَ اَنَا] دا یوه مرتبه ده په جنت کی چه هغه به صرف رسول الله ﷺ ته حاصلیږی.

دلته دا معنیٰ نهٔ ده مراد۔

امام مسلمؒ د عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : ((کله چه مؤذن اذان اُووائی نو څنګه چه هغه وائی، هغه شان تاسو وایئ بیا په ما باندے درود اُووایئ ځکه چه څوك په ما باندے یو ځل درود وائی نو الله به په هغه باندے لس کرته درود وائی۔ بیا زما دپاره د الله نه وسیله اُوغواړئ چه دا په جنت کی یو داسے مقام دے چه د هغے حقدار به د الله صرف یو بنده وی، او زما امید دے چه هغه به زهٔ یم نو څوك چه ما دپاره د الله نه د وسیلے سوال کوی نو د هغه دپاره به زما شفاعت حلالیږی))۔

## د وسیلے اقسام

وسیله په دوه قسمه ده (۱) وسیله شرعی، (۲) وسیله غیر شرعی۔

وسیله شرعی بعض د فرض په درجه کی ده او بعض د مستحب په درجه کی۔

۱- نو الله تعالیٰ ته توسل په ایمان سره فرض دے یعنی کافر الله ته نشی نزدے کیدے ځکه چه ایمان ورسره نشته۔

۲- تَوَسُّلُ بِالْاَعْمَالِ الصَّالِحَةِ۔ په نیك اعمالو لکه فرائضو باندے الله تعالیٰ ته ځان نزدے کول دا هم فرض دی اګرکه په اعمالو کی مستحبات هم شته لیکن مجموعی لحاظ سره په اعمالو باندے الله ته ځان نزدے کول فرض دی۔ حدیث قدسی کی دی :

[وَمَا تَقَرَّبَ اِلَیَّ عَبْدِیْ بِشَیْءٍ اَحَبَّ اِلَیَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَیْهِ] (صحیح البخاری)

ما ته زما بنده په یو شی باندے ځان نهٔ رانزدے کوی چه هغه ما ته زیات محبوب وی د فرائضو نه۔ ﴿وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ﴾۔ او دا توسل یو په دعاء کی دے، یو په عمل کولو سره دے، بنده چه نیك عمل وکړی خپله الله ته نزدے کیږی، او کله به الله ته وائی چه اے الله! که تا زما فلانے نیك عمل قبول کړے وی، نو د هغے په وجه ما نه دا مصیبت لرے کړه لکه د اصحاب الغار واقعه مشهوره ده۔

دا دلیل دے چه نزدیکت په پلارانو نیکونو او اشخاصو سره نهٔ حاصلیږی۔

ددے وجه نه د حافظ ابن جریر طبریؒ نه راپدیخوا ټول اهل سنت مفسرین دا معنیٰ کوی [وَابْتَغُوْا اِلَیْهِ الْوَسِیْلَةَ بِالْاَعْمَالِ الصَّالِحَةِ]۔ الله ته په نیك اعمالو ځان نزدے کړئ۔

[اَقْرَبُ مَا یَکُوْنُ الْعَبْدُ مِنْ رَّبِّهٖ وَهُوَ سَاجِدٌ]۔

۳- تَوَسُّل اِلَى اللّٰهِ بِأَسْمَائِهِ وَصِفَاتِهِ۔

الله ته توسل کول په نومونو او صفتونو د الله سره چه هغه اکثر دعاګانے دی۔ چه اے الله ته رحمان، رحیم، مالك، قادر، غفور او رحیم ئے، زما دا حاجت پوره کړه۔ انبیاء علیهم السلام په قرآن کریم کې اکثر په (رَبَّنَا) کلمے سره توسل کوی۔

٤- تَوَسُّل اِلَى اللّٰهِ بِالتَّضَرُّعِ۔

الله ته خپله عاجزی او کمزوری پیش کول، لکه زکریا علیه السلام دا عاجزی الله ته پیش کړیده۔ ﴿اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَاءً خَفِيًّا، قَالَ رَبِّ اِنِّىْ وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّىْ وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا وَّلَمْ اَكُنْ بِدُعَائِكَ رَبِّ شَقِيًّا﴾ (مریم:۲)

او دا هم الله تعالیٰ ته د نزدے کیدو ډیره ښه طریقه ده چه بنده خپل فقر او کمزوری د الله مخے ته وړاندے کړی، نۀ دعوے او فخر۔

۵- توسل بِدُعَاءِ الْحَيِّ۔

ژوندی سړی نه سوال وکړی چه ما دپاره د الله نه دعا وغواړه لکه رسول الله ﷺ ته یو روند سړے راغے چه ما دپاره د عافیت سوال وکړه (چه سترګے مے بینا کړی) نو نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل :

[اِنْ شِئْتَ دَعَوْتُ وَاِنْ شِئْتَ صَبَرْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ] (ترمذی : ۳۵۷۸ بسند صحیح)

که خوښه دے وی الله ته به سوال وکړم او که خوښه دے وی نو صبر وکړه دا به ستا دپاره غوره وی۔ (یعنی ددے په بدله کی به الله جنت درکړی لکه بل روایت کی دا خبره راغلے ده)

او قرآن کریم کی هم دی بنی اسرائیلو موسیٰ ﷺ ته وویل : ﴿قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ﴾۔ زمونږ دپاره د خپل رب نه دعا وغواړه۔

٦- اَلتَّوَسُّلُ بِمَحَبَّةِ الرَّسُوْلِ وَطَاعَتِهٖ ۔ یعنی الله ته ځان د رسول الله ﷺ په محبت او د هغه په طاعت سره نزدے کول، دا هم په عبادت کی داخل دے، لیکن نوم ئے بدل دے۔

دا وسیلے په شریعت کی ثابتی دی۔

## غیر شرعی وسیلے

دا توسل په دوه قسمه دے (۱) شرکی (۲) او بدعی۔

د توسل شرکی دوه صورتونه دی (۱) یو دا چه د غیر الله نه مددونه غوښتل چه اے بابا، یا علی مدد، یا رسول الله ﷺ مدد، نو دا شرك دے، (۲) الله ته توسل کول په دعاء د مړو،

لکه یو بنده یو مړي یا قبر ته آواز وکړي چه زهٔ ئے تا ته وایم او ته ئے الله ته ووایه، نو دا طریقه شرك ده وجه دا ده چه پدیے کي مخلوق ته عاجزي او د اُلوهیت محبت راځي او مخلوق ته عاجزي او د هغه سره د اُلوهیت محبت عبادت دے او عبادت د غیر الله شرك دے۔

او وګوره چه دوی بابا ته څنګه عاجزي کوي او لاس په نامه ورته ولاړ وي چه اے بابا! زهٔ تا لره راغلے یم ته الله تعالیٰ ته ووایه، نو دا صورت د شرك بالله تعالیٰ دے په عبادت او تعظیم کي۔

۲- توسل بِدَعِي دا دے چه ذوات فاضله الله ته وړاندے کول چه زهٔ تا نه د پیغمبرانو او د اولیاؤ او باباګانو په وسیله او د فلاني په حق، جاه، طفیل، حرمت او برکت باندے سوال کوم یا ووائي چه اے الله ستا دے په فلاني فاضل (ولي یا نبي) باندے قسم وي چه زما حاجت پوره کړه نو دا بدَعِي توسل دے، او په دعاء کي اعتداء (د حد نه تیروتل) دي۔

دا نهٔ نبي کریم ﷺ خپله کړیدے چه ابراهیم او موسیٰ علیهما السلام ئے الله ته وسیله کړي وي او نهٔ د هغه صحابه کرامو کړیدے او نهٔ د هغه د وفات نه روستو کوم صحابي نه په صحیح روایتو کي نقل شویدي۔ (تفسیر القاسمی٦/١٨٧)

او دے باره کي ډیرو مفسدینو د ځان نه حدیثونه ایجاد کړیدي۔ او دا توسل کله بنده د غیر الله دالُوهیت محبت، او د هغه عبادت ته رسوي چه هغه ته عاجزي شروع کړي۔

او ددے د تردید بنه وجه دا هم ده چه په قرآن کریم او احادیثو کي چه د انبیاء علیهم السلام او صالحینو کومے دعاګانے نقل دي په هغے کي هیچرے داسے نشته چه مخلوق ئے الله ته وسیله کړے وي بلکه ټول د الله په نومونو او صفتونو سره شویدي۔

په بعض ضعیفو احادیثو کي ددے ذکر راغلے دے او د بعض داسے خلقو رائے ده چه د هغوی رائے په اسلام کي حجت نهٔ دے۔

امام ابوحنیفهٔ او د هغه اصحابو د توسل ددے قسم نه انکار کړیدے، او وئیلے ئے دي چه د مخلوق توسل سره سوال کول جائز نهٔ دي او نهٔ دا وئیل جائز دي چه اے الله! زهٔ تا نه ستا د انبیاؤ د حق په طفیل سره سوال کوم۔

شامي، هدایه وغیره کتاب الکراهیة کي لیکلي دي:

[وَيُكْرَهُ أَنْ يَقُوْلَ الرَّجُلُ فِيْ دُعَائِهٖ: أَسْئَلُكَ بِحَقِّ فُلَانٍ أَوْ بِحَقِّ أَنْبِيَائِكَ وَرُسُلِكَ، لِأَنَّهٗ لَا حَقَّ لِلْمَخْلُوْقِ عَلَى الْخَالِقِ] (هدایه، کتاب الکراهیة ٤/٤٧٤)

دا مکروه دي چه سړے په دعاء کي ووائي: زهٔ تا نه د فلاني په حق سره یا د انبیاء او

رسولانو (علیهم السلام) په حق سره سوال کوم ځکه چه د مخلوق په خالق باندے هیڅ واجب حق نشته. (مګر هغه چه الله تعالیٰ په خپل ځان باندے ذکر کړیدے. ﴿وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ﴾.

بعض خلقو د صحیح بخاری د عمر ﷺ والا حدیث نه غلط فهم کړیدے چه د هغے تفصیل داسے دے چه کله به په مدینه کی قحط سالی شوه نو عمر ﷺ به وئیل اے الله! مخکی چه به کله قحط سالی کیده نو مونږ به ستا د نبی په وسیله دعا کوله نو باران به کیدو، اوس مونږ ستا د نبی د ترهٔ په وسیله دعا کوو.

پدے حدیث کی د نبی کریم ﷺ په ذریعه د توسل مطلب هغه باندے دعا کول دی نهٔ دا چه د هغه د ذات په ذریعه وسیله حاصلول. همدا وجه ده چه عمر بن خطاب ﷺ به د نبی کریم ﷺ د وفات نه روستو د هغه په ترهٔ عباس بن عبد المطلب ﷺ باندے دعا کوله. (چه هغه به دعا کوله او صحابه کرامو به پرے آمین وئیلو) که مقصود د هغه په ذات سره توسل وے نو د عباسؓ د ذات په ذریعه توسل ته هیڅ ضرورت نهٔ وو.

معلومه شوه چه د عمر ﷺ په نیز د توسل مطلب دعا کول وو په هغه باندے چه هغه د نبی ﷺ د وفات نه روستو ناممکن شوه، پدے وجه هغوی د عباس رضی الله عنه نه د دعا غوښتنه اوکړه چه ته دعا وکړه.

د توسل په باره کی تفصیلی کتابونه لیکلے شویدی لکه د شیخ الاسلام ابن تیمیه (التوسل والوسیلة) او د (التوصل الی حقیقة التوسل) او (التوسل) د شیخ البانی رحمه الله او زمونږ د مشفق استاذ محترم شیخ القرآن عبد السلام الرستمی شفاه الله تفسیر ((احسن الکلام)) ته رجوع وکړه. دارنګه التوصل للرفاعی، دارنګه نیل الفضیلة کتاب، دارنګه فتاوی الدین الخالص جلد (۱) کی تفصیلاً دا مسئله سره د جواب د دلائلو د مخالفینو نه لیکلے شویده.

وجاهدوا فی سبیله: دا د ﴿وَابْتَغُوا إِلَيْهِ الْوَسِيلَةَ﴾ تشریح ده. پدے کی اشاره ده چه په هر عمل کی مجاهده (کراو) وکړے شی نو پدے سره بنده الله تعالیٰ ته نزدے کیږی، نهٔ دا چه په عادت او سستوالی او غفلت سره وشی.

| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه کفرئے کړے کچرته شی د دوی دپاره هغه څه چه په زمکه کی دی ټول |

وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ لِيَفْتَدُوْا بِهٖ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ

او په مثل ددے ورسره نور هم شی دے دپاره چه فدیه (بدله) کی ئے ورکړی د عذاب د ورځے

الْقِيَامَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۳۶﴾ يُرِيْدُوْنَ

د قیامت نه نو قبول به نهٔ شی د دوی نه او د دوی دپاره عذاب دردناك دے۔ اراده به لری دوی

اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ بِخَارِجِيْنَ مِنْهَا وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿۳۷﴾

چه راوځی د اُور نه خو نهٔ به وی دوی راوتونکی د هغے نه او د دوی دپاره عذاب دے همیشه۔

**تفسیر:**

مناسبت : ۱- (لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ) سره متعلق دے اَیْ فَلَا فَلَاحَ بِالْمَالِ یعنی د آخرت په ورځ فلاح او کامیابی په ایمان، تقویٰ، او نیك اعمالو او مجاهدے سره ده نهٔ په مال سره، که کافرانو سره هرڅومره مالونه راشی او الله تعالیٰ ته ئے ورکوی خو نهٔ به قبلیږی ځکه چه ایمان پکی نشته۔

۲- او پدے کی هغه کسانو ته هم تخویف اخروی دے چه هغوی د مخکنی عهودو پابندی نهٔ کوی او په مال باندے نازیږی۔

او پدے آیتونو کی د قیامت په ورځ د کافر حال بیان شویدے، او پدے سره مقصد مسلمانانو ته د الله په اطاعت او بندگئ ترغیب ورکول دی، دے دپاره چه د دوی انجام هم د کافرانو په شان نشی۔

كَفَرُوْا : دے کی مشرکان، اهل کتاب او منافقان داخل دی۔

مَاتُقُبِّلَ مِنْهُمْ : په حدیث کی دی : د قیامت په ورځ به کافر ته ووئیلے شی چه که تا له ډکه زمکه سرهٔ زر درکړے شی آیا ته به ئے د عذاب نه د بچ کیدو دپاره په فدیه کی ورکړے هغه به ووائی چه آؤ اے ربه ! الله به وفرمائی : ما ستا نه په دنیا کی ددے نه آسان څیز غوښتے وو چه شرك مهٔ کوه۔ (بخاری ومسلم)

يُرِيْدُوْنَ : یعنی دوی به عملی طور سره راوځی لیکن ملائك به ئے د وسپنو په ګورزونو سره وهی او بیرته به ئے اُور ته واپس کوی۔ یا دا چه په زړونو سره به دا تمنی کوی چه د اُور نه اُوځی لکه مؤمنون (۱۰۷) آیت کی دی : ﴿ رَبَّنَا اَخْرِجْنَا مِنْهَا﴾

اے الله! مونږ ددے اُور نه اُوباسه۔ (بغویؒ)

ربط : مخکې ئې ووئيل چه په فديه سره نهٔ بچ کيږی اُوس وائی چه په تخفيف سره هم نشي بچ کيدے۔
مُقِيْمٌ : اَیْ دَائِمٌ ثَابِتٌ۔ هميشه به دوی پورے انښتے وی چه نهٔ به ترے جدا کيږی۔

| وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا جَزَآءً بِمَا |
|---|
| او غل سړے او غلا گره ښځه نو پريکړئ لاسونه د دواړو دا سزا ده په سبب د هغے |
| كَسَبَا نَكَالًا مِنَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۳۸﴾ |
| چه کړی دی دواړو، عبرتناکه سزا ده د الله د طرف نه او الله غالبه حکمتونو والا دے۔ |

**تفسير :** ربط :

۱- مخکې د لوئی غلا تذکره وه يعنی ډاکه ماری، لوټ ماری، او دلته وړه غلا ذکر کوی۔ په بل عبارت سره : پردی مال اخستونکی يو هغه دی چه ښکاره ئې په زوره سره اخلی لکه محاربين او بل هغه دی چه په پټه سره ئې اخلی لکه سارق (غل)۔

۲- مخکې ئې ووئيل چه په آخرت کې د مال احترام نشته البته په دنيا کې د مال احترام شته چه ددے د غلا په وجه د بنده نه لاس پريکړے کيږی۔

دا بل عهد د الله د عهودو نه هغه دا چه د پردی مال نه ځان وساتئ په طريقه د محارے او په طريقه د غلا سره۔ نو پدے کې حد د سرقه (غلا) بيانوی يعنی که چا غلا وکړه لاس به ترے پريکولے شي۔

وَالسَّارِقُ : سرقه (غلا) څه ته وائی؟

سارق د سرقه نه دے، سرقه په عربئ ژبه کې مطلق غلا ته وائی او د کومے غلا دپاره چه حد مقرر شويدے يعنی شرعی غلا نو هغه دے ته وائی [أَخْذُ مَالِ الْغَيْرِ بِغَيْرِ رِضَاهُ خُفْيَةً مِنْ حِرْزٍ] پردے مال په غير د رضا د مالك نه په پټه باندے اخستل چه دغه مال محفوظ وی۔

نو پدے سره خپل مال اخستل ووتل او "پټه سره" پدے سره غصب ووتو چه که ښکاره د چا نه په زوره مال واخلی نو په هغے کې به لاسونه او خپے دواړه پريکولے شي لکه مخکې بيان شو۔ او "محفوظ مال وی" يعنی په صندوق، دکان، کور او خيمه کې ساتلے شويدے برابره ده چه څوك ئې څوکيداری کوی يا نه، دروازه لری يا نه، دروازه ئې بنده وی يا کولاوه، نو جومات، مسافر خانه او داسے نور ځايونه چه هلته د داخليدو عامه اجازه وی لکه

صحراء او ډاګه نو دا به حرز نهٔ وي۔
نو که د مسجد یا د لارې یا مسافر خانې څوك غلا وکړي نو دا به د غلا ګناه وي لیکن لاس به پرې نهٔ پریکړې کیږي۔ پدې وجه حدیث کې دي چه که چا د باغ نه غلا وکړه نو لاس به ئې نهٔ پریکړې کیږي او که د درمند نه ئې وکړه نو لاس به ئې پریکړې کیږي، ځکه چه دا مال محفوظ او هغه غیر محفوظ دې۔
البته که د باغ نه غلا وکړي نو تاوان به ترې اخستلې کیږي۔

## مسئله : په څو مره مال غلا کولو سره به لاس قطع (پریکولې شي)؟

مخکې شرط نه معلومه شوه چه مال به داسې وي چه خلك ئې ساتنه کوي نو کوم مال چه دومره قیمت نهٔ لري لکه یوهٔ کجوره دوه یا د پیازو یوه غوټه دوه، نو خلك د هغې ډیر حفاظت نهٔ کوي نو په اتفاق سره به د هغې په غلا کولو کې لاس نهٔ پریکړې کیږي۔
بعض فقهاءِ ظاهریه ؤ وئیلي دي چه غل که لږه غلا اُوکړي او که زیاته خو د آیت د عموم په وجه به د هغه نه لاس پریکولې شي، دوي د مسروق مال نصاب ته د رسیدو یا محفوظ ځای نه د غلا کولو اعتبار نهٔ دې کړې مګر دا د صحیح احادیثو خلاف معلومیږي چه په هغې کې نصاب مقرر شویدې لکه جمهورو علماؤ نصاب لره اعتبار ورکړیدې۔
نو ددې په نصاب کې اختلاف دې، ډیر زیات اقوال دي، د صحیح احادیثو په رڼا کې چه کومه خبره راجح معلومیږي، هغه دا ده چه که د غلا مال څلورمه حصه د دینار یا د درې درهمو برابر وي یا ثَمَنُ الْمِجَنِّ۔ یعنې د ډهال د قیمت برابر، چه دې په هغه زمانه کې د درې روپو قیمت لرلو نو لاس به ئې پریکړې کیږي۔ او که ددې نه کم وي نو لاس به ئې نهٔ پریکړې کیږي۔ صحیح البخاري : ٦٧٩٢/٦٧٩٣/ ٦٧٩٤/ ٦٧٩٦/ ٦٧٩٨)
او ددې روپو نه پخوانۍ روپۍ مراد دي چه د دوو نه به دوه پنځوس تولې جوړیدلې۔
او کوم روایت کې چه دا راغلي دي چه [لَا قَطْعَ فِيمَا دُوْنَ عَشْرَةِ دَرَاهِمَ] (مسند احمد)
یعنې د لسو درهمو نه په کم مقدار کې لاس قطع کول نشته، نو هغه ضعیف دې، د عمل قابل نهٔ دې۔ (شعیب الارناووط)

## سوال

په سورة النور کې ئې ﴿اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ﴾ زنا کاره ښځه مخکې ذکر کړه او دلته ئې غل

سرے مخکې ذکر کړو، پدے کې څه حکمت دے؟
جواب: په غلا کې بهادري او زړه ورتیا وي او دا په سړو کې زیاته وي، او سړي غتې غلاګانې کوي او ښځې دومره غټې غلاګانې نشي کولے۔ او زنا اکثر د ښځې د طرفنه واقع کیږي ځکه چه یوه ښځه سړو ته تو جه ورنکړي نو هیڅکله به ترے زنا ونشي۔
بله وجه زنا اکثر د ضعیف الهمة انسان نه کیږي او هغه زنانه دي او غلا د مال وي، د مال سره د سړي محبت زیات وي۔
أَيْدِيَهُمَا : د أَيْدِيْ اطلاق د ګوتو د سرونو نه تر ترخونو پورے کیږي لیکن په حدیث کې ئے تفسیر راغلے دے چه هغه ښے لاس پریکول دي، او د مړوند نه به پریکولے شي۔ لکه په یو قراءت د عبد الله بن مسعود ﷺ ذکر دي چه ﴿فَاقْطَعُوْا أَيْمَانَهُمَا﴾ د دوی ښی لاسونه پریکړئ۔
په اول ځل کې ښی لاس پریکول دي او که دوباره غلا وکړي نو بیا به ترے ګسه (چپه) خپه پریکړے شي۔ و التفصیل فی الحدیث۔
ددے نه دا هم معلومه شوه چه زیادت او تقیید د کتاب الله په خبر واحد سره جائز دے۔

سوال :

ایدي خو د جمعے کلمه ده نو آیا د غل او غلاګرے نه به ټول لاسونه پریکړے کیږي؟
جواب دا دے چه دا د عربئ قانون دے، زجاج او فراءٓ وئیلي دي چه د انسان هر اندام چه د هغے نه دوه ذکر کیږي نو په لفظ د جمع سره وي لکه (صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا) دلته زړونه د دوه کسانو مراد دي نو یمین (ښے لاس) د هر انسان یو یو دے نو چه د دوه کسانو (مذکر او مؤنث) لاسونه ذکر کیږي نو جمع به تثنیه ته مضاف کیږي۔ آسان تعبیر دا دے چه کله تثنیه تثنیه ته مضاف کیږي بیا د فصاحت تقاضا دا ده چه اوله تثنیه په صیغه د جمعي سره راوړل شي۔
جَزَآءً بِمَا كَسَبَا : یعني دا سزا ده په سبب د کسب د دوی او مناسب ده د دوی د عمل سره چه غلا ده ځکه غلا ئے په لاس کړیده نو لاس پریکول ترے پکار دي۔
د مسائلو تفصیل دپاره تفسیر قرطبیؒ وغیره ته رجوع وکړه۔
نَكَالًا مِنَ اللهِ : نکال عبرتناکے سزا ته وائی چه آینده کې د داسے قبیح عمل نه منع شي ځکه چه خپل لاس ته به ګوري او نور خلق به هم ورته ګوري نو د غلا نه به منع کیږي۔

## معجزانه قصه

وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ : اصمعیؒ (یو لغوی عالِم دے) وائی چه یوه ورځ ما دا آیت ولوستو نو په آخر کی مے (والله غفور رحیم) ولوستو نو یو اعرابی واوریدو او وئے ویل چه دا د الله کلام نهٔ دے ؟ اصمعیؒ وائی چه ما ورته وویل چه د څه نه دے معلومه کړه ؟ هغه وویل : که دا د الله کلام وے نو الله چه غفور رحیم دے هغه په لاس پریکولو حکم نهٔ کوی اصمعیؒ وائی چه ما قرآن ته رجوع وکړه نو په خپله خطائی پوهه شوم، بیا مے (والله عزیز حکیم) ولوستو نو اعرابی وویل چه آؤ اُوس دا د الله کلام دے ځکه چه الله عزیز حکیم دے پدے وجه په لاس پریکولو حکم کوی۔ (زاد المسیر ۲/۲۴۷)

| فَمَنْ تَابَ مِنْ بَعْدِ ظُلْمِهٖ وَأَصْلَحَ فَإِنَّ |
|---|
| پس څوك چه توبه وباسی روستو د ظلم خپل نه او عمل خپل نیك كړی نو یقیناً |
| اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ إِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۳۹﴾ |
| الله تعالیٰ به مهربانی وکړی په هغه باندے یقیناً الله بخونکے مهربان دے۔ |

**تفسیر** : اُوس غل ته د توبے ترغیب ورکوی، لکه مخکی ئے محاربینو ته د توبی ترغیب ورکړے وو۔

غل چه کله توبه وباسی نو یو به د الله نه معافی غواړی، او په خپل دغه بد عمل به پښیمانه وی، او بل که مال ورسره وی نو هغه مال به خپل مالك ته واپس کوی او که ورسره نهٔ وو نو اراده به کوی چه که ما سره کله مال پیدا شو نو هغه به واپس کوم، او که مالك ورته معلوم نهٔ وی، نو د هغه د طرف نه د صدقے اراده به وکړی او که مال ورسره پیدا نشو نو الله بخنه کونکے دے۔

مِنْ بَعْدِ ظُلْمِهٖ : د ظلم نه مراد غلا ده، او مطلب دا دے چه د توبی ویستلو نه روستو الله تعالیٰ د هغه توبه قبلوی او هغه ته به په آخرت کی د دے غلا په بدله کی سزا نهٔ ورکوی، لیکن په دنیا کی د غلا حد ددهٔ نه نهٔ ساقطیږی لکه چه په صحیح احادیثو کی ثابت دی چه نبی کریم ﷺ ته به داسے خلق توبه ویستلو سره راغلی وو چه په هغوی به حد واجب شوے وو نو نبی ﷺ به په هغوی باندے حد جاری کولو۔

دارقطنیؒ، حاکمؒ او عبد الرزاقؒ وغیرهم د ابو هریره ﷺ نه روایت کړیدے چه یو غل رسول الله ﷺ ته راوستے شو نو د هغه په حکم سره د هغه لاس پریکړے شو، دے نه روستو نبی ﷺ هغه ته اُووئیل چه توبه اُوباسه، نو هغه اُووئیل چه زهٔ د الله په حضور کی توبه اُوباسم۔ نو نبی ﷺ اُوفرمایل: الله ستا توبه قبوله کره۔ معلومه شوه چه د توبے ویستلو نه روستو حد نهٔ ساقطیږی لیکن د قیامت په ورځ به ددے په وجه هغه ته سزا نهٔ ورکړے کیږی۔ البته د صحیح احادیثو نه دا ثابته ده چه که د غل معامله حاکم ته رسیدو نه مخکی هغه معاف کړے شی نو د هغه نه به حد ساقطیږی۔

| اَلَمۡ تَعۡلَمۡ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ يُعَذِّبُ |
|---|
| آیا نهٔ پوهیږے ته؟ چه یقیناً الله تعالیٰ د هغه دپاره بادشاهی د آسمانونو او زمکے ده عذاب ورکوی |
| مَنۡ يَّشَآءُ وَيَغۡفِرُ لِمَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ﴿۴۰﴾ |
| چا ته چه وغواړی او بخنه کوی چا ته چه وغواړی او الله په هر شی باندے قدرت لرونکے دے۔ |

**تفسیر**: پدے کی بیان د تصرف د الله تعالیٰ دے چه د غلو نه لاسونه ولے پریکولے کیږی؟ نو الله خپل تصرف بیانوی چه هغه دپاره د آسمانونو او د زمکے ملکیت دے نو هغه چه څه فیصله کوی، بعض مجرمانو دپاره یو شان سزا مقرروی او چا له بل شان، په هغے به هیڅ اعتراض نهٔ وی او هغه د اصلاح د عالَم دپاره داسے حدود مقرر کړیدی پدے کی د انسانانو فائده ده چه د هغوی مالونه او نفسونه محفوظ شی۔

او پدے کی اشاره ده چه الله تعالیٰ مطلق بادشاه دے چه د هیچا محبت او یره هغه نشی مجبوره کولے نو د هغه قانون به په هر چا باندے جاری وی۔

**يُعَذِّبُ**: دلته ئے عذاب مخکی راوړو دپاره د یره ولو ځکه چه مخکی د محاربینو، غلاګرو او فساد ګرو ذکر وشو نو د دوی سره د رحم مخکی ذکر کول مناسب نهٔ وو۔

| يٰۤاَيُّهَا الرَّسُوۡلُ لَا يَحۡزُنۡكَ الَّذِيۡنَ يُسَارِعُوۡنَ فِى الۡكُفۡرِ مِنَ |
|---|
| اے رسوله غمجن دے نهٔ کړی تا لره هغه کسان چه جلتی کوی په (کارونو د) کفر کی د |
| الَّذِيۡنَ قَالُوۡۤا اٰمَنَّا بِاَفۡوَاهِهِمۡ وَلَمۡ تُؤۡمِنۡ |
| هغه کسانو نه چه وائی ایمان راوړے مونږه، په خُلو خپلو سره او ایمان نهٔ دے راوړے |

| قُلُوْبُهُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ |
|---|
| زړونو د هغوی او د هغه کسانو نه چه یهودیان دی غوږ ږدی دپاره د دروغو (جوړولو په تاباندے) |
| سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ آخَرِيْنَ لَمْ يَأْتُوْكَ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ مِنْ بَعْدِ مَوَاضِعِهٖ |
| غوږ ږدی دپاره د خلکو نورو چه نۀ دی راغلی تا ته، بدلوی کلمے روستو د ځایونو خپلو نه |
| يَقُوْلُوْنَ إِنْ أُوْتِيْتُمْ هٰذَا فَخُذُوْهُ وَإِنْ لَّمْ تُؤْتَوْهُ |
| وائی دوی که چرته درکړے شی تاسو ته دا (حکم) نو واخلئ دا او که درنکړے شی تاسو ته دا |
| فَاحْذَرُوْا وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ فَلَنْ |
| نو بیچ وساتئ ځان خپل او هغه څوک چه وغواړی الله تعالیٰ ګمراه کول د هغه نو هیچرے |
| تَمْلِكَ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ |
| اختیار نۀ لرے ته د هغه دپاره د الله نه د هیڅ شی، دا هغه کسان دی چه اراده نۀ ده کړے |
| اللّٰهُ أَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ |
| الله تعالیٰ چه پاك کړی زړونه د دوی، د دوی دپاره په دنیا کی شرمندګی ده، |
| وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٤١﴾ |
| او د دوی دپاره په آخرت کی عذاب لوئی دے۔ |

**تفسیر : مضمون : عنوان د آیت :** رسول الله ﷺ ته تسلی ورکول بیا د منافقانو او د یهودیانو لس بد صفات بیانوی دپاره د زجر په حال د دوی، بیا رسول الله ﷺ ته تسلی ولے ورکوی؟ نو وجه دا ده چه رسول الله ﷺ به د الله دین او احکام بیانول نو بعض مجرمانو پکی ورانے کولو او چون وچرا به ئے کوله چه دا صحیح نۀ دی نو داعی ته پدے باندے ډیره پریشانی او تکلیف ملاویږی۔

بیا د (٤٤) آیت نه د درے کتابونو تذکره ده او د هغے تحکیم بیانوی چه فیصلے ورل په خپلو خپلو زمانو کی دے درے کتابونو ته واجب دی، ځکه چه حلالونکے او حرامونکے صرف الله دے او هغه د الله په کتابونو کی ذکر شویدی نو فیصله به هم په هغوی باندے کولے شی۔ نو په دغه درے کتابونو کی د الله عقود بیان شویدی او د هغے پریخودل سبب د

کفر، ظلم او فسق دے، لکه دے یهودیانو ظالمانو پدے کتابونو فیصلے ونکړے۔
بیا په (افحکم الجاهلیة) کی زجر او رټنه ده په لټولو د نورو قوانینو په خلاف د قانون د الله سره۔ چه دا ډیر لوی بیوقوفان دی چه د خالق قانون پریدی او د جاهلیت قانون غوره کوی۔

## مناسبت

۱- مخکی حکم د غلاګرو بیان شو اوس د زنا کارو حکم او په هغوی باندے حد قائمول بیانیږی۔
۲- چونکه څلور ګناهونه افحش الذنوب (ډیر ناکاره) دی غلا، زنا، قتل او شرك او دا په قرآن کریم کی اکثر شریك ذکر کیږی۔ او دلته هم پدے آیتونو کی دغه راجمع شویدی او د هر یو دپاره ئے حدود مقرر کړیدی، د کفارو حد ئے بیان کړو چه اُور ته به داخلیږی، او دلته د زنا متعلق خبره کیږی۔
۳- مخکی د مالونو د لوټ کونکی او غلا کونکی احکام بیان شو اوس د هغه لوټمارانو حال بیانوی چه د الله کتاب لوټ کوی (تحریف کوی)

## شان نزول

ددے د شان نزول په باره کی په زاد المسیر (۲/۲۷۵) کی پنځه واقعات ذکر کړیدی :
ډیره نزدے واقعه چه تفصیل ئے امام مالك په موطأ کی د ابن عمر رضی الله عنهما نه او امام احمدؒ او مسلمؒ وغیرهم د براء بن عازب ﷺ نه روایت کړیدیچه په تورات کی الله تعالیٰ د زنا کارو دپاره د رجم حکم کړے وو لیکن یهودیانو هغه ضائع کړے وو، بیا په یهودیانو کی زناکانے زیاتے شوے په هغوی کی دنیاوی شرفاؤ (عزتمندو) به هم دا کار کولو نو دوی به په هغوی باندے حد د شرم نه نشو قائمولے او په غریبانو به ئے قائمولو، نو یوه ورځ د دوی علماء راجمع شو چه دا زمونږ شرم دے چه په بعضو رجم قائمه وو او په بعضو نهٔ قائمه وو، نو راځئ چه یو بل قانون مقرر کړو چه په ټولو باندے ئے یو شان تطبیق کړو (ځکه چه دوی به دا وئیل چه دا قانون د رجم دے زمانه کی نهٔ چلیږی لکه ډیر کافران دا خبره کوی) نو دوی دا قانون کیخودو چه څوك زنا وکړی نو د هغه مخ به تور ولے شی او په خرهٔ باندے به سورولے شی۔ (او دے ته الله تعالیٰ کفر وئیلے دے پدے وجه چه دوی د الله د قانون په خلاف بل قانون وضع کړو، د ځان نه ئے شارعان جوړ کړل) نو په خیبر کی دوه

کسانو (ښخه او سړي) - چه د دوی په نیز شریفان وو او شادي شده وو- زنا وکړه چه خپل مینځ کې ئې یارانه وه نو دوی د هغوی د عزت د وجه نه هغوی ته رجم نشو ورکولے، نو دوی وویل چه دلته محمد ﷺ راغلے دے هغه ته به دا حادثه د بنو قریظه په واسطه وړاندے کړو (ځکه چه بنو قریظه په مدینه کې وسیدل) که دده په دین کې رجم نۀ وو نو مونږ به دده په قانون باندے عمل وکړو (نو پدے مسئله کې به دده تابع شو، لکه دا د مبتدعینو طریقه ده چه کله راګیر شي نو بیا اهل حدیثو ته رجوع کوی خاصکر د طلاقو په مسئله کې)

او که رجم وو نو ځان به ترے وساتو ځکه چه د رجم قانون خو مونږ سره هم شته، او که الله مونږ نه تپوس وکړو نو مونږ به ورته وایو چه دا (محمد) هم ستا رسول وو، د هغه په قانون مو عمل کړے نو الله تعالیٰ د مخکې نه رسول الله ﷺ ته دا آیتونه نازل کړل او د دوی ددے قبیحے خبرے خبرئے ورکړو او ډیر تفصیلی ردونه ئے پرے وکړل او نبی کریم ﷺ ته ئے اختیار ورکړو چه ستا خوښه ده، فیصله ورله کوے او که نۀ، او دوی ستا فیصله نۀ خوښوی او دا ئے هم بیان کړل چه ما دوی ته کتاب رالیږلے دے دوی په هغے باندے عمل نکوی او د هغے تحکیم ولے نۀ کوی۔

کله چه واقعه رسول الله ﷺ ته وړاندے کړے شوه نو نبی کریم ﷺ د یهودو نه تپوس وکړو چه په تورات کې د زناکارئ سزا څه ده؟ نو دوی وویل چه مونږه ئے په خرۀ سوره وو او مخ ورله توره وو او په کوڅو کې ئے ګرځوو راګرځوو چه شرمنده او خجالته شي۔ او د رجم نه بیخی منکر شو، نبی کریم ﷺ دوی ته په سخته لهجه قسم ورکړو چه ستاسو ډیے قسم وی چه په تورات کې د رجم حکم نشته؟ دوی تولو انکار وکړو چه نشته،

بیا رسول الله ﷺ د تورات راغوښتو حکم وکړو نو هغه راوړے شو دوی په زمکه کې کیخودو نو رسول الله ﷺ خپله تکیه هغے ته واچوله او په هغے باندے ئے کیخودو، بیا د دوی یو مشر (ابن صوریا) د رجم په آیت باندے لاس کیخودو او مخکې روستو عبارت ئے وویلو نو عبد الله بن سلام ؓ ورته وویل : لاس پورته کړه،

[فَإِذَا آيَةُ الرَّجْمِ تَلُوحُ] نو دغه وخت د رجم آیت ښکاره ځلیدو۔نو دوی خړ شو نو ابن صوریا اقرار وکړو چه آؤ د رجم آیت شته۔

بیا ترے رسول الله ﷺ تپوس وکړو چه تاسو د رجم دا حکم ولے پریښے دے؟ نو هغه وویل چه په مونږ کې به په شریفانو او سردارانو باندے رجم نۀ قائمیدو او په غریبانو به

قائمیدو نو د عوامو نه یو تن په دغه جنایت اخته شو نو د هغه خپلوان کلك ودریدل چه که پدے شخص باندے د رجم حکم جاری کیږی نو پکار ده چه د سردارانو په سری باندے هم جاری شی، نو پدے وجه مونږ د رجم حکم د ټولو خلکو دپاره پریخودو او ددے په عوض کی مو دغه مخکنے قانون کیخودو دے دپاره چه په بادشاه او گدا دواړو باندے تطبیق شی۔

نو نبی کریم ﷺ وفرمایل: [فَإِنِّيْ أَحْكُمُ بِمَا فِي التَّوْرَاةِ فَأَمَرَ بِهِمَا فَرُجِمَا]

(ابو داود : ٤٤٥٢)

زۀ به هغه فیصله کوم چه په تورات کی ده نو د دواړو په باره کی ئے د رجم حکم جاری کړو نو دواړه رجم شو۔ په روایت د بخاریؒ وغیره کی راځی عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی : [رَأَيْتُ الرَّجُلَ يَحْنِيْ عَلَى الْمَرْأَةِ يَقِيْهَا الْحِجَارَةَ]

ما دغه سړے ولیدو چه ښځه باندے به راکوږ شو د کاڼو نه ئے ساتله۔ (د یو بل سره ئے ډیره مینه وه)۔ (صحیح البخاری: ٣٦٣٥)۔

يَآ أَيُّهَا الرَّسُوْلُ : الله تعالیٰ د خپل رسول ډیر ادب کوی چه د رسول په صفت ئے یادوی، او پدے صفت ذکر کولو کی فائده دا ده چه هر کله ته رسول ئے او ستا په سر لویه ذمه واری ده نو د کافرانو په خبرو او کارونو مۀ پریشانه کیږه چه کار پریدے۔

يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ : پدے کی نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکړے شویده او هغه ته دا نصیحت شویدے چه کافران که په خپل کفر کی تیزئ سره مخکی روان وی، کوم کار چه د کفر وی بس هغے ته منډه وهی نو ته پرے مۀ خفه کیږه، الله تعالیٰ به تا یواځے نۀ پریدی بلکه هغه به ضرور ستا مدد کوی۔

قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِأَفْوَاهِهِمْ : (بِأَفْوَاهِهِمْ) د قَالُوْا سره متعلق دے، یعنی دوی په خولو باندے د ایمان اقرار کوی او زړونو کی ئے ایمان نشته یعنی منافقان دی۔ نو منافقان هم دغه شان ورانی کوی چه په دین اعتراضونه کوی چه دا کار ولے حرام شو؟ او تا ته ضررونه درکوی۔

مفسرینؒ وائی : هر قول چه خولے ته منسوب شی او زړه ته نۀ نو هغه دروغ وی۔ دا قرآن کریم کی قانون دے۔

وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا : دا په مخکی (مِنَ الَّذِيْنَ) باندے عطف دے یعنی دویم قسم خلك هغه کسان دی چه یهودیان دی۔ نو په (من الذين هادوا) باندے وقف دے۔ او روستو کلام د دواړو ډلو سره لګی۔

سَمّٰعُوْنَ : دا صفتونه په یهودو او دارنګه په منافقانو دواړو کی شته۔ یا دا چه دا د

يهوديانو سره صرف لګي.

سماعون: ١- جاسوسي کوونکي دي. ٢- ډير آوريدونکي او خبره منونکي او قبلونکي دي دروغو لره، دروغو سره ئې ډيره مينه ده په نسبت د رښتياؤ.

لِلۡكَذِبِ: د دروغو نه مراد هغه خبرې دي چه د دوی علماؤ د ځان نه جوړې کړې وې او دوی بې دليله قبلولې او ړوند تقليد ئې ورله کولو.

سَمّٰعُوۡنَ لِقَوۡمٍ اٰخَرِيۡنَ : ١- يعني دوی باندې د خپلو ملیانو خبرې ډير اثر کوی او هغه ډيرې ښې قبلوی او ستا خبره پرې اثر نکوی، دا مرض زمونږ د امت د ډيرو مبتدعينو دې چه وائي که پدې مسئله کې که زما امام فتویٰ ورکوی نو صحيح ده که نهٔ وی، زۀ ئې نهٔ منم اګرکه حقه وی دا بعينه د يهودو صفت دې.

مطلب دا چه د حق پرستو خبره نهٔ آوری او په غوږونو کې ګوتې ورکوی او دا هم وائي چه که د دوی په خبره جنت ته ځو هم ئې نهٔ آورو.

٢- يا دا چه منافقان جاسوسي کوی دپاره د يهودو او د يهودو کشران جاسوسي کوی دپاره مشرانو.

لَمۡ يَاۡتُوۡكَ : ١- يعني دوی لا د خيبر نه ستا خوا ته نهٔ دي راغلي، د مخکې نه الله تعالیٰ دا خبر رسول الله ﷺ ته ورکړو، دې نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ په غيبو نهٔ پوهيدو. او دا اخبار بالغيب ورکول د قرآن کريم معجزه ده.

٢- يا دا جمله صفت د (قوم) دې يعني ددې قوم خبره مني چه هغه ستا خوا ته نهٔ دي راغلي د وجه د تکبر د هغوی نه لکه د خيبر يهوديان شو يعني دوی د خپلو مشرانو خبره آوری.

يُحَرِّفُوۡنَ الۡكَلِمَ : دا د قوم صفت دې ځکه چه تحريف د لوی ملايانو کار وو.

بَعۡدِ مَوَاضِعِهٖ: دلته ئې ورسره (بعد) لفظ زيات کړو وجه دا ده چه دوی تحريف لفظي او معنوی دواړه کړې وو. او ددې سورت آيت (١٣) او د سورة نساء آيت (٤٦) کې بعد لفظ نهٔ وو زيات ځکه چه هلته صرف تحريف معنوی مراد وو. يعني د الله کلمات به ئې د خپلو ځايونو نه بيخي لرې ويستل او انکار به ئې ترې کولو.

يَقُوۡلُوۡنَ : يعني دوی خپلو کشرانو ته وصيت کړې وو چه که تاسو ته دا مُحَرَّف حکم چه مخ تورول او په خرۀ سوره ول دي، درکړې شي نو قبول ئې کړئ.

اِنۡ اُوۡتِيۡتُمۡ هٰذَا : يعني که دا آسان حکم درته ملاؤ شو نو قبول ئې کړئ او که ګران وو مهٔ

ئې قبلوئ، دې تـه تـلـفـيـق وائـي او دا حرامه ده چه مثلًا يو تن په دين کې په آسانـو پسـې گرځي چه په غير د دليل نه کله د يو چا دين باندې عمل کوي او کله د بل چا، او تلفيق دې تـه نـۀ وائـي چـه پـه مـذاهـبـو کې انسان د دليل په بنياد کله په يو عمل کوي او کله په بل، بـلکه دا واجبه ده چه د چا سره دليل وي د هغه خبره به اخستلې شي، نو کله د يو عالِم خبره مـنل او کله د بل د دليل د وجه نه دا صحيح کار او حق پرستي ده او که د خواهش د وجه نه ورپسې روان وي چه دا هم صحيح وائي نو دا د يهودو صفت دې۔

وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ : ١– د فتنې نه مراد گمراه کول دي۔ فتنه په اصل کې د الله نه اوړيدو تـه وئيـلـې شي او د الله نه اوړيدل لوپه گمراهي ده۔ يعني دې خلکو د هدايت استعداد ورك کـړيـدې نـو الله اراده کـړيـده چـه دوي په گمراهئ کې پرېدي او کله چه الله په گمراهئ کې پرېخودل نو بيا څوك دې چه هغوي به ئې هدايت ته راکاږي نو ځکه کې دوي ته سخته يره پرته ده چه تاسو په فتنو کې اخته شوي يئ۔

٢– يا فتنه په معنیٰ د عذاب سره دې لکه ﴿ذُوْقُوْا فِتْنَتَكُمْ﴾ (الذاريات:١٤)۔ يعني چا لره چه الله تعالیٰ د عذاب ورکولو اراده وکړي نو بل هيڅوك نشته چه هغه ته نجات ورکړي۔

اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ : پـه کـومـو خـلـکـو کې چه هميشـه دروغ وئيل او باطل طرفته مائل کيـدل، د اهـل حـقـو پـه خـلاف جاسوسي کول، د باطلو جماعتونو او شريانو خلکو مدد کـول، د هـدايـت پـه خبرو کې تحريف کول او هغه بدلول، د خپل خواهش په خلاف د چا حقه خبره نۀ قبلول دا بد صفتونه چه په کوم قوم کې راشي،

نـو ددې مثـال د داسې مريض دې چه نۀ دوائي استعمالوي او نۀ د مُهلك او مُضر څيزونو نـه پـرهيز کوي، که ډاکټر او طبيب ورله علاج کوي هغه پورې توقې کوي او که هغه ورله نسخـه ورکـړي نـو گـوزار ئې کړي، يا په خپله رايه سره د هغې اجزاء بدل کړي او دا عزم هم وکـړي چـه کـومـه دوائـي کـه زما د خواهش خلاف وي نو هغه به هيڅکله نۀ استعمالوم نـو که په داسې حالت کې طبيب اګرکه پلار وي دا اراده وکړي چه دۀ ته هيڅ نسخه ورنکړي او ددۀ د عـلاج نـه لاس واخـلـي او مـريض په هلاکت کې پريوځي نو گناه او نقصان به د چا وي؟ هـيـڅکله به طبيب ته نسبت نۀ کيږي بلکه دې شخص خپله صحت او تندرستي نۀ ده غوښتې بلکه بيمار به خپله مُلزم وي چه ځان ئې تباه کړو۔

نـو يهود او منافقانو ته الله تعالیٰ د هدايت او کاميابئ ښائسته نسخې ورکړې ليکن دوي هغـه ټولې رد کړې، د پيغمبرانو دشمني ئې وکړه، د هدايت اراده ئې خپله نۀ لرله نو د سزا په

طور الله د دوی د هدایت استعداد ختم کړو او زړونه ئے ورله ګنده پریخودل او دا د الله عدل دے چه دوی سره ئے وکړو۔

| سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ اَكّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ فَاِنْ جَآءُوْكَ |
|---|
| ډیر آوریدونکی دی دروغو لره، ډیر خوړونکی دی حرامو لره نو که راشی دوی تاته |
| فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ اَوْ اَعْرِضْ عَنْهُمْ وَاِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ |
| نو فیصله وکړه په مینځ د دوی کی یا مخ واړه د دوی نه او که مخ واړوے د دوی نه |
| فَلَنْ يَّضُرُّوْكَ شَيْئًا وَاِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ |
| نو هیچرے به ضرر درنهٔ کړی دوی تا ته هیڅ شے او که تهٔ فیصله کوے نو فیصله کوه |
| بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ﴿٤٢﴾ |
| په مینځ د دوی کی په انصاف سره یقیناً الله مینه کوی د انصاف کونکو سره۔ |

**تفسیر**: سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ : دا ئے بیا راوړو د تاکید دپاره۔
اَكّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ : دائے بل بد صفت دے، اکّال ډیر خوړونکی ته وائی۔
علماء لیکی : دروغ ویئل او حرام خوړل انسان پوره فاسدوی، د انسان خوله او خیټه فاسده شی نو انسان پوره خراب شو۔
سحت په اصل کی د یو شی بیخ ویستلو یا هلاکولو ته وائی لکهٔ ﴿فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ﴾ (طه: ٦١) (البحر المحیط ٢٥٨/٤ والبغوی ٥٨/٣) دلته ترے مراد حرام مالونه او خاصکر رشوت مالونه خوړل دی ځکه چه د حرام مال خوړل د برکت بیخ وباسی او د نیکیو توفیق ختموی چه په نتیجه کی حرام خور د معنوی هلاکت سر مخامخ کیږی۔
بیا امام قرطبیؒ د سحت ډیر افراد لیکلی دی چه که یو تن ستا حاجت پوره کړی او په هغے باندے د هغه هدیه قبوله کړے لکه دا خبره د عبد الله بن مسعود ﷺ نه نقل ده (بغویؒ) یا سرے د خپلے مرتبے (زور) په وجه سره د خلکو نه څه اخلی۔
نیشاپوریؒ او صاحب اللبابؒ لیکی : چه سحت هغه حرام ته وائی چه د هغے په اخستلو کی شرم محسوس کیږی لکه رشوت، د زنا مزدوری، د ښاروی د بلاربولو دپاره نر حیوان په کرایه راوستل، د حجام (ښکر) لګونکی کسب، د سپی، د شرابو، د مردارے قیمت او د

کاهن اجرت اخستل، داټول هغه حرام دي چه خلك ئې د شرم د وجه نه په پټه سره اخلي۔ او آلوسيّ ليکلي دا هم ليکلي دي چه سحت هغه مال ته هم وائي چه سړے ئې د دين په وجه سره ګټي يعني د دين د بربادولو دپاره۔ نو يهودو دا ټولے حرامے کولے۔

**فَإِنْ جَآؤُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ** : پدے کې نبي ﷺ ته اختيار ورکوي چه دوی له فيصله کول او نهٔ کول تا ته سپارلے شويدي؟ نو بيا پدے کې د اهل علمو اختلاف دے چه آيا دا اختيار منسوخ شويدے او که اُوس هم باقي دے؟ ځيني مفسرين کرامؒ ليکي چه دا حکم د اختيار په روستو ﴿وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ﴾ سره منسوخ شويدے۔

مګر راجح دا ده چه دا نهٔ دے منسوخ، نو که چرته مونږ مسلمانانو (اسلامي خلافت) ته اهل ذمه راشي نو که د ظلم خبره وه او په يو چا باندے ظلم شوے وو لکه قتل، غصب وغيره نو مسلمانان به د ظلم دفعيه کوي او فيصله به کوي او که عام مسائل وو لکه معاملات، طلاق وغيره نو په هغے کې د حاکم اختيار دے چه فيصله ورله په اسلامي شريعت کوي او که هغوی ته ئې سپاري چه په خپل مينځ کې فيصله وکړئ۔ لکه دا تفصيل ابن عاشورؒ په خپل تفسير (التحرير والتنوير) کې ذکر کړيدے۔

**حکمت**: علامه ابن عاشورؒ ليکي: رسول الله ﷺ ته ئې ولے اختيار ورکړو؟

وجه دا ده چه دلته د دوه سببونو تعارض دے، نو د عدل د قائمولو سبب تقاضا کوي چه د دوی ترمينځ فيصله وکړي او دوی چه د امتحان دپاره دے فيصلے ته راتلل يا د خپل خواهش مطابق حکم ئې لټولو نو دا سبب تقاضا کوي چه د دوی نه اعراض وکړي، دے دپاره چه نبوي حکم استخفاف (سپکاوی) ته وړاندے نشي۔ او د اختيار ابتداء ئې د فيصلے کولو نه وکړه پدے کې اشاره ده چه د دوی ترمينځ فيصله کول اولیٰ او غوره دي پدے وجه رسول الله ﷺ ورله فيصله وکړله۔ (التحرير والتنوير ۱۰۹/۵)

**فَلَنْ يَضُرُّوكَ شَيْئًا** : پدے کې نبي کريم ﷺ مضبوطول دي دے دپاره چه هغه په زړه کې د دوی نه دا خطره محسوس نکړي چه دوی به په مونږ باندے دليل نيسي چه مونږ تاسو ته فيصلے له درغلي وو او تاسو مونږ نه مخ واړولو نو آينده کې به مونږ ستاسو دعوت نهٔ آورو نو الله خپل نبي ته اطمينان ورکړو چه ددے نه څه ضرر او شر نهٔ پيدا کيږي۔

او کيدے شي چه پدے اطمينان ورکولو کې به دے ته اشاره وي چه په هيڅ حال کې د دوی د ايمان طمع مه کوه۔ او دلته د شر او ضرر نه دا مطلب نهٔ دے چه ګنے نبي عليه

السلام د دوی د دشمنۍ او تکلیفونو نه یریدو لکه چه بعض مفسرینو دغه مطلب اخستے دے۔ (التحریر والتنویر)۔

**فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ:** د قسط نه مراد قرآن او سنت دے چه پدے به فیصله کولے شی۔

دا د اسلام انصاف دے چه اګرکه د الله دشمنان دی لیکن الله فرمائی چه د دوی ترمینځ هم د انصاف نه کار واخله، مسلمان به هیڅکله خپل انصاف د چا د دشمنۍ په وجه هم د لاسه نهٔ ورکوی، دا هغه صفت دے چه پدے سره د آسمان او زمکے ټول نظام قائم پاتے کیدے شی۔

| وَكَيْفَ يُحَكِّمُوْنَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرَاةُ |
| --- |
| او څرنګه به فیصله کونکے جوړ کړی دوی تا لره حال دا چه د دوی سره تورات دے، |
| فِيْهَا حُكْمُ اللهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ وَمَا أُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۴۳﴾ |
| په هغے کی حکم د الله تعالیٰ دے بیا اوړی دوی روستو ددے نه او نهٔ دی دا کسان مؤمنان۔ |

**تفسیر:** یعنی د تعجب خبره ده چه تا فیصله کونکے ګرځوی او حال دا چه د دوی سره آسمانی کتاب تورات موجود دے او د هغے په فیصله باندے راضی نهٔ دی، نو په حقیقت کی دوی په هیڅ کتاب باندے ایمان نهٔ لری بلکه د خپلے آسانۍ طلب کولو دپاره دا کار کوی۔

**فِيْهَا حُكْمُ اللهِ:** یعنی په هغے کی د رجم په باره کی حکم موجود دے۔

**ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ :** یعنی دوی اوړی روستو د هغے نه چه دا حکم د رجم موجود دے او دوی په هغے باندے د ایمان دعوه هم کوی۔

**وَمَآ أُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ :** یعنی دوی په خپل کتاب ایمان نهٔ لری نو په تا به څه ایمان ولری؟! مطلب ئے دا دے چه ستا په فیصله راضی نهٔ دی لیکن خپل مقصد راخستی دی۔

قرطبیؒ لیکی چه ددے نه معلومه شوه چه څوك په شرعی حکم باندے راضی نهٔ وی او بل قانون ته خپله فیصله وړی نو هغه کافر دے او دا د یهودو حالت هم وو۔

| إِنَّا أَنْزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيْهَا هُدًى وَّنُوْرٌ يَحْكُمُ بِهَا |
| --- |
| یقیناً مونږ نازل کړے تورات په هغے کی هدایت او رڼا ده، فیصلے کولے په هغے سره |

الَنَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا لِلَّذِيْنَ هَادُوْا وَ

پیغمبرانو هغه کسان چه تابع وو (د الله تعالیٰ) دپاره د هغه کسانو چه یهودیان وو او۔

الرَّبَّانِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ بِمَا اسْتُحْفِظُوْا

(فیصله به کوله) الله والا خلقو او علماؤ په سبب ددے چه طلب د حفاظت شوے وو د هغوی نه

مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ وَكَانُوْا عَلَيْهِ شُهَدَآءَ

د کتاب د الله تعالیٰ او وو دوی په هغے باندے گواهان (یاخبرداران) (دوی ته وئیلے شوی وو چه)

فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيَاتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا وَمَنْ

پس مهٔ یریږئ د خلقو نه او یره وکړئ ځما نه او مهٔ اخلئ په آیتونو ځما بدله لږه او چا

لَّمْ يَحْكُمْ بِمَا اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكَافِرُوْنَ﴿٤٤﴾

چه فیصله ونکړه په هغه کتاب چه نازل کړے دے الله تعالیٰ نو دا کسان هم دوی کافران دی۔

**تفسیر**: اُوس تحکیم الکتب الثلاثة (درے کتابونو باندے فیصله کول) بیانوی، یعنی د الله کتابونه ددے دپاره راغلی وو چه پدے باندے به د خپلے خپلے زمانے والا خلك فیصله کوی۔ تورات والو ته حکم وو چه په خپله زمانه کی به په تورات فیصله کوئ او انجیل والو ته د هغوی په زمانه کی حکم وو چه په انجیل به فیصله کوئ او اُوس قرآن والو ته حکم دے چه په قرآن به فیصله کوئ یعنی د الله کتابونه ددے دپاره راغلی دی چه پدے باندے به بندگان فیصله کوی، دا واقعی خبره ده چه الله زمونږ رب دے، آسمانونه او زمکه د هغه دی او د بندگانو خالق دے نو پکار ده چه قانون هم د هغه وی،

او پدے باندے هیڅ بنده نهٔ راضی کیږی چه ښځه د هغه وی او واك ئے د بل چا وی۔ پدے وجه دغه خلك د الله ډیر لوی دشمنان دی چه د الله په شرع فیصله نکوی۔

نو پدے آیتونو کی توحید الحاکمیة او توحید التشریع او تحکیم الکتُبِ الثلاثة بیانیږی، یهودیانو پدے کی دوه فسادونه کړی وو، یو ئے مسئله د رجم ختمه کړے وه، او بل ئے د قصاص او دیت لکه هغه روستو آیت کی راځی۔

فِيْهَا هُدًى وَّنُوْرٌ : د الله په ټولو کتابونو کی هدایت او نور (رڼا) وی۔ یعنی کوم خلك چه الله ته د رسیدو طلبگاروی نو هغوی لره د شبهات او مشکلاتو د تیاره نه راوباسی او

رنا ورته ورکوی۔
په هدایت سره لاره خودل کیږی او په نور سره په هغه لاره کی ښه او بد معلومیږی۔

د هدایت او د نور فرق

١ - هدی کی د حقے عقیدے او د اعمالو بیان دے او د نور نه مراد په دلیلونو سره د شبهاتو دفع کول دی۔ ٢ - یا د هدی نه مراد احکام او شرائع دی او د نور نه مراد د توحید او صحیح عقیدے بیان دے۔

يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ : دا مضارع ده په معنیٰ د ماضی سره، دا د علمِ بلاغت قانون دے چه کله کله یو تیر شوے کار داسے کنټرل کیږی لکه چه تیر شوے نهٔ وی، نو ددے جملے مطلب دا دے چه ته به وائے چه دا دے اُوس پیغمبران او نور حاکمان د تورات په مقتضیٰ لګیا دی فیصلے کوی۔

النبیون نه مراد موسیٰ عليه السلام او د هغه نه روستو تر عیسیٰ عليه السلام پورے پیغمبران دی۔

الَّذِينَ اَسْلَمُوْا : دا قید ځکه لګوی چه څوک د الله په کتاب فیصلے کوی هغه د الله منقاد او تابعدار بنده دے۔ د اسلام معنیٰ ده تابعداری، او اخلاص۔

او دے نه معلومه شوه چه اسلام د ټولو انبیاؤ علیهم السلام دین وو او یهود او نصاراؤ چه کوم د تفرقے او اختلاف اسباب په دین کی پیدا کړی وو هغه ټول باطل او ښکاره ګمراهی وه۔ (المنار)

لِلَّذِينَ هَادُوْا : یعنی دا فیصلے به ئے د یهودیانو دپاره کولے۔ او دے نه دا معلومه شوه چه تورات په هغه زمانه پورے د یهودیانو دپاره خاص وو او زمونږ د امت دپاره عام نهٔ دے۔ (المنار)

وَالرَّبَّنِيُّوْنَ : احبار او ربانیون دواړه علماء دی لیکن په ربانیون باندے عبادت غالب وی او په احبارو باندے علم۔

استحفاظ څه معنیٰ؟

بِمَا اسْتُحْفِظُوْا : اُسْتُحْفِظُوْا د استحفاظ نه دے او استحفاظ طلب د حفاظت ته وائی اَیْ طُلِبَ مِنْهُمْ حِفْظُ كِتَابِ اللّٰهِ ۔ د دوی نه طلب د حفاظت او ساتنے کړے شوے وو د کتاب د الله تعالیٰ۔ د بنی اسرائیلو نه د دوه خبرو طلب شوے وو، یو دا چه د الله کتاب به د تحریف نه

ساتئ او خپله به پکی تحریف نهٔ کوئ او خلکو ته به ئے بیانوئ،
او بـل دا چـه ددے کتـاب ځـارنـه به کوئ چه نور څوك پکی گوتے ونهٔ وهی او دا ضائع نهٔ شی، او زمونږ د کتاب قرآن حفاظت الله تعالیٰ پخپله ذمه واری اخستے ده ﴿ اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّکْرَ وَاِنَّا لَہٗ لَحٰفِظُوْنَ ﴾ (حجر :۹)۔
نـو د بـنـی اسرائیـلـو ربانیـنو او علماؤ هر چا په خپله خپله زمانه کی سپارلے شوے کار ترسره کړو او ښه په کلکه پرے ودریدل مگر دا کارئے په همیشه توگه ونکړے شو چه د دنیا پرستو د تحریفونو نه ئے بچ وساتی۔
وَکَانُوْا عَلَیْهِ شُهَدَآءَ : یـعـنـی دوی په دے کتاب (تورات) باندے علماء (پو هه، خبردار) وو ځکه چه فیصله په یو کتاب باندے هله کیږی چه بنده په هغے پو هه وی۔
**فائده** : د الله پـه کتـاب (او شـرع) باندے خلك عمل او فیصله ولے نهٔ کوی ؟ نو ددے دوه سببه ښکاره کیږی (۱) یو خَشْیَةُ النَّاس، د خـلـکو نه یره وی، لکه نن صبا اسلامی خلافت او حـدود نشـتـه ځکه چه مسلمانان ملکونه د کافرو نه یره کوی۔ او دویم حُبُّ الدُّنْیَا، د دنیا مـحبت د وجـه نـه، ځـکـه کـه حـدودِ شـرعیـه او اسـلامـی خـلافت راشی نو د ډیرو خلکو خواهشات او دنیا د هغوی په نیز خرابیږی نو ځکه دے ته نهٔ تیاریږی۔
نو ځکه الله بنی اسرائیلو ته وئیلی وو (فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِیْ)
فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ : اَیْ بِاِجْرَاءِ اَحْکَامِ اللّٰهِ۔
یعنی د الله د احکامو په جاری کولو کی به د هیچا نه یره نهٔ کوئ۔
وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰیٰتِیْ ثَمَنًا : یـعنی زما د آیتونو په تحریف کولو او په هغے باندے د عمل نـهٔ کـولو په بدله کی به دنیا نهٔ غوره کوئ۔ لکه دوی به د مالدارو نه رشوتونه اخستـل او د الله په کتاب کی به ئے تحریف کولو۔ دلته تلاوت د آیتونو نهٔ دے مراد۔
نـو الله پـدے آیت کی په یهودو رد کوی چه ستاسو پیغمبرانو او ستاسو احبارو او نیکانو تولو پدے خبره عمل کړے وو او تاسو د خپلو مشرانو لاره پریخوده او حکم بغیر ما انزل الله مو شروع کړو نو ځانونه مو کافران کړل ولے داسے غلطه لاره اختیاروئ۔ او دا کار مو د یرے د خلکو نه وکړو او د دنیا د محبت د وجه نه۔
بیـا دا آیتـونـه د یهودو په باره کی نازل وو لیکن د مفسرینو اجماعی قاعده ده چه اعتبار عموم د الفاظو لره وی نهٔ خاص سبب لره۔
دویم دلیل : د حذیفه بن الیمان ﷛ نه نقل دی :

نِعْمَ الْاِخْوَةُ لَکُمْ بَنُوْ اِسْرَائِیْلَ اَنْ یَّکُوْنَ لَهُمُ الْمُرُّ وَلَکُمُ الْحُلْوُ]

یعنی بنی اسرائیل خو ستاسو دپاره ډیر ښه ورونه دی چه ترخه آیتونه به د هغوی دپاره وی او خواږه بـه ستاسـو دپاره وی!!۔ مطلب دا چه هغوئ چه په کوم شی باندے ګناهګار شوی او کافر شویدی نو هغے باندے به تاسو هم ګناهګاریږئ او کافر کیږئ، داسے نهٔ ده چه هغوی دے په اشتراء بالآیات باندے ګناهګاریږی، او په حکم بغیر ما انزل الله باندے ډے کافر کیږی او تاسو دے نهٔ۔

## مسئله د تحکیم

وَمَنْ لَّمْ یَحْکُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ : حکم بغیر ما انزل الله (یعنی د الله د قانون نه علاوه په بل قانون وضعی باندے فیصله کول) ددے په باره کی یو څو قوانین واوره:

۱– اول دا چه دا کفر دے په اجماع د مسلمانانو باندے، وجه دا ده چه الله ورته کفر وئیلے دے نو که څوك دے ته کفر نهٔ وائی نو د قرآن خلاف راځی۔

پدے آیتونو کی الله تعالیٰ په یهودو باندے رد کوی چه ستاسو نه د تورات د حفاظت وعده اخستے شوے وه مګر تاسو د هغے پابندی ونکړه۔

۲– دویم پدے کی اختلاف دے چه دلته د کفر نه کوم کفر مراد دے آیا کفر دون کفر دے چه دے ته ګناه کبیره وائی او که دا کفر مخرج عن الملة دے۔

اکثر علماء د تفسیر لیکی (لکه ابن جریرؒ، آلوسیؒ، ابن کثیرؒ، ابن القیمؒ وغیره) او ددے زمانے اکثر علماء لکه شیخ البانیؒ وغیره د هغوی رایه داده چه دا کفر حقیقی نهٔ دے بلکه کبیره ګناه ده، بنده پرے د اسلام نه نهٔ وځی او د کفر اطلاق کله په ګناه کبیره کیږی لکه حدیث کی دی (وَقِتَالُهٗ کُفْرٌ) د مسلمان سره قتال کول کفر دے۔ [مَنْ قَالَ لِاَخِیْهِ یَا کَافِرُ فَقَدْ بَاءَ بِهَا اَحَدُهُمَا]

دارنګه چا چه په حالت د حیض کی جماع وکړه نو هغے ته هم کفر وئیل شویدے۔

بیا ددے علماؤ په نیز باندے څه قرینه او دلیل دے چه دوی د کفر نه کبیره ګناه اخلی؟ نو دوی دوه قرینے پیش کوی (۱) یو د عبد الله بن عباسؓ اثر دے چه حاکمؒ په مستدرك کی ذکر کړیدے [اِنَّهٗ لَیْسَ بِالْکُفْرِ الَّذِیْ یَذْهَبُوْنَ اِلَیْهِ اِنَّهٗ لَیْسَ کُفْرًا یُخْرِجُ عَنِ الْمِلَّةِ، کُفْرٌ دُوْنَ کُفْرٍ]

(مستدرك ۳۲۱۹ وصححه ووافقه الذهبی، وابن کثیر ۱۶۳/۶ وابن جریر ۱۰/۳۵۵/۱۲۰۵۳) السلسلة الصحیحة (۲۵۵۲)

دا هغه کفر نهٔ دے چه عام خلك ئې مراد کوی چه د دین نه بنده وباسی بلکه دا کفر دون کفر دے نو ابن عباسؓ یو فقیه صحابی او ترجمان القرآن دے نو د هغه تفسیر لره به اعتبار وی.

دویمه قرینه : حکم بما انزل الله پریخودل معصیت (گناه) ده، او په معصیت سره بنده نهٔ کافر کیږی کله چه په زړه کې د هغے اقرار کوی نو دا عملی کفر دے نهٔ اعتقادی. (الصحیحه)

قول ثانی : دا مسئله پخوا د سلفو په دوړ کې نهٔ وه بلکه دا د تتاریانو نه روستو پیدا شویده ځکه چه هغوی کله راغلل نو یو وضعی قانون ئې جوړ کړو د اَلْيَاسِق په نوم، د دوی نه مخکې به خلکو په قرآن او سنت فیصلے کولے، کله کله به ئې په هغې باندے حکم پریخودو (گناه به ئې کوله) لیکن بل قانون ئې د هغې په خلاف نهٔ وو ایخودے لکه دا خبره روستو راځی. په الیاسق قانون کې د یهودو، د نصاراؤ او د اسلام نه مشترك څه قوانین وو او جنگیزخان د خپلو بچو دپاره لیکلے وو، او دا ئې وئیلی وو چه د چا خوښه وی پدے دے فیصلے کوی او که د چا خوښه وی په اسلام دے ئې کوی، نو د هغه زمانے علماؤ په اجماع سره په دوی باندے د کفر فتویٰ وکړله لکه شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ، ابن قیمؒ، ابن کثیرؒ وغیره لکه حافظ ابن کثیرؒ په روستو (اَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ) آیت لاندے لیکلی دی چه تتاریان مرتد عن الاسلام دی سره ددے نه چه دوی الله، رسول او قیامت منلو، مونځونه ئې هم څه ناڅه درجه کې کول لیکن ددے قانون د کیخودو په وجه کافر شو.

نو پدے زمانه کې هم دا مصیبت راغلو چه مسلمانانو ځان له د لاډمیکالی قانون خوښ کړو نو آیا دوی به په دے کار سره کافر کیږی او که نهٔ ؟ نو اصل خبره دا ده چه دغه مخکنے اختلاف خو د هغه چا په باره کې وو چه هغوی کې ټول اسلام موجود وی، الله او رسول منی، قیامت منی او د اسلام ټول اعمال کوی، شیعه نهٔ وی او په ملك کې به اسلامی قانون موجود وو، لیکن په یوه موقعه کې دغه قانون باندے عمل پریدی، نو هغے ته ئې کفر دون کفر وئیلے دے. او د هغه چا په باره کې اختلاف نهٔ دے پکار چه د هغوی عقیده د علمانیه ؤ، دهریه ؤ ده، اسماعیلی شیعه دے، دغه ئې عقیده ده، او د اسلام قانون ئې یوه تهو کړیٔ نه گوزار کړیدے، او د بل چا قانون ئې د هغې په ځای مقرر کړیدے. نو دا انسان د ډیرے خطرے سره مخامخ دے د دوه وجو نه یو خو دا چه ددهٔ عقیده خرابه شوه او بل دا چه د غیر الله په قانون ئې فیصله وکړله.

بیا قانون وضعی دوه قسمه دے، یو تشریعی دا حرام دے، دویم غیر تشریعی یعنی چه په

هغې سره حلال او حرام نهٔ ورانیږي بلکه امور اداریه وي لکه دفتري کارونه، ټریفک نظام، دا کفر نهٔ دې ځکه چه اسلام ددې ممانعت کوي.

بیا دلته دوه قانونه دي (۱) یو ترك الحکم بما انزل الله. د الله په قانون فیصله نهٔ کول (۲) او بل: وَضْعُ الْقَانُوْنِ الْبَشَرِيِّ مَوْضِعَ الْقَانُوْنِ الشَّرْعِيِّ. د الله د قانون په ځای انساني قانون کیخودل، نو دوارو خبرو کې ډیر فرق دې، اول کفر نهٔ دې چه یو بنده د خواهشاتو د تابعدارئ په وجه د الله تعالیٰ په قانون عمل ونکړي بلکه دا کبیره ګناه ده، او دویم چه د الله د قانون په خلاف بل قانون جوړول او هغې باندې فیصلې کول او هغه د الله د قانون نه بنه ګنړل لکه یهودو چه رجم پریخودو (اګرکه انکار ئې ترې نهٔ وو کړې) لیکن د هغې په ځای ئې جَلَد او تَحْمِیْم (دُرې وهل او مخ تورول) کیخودل او دا ورته بنه ښکاره شو نو الله ورته پدې باندې کافر ووئیل نو اوس راشه که زمونږ په امت کې څوك د الله قانون مني لیکن هغه په تو کرئ کې پېروت وي، او د هغې په ځای بل قانون کیږدي او په هغې باندې همیشه دپاره فیصلې کیږي او هغې ته آئین او نظامِ عدل وائي او د هغې خلاف خلك جرم ګنړي، نو دې باندې بنده کافر کیږي او پدې خبره کې به هیڅ شك شبهه نهٔ وي ځکه چه پدې باندې د ټولو امت مسلمه اتفاق دې چه حرامو ته حلال وئیل کفر دې. (ځکه چه قانون وضعي حرام شې دې او هرکله چه بنده په هغې باندې فیصله جائز او ښه ګنړي نو پدې طریقه به دا کافر ګنړلې کیږي. بل دا چه د الله د قانون په خلاف یو بل قانون جوړول خپله یو لوی نقصان دې ځکه چه قانون تشریعي جوړول صرف د الله د صفاتو نه دي، او د الله صفت بنده ته ورکول شرك دې، نو په قانون وضعي باندې بنده خپله مشرك کیږي اګرکه حلال ئې نهٔ ګنړي. ددې دوارو مثال دا دې چه یو تن به زنا وکړه قاضي له به ګواهان راغلل مګر زناکار به رشوت ورکړو یا به ئې خپلوان وو نو قاضي به غوښتل چه دده نه حکم شرعي واړوي نو ګواهان به ئې راګیر کړل او هغه به ئې په څه طریقه خطا راخطا کړل او د هغوی ګواهي به ئې رد کړه نو په زاني به ئې حد قائم نکړو. نو دلته قانون شته لیکن قاضي به په هغې عمل ونکړو نو پدې باندې کافر نهٔ وو بلکه ګناهګار وو. او پدې زمانه کې دوه کسه زنا وکړي نو جج ته پیش شي هغه ترې تحقیق کوي چه زنا په جبر سره شویده او که په رضا نو که هغوی ووائي چه په رضا شویده او پلار او ورونه ئې څه اعتراض نهٔ لري نو بس دا کار جائز دې نو دلته د الله حرام کړې شوې شې حلال کړې شو نو پدې سره بنده کافر کیږي.

البته که یو قانون تشریعي نهٔ وي (یعني حلال او حرام پرې نهٔ ورانیږي) بلکه قانون

وضعي د امور اداريه په درجه کې وي نو بيا هغه ګناه نهٔ ده،
بيا بعض ملکونو کې د حدود آرډيننس هم تبديل شو، او دا پکې وليکل شو چه که چا د خپلې ښځې سره په جبر جماع وکړه نو مجرم دے، او په زنا کې به پنځه ګواهان ضروري وي نو دے د الله مخے ته نيغ راووتو نو آيا دے به اوس هم کافر نهٔ وي؟!
البته کوم علماء چه دے ته کافر نهٔ وائي نو دا د هغوي تحقيق او اجتهاد دے چه هغوي پکې ماجُور دي اګرکه خطاء دي، او د تکفيريانو خوارجو طريقه دا ده چه هغوي تکفير بالمسلسلات والتوهمات والاحتمالات کوي نو ددے نه به بنده ځان ساتي، دوي ټولو اهل سنتو ته کافر وائي او دا وائي چه دوي په دے کفري نظامونو باندے راضي دي.
نو زمونږ نصيحت دا دے چه د تکفير مسئله ډيره نيغه نيغه کول نهٔ دي پکار ددے نه ډير نقصانات پيدا کيږي، په مسلمانانو کې اختلاف او د علماء هتك او بې عزتي او د الله په دين کې د ځان نه خبرے کول راځي، يو امي سړے به وي د مانځه او د اوداسه د مسائلو نه به خبر نهٔ وي او د کفر تاپې به لګوي دا لوي جرم دے، بلکه د هر چا دپاره اجمالًا دا خبره کافي ده چه هر څوك حکم بغير ما انزل الله کوي دا ګمراه دے، د الله د دين نه اوړيدلے دے او تفصيلاتو لټولو سره ډير نقصانات پيدا کيږي، کله يوه مسئله په علمي انداز کې يو شان وي ليکن د هغے تطبيق ډير ګران وي، د انسان نه خُولے اُوباسي، په هر هر فرد باندے د هغے تطبيق انتهائي مشکل کار دے پدے وجه دغه انسان چه د هغه په باره کې پوره معلومات د کفر نهٔ وي الله ته به ئے سپارے.

| وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ |
|---|
| او فرض کړے وو مونږ په دوي باندے په دے (تورات) کې دا خبره چه بيشکه وژلے به شي نفس |
| بِالنَّفْسِ ۙ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنْفَ بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ |
| په بدله د نفس کې او سترګه په بدله د سترګه کې او پوزه په بدله د پوزه کې او غوږ |
| بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ ۙ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ ۚ فَمَنْ |
| په بدله د غوږ کې او غاښ په بدله د غاښ کې او زخمونه بدلے والا دي، نو چا |
| تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ ۚ وَمَنْ |
| چه معافي وکړه په دے سره (يعنې قصاص) نو دا به کفاره وي (ددهٔ د ګناهونو) او چا چه |

لَّمۡ یَحۡكُمۡ بِمَآ اَنۡزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوۡنَ ﴿٤٥﴾

فیصله ونکړه په هغه حکم چه نازل کړے دے الله تعالیٰ نو دغه کسان دوی ظالمان دی۔

**تفسیر** : دلته الله تعالیٰ د قصاص او ددیت مسئله د تورات نه رانقل کړیده، وجه دا ده چه یهودیانو دا حکمونه هم ضائع کړی وو، نو الله پدے آیتِ کریمه کی یهودیانو ته زورنه ورکړیده ځکه چه په تورات کی دا نص موجود دے چه د نفس په بدله کی به نفس اخستے کیږی، لیکن دوی قصداً ددے مخالفت وکړو او هغه دا چه په مدینه کی بنو نضیر او بنو قریظه وسیدل او بنو نضیر قوی وو، نو کله چه به یو قرظی راولګیدو او یو نضری به ئے مړ کړو نو قصاص به ئے ترے اخستو او که نضری به قرظی قتل کړو نو قصاص به ئے ترے نهٔ اخستو بلکه دیت به ئے ورکولو او دا به ئے ویل چه زمونږ وینے برابرے نهٔ دی، نو دارنګه دیت کی به ئے هم دغسے کول که قُرَظِی به نضری لره قتل کړو نو د دوه کسانو دیت به ئے ترے اخستو او که نضری به قرظی لره قتل کړو نو یو دیت به ئے ورکولو نو هرکله چه رسول الله ﷺ مدینے ته راغلو، بنو قریظه ؤ بنو نضیرو ویل چه اُوسه پورے تاسو په مونږ ظلم کړیدے نو مونږ پدے نهٔ راضی کیږو نو پدے وخت کی ئے رسول الله ﷺ ته فیصله راوړه نو هغه ورله ددے آیت مطابق فیصله وکړه چه په تورات کی داسے حکم دے چه نفس په بدله د نفس کی دے، پدے کی غنی او فقیر، بادشاه او ګدا ټول یو برابر دی او دیت معاف کولے هم شئ۔ نو الله دلته د تورات دغه حکم رانقل کړو او بنو قریظه او بنو نضیرو چه کوم ظلمی قوانین ایخودی وو نو هغه ئے رد کړل۔ نو دوی یو د رجم او بل د قصاص او دیت په باره کی د تورات مخالفت کی واقع شوی وو۔

فقهاء او د اصولو علماؤ ددے آیت نه دلیل نیولو سره وئیلی دی چه د تیر شوی شریعتونو کوم احکام چه په قرآن کی بیان شویدی او دا منسوخ نهٔ وی ګرځولے شوی نو هغه زمونږ دپاره هم واجب العمل دی۔ د اسلام د ټولو علماؤ پدے اتفاق دے۔

اَنَّ النَّفۡسَ بِالنَّفۡسِ :

ټولو ائمه کرامو ددے آیت نه دلیل نیولو سره وئیلی دی چه سړے به د ښځے په بدل کی قتل کیږی۔ او رسول الله ﷺ چه عمرو بن حزمؓ ته کوم خط لیږلے وو په هغے کی هم نبی ﷺ فرمایلی وو چه سړے به د ښځے په بدل کی قتل کیږی۔ (نسائی)۔

اورسول الله ﷺ دا هم وفرمایل : [اَلۡمُسۡلِمُوۡنَ تَتَكَافَؤُ دِمَائُهُمۡ] د ټولو مسلمانانو وینے یو

برابر دي. (باشاه، گدا، مالدار او غریب، ښځه او سړے ټول يو شان قدر والا دي)

امام ابوحنيفه رحمة الله عليه ددے آيت د عموم نه دليل نيولو سره وئيلي دي چه د کافر ذمي په بدل کي به مسلمان او د غلام په بدل کي به آزاد قتل کيږي. ليکن جمهور علماؤ پدے دواړو مسائلو کي د هغوی مخالفت کړيدے، ځکه چه په صحيحينو کي د علي بن ابی طالب ﷺ نه روايت شويدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل :

((مسلمان به د کافر په بدل کي نۀ قتليږي))

دغه شان د سلفو امامانو ډير آثار شته چه د غلام په بدله کي به آزاد نۀ قتليږي.

امام شافعي رحمة الله عليه د اسلام د امامانو نه پدے باره کي اجماع نقل کړيده. (تيسير الرحمن). د امام ابوحنيفةً قول مرجوح دے ځکه چه حديث نۀ دے ور رسيدلے.

**وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ** : دلته مراد داسے زخمونه دي چه د هغے قصاص اخستل ممکن وي لکه ژبه، شونډے، مخ او د جسم د باقي حصے زخم، د کومو زخمونو د قصاص اخستو نه چه د اندام د ضائع کيدو خطره وي يا هغه چه د هغے مقدار ژور والے، پلنوالے او اوږد والے معلوممول ممکن نۀ وي په هغے کي به قصاص نۀ نافذ کيږي. لکه هډوکے ماتول، او د غوښے زخم، نو پدے کي به قصاص نۀ بلکه حُكُوْمَةُ عَدْلٍ وي يعني يو عادل سړے به فيصله وکړي د هغے مطابق به ديت ورکړے شي. (محاسن التاويل) او دا هم هله چه په قصدي توګه وشي او که په خطاء سره وشي نو بيا په زخمونو کي قصاص نشته لکه څنګه چه په قتل خطاء کي قصاص نشته.

**فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهٖ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ** : يعني چا چه په قصاص سره صدقه وکړه او قاتل او جارح (زخمي کونکے) ئے معاف کړو نو دا به دده ګناهونه ورژوي ځکه چه د مال د صدقے نه د نفس او د اندامونو صدقه ډيره لويه ده. ځکه چه د نفس ديت سل اوښان او د يو سترګے ديت پنځوس اوښان دي، داسے شوه لکه چه تا سل يا پنځوس اوښان صدقه کړي وي.

او دا معافي ئے په لفظ د صدقه سره ذکر کړو پدے کي معافي کولو ته ترغيب ورکول مقصود دے.

٢- دويم مطلب دا هم کيدے شي چه که د حق والا معافي اوکړي نو د زياتي کونکي نه قصاص او نور حقوق په دنيا کي ساقطيږي.

**فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ** : **حكمة** : د رجم په باره کي چونکه دوی په تورات کي تحريف اوکړو او د الله قانون ئے بدل کړے وو او د انکار شان صورت ئے اختيار کړے وو نو ځکه ئے

وفرمايل څوك چه دا الله په قانون فيصله ونكړي هغه به كافروي او دلته دوي ته ظالمان وويل شو ځكه چه دوي د مظلوم سره انصاف نهٔ وو كړے او په مظلومانو به ئے ظلم كولو۔

او دا هم معلومه شوه چه چا د قصاص د قانون نه اعراض وكړو يا ئے په هغے كى څه تغيير او تبديلي وكړه لكه د يهوديانو په شان نو دا سبب د ډيرو ظلمونو دے۔

| وَقَفَّيْنَا عَلَى اٰثَارِهِمْ بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا |
|---|
| او راوليږهٔ مونږ روستو د پيغمبرانو پسے عيسىٰ ځوى د مريم تصديق كونكے د هغے |
| بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ وَآتَيْنَاهُ الْإِنْجِيلَ فِيْهِ هُدًى |
| چه مخكى ددهٔ نه دے د تورات نه او وركړے وو مونږ دهٔ ته انجيل په هغے كى هدايت |
| وَّنُوْرٌ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ |
| او رڼا وه او تصديق كونكے د هغه څه چه مخكى د هغه نه وو د تورات نه |
| وَهُدًى وَّمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٦﴾ |
| او هدايت او نصيحت وو دپاره د پرهيزګارانو۔ |

**تفسير** : د تورات سره متعلق حكم بيانولو نه روستو اُوس د انجيل متعلق حكم بيانيږى۔ الله تعالىٰ د موسىٰ عليه السلام نه روستو د بنى اسرائيلو د لارخودنے دپاره ډير انبياء عليهم السلام راوليږل، ددے ټولو نه روستو عيسىٰ عليه السلام راوليږلے شو چه هغه ته الله انجيل وركړو، او چه هغه د تورات تصديق اُوكړو او د هغے بعض احكام ئے په انجيل كى د نازل شوى آيتونو په ذريعه منسوخ اُوګرځول۔

مګر دوى د پيغمبرانو بى احترامى وكړه او د هغوى د وژلو اقدام ئے وكړو، او نهٔ ئے د هغوى دكوم كتاب احترام وساته چه تحريف ئے پكى نهٔ وے كړے حال دا چه د دوى هر پيغمبر د بل پيغمبر او د هغه د كتاب تصديق كولو۔

وَقَفَّيْنَا : په لفظ د (قَفَّيْنَا) كى اشاره ده چه د عيسىٰ عليه السلام دين او د مخكنو انبياؤ دين بيخى يو شان وو۔

عَلَى آثَارِهِمْ : دا ضمير مخكى (النَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ أَسْلَمُوْا) ته راجع دے۔

مُصَدِّقًا : يعنى عيسىٰ عليه السلام د انجيل د نازليدو نه مخكى د تورات تابع وو، د هغے بيان

به ئے کولو او بیا ورته روستو انجیل په خصوصی طور سره ورکړے شو۔
د تورات او د انجیل په احکامو کی ډیر لږ فرق وو لیکن دا فرق منافی نهٔ دے د تصدیق سره۔
او ددے نه معلومه شوه چه په پیغمبرانو کی څه اختلاف نهٔ وو او نهٔ په تورات او انجیل کی د یو بل مخالفت موجود وو چه دا د دوی د انکار او د غصے سبب جوړ شوے وے۔
**وَهُدًى** : دا ئے دوباره ووېلو یا خو تاکید مقصد دے چه د الله په کتاب کی کامل هدایت دے۔ یا دا چه اول هدایت نه مراد د احکامو هدایت دے او دویم هدایت نه مراد دا چه بشارت د محمد ﷺ هم پکی وو چه دا لوی هدایت دے۔ او په اُوسنو انجیلونو کی هم دا بشارات موجود دی، یا دا هدایت د عقیدو دے۔
**وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ** : پدے کی اشاره ده چه په بنی اسرائیلو کی د تقوىٰ استعداد نهٔ وو ورنه دوی بلا هدایته او بی رنړا او بی نصیحته نهٔ وو پریښودل شوی۔
**فائده** : دلته ئے د عیسیٰ علیه السلام سره هم مصدقا ذکر کړو او د تورات سره هم، اگر که تورات دپاره د انجیل تصدیق هو بهو د عیسیٰ علیه السلام تصدیق دے مگر دواړو ځایونو کی ئے جدا جدا ذکر کړو دے دپاره چه د بنی اسرائیلو اعتراض کونکو دپاره د اعتراض هیڅ ځای پاتی نشی۔

| وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنْجِيلِ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فِيهِ ط |
|---|
| او فیصله دِے وکړی انجیل والا په هغه څهٔ چه نازل کړیدی الله تعالیٰ په هغے کی |
| وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿٤٧﴾ |
| او چا چه فیصله ونکړه په هغه حکم چه نازل کړیدے الله نو دا کسان هم دوی نافرمان دی۔ |

**تفسیر** : انجیل والو ته د تورات والو په شان دا حکم د نبی کریم ﷺ د بعثت نه مخکی ورکړے شوے وو چه پدے کتاب به فیصله کوئ، د رسول الله ﷺ د بعثت نه روستو دا حکم منسوخ شو او ټولو انسانانو ته صرف په رسول الله ﷺ باندے د ایمان راوړلو او د قرآن کریم فیصله کونکے گرځولو حکم اُوشو۔
**وَلْيَحْكُمْ** : أَيْ قُلْنَا لَهُمْ فِي زَمَانِهِمْ وَلْيَحْكُمْ۔ یعنی هغوی ته ما په خپله زمانه کی وئیلی وو، لکه دا خبره اجماعی ده۔ ۲- او که دا مراد وانخستے شی او خبره په ظاهر پریښودے شی نو بیا به مطلب داوی چه اُوس انجیل والو ته حکم دے چه په مَا أَنْزَلَ اللهُ یعنی انجیل

به فیصله کوی، او په انجیل فیصله بعینه په قرآن فیصله ده ځکه چه په انجیل کی ئے لیکلی دی چه روستو به یو نبی او یو کتاب راځی په هغې به ایمان لرئ او په هغې به فیصلې کوئ۔

۳- دریم قول دا هم دے چه دا په اعتقادیاتو کی مراد دے، یعنی په انجیل کی صحیح عقیدے ټولے د قرآن مطابق دی، د توحید، رسالت، او د قیامت تذکرے پکی دی۔

هُمُ الْفٰسِقُوْنَ : دلته د الله د حکم مطابق فیصله نهٔ کونکو ته فاسقان وئیلے شویدی یعنی داسے خلق د خپل رب د اطاعت او حق لاره پریخودو سره باطل طرف ته مائله کیدونکی دی۔

**فائده ۱** : دلته درے قسمه فتوے وشوے ځکه چه معصیت درے قسمه دے، اول په طریقه د انکار سره دے نو هغه کفر دے، او دویم په طریقه د اعتداء کولو سره دے د حدِ شرعی نه نو هغه ظلم دے او دریم په طریقه د نقصان کولو سره دے د حد شرعی نه نو هغه فسق دے۔

۲- **فائده** : کفر په یهود او نصاراؤ دواړو کی موجود وو نو اول ئے هغه ذکر کړو بیا په یهودیانو کی ظلم زیات وو تردے چه په مخالف دین والو باندے هر قسم ظلم جائز ګنړی نو پدے وجه ئے د تورات والو سره د ظلم صفت ذکر کړو او په نصاراؤ کی د ظلم د جائز والی عقیده نهٔ وه او د الله په احکامو کی به ئے تفریط کولو نو پدے وجه د دوی سره فاسق لفظ ذکر شو۔ (احسن الکلام)

| |
|---|
| وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ |
| او نازل کړے مونږ تا ته کتاب (قرآن) د حق دپاره تصدیق کونکے دے د هغې چه مخکی ددهٔ نه دی |
| مِنَ الْكِتٰبِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ |
| د کتابونو نه او امانتګر دے په هغې باندے نو فیصله وکړه په مینځ د دوی کی په هغه حکم |
| اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ عَمَّا |
| چه نازل کړیدے الله تعالیٰ او تابعداری مهٔ کوه د خواهشاتو د دوی (چه اوړیدونکے ئے) د هغې نه |
| جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ ؕ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً |
| چه راغلے دے تا ته د حق نه، د هر چا دپاره مقرر کړیدے مونږ ستاسو نه (دا قرآن) شریعت |

| وَّمِنۡهَا جَآءِ ۚ وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمۡ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰـكِنۡ |
|---|
| او لویه لاره، او که اراده شوے وے د الله تعالیٰ نو خامخا گرځولی به ئے وے تاسو ډله یوه لیکن |
| لِّيَبۡلُوَكُمۡ فِىۡ مَاۤ اٰتٰٮكُمۡ |
| (اختیارئے درکړیدے) دے دپاره چه امتحان اُوکړی په تاسو په هغه څه کی چه درکړے ئے دی تاسوته |
| فَاسۡتَبِقُوا الۡخَيۡرٰتِ ؕ اِلَى اللّٰهِ مَرۡجِعُكُمۡ |
| پس مخکی والے کوئ د یو بل نه نیکیو ته خاص الله ته واپس کیدل دی ستاسو |
| جَمِيۡعًا فَيُنَبِّئُكُمۡ بِمَا كُنۡتُمۡ فِيۡهِ تَخۡتَلِفُوۡنَ ﴿۴۸﴾ |
| د ټولو نو خبر به درکړی تاسو ته په هغه څه چه تاسو په هغے کی اختلاف کولو۔ |

**تفسیر** : د تورات او انجیل د فضیلت او اهمیت بیانولو نه روستو اُوس د قرآن کریم عظمت او اهمیت او په مخکنو کتابونو باندے ددهٔ فوقیت بیانیږی۔ قرآن کریم د نورو آسمانی کتابونو تصدیق کونکے، او په هغوی باندے غالب او د هغوی ټولو نګران او نګهبان ګرځولے شویدے۔

ددے مطلب دا دے چه قرآن کریم د تمام آسمانی کتابونو د منزل من الله کیدو تائید کوی (چهٔ دا ټول د الله د طرف نه نازل شوی وو) او د هغوی د اخباراتو تصدیق کوی او د هغوی د غیر منسوخ احکامو توثیق کوی، او د منسوخ احکامو وضاحت کوی، په هغے کی د موجود اصولو او مبادیو حفاظت کوی، او په هغه ټولو کتابونو باندے غالب دے، ځکه چه د محکم او منسوخ احکامو مرجع اُوس صرف قرآن دے۔ او د هغه ټولو امین او نګران دے، ځکه چه اُوس صرف قرآن ښائی چه د هغه مخکنو آسمانی کتابونو کوم احکام قابل د عمل دی او کوم پریخودلے شویدی؟۔

پدے وجه (اے زما رسوله !) ته د دوی ترمینځ صرف په قرآن سره فیصله کوه، او د حق نه اوړیدو سره د تیر شوی دینونو والو د خواهشاتو تابعداری مهٔ کوه۔

مِنَ الۡكِتٰبِ : کتاب دلته جنس دے ټولو کتابونو ته شاملیږی۔

وَمُهَيۡمِنًا عَلَيۡهِ : اَىۡ حَافِظًا عَلَيۡهِ ۔ د هغے حفاظت کونکے دے۔ امام بخاریؒ معنیٰ کوی: اَمِيۡنًا عَلَيۡهِ ۔ یعنی امانتګر او نګهبان دے په هغوی باندے، او حاکم او شاهد او عالی دے

(قاسمیؒ، زاد المسیر) یعنی په هغوی کې چه چا زیادت او کمے کړیدے نو قرآن د هغے نشاندهی کوی او د هغے تردید کوی لکه د رجم، او قصاص او دیت او قتل او د اشتراء بالآیات مسئلے شوے۔ او کومه چه صحیح خبره ده هغه ئے ورله برقرار پریخوستے ده۔

علماء فرمائی: هرکله چه قرآن کریم په ټولو آسمانی کتابونو مهیمن دے نو دا به په ټول تصنیف شده کتابونو مهیمن وی نو په هر کتاب کې چه د قرآن موافق خبره وه هغه به صحیح وی او که د قرآن خلاف وه نو هغه به غلطه وی۔

او په مُهَيۡمِنًا کې یهودو او نصاراو ته دعوت ورکولو ته اشاره ده چه دے کتاب باندے ضرور ایمان راوړئ ځکه چه انکار د مُصدِق مستلزم وی انکار د مُصدَّق لره۔

علامه محمد رشید رضاؒ وائی:

[وَالظَّاهِرُ مِنْ مَجْمُوعِ الْأَقْوَالِ أَنَّ الْمُهَيْمِنَ عَلَى الشَّيْءِ هُوَ مَنْ يَقُوْمُ بِشُئُوْنِهٖ وَيَكُوْنُ لَهٗ حَقُّ مُرَاقَبَتِهٖ وَالْحُكْمُ فِيْ أَمْرِهٖ بِحَقٍّ وَالْقِيَامُ بِالْأَمْرِ يَسْتَلْزِمُ الْمُرَاقَبَةَ وَالشَّهَادَةَ عَلَيْهِ]۔

د ټولو اقوالو نه دا خبره ښکاره کیږی چه په یو شی باندے مهیمن هغه چا ته وائی چه د هغے د کارونو پروګرام کوی او هغه دپاره د مراقبے (لحاظ ساتنے) حق وی او د هغے په کارونو کې په حق سره فیصله کوی او د هغے ګواهی کوی، او دلته چه کومو مفسرینو د مهیمن نه دا معنیٰ اخستے ده چه قرآن د مخکنو کتابونو دپاره ګواهی کوی چه هغه د تحریف او تبدیل نه محفوظ دی نو دا ډیره غریبه او د لفظ نه جدا خبره ده۔ (المنار٦/٣٤٠)

بَيۡنَهُمۡ : کې اشاره ده یهود او نصاریٰ او دے امت ته۔

اَهۡوَآءَهُمۡ : په اهواء کې هغه مسائل او احکام داخل دی چه اهل کتابو د ځان نه جوړ کړیدی او په تورات او انجیل کې ئے داخل کړیدی۔

عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الۡحَقِّ : دا متضمن دے اعراض لره أَيْ مُعْرِضًا عَمَّا جَاءَكَ چه ته اعراض وکړے د حق نه ځکه چه د خواهشاتو تابعداریٔ سره د حق نه اعراض خامخا راځی۔

لِكُلٍّ جَعَلۡنَا مِنكُمۡ شِرۡعَةً وَّمِنۡهَاجًا : ١- دے کې د مجاهدؒ تفسیر دا دے چه د جَعَلۡنَا دپاره مفعول (القرآن) پټ دے۔ أَيْ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمُ الْقُرْآنَ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا۔

یعنی په تاسو کې د هر چا دپاره (یهود او نصاریٰ او مسلمانانو دپاره) مونږ قرآن کریم شرعة او منهاج ګرځولے دے۔ اوس به ټول فیصلے صرف په قرآن کوئ۔

دا تفسیر د شریعت د اصولو مطابق دے او دلته مراد دے لیکن

٢- ډیر ظاهر تفسیر دا دے چه په هره زمانه کې الله تعالیٰ د هر قوم دپاره شریعت او دین

مقرر کړې وو نو تاسو له الله تعالیٰ اسلام در کړیدے نو ددے تابعداری په تاسو لازمه ده۔ او دا تفسیر د علی بن ابی طالب ﷺ او د قتادة نه نقل دے۔ (المحرر الوجیز ۲/ ۳۰۰)

وَلَوْشَآءَ اللّٰهُ : یعنی که الله غوختلے نو ټولو انسانانو دپاره به ئے یو دین او یو کتاب او یو رسول رالیږلے وے، حلال او حرام، عقائد او نظریات به د ټولو دپاره یو شان وے لیکن پدے کی د الله تعالیٰ مقصد په هغوی باندے امتحان کول وو چه څوك تعصب کوی او څوك نهٔ، پدے وجه په مختلفو زمانو کی مختلف انبیاء او رسولان او کتب دینونه ئے نازل کړل دے دپاره چه الله اُوګوری چه څوك د هغه د مشیت مطابق د خپلے زمانے په شریعت باندے عمل کوی او څوك د خپلو خواهشاتو تابعداری کوی۔ او آیا یهود د نصاراؤ د دین پسے ورځی او که نهٔ ؟ او بیا دواړه (یهود او نصاریٰ) د اسلام پسے ورځی او که نهٔ؟

او که د ټولو خلکو یو دین وے او مثلاً تورات کتاب وے نو بیا به ئے اختلاف نهٔ راتلے نو امتحان به نهٔ وو۔

## د شرعة او منهاج فرقونه

شرعة او شریعة په اصل کی ګودر ته ورغلے لارے ته وائی، او دا د شروع نه اخستے شویدے په یو کار شروع کیدو ته وائی نو ددے وجه نه شریعت د لارے ابتداء ته وائی چه خلك د هغے نه شروع کوی پدے وجه شرائع الاسلام ته شرائع ځکه وائی چه پدے کی مسلمانان شروع کوی او منهاج په اصل کی (اَلطَّرِيْقُ الْبَيِّنُ الْوَاضِحُ) ښکاره لارے ته وائی۔ (المنار)

۱- شرعة وړه لاره چه فروعی احکامو یعنی احکام عملیه ؤ ته اشاره ده، او منهاج لویه لاره چه اصولو او معتقداتو ته اشاره ده۔ (المحرر الوجیز ۲/ ۳۰۰)

بیا په ټولو دینونو کی اصول تقریباً یو شان دی او احکام عملیه ؤ کی فرق دے۔

۲- ابن عباسؓ او مجاهدؒ او ابو عبیدةؓ وائی چه اَیْ سَبِيْلًا وَسُنَّةً شرعة سنت ته وائی او منهاج ښکاره لارے ته وائی دا تفسیر په طریقه د لف نشر غیر مرتب سره دے۔ (بخاریؒ)

۳- شرعة ابتداء د لارے ته وائی او منهاج مستمرے (همیشه تللو والا) لارے ته وائی۔

٤- اَیْ شَرِيْعَةً مُوْصِلَةً اِلَى اللّٰهِ۔ وَمِنْهَاجًا : اَیْ طَرِيْقًا وَاضِحًا فِی الدِّيْنِ تَجْرُوْنَ عَلَيْهِ۔

یعنی شرعة داسے لاره ده چه الله ته رسونکے ده، او منهاج یعنی په دین کی ښکاره لاره چه تاسو په هغے باندے روانیږئ۔ (محاسن التاویل للقاسمی)۔

**فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ** : يعنى هر كله چه په تاسو امتحان دے نو تاسو ټول نيكيو ته مخكى والے وكړئ. خيرات هر عمل صالح ته وائى چه د رسول الله ﷺ په تابعدارئ سره وى، او په شريعت كى ثابت وى. او دلته ابن كثيرؒ ليكلى دى چه مراد ددے نه د الله طاعت او د رسول الله ﷺ اتباع او د قرآن كريم تصديق دے. او مطلب دا دے چه په وخت د اختلاف د خلكو كى په قرآن او سنت پسے روان شئ.

**مَرْجِعُكُمْ** : دا يا مصدر دے په معنىٰ د رجوع سره يعنى واپس كيدل. يا ظرف دے يعنى ځاى د واپسئ.

**فَيُنَبِّئُكُمْ** : يعنى هلته به حق او باطل جدا جدا معلوم شى، او دارنګه جزاء او سزا به دركړى.

| |
|---|
| وَاَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ |
| او دا (حكم دے تا ته) چه فيصله كوه په مينځ د دوى كى په هغه كتاب چه نازل كړيدے |
| وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ |
| الله تعالىٰ او تابعدارى مۀ كوه د خواهشاتو د دوى او ځان ساته د دوى نه |
| اَنْ يَّفْتِنُوْكَ عَنْ بَعْضِ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكَ ؕ فَاِنْ |
| (هسے نۀ) چه واړى تا لره د بعض هغه نه چه نازل كړيدے الله تعالىٰ تا ته نو كه |
| تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ اَنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّصِيْبَهُمْ |
| واوړيدل دوى نو پوهه شه چه بيشكه اراده لرى الله تعالىٰ چه عذاب ورسوى دوى ته |
| بِبَعْضِ ذُنُوْبِهِمْ ؕ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ لَفٰسِقُوْنَ ﴿٤٩﴾ |
| په سبب د بعض ګناهونو د دوى، او يقيناً ډير د خلقو نه خامخا نافرمان دى. |

**تفسير** : دا د مخكنى رجم متعلق تپوس سره تعلق لرى اَىْ وَاَمَرَكَ اَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ. يعنى زۀ تا ته دا حكم كوم چه د دوى ترمينځ په ما انزل الله فيصله وكړه.

ددے آيت په باره كى ځينى مفسرينو لكه ابن عباسؓ، مجاهدؒ، عكرمهؒ، سدىؒ، عطاء الخراسانىؒ ويلى دى چه دا ناسخ دے د مخكنى اختيار د فيصلے د اهل كتابو ترمينځ (فاحكم بينهم او اعرض) نو بس اوس د اهل كتابو ترمينځ په قرآن باندے فيصله واجب

ده، (ابن كثيرؒ) او ائمه ثلاثه (مالكؒ، شافعيؒ، احمدؒ) او نخعيؒ او شعبيؒ وائي چه دا حكم ناسخ نۀ دے د مخكني حكم بلكه اختيار اوس هم باقي دے. او دلته (ان احكم) د مقدمے په طور ونيل شويدے د روستو (وَلَا تَتَّبِعْ او وَاحْذَرْهُمْ) دپاره، يعني د الله په قانون ورله فيصله كوه او په خواهش سره ئے ورله مۀ كوه، او دا خبره ورسره ملګرے ده چه كه ستا خوښه وه فيصله ورله وكړه يا نۀ خو كه فيصله كوے نو بيا به د خواهش په وجه نۀ وي. نو د دواړو خبرو منافات نشته. او همدا قول راجح دے. (قرطبيؒ، محاسن التاويل)

ځينو علماؤ ونيلي دي چه مخكي (فاحكم بينهم بما انزل الله) والا حكم د هغه اهل كتابو په باره كي رسول الله ﷺ ته شوے وو چه هغوي په حقيقت كي د فيصلے اخستو دپاره نۀ وو ورغلي بلكه ددے دپاره ورغلي وو چه په خپل تحريفي حكم باندے د رسول الله ﷺ ژبه واړوي او بهانه جوړه كړي چه مونږ د يو نبي په خبره عمل كړے وو، او دلته هغه اهل كتاب (كافران) مراد دي چه نبي كريم ﷺ ته د فيصلے دپاره ورغلي وو ليكن هغوي غوښتل چه فيصله د هغوي د خواهش او غرض مطابق وكړے شي لكه ددے په باره كي مفسرينو د ابن عباس رضي الله عنهما نه يو شان نزول نقل كړيدے :

يوه ورځ د اهل كتابو يوه ډله نبي كريم ﷺ ته ورغله چه په هغوي كي (كعب بن اسد، عبد الله بن صوريا، شاس بن قيس) وو، ورته ئے ووئيل : اے محمده (ﷺ)! ته پوهيږے چه مونږ په يهودو كي اشراف او احبار (علماء) يو، كه مونږ ستا اطاعت وكړو نو ټول يهوديان به ستا اطاعت وكړي، او زمونږ او د يو بل قوم ترمينځ څه لانجه ده او مونږ دواړه جانبين غواړو چه ته راته لانجه حل كړے، نو كه ته زمونږ د غرض مطابق فيصله وكړے نو مونږ دربانديے ايمان راوړو، او په نتيجه كي به ټول يهوديان ايمان راوړي نو الله تعالیٰ ذكر شوے ايت نازل كړو او رسول الله ﷺ ته ئے وفرمايل چه ته په هغه شي فيصله كوه چه الله نازل كړيدے او ښه متوجه شه چه هسے نه چه اهل كتاب تا د حق نه واړوي.

(رواه ابن جرير وابن ابي حاتم – القرطبي، واسباب النزول للواحدي وابن كثير ۳/۱۳۱)

وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ : دا رسول الله ﷺ ته امر دے په هغه خاص مسئله كي بيا ټولو حاكمانو او قاضيانو ته خطاب دے چه تاسو ته هر څوك راشي نو د هغوي خواهش ته به نۀ ګورئ. يو سړے ووائي چه زۀ ډير مجبوره يم او زما دپاره فيصله وكړه، دارنګه عالم له يو مستفتي راشي نو د هغه خواهش ته به نۀ ګوري بلكه د الله حكم ته به ګوري، ډير خلك د مجرم ملګرتيا وكړي او د الله د حكم لحاظ ونۀ ساتي، په مجرم باندے آساني راولي كومه

چه الله نهٔ وی ورکړی، او الله یو شے نهٔ وی جائز کړے او دے ئے ورله جائز کوی. لکه د حلالے نکاح شریعت حرامه کړیده او دے ته ئے زنا وئیلے ده او ډیر ملیان د طلاقیانو دپاره حلالے کوی، او ښځے ورله بیرته راواپس کوی د هغه د خواهش پوره کولو دپاره، دا سراسر ظلم دے، یو تن به تا ته ووائی چه ما له د خپل مذهب مطابق فتویٰ راکړه نو تهٔ به د شریعت مطابق جواب ورکوے، نهٔ د مذهب مطابق، کله چه د مذهب خبره د قرآن او حدیث مخالفه ښکاره شی.

وَاحْذَرْهُمْ اَنْ يَّفْتِنُوْكَ عَنْۢ بَعْضِ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكَ : یعنی ځان بچ کړه ددے خبرے نه چه چرته تا واړوی د بعضو خبرو د ما انزل الله نه. پدے کی اشاره ده چه د ټولو خبرو نه خو دے نشی اړولے لیکن په بعض مسئلو کی به وسوسے دراچوی چه که تا زمونږ د مزاج مطابق فیصله وکړه نو الله به اجر درکړی او کله به پکی تا ته مصلحت هم ښکاره کیږی لکه د هغوی د زړونو تالیف (راماٸله کول) او هغوی اسلام طرفته راجذب کول وی مګر حق داسے شے دے چه دے ته به باطل نشی وسیله کولے. (تفسیر المنار ۳۴۸/۶).

یفتنوك : د فتنے نه دے په معنیٰ د اړولو سره.

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ اَنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّصِيْبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوْبِهِمْ :

پدے کی تصریح ده چه د ما انزل الله د حکم نه مخ اړول په دنیا کی د عذاب سبب دے.

سوال

دلته ئے وویل چه دوی ته په بعض ګناهونو سزا ورکوی نو آیا په ټولو ګناهونو سزا نهٔ ورکوی؟ جواب دا دے چه په دنیا کی مصیبت صرف په بعض ګناهونو راځی ځکه که په ټولو ګناهونو راشی نو بیا بنده هلاکیږی. ﴿ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوْا مَا تَرَكَ عَلٰى ظَهْرِهَا مِنْ دَآبَّةٍ ﴾ (فاطر: ۴۵) . نو په ډیرو ګناهونو د بندګانو باندے الله صبر کوی، عذاب پرے نهٔ ورکوی او په آخرت کی په ټولو ګناهونو سزا ده ځکه چه هغه د حساب ورځ ده.

نو دے ته ضرورت پاتے نشو چه دلته مونږ (بعض) په معنیٰ د (کُلُّ) سره واخلو، ځکه چه دا آیت د دغه مخکنی آیت مطابق شو.

يُصِيْبَهُمُ اللّٰهُ : ددے مصیبت نه مراد بدنی تکالیف، اقتصادی او مالی بحرانونه، قتل وقتال، اختلافات، د دشمن غلبه وغیره دی.

او حافظ ابن کثیرؒ وئیلی دی چه ددے معنیٰ دا ده چه هر کله دوی د خپل حق او د الله د

شریعت نه مخالفت وکړو نو د الله د حکمت تقاضا دا شوه چه دوی ئې د هدایت نه په سبب د مخکنو ګناهونو سره واړول۔ (ابن کثیر ۳/۱۳۰)

وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ لَفٰسِقُوْنَ : پدې کې الله د انسانانو عیب او زجر بیانوی چه دوی اکثر نافرمان دي۔

| اَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ ۭ وَمَنْ اَحْسَنُ |
| --- |
| آیا پس فیصلې د جاهلیت (ناپوهۍ) لټوی دوی او څوك دے ډیر ښائسته |
| مِنَ اللّٰهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿٥٠﴾ |
| د الله نه په فیصله کې دپاره د هغه قوم چه یقین لري۔ |

**تفسیر** : پدې کې د هغه خلقو رد دے چه د الله شریعت پریدې کوم کې چه هر خیر دے او د انسانانو وضع کړے شوی افکارو، نظریاتو، او قوانینو او احکامو تابعداری کوی، د انسان قانون خو د هغه د جهل او د خواهش نه مرکب دے، ځکه چه انسان ظالم او جاهل دے نو دده په قانون کې به هم ظلم او جهل وی لکه اوسنو قوانینو کې فکر وکړه چه د جګړه مارو جګړے پرے نۀ خلاصیږي، تاریخونه به وی، دیوانی فیصلے وی، په کلونو کلونو فیصله نۀ کیږي، بنده په تاریخونو ته حاضریدو باندے سترے ستو مانه شي او نا امیدۍ ته ورسیږي۔

اَفَحُكْمَ : فاء د عطف دپاره ده نو دا په پټه مخکنۍ جمله باندے عطف دے [اَیَتَوَلَّوْنَ عَنْ حُكْمِ اللّٰهِ وَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ] آیا دوی د الله د حکم نه اوړی او د جاهلیت والو فیصله لټوی؟ چه هغوی به د شریف او مالدار حکم د غریب نه جدا کړے وو۔

لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ : یعنی څوك چه په الله یقین لري نو هغه ته به د الله په فیصله کې ضرور حُسن او ښائست او کمال ښکاره کیږي او څوك چه بې یقینه وی نو د الله فیصلے او د هغه قانون ورته د ظلم ښکاری، نو دا خبرے د ایمان او یقین سره تعلق لري۔

## جاهلیة چا ته وائی؟

اَلْجَاهِلِيَّةِ : دا لفظ په قرآن کریم کې اته کرته ذکر دے، ددے دوه معانی وی :

(۱) اَلزَّمَانُ الَّذِیْ کَانَ قَبْلَ زَمَانِ النَّبِیِّ ﷺ ۔ هغه زمانه چه د رسول الله ﷺ د زمانے نه

مخکی وه. لکه امام بخاریؒ باب قائموی: بَابُ مَا كَانَ فِي زَمَانِ الْجَاهِلِيَّةِ. (جاهلیت زمانه کی کوم کارونه وو) هغه دور ته ځکه جاهلیت وائی چه په هغه دور کی به شرك، کفر او بد اخلاق موجود وو.

(۲) كُلُّ مَا خَالَفَ الْإِسْلَامَ. هر هغه شے او قانون او طریقه چه د اسلام خلاف وی لکه دا شیخ الاسلام ابن تیمیهٔ په اقتضاء الصراط المستقیم کی لیکلی دی او د سورة الجاثیه په (۱۸) آیت ﴿عَلَى شَرِيعَةٍ مِنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾ کی به هم راشی. او دے ته جاهلیت ځکه وائی چه د جاهل شخص په ذهن باندے جوړ شوے کار دے نو په هغے کی به ظلم او زیاتے وی.

او مفسرین لیکی چه پدے کی ټول بشری وضعی قوانین داخلیږی، لکه حافظ ابن کثیرؒ پدے مقام کی لیکلی دی چه پدے کی "الیاسق" یا (الیَساق) قانون هم داخل دے او دا قانون د کفر دے. او هغه دا هم وئیلی دی:

چه کوم خلق د دستور او قانون یو کتاب د خپل طرف نه وضع کړی او په هغے عمل کوی او د الله کتاب او د رسول الله ﷺ سنت شا ته گوزار کړی هغه کافر دی.

امام بخاری رحمة الله علیه د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ((درے قسمه خلق د الله په نیز ډیر مبغوض دی: د حرم په حدودو کی الحاد کونکے، د اسلام نه روستو د جاهلیت د دور طریقے خپلونکے، او هغه انسان چه په ناحقه سره د بل چا د وینے تویه کول غواړی)).

او قرطبیؒ د طاووسؒ نه نقل کړیدی چه دا هم د جاهلیت فیصله ده چه یو تن په اولاد کی فرق کوی بعضو ته څه مال وغیره ورکوی او بعضی محرومول لکه دے ته په حدیث د نسائی کی ظلم وئیل شویدے. (تفسیر القرطبی۲۱٤/٦)

زمونږ په زمانه کی ددے آیت لاندے بشری قوانین، نرخی او قومی فیصلے چه د شریعت مطهره خلاف وی هغه داخل دی. دارنگه پدے کی (۱) زنانو ته میراث نهٔ ورکول. (۲) د بدل نکاحونه کول. (۳) مهرونه نهٔ ادا کول. (٤) سوره ورکول. (۵) کوشنده ورکول. (٦) د مړی پسے د اولے ورځے خیراتونه کول. (۷) محمد بن عبد الوهاب په کتاب مسائل الجاهلیة کی سلو (۱۰۰) پورے جمع کړیدی هغه ټولے پدے آیت کی داخلیږی نو دا ډیر جامع آیت دے. فتدبر.

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَـٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن

اے ایمان والو! مۀ نیسئ یهودیان او نصاریٰ دوستان بعض د دوی دوستان د بعضو دی او څوك

يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿٥١﴾

چه واوړیدو هغوی ته ستاسو نه نو یقیناً دا د هغوی نه دے یقیناً الله هدایت نۀ کوی قوم ظالمانو ته.

**تفسیر** : اُوس پدے رکوع کی د دوستئ او دشمنئ بیان دے او په دویمه رکوع کی د اهل کتابو (او ضمناً د منافقانو) قبائح او د ترك د موالات دپاره علتونه بیانوی تر اومے سیپارے پورے۔ بیا ئے په آخر کی د نیکانو اهل کتابو تذکره کړیده لکه دا د قرآن کریم د عدل طریقه ده چه په مجرم رد وکړی نو بیا په هغوی کی چه کوم نیکان وی د هغوی صفت کوی او پدے کی دعوت دے نورو اهل کتابو ته۔ دا اجمالی خلاصه شوه۔

مناسبت

۱-دا د (أَنْ يَّفْتِنُوْكَ) سره متعلق دے۔ یعنی اے مؤمنانو! د یهودو او نصاراؤ سره دوستی مۀ کوئ ځکه چه دوی غواړی چه رسول الله ﷺ په فتنه کی واچوی نو پاتے لا تاسو، نو ستاسو ذاتی دشمنان دی، لهذا دشمنی ورسره وکړئ نو پدے کی الله مونږ ته غیرت راکوی چه دوی دشمنان وګنړئ۔

۲- دارنګه دا د (أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ) سره متعلق دے یعنی يَبْغُوْنَ قَوَانِيْنَ الْجَاهِلِيَّةِ] دوی د جاهلیت قوانین طلب کوی نو تاسو لره د جاهلیت والو سره دوستی نۀ ده جائز۔ او دلته به په منافقانو رد راځی چه دوی د اسلامی تازه خلافت جوړیدو د ورانولو دپاره ډیر کوشش کولو او د یهودیانو سره به ئے پټے رابطے ساتلے د مسلمانانو د کمزوری کولو او د یهودیانو د مضبوطولو دپاره نو ځکه دلته ورته الله تعالیٰ مرتد وئیلی دی۔ او بیا الله روستو آیتونو کی د ارتداد نه د بچاؤ طریقه خودلے ده۔

لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَـٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ : د ولایت درے صورتونه دی :

(۱) د هغوی سره په عقیده کی یا په کارونو د کفر او شرك کی موافقت وکړی او د هغوی دین ښه وګنړی، نو دا عین کفر دے۔

(۲) د هغوی سره د مسلمان په خلاف مالی یا جانی تعاون وکړی نو دا هم په اجماع د

مسلمانانو سره کفر کې داخليږي. لکه فتاوى الدين الخالص (۹) جلد تفصيلاً وګوره.
(۳) د هغوی اکرام او اعزاز وکړي، او د عزت يوه عهده ورته وسپاري لکه ابو موسیٰ اشعري ﷺ يو نصراني کاتب نيولے وو نو سيدنا عمر فاروق ﷺ منع کړو او دا ئے ورته وويل: چه دا خو اکرام دے، ددۀ په ځای يو بل مسلمان ځان له کاتب ونيسه. (سمعانیؒ وابن کثيرؒ) لکه ددے تفصيل د سورة آل عمران (۲۸) آيت لاندے ذکر شويدے.
او د غير مسلمو سره دنياوي معاملات جائز دي.
**بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٍ** : دا علت دے دپاره د نۀ موالات د هغوی سره . يعني يهود او نصاریٰ خپل مينځ کې دوستان دي، په يو باطل دين راجمع دي، نو تاسو له د هغوی سره موالات جائز نۀ دي. سوال دا دے چه مخکې تير شو چه دوی د يو بل دشمنان دي، او دلته وائي چه بعض د بعضو دوستان دي؟ ۱- جواب دا دے چه د مؤمنانو په مقابله کې د يو بل دوستان دي او نور ئے خپل مينځ کې اختلافات دي.
۲- يا دا چه دلته د ولايت نه مراد په باطله عقيده کې دوستي ده. يعني د رسول الله ﷺ په دشمنئ کې دواړه دوستان دي، يعني يهود د نصاراؤ خلاف دي ليکن کله چه نصاراؤ د رسول الله ﷺ سره دشمني وکړه نو يهودو ښه وګڼړل چه دا ښه کار کوی لکه اُوس هم اسرائيل د امريکې په لاس کې دی حال دا چه خپل مينځ کې د يو بل مخالف دي. او ددے آيت نه دا خبره اخستے شويده: [اَلۡكُفۡرُ مِلَّةٌ وَاحِدَةٌ] کفر يو دين دے ځکه چه ټول د اسلام خلاف دي. او دا طريقه د اهل بدعت ده چه د حق پرستو په مقابل کې د روافضو کفارو سره ملګري وي.
**وَمَنۡ يَتَوَلَّهُمۡ مِّنۡكُمۡ** : د تولي او موالات ترمينځ فرق دا دے چه موالات (دوستي ساتل) ګناه کبيره ده او کله به کفر وي او تولي عين کفر دے.
دلته د تولي نه مراد اِخۡتِيَارُ دِيۡنِهِمۡ وَنُصۡرَتُهُمۡ عَلَى الۡمُسۡلِمِيۡنَ يعني د هغوی دين اختيارول او د مسلمانانو په خلاف د هغوی سره مدد کول. او ددے نه دا حديث اخستے شويدے [مَنۡ تَشَبَّهَ بِقَوۡمٍ فَهُوَ مِنۡهُمۡ] چا چه د يو قوم سره مشابهت وکړو نو دے به د هغوی نه حساب وي.
او پدے تولي کې دا هم داخل دي چه د هغوی د ديني کارونو سره مشابهت وکړي لکه د هغوی په عيد (اخترونو) کې شرکت وکړي او د هغوی په غاړه کې د صليب شکل واچوي، يا د هغوی په شان د اولياؤ په قبرونو باندے مساجد جوړ کړي. (احسن الكلام)
**الظَّٰلِمِيۡنَ** : د ظالمانو نه مراد هغه خلك دي چه د مؤمنانو په ځای د کافرانو سره دوستي

کوی۔

| فَتَرَى الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يُّسَارِعُوْنَ |
| --- |
| نو وینې به ته هغه کسان چه په زړونو د هغوی کې مرض (د منافقت) دے جلتی به کوی |
| فِيْهِمْ يَقُوْلُوْنَ نَخْشٰٓى اَنْ تُصِيْبَنَا |
| د دوی په محبت کې، وائي دوی مونږ یریږو ددے نه چه وبه رسیږی مونږ ته |
| دَآئِرَةٌ ؕ فَعَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَ بِالْفَتْحِ اَوْ اَمْرٍ مِّنْ عِنْدِهٖ |
| څه حادثه (مصیبت) نو نږدے ده چه الله تعالیٰ به راولی فتح یا یوه فیصله د خپل طرف نه |
| فَيُصْبِحُوْا عَلٰى مَآ اَسَرُّوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ |
| نو وبه ګرځی دوی په هغه څه چه دوی پټ ساتلے وو په زړونو خپلو کې (دوستانه د کافرانو) |
| نٰدِمِيْنَ ﴿۵۲﴾ وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ |
| پښیمانه۔ او وائي به هغه کسان چه ایمان ئې راوړے آیا دا هغه کسان دی |
| اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ ۙ اِنَّهُمْ |
| چه قسمونه ئې کړیدی په الله تعالیٰ مضبوط قسمونه د دوی یقیناً دوی |
| لَمَعَكُمْ ؕ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فَاَصْبَحُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۵۳﴾ |
| خامخا ستاسو ملګری دی، برباد دی عملونه د دوی نو وګرځیدل دوی تاوانیان۔ |

**تفسیر** : اُوس د منافقانو پریشانه حال بیانوی۔ نبی کریم ﷺ ته مخاطب کولو سره وئیلے کیږی چه د کومو خلقو په زړونو کې د نفاق بیماری وی نو همدغه خلق د یهود او نصاراؤ سره دوستی کوی۔ او ددے علت دا بیانوی چه مونږ یریږو چه حالات به بدل شی او مونږ به د دوی محتاج شو۔ پدے وجه مونږ د دوی د شر نه د بچ کیدو دپاره د مخکی نه احتیاط کوو۔ حال دا چه دوی لـه خو دا سوچ کول پکار وو چه نږدے ده چه الله تعالیٰ به مسلمانانو ته فتح او نصرت ورکړی او په یهود او نصاراؤ به جزیه واجب کړے شی نو په هغه وخت کې به دا (منافقان) په خپلو کړو پښیمانه وی، او په هغه وخت کې به د دوی د باطن خرابوالے ښکاره مخې ته په ډاګه راشی او مسلمانان به تعجب کوی چه دے خلقو

څنګه د ایمان دعوی کوله او قسمونه به ئې خوړل او وئیل به ئې چه مونږ خو د مسلمانانو سره یو. دې نه روستو الله تعالی اُوفرمایل: حقیقت دا دې چه ددې (منافقانو) ټول اعمال برباد شو، خپله دنیا ئې هم برباده کړه او آخرت هم.

قُلُوبِهِمْ مَّرَضٌ : د مرض نه مراد د نفاق او د کفارو د محبت مرض دې.

يُسَارِعُونَ فِيهِمْ : أَيْ فِيْ مَحَبَّتِهِمْ. یعنی د دوی په دوستئ کې تیزی کوی. دلته ئې (فِيهِمْ) لفظ استعمال کړو او داسې ئې ونهٔ وئیل چه تیزی کوی د هغوی سره په یو ځای کیدو کې، پدې کې اشاره ده چه د دوی د یهودو سره یو ځای کیدو سره انتهائی مینه ده ګویا که هغوی کې دننه ننوتل غواړي.

يَقُولُونَ نَخْشَى أَنْ تُصِيبَنَا دَآئِرَةٌ : ددې آیت د نزول په باره کې مفسرینو د عباده بن الصامت ﷺ او عبد الله بن ابی ابن سلول (رئیس المنافقین) د جګړې یو واقعه لیکلې ده چه عباده بن صامت ووئیل: زما په یهودیانو کې ډیر دوستان دی چه د هغوی سره ډیر قوت دې لیکن زهٔ الله او رسول طرفته د هغوی او د نورو یهودیانو د دوستانې نه براءت کوم او زما مولٰی (دوست) صرف الله او د هغه رسول دی نو عبد الله ووئیل: لیکن زهٔ خو د یهودو د دوستانې نه براءت نهٔ کوم ځکه چه زهٔ د دوائر (حوادثو) نه یریږم او ما دپاره د یهودو نه خلاصې نشته، نو نبی کریم ﷺ وفرمایل: اې ابو الحباب (عبد الله)! تا چه د عُباده په خلاف د یهودو په کوم ولایت (دوستانه) باندې بخل وکړو نو هغه ستا شوه نهٔ د عباده، نو هغه ووئیل: زما قبوله ده. نو الله دا آیت نازل کړو. (بغویؒ، المنار، ابن کثیرؒ)

دائرة: دا هغه حادثې ته وائي چه په سړي باندې ګرځي راګرځي چه انسان غوبل کړي.

دلته د حادثې نه مراد قحطونه، آفتونه، زلزلې او کورونه نړیدل دی چه که مونږ د دوی سره دوستي ونکړو نو بیا به پدې مصیبتونو کې دوی زمونږ مددونه نکوي. لکه پدې وخت کې هم ډیر خلك اسلام په وسلو ولي او بیا وائي چه مونږ خو څه کافر نهٔ یو، انګریزان کفار مونږ هم بد ګڼړو خو صرف مال ترې وهو او پیسې پیدا کوو.

۲- دویمه حادثه دا ده چه دوی وئیل چه کیدې شي چه محمد (ﷺ) غالبه نشي نو بیا به دا یهودیان مونږ ته څه نهٔ راکوي او وائي به چه تاسو خو د محمد ملګري وئ. یا دا چه هغوی به مونږ ته سزا راکوي چه تاسو ولې د محمد (ﷺ) ملګرتیا کړې وه.

فَعَسَى اللّٰهُ : پدې کې مؤمنانو ته تسلي او خوشخبري بیانول او منافقانو ته دهمکي ورکول دي. یعنی داسې مهٔ وایئ چه د محمد (ﷺ) دین به ختم شي بلکه تاسو به الله

تعالیٰ هلاك كړي.

فَعَسَى : يعني د الله نه اُميد وساتئ اے ايمان والو! چه الله به فتح راولي (غلبه د اسلام به راشي)۔

اَوْ اَمْرٍ مِّنْ عِنْدِهٖ : ددے دوه مصداقه دي (۱) يو دا چه په منافقانو به عذاب نازل شي او هغه دا چه غلبه د اسلام راشي۔ (۲) يا اظهار النفاق۔ يعني داسے حالات به راپيدا كړي چه د دوي منافقت به پكې راښكاره شي لكه داسے امتحانات ډير راځي۔

۳- يا دا چه مؤمنانو ته به الله د رزقونو او غنيمتونو فراخي راولي نو دوي به بيا لاسونه مروړي۔

عَلٰى مَآ اَسَرُّوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ : يعني د كافرانو محبت او د مؤمنانو شكست ئے په زړونو كي پټ كړيدے۔

نٰدِمِيْنَ : ليكن دا ندامت (پښيمانتيا) به فائده نۀ وركوي ځكه چه وخت به ئے تير وي۔

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ : يعني په هغه وخت كي به مؤمنان هم د دوي په منافقت پوهه شي نو ردونه به پرے كوي او دوي به شرموي۔ (بغويؒ)

جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ : مضبوط قسمونه۔ او د دوي په نيز به مضبوط قسم هغه وو چه صرف په الله به وو، او باللات والعزى به دومره مضبوط نۀ وو۔ او جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ دا هم دے چه ډير كوشش په قسم كي وكړي او د الله نور نومونه او صفتونه ورسره ذكر كړي۔

اِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ : يعني بيا به تاكيدات استعمالوي چه خامخا مونږ خو ستاسو ملګري وو، يعني مؤمنان به وائي چه دے خلكو به مونږ سره د خپلے ملګرتيا اعلان كولو او اُوس ښكاره شوه چه دوي دروغجن وو۔ نو مؤمنان به ددوي د روغو او قسمونو نه تعجب كوي۔

حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ : دا كلام د الله تعالىٰ دے يا كلام د مؤمنانو دے ليكن الله تعالىٰ رانقل كړيدے نو بس دا هم كلام د الله شو۔

فَاَصْبَحُوْا خٰسِرِيْنَ : مخكي ئے ندامت (پښيمانتيا) ذكر كړه چه هغه صرف د دنياوي فائدو ختميدل وو، او دلته د دنيا او د آخرت نقصان او تاوان دے يعني د شرم سره عملونه ئے هم تباه شو نو دا ترقي ده د ادنىٰ نه اعلىٰ ته۔

كه يو مؤمن بنده دا آيتونه خان ته متوجه كړي، نو د كافرانو د دوستانے نه به ئے ځومره نفرت پيدا شي چه پدے سره عملونه بربادېږي او د دنيا او د آخرت تاوان سره مخامخ

کیږي-

| يَاۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَنْ يَّرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَسَوْفَ يَاْتِي |
|---|
| اے ایمان والو! څوك چه واوړيدو ستاسو نه د خپل دين نه نو زر دے چه رابه ولي |
| اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ وَيُحِبُّوْنَهٗۤ ۙ |
| الله تعالیٰ داسے خلق چه مينه به کوی الله د هغوی سره او هغوی به مينه کوی د الله سره |
| اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۡ يُجَاهِدُوْنَ |
| نرمی کونکی به وی د ایمان والو سره سختی کونکی به وی په کافرانو، جهاد به کوی |
| فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَاۤئِمٍ ؕ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ |
| په لاره د الله کی او نهٔ به يريږی د ملامتيا د ملامت کر نه دا فضل د الله دے ورکوی دا |
| مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿٥٤﴾ |
| چا ته چه وغواړی او الله فراخه (فضل والا) دے پوهه دے- |

**تفسیر** : پدے کی يو په منافقانو باندے رد کوی چه که تاسو لاړئ مرتد شوئ او د يهودو سره مو دوستانه شروع کړه، نو د الله سره نور ډير مؤمنان شته تاسو ډيے پکی نهٔ يئ د الله تعالیٰ تاسو ته هيڅ حاجت نشته، د هغه د بندګئ دپاره نور ډير بندګان شته-

دويم پدے آيت کی الله تعالیٰ د ارتداد نه د بچ کيدو چل خودلے دے ځکه چه دا يو قبيح شے دے، هر مؤمن به دا غواړی چه ددے نه ځان بچ کړی-

نو الله پنځه طريقے (او صفات) خودلی دی چه دا په ځان کی راولئ نو د ارتداد نه به بچ شئ- او دا صفات په منافقانو کی نشته نو پدے وجه هغوی مرتد شولو-

نو د آيتونو حاصل به راوځی چه که څوك مرتد شو نو الله به داسے خلك راولی چه په هغوی کی به دا پنځه صفات وی او هغوی به نهٔ مرتد کيږی.نو پدے کی ترغيب دے چه که تهٔ غواړے چه خاتمه ډيے ښه شی او د دنيا نه په ايمان کی لاړ شے نو دا پنځه صفات ځان کی پيدا کړه، او ددے پنځه صفاتو والا انسان خاتمه به ښائسته کيږی او په ايمان کی به مری- نو پدے آيت کی په منافقانو رد او مؤمنانو ته په اسلام باندے د قائم او کلك پاتے کيدو طريقه خودل دی-

او پدے کی اشاره ده چه که یو انسان بنکاره مرتد شی نو هم دین او اهل دین ته هیڅ نقصان نهٔ رسیږی بلکه الله تعالیٰ د دین د حفاظت دپاره نور خلك پیدا کوی۔ (احسن الکلام)

مَنْ يَّرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ : نو ددے جزاء پټه ده. [فَلَا يَضُرُّ اللّٰهَ شَيْئًا] هغه الله تعالیٰ ته هیڅ ضرر نشی ورکولے. ځکه چه الله سره د انسانانو خزانے ډکے دی۔

من يرتد : دا آیت په رد د منافقانو کی دے، لیکن پدے کی دا اشاره هم پرته وه چه رسول الله ﷺ کله وفات شی نو ډیر خلك به مرتد شی لکه د عربو ډیر قبائل د اسلام نه مرتد شو سوئ د مکے او مدینے او د بحرین عبد القیس قبیلے نه بیا د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په جد وجهد باندے ډیر کسان بیرته اسلام ته راغلل. نو ددے قوم نه مراد ابوبکر صدیق رضی الله عنه او د هغه ملګری صحابه کرامؓ او تابعینؒ وو. لکه دا د علی بن ابی طالب رضی الله عنه، حسنؒ او قتادة نه نقل دی. (بغویؒ والشوکانیؒ)

نبی کریم ﷺ چه کله وفات شو نو بعض خود غرضه خلك وو، خپله مشری ئے مطلب وه نو هغوی د کفر اعلان وکړو، بعضو ته دا شك راپیدا شو که دا رسول په حقه وے نو نهٔ به مړ کیدے، نو په قرآن کریم کی الله ځای په ځای ددے شك ازاله کړیده۔

بعضو پکی وویل چه دا څنګه کیدے شی چه خلافت به صرف قریش اخلی او مونږ ته به ئے نهٔ راکوی نو واوړیدل، چا پکی وویل چه مونږ اسلام منو خو زکاة پکی نهٔ منو، چا وویل چه زکاة هم منو لیکن خپله ئے ورکوو او خلیفه ته ئے نهٔ ورکوو، نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه د مسلمانانو په مشوره دے ټولو سره قتال شروع کړو اګرکه بعض پکی مسلمانان وو خو د زکاة د منع کولو په وجه باغیان شو نو د جهاد لائق شو. د دوی سره قتال شروع شو تردے چه څه مرتدین اسلام ته راواپس شول او څه مردار شول۔

او بیا ترقیامته پورے دا حالت جاری دے چه څه خلك به د اسلام نه اوړی نو الله به نور خلك راپیدا کوی چه هغه به په دین کلك ولاړ وی۔

محققین علماء لیکی چه الله تعالیٰ پدے آیت کی د غیبو یو داسے خبر ورکړیدے چه د روستو بنکاره کیدونکو حقائقو مطابق پوره شو او دا ددے خبرے دلیل دے چه قرآن د الله کلام دے. نو د رسول الله ﷺ د وفات نه مخکی او روستو یولس قسمه خلق د اسلام نه مرتد شو چه د هغوی په خلاف ابوبکر صدیق رضی الله عنه او صحابه کرامو جنګ اُوکړو او هغوی ئے بیرته اسلام ته په راګرځیدو مجبوره کړل او پدے آیت کی د ذکر شوی عزتمندو صفاتو

مستحق شو۔

مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ : (مِنْكُمْ) کی دا تنبیه پرته ده چه مؤمن به په خپل ایمان باندے ډیر یرېږی هسے نه چه مرتد شی، په مؤمن باندے هم د ارتداد خطره شته۔

## مناسبت

مناسبت ددے آیت د مخکی سره دا دے چه څوك د کفارو سره دوستی کوی نو دا سبب دے د ارتداد نو گویا که پدے آیت کی مسبب ذکر دے او مخکی آیت کی سبب د ارتداد ذکر دے، منافقان ولے مرتد شو؟ ځکه چه د کفارو سره دوستی، رازداری او جاسوسی کوی۔ لکه رسول الله ﷺ هم فرمایلی دی چه زما امت به په خیر او فطرت باندے روان وی ترڅو چه ماښام مونځ نۀ ناوخته کوی» ځکه چه پدے کی د یهودو سره مشابهت دے۔

او دا امکان وو چه کیدے شی چه ډیر خلك د کفارو ددوستیٔ په وجه د اسلام نه واوړی۔

يُحِبُّهُمْ : ددے ځای نه پنځه صفتونه شروع کوی اول صفت: مَحَبَّةُ اللّٰهِ حُبًّا قَلْبِيًّا شَدِيْدًا : د الله سره د زړه نه بیحده مینه کول۔ دویم رحمة علی المؤمنین۔ دریم : شدة علی الکافرین۔ څلورم: جهاد فی سبیل الله۔ پنځم: لَايَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَائِمٍ ۔ د چا د ملامتیا نه نۀ یریدل۔

یحبهم : کی الله تعالیٰ خپل محبت مخکی ذکر کړو، وجه دا ده چه مؤمن بنده چه د الله سره مینه لری نو ددے نه به د الله محبت مخکی او روستو وی۔ الله به اول د مؤمن سره مینه وکړی نو په زړه کی به ئے د خپل محبت اهلیت پیدا کړی بیا چه کله تا د الله سره مینه وکړه نو هغه به درسره دوباره محبت وکړی۔

علماء وائی : [حُبُّ الْمُؤْمِنِ لِلّٰهِ مَحْفُوْفٌ بِحُبَّيْنِ مِنَ اللّٰهِ] د مؤمن محبت د الله سره د الله د دوه محبتونو ترمینځ راگیر دے، ددے وجه نه د الله نه څوك په محبت کی غالبه کیدے نشی چه ته ډیے د الله سره ډیره مینه وکړے او هغه ډیے درسره کمه وکړی۔

او محبت د الله تعالیٰ صفت دے لکه د اهل سنت والجماعة (سلف صالحینو) مسلك دے او اشاعره او ماتریدیه پکی تاویل کوی چه د محبت نه مراد ثواب ورکول دی۔ لکه مدارك لیکی : (يُثِيْبُهُمْ) ثواب ورکوی۔

دا تاویل خطاء دے، ځکه چه محبت جدا شے دے، ثواب ورکول د هغے نخه ده۔

د الله سره محبت اُوچت شے دے، د الله په محبت سره لږ عمل هم د بنده د نجات دپاره

کافي خبره ده۔
اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ : د ذُلٌ نه ماخوذ دے جمع د ذلیل ده، په معنیٰ د نرمئ او شفقت او رحم سره دے۔ او دلته هغه ذلت نهٔ دے مراد کوم چه د عزت مقابل دے۔
په (علی) لفظ راوړو کی دوه فائدے دی (۱) یو دا چه اذلة متضمن دے معنیٰ د شفقت او رحمت او عاجزئ لره یعنی مائله کیدونکی دی مؤمنانو ته په طریقه د عاجزئ او تذلل سره۔ (۲) دویم دا چه دوی سره د شرافت او اُوچتے مرتبے نه او سره د فضیلت نه په مؤمنانو باندے هغوی ته عاجزی کونکی دی۔ (المنار)
اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ : اَعِزة جمع د عَزِیز ده، د عزت نه دے په معنیٰ د شدت او سختئ سره۔ لکه د اَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ په شان آیت دے۔ او دا د صحابه کرامو صفت وو چه د مؤمنانو سره انتهائی ایثار او قربانئ والا تردے چه هغوی خپلو مسلمانانو ورونو ته خپل کورونه پریخوستی وو، چا پکی خپلے ښځے هغوی ته طلاقے کړے، په غزا د یرموك کی شهداؤ اُوبه ونهٔ څکلے او نورو له ئے ورکړے، او په کفارو دومره سخت وو چه هغوی له به ئے لاس هم نهٔ ورکولو، عبد الله بن عباس رضی الله عنهما به فرمایل:
[مَنْ صَافَحَ مُشْرِكًا فَلْيَتَوَضَّأْ] چا چه مشرك سره مصافحه وکړه نو هغه دِ بے اَودس وکړی۔ عاصم ؓ دا التزام کړے وو چه کافر به ددهٔ د بدن سره نهٔ لګیږی، کله چه شهید شو نو کفارو د هغه نه د سر پریکولو اراده وکړه نو الله مچئ راولیږلے او د هغه حفاظت ئے وکړو او د شپے بیا په بارانی سیلاب باندے د هغه جُثه په یو ځای کی غائبه شوه۔
صحابه کرامو کی داسے خلك هم وو چه خپل پلار خپل ورور ئے وژلے دے، پکار ده چه مؤمن هم دغسے وی او زمونږ پدے زمانه کی خبره برعکس شوه چه کفارو سره خلك ډیره مینه لری، هاها ورته کوی، هغوی ته هر قسم فراخی ورکوی، او مؤمنان جیلونو ته اچوی او جګړے ورسره کوی۔
يُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ : یعنی قولی او عملی جهاد به کوی، دا قتال ته هم شامل دے او د الله د دین هر قسمه جد وجهد ته هم۔
وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ : دا ډیر اهم صفت دے چه د حق په باره کی د هیچا د ملامتیا نه نهٔ یریږی، استاد وی که شاګرد، مشر وی که کشر، بادشاه وی که ګدا، مالدار وی که فقیر، نر وی که ښځه، او پدے باندے نکره والے د (لَآئِمٍ) دلالت کوی۔ یعنی دوی په ایمان کی دومره مضبوط دی چه د هیڅ قسمه او د هیچا د ملامتیا نه نهٔ یریږی، او پدے کی تعریض دے په

منافقانو باندے چه هغوی د خپلو دوستانو یهودیانو د ملامتیا نه یریدل که چرته دوی د مؤمنانو په ملکرتیا کی قتال وکړی۔ (المنار)

ډیر کافران اسلام ته نهٔ راځی د ملامتیا نه یریږی، ډیر مبتدعین او باطل پرست حق طرفته نهٔ راځی، ولے که حق ته راشو خلك به وائی چه اُوسه پورے دا په دے مسئله نهٔ پوهیدو او اُوسه پورے په باطل باندے وو۔ ډیر خلك غلط خیراتونه کوی، د مړو پسے غوا میخه حلالوی او بیا وائی که دا کارونکړو نو د خلکو نه مو خوړلے ده بیا به خلك وائی چه مور او پلار پسے ئے خیرات ونکړو۔ ډیرے کونډے زنانه نکاح ته ضرورت لری لیکن نهٔ ئے کوی د خلکو د ملامتیا نه یریږی او بیا بی حیاء کارونه هم کوی۔ ډیر خلك په سنت طریقو عمل نکوی ځکه چه بیا به خلك وائی چه په علاقه کی ئے انتشار خور کړو۔

د مخلوق عظمت چه کله په زړه کی راشی او د خالق عظمت ترے وځی نو بیا د ملامتیا نه ډیر یریږی۔

رسول الله ﷺ به پدے صفت باندے د بعض صحابه کرامؓ نه بیعت اخستو لکه عباده بن صامت ﷺ فرمائی : مونږ د رسول الله ﷺ سره پدے خبره بیعت وکړو چه

[وَعَلٰى أَنْ نَقُوْلَ بِالْحَقِّ أَيْنَمَا كُنَّا لَا نَخَافُ فِي اللّٰهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ]

مونږ به د الله په باره کی د هیڅ ملامتیا د ملامتگر نه نهٔ یریږو۔ (مسلم : ٤٨٧٤)

**ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ** : یعنی دا شپږ صفتونه په یو بنده کی راتلل د الله په مهربانیٔ سره کیږی هغه بنده ته توفیق ورکړی او اسباب ورته برابر کړی۔

دارنگه د فتنے په وخت کی د حق په لاره باندے کلك پاتے کیدل، او نور خلك د هلاکت نه بچ کولو فکر کول د الله لویه مهربانی ده۔

**وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ** : دا ورسره ځکه وائی چه الله چه بعض بندګانو ته فضل ورکوی او بعضو ته نهٔ نو ددے وجه به دا وی چه د الله فضل به کم وی نو الله دغه وهم دفع کړو چه د الله فضل فراخه دے لیکن د هغه په حکمت سره دا کار کیږی چه بعضو ته ئے ورکوی او بعض د هغوی د بد عملونو په وجه محرومه وی۔

| إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَالَّذِيْنَ |
|---|
| یقیناً دوست ستاسو الله تعالیٰ دے او رسول د هغه دے او هغه کسان دی |

| امَنُوا الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ رٰكِعُوْنَ ﴿٥٥﴾ |
| --- |
| چه ایمان ئے راوړیدے هغه کسان چه قائموی مونځ او ورکوی زکاة او دوی رکوع کوونکی دی۔ |
| وَمَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالَّذِيْنَ |
| او څوك چه دوستی کوی د الله او د رسول د هغه سره او د هغه کسانو سره |
| امَنُوْا فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿٥٦﴾ |
| چه ایمان ئے راوړیدے نو یقیناً ډله د الله هم دوی غالب دی۔ |

**تفسیر** : اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ : سوال پیدا شو چه یهود او نصاریٰ سره دوستی نهٔ کوو نو چا سره ئے وکړو؟ نو الله جواب ورکړو چه د دوستانے لائق شته چه هغه الله تعالیٰ دے او د هغه رسول ﷺ او مؤمنان دی۔

مناسبت : مخکی د یهود او نصاراؤ د موالات نه منع وشوه نو اُوس اهل د ولایت بیانوی۔

اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ : سوال : دلته پکار وه چه جمع ئے (اولیاء) ذکر کړے وے؟ جواب : اشاره ده چه ولایت په اصل کی د الله تعالیٰ دے او د نبی او مؤمنانو دپاره تبعاً دے۔ (قاسمیؒ)

ولی په معنیٰ د دوست او ناصر سره هم دے۔

**فائده** : د یو انسان سره د دوستی کولو څلور شرطونه ضروری دی (۱) ایمان، (۲) مونځ۔ (۳) زکاة۔ (٤) د هغه تواضع۔ نو دا قسم انسان سره دوستی واجبه ده او که دا صفات کلًا یا بعضاً پکی نهٔ وی بیا د دوستئ لائق نهٔ دے۔ دا ډیره مهمه فائده ده، ډیر کم خلك دے ته متوجه کیږی۔

الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ : دا ورسره ځکه وائی چه منافقان هم د ایمان دعوه کوی، نو الله وفرمایل چه په چا کی دا راتلونکی صفات وی نو د هغوی سره دوستی کوئ۔ ددے نه معلومه شوه چه که یو تن د ایمان دعوه کوی او مونځ نهٔ کوی نو هغه د دوستئ لائق نهٔ دے بلکه هغه ته به اسلامی خلافت سزا ورکوی او جیل ته به ئے اچوی او وهل به ورکوی۔

وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ : او که زکاة څوك نهٔ ورکوی نو هغوی سره به قتال کولے شی نهٔ دوستی۔

وَهُمْ رٰكِعُوْنَ : اَیْ خَاضِعُوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ، طَيِّبَةٌ نُفُوْسُهُمْ بِاَمْرِهٖ۔

يعني دوى چه زكاة وركوى نو د الله د حكم د عاجزئ د وجه نه ئے كوى. د دوى زړونه د الله په حكم باندے خوشحاله وى. (المنار)

يا د دواړو نه حال دے نو راكعون ورسره څكه وائى چه بعض كسان مونځ كوى او زكاة هم وركوى ليكن زړونه ئے د تكبر نه ډك وى او رياء كاروى، نو د داسے كسانو سره هم محبت نشته لكه بعض كسانو سره د هغه د تكبر د وجه نه بنده تنګيږى.

يا دا تخصيص بعد التعميم دے يعنى د مانځه پابندى كوى او په مانځه كى د ركوع ډير اهتمام كوى څكه چه ډير خلك په مانځه كى ركوع بربادوى.

او دا معنىٰ صحيح نۀ ده چه دوى زكاة وركوى پداسے حال كى چه په ركوع كى وى او بيا ددے دپاره يو اثر د سيدنا على ﷺ پيش كوى چه هغه يو سائل ته په حالت د ركوع كى صدقه (ګوتمه) وركړه نو دا آيت د هغه په باره كى نازل شو.

حافظ ابن كثيرؒ وئيلى دى چه دا معنىٰ صحيح نۀ ده څكه چه بيا خو به په حال د ركوع كى صدقه او زكاة وركول افضل وى د بهر د مانځه نه، څكه چه دا مقام د مدح دے، او پدے باندے هيڅ عالِم قول نۀ دے كړے بلكه دا چه ددے روايت سندونه ضعيف او راويان پكى مجهول دى. بلكه دا چه مونږ نه پداسے حالت كى د زكاة او صدقے وركولو مطالبه نۀ ده شوے، نو د قرآن به داسے تفسير نشى كولے چه د اصولو د اسلام خلاف وى.

وَمَنْ يَّتَوَلَّ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ : أَىْ مَنْ يَّكْتَفِ بِوِلَايَتِهِمْ.

دا زيرے دے مخكنو صفاتو والا خلكو ته او معنىٰ دا ده چه چا اكتفاء وكړه په محبت د الله او د رسول او د مؤمنانو نو دا د الله د ډلے نه دے. يا چا چه مينه وكړه د الله او د رسول او د مؤمنانو سره چه د هغوى مدد او نصرت كوى نو دا به د الله د ډلے نه وى. (قاسميؒ)

حِزْبَ اللهِ : حزب په اصل كى هغه ډلے ته وائى چه د حادثے راپيښ كيدو په وخت كى راجمع كيږى نو دا د جماعت او قوم نه خاص دے.

هُمُ الْغٰلِبُوْنَ : يعنى دا مۀ وايه چه يهود به غالبه شى او مونږ ته به مالونه راكوى بلكه مؤمنان به غالبه كيږى. او دا وعده الله تعالىٰ پوره كړه چه مؤمنانو ته ئے په ټولو كفارو غلبه وركړه. او داسے په سورة المجادله (۲۲) آيت كى راغلى دى هلته ئے ﴿فَاِنَّ حِزْبَ اللهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾ ووئيل نو د الله ډله به په دنيا كى غالبه وى او په آخرت كى به كاميابه وى.

يا دا چه دلته د يهود او نصاراؤ سره مقابله مقصد ده او په وخت د مقابله كى غلبه مقصد

وی او غلبه په دنیا کې راځي، او هلته یې د شیطان د ډلې په باره کې خاسرون وئیلي وو نو د هغې په مقابله کې مفلحون لفظ مناسب دے۔

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا وَّلَعِبًا |
| اے ایمان والو ! مهٔ نیسئ هغه کسان چه نیولے ئے دے دین ستاسو توقے او لوبے |
| مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ |
| د هغه کسانو نه چه ورکړے شویدے ورته کتاب مخکې ستاسو نه او (نورو) کافرانو لره |
| اَوْلِيَآءَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٥٧﴾ |
| دوستان او ویریږئ د الله نه که تاسو یئ مؤمنان۔ |

**تفسیر : مضمون :** ددے نه روستو خبائث الیهود واهل الکتاب، او علتونه د ترک الموالات بیانیږی چه دوی ستاسو دین پورے توقے کوی، د اذان پورے توقے کوی، د ایمان والو پورے توقے کوی، او دا وائی چه [لَا نَعْلَمُ شَرًّا مِنْ دِيْنِكُمْ]

مونږ ته ستاسو د دین نه بل لوی شر نهٔ دے معلوم۔

او د دوی د شر د علاماتو نه دا ده چه کله د مؤمنانو مجلس ته راشي نو د ایمان دعوه کوی او چه بهر وځی بیا د اسلام پورے توقے کوی، دوی د ګناه پسے منډے وهی (يُسَارِعُوْنَ فِي الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ)، اَكْلِهِمُ السُّحْتَ (حرام خوارهٔ دی)، په دوی کې ملیان هم دومره ورانکاری دی چه خلك د ګناه نه نهٔ منع کوی، دوی د الله بې عزتی کوی او هغه ته د بخل نسبت کوی۔ (وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ)۔ نو داسے ملعون خلکو سره تاسو څنګه مینه کوئ، یهودی د الله لوی دشمن دے، آیا هغه د مینے لائق دے، او دا هغه خلك دی (كُلَّمَا اَوْقَدُوْا نَارًا لِّلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ) هسے جنګونه او فسادونه پیدا کوی، بیا الله ترغیب ایمان ته ورکوی لکه دا د قرآن کریم طریقه ده چه د چا فساد ذکر کړی نو بیا توبې ته ترغیب ورکوی تر (٦٦) آیت پورے، د هغې نه روستو بیا دا خبره بیانوی په بل طرز سره۔

**هُزُوًا :** هزو دے ته وائی چه د یو شی پورے توقے وکړی او هغه سپك وګڼړی،

**وَّلَعِبًا :** لعب دے ته وائی چه یو شے ورته بے فائدے مشغله بښکاره شی لکه د لوبو په شان۔ نو دوی د دین سره دوه کارونه کوی یو د دین تحقیر او سپکاوے کوی، او بل ورته عبث ښکاره کیږی۔ نو اے مؤمنه ! ته په خپل دین باندے غیرت کوے او که نهٔ؟۔ لکه

اُوس هم ډیر کافران مونځونو او حجونو وغیره عباداتو ته ورزشونه او لوبې واني۔
مِّنَ الَّذِیۡنَ : دا بیان دے د مخکې "الذین" او په دے کې دوه ډلے د کافرانو ذکر کوي۔
وَالۡکُفَّارَ : یعنې نور کافران چه هغه مشرکان دي۔
وَاتَّقُوا اللّٰهَ : دلته تقوىٰ کې ترك الموالات ته اشاره ده۔
اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِیۡنَ : یعنې د ایمان تقاضا دا ده چه د کفارو سره موالات ونکړے شي۔

| وَاِذَا نَادَیۡتُمۡ اِلَی الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوۡهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ؕ |
|---|
| او کله چه آواز (اذان) وکړئ مانځه ته نو نیسي دوي هغې لره ټوقې او لوبې |
| ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ قَوۡمٌ لَّا یَعۡقِلُوۡنَ ﴿۵۸﴾ |
| دا پدے وجه چه بیشکه دوي داسے قوم دے چه عقل نهٔ لري۔ |

**تفسیر** : دا مثال دے د مخکې (هُزُوًا وَّلَعِبًا) دپاره یعنې دوي کوم ځاى کې زمونږ دین پورے ټوقے کریدي؟ نو ووئیل شو چه ستاسو د اذان پورے ټوقے کوي۔
نَادَیۡتُمۡ اِلَی الصَّلٰوةِ : دلته د نداء نه مراد اذان دے او په قرآن کریم کې د پنځه مونځونو دپاره اذان صرف پدے آیت کې ذکر دے، او په سورة الجمعه کې د جُمعے اذان مراد دے۔
او نداء په اصل کې د راغوښتلو دپاره آواز پورته کولو ته واني۔ (قرطبیؒ)
بیا دلته نداء (اذان) مجمل دے او ددے د کلماتو تشریح په احادیثو سره ثابته ده۔

## د اذان د شروع تاریخ

په مکه کې مونځ فرض وو لیکن اذان نهٔ وو کله چه مدینے ته هجرت وشو نو د اذان ترتیب دپاره مشوره وشوه، پنځه مشورے ورکړے شوے، یوه دا وه چه اُور به بل کړو او د هغے په لیدو سره به خلك مانځه ته حاضریږي لیکن دا د مجوسو سره مشابهت وو او د اُور فائده کمه ده، هر چا ته به نهٔ ښکاري۔ چا ووئیل چه تلئ به وهو نو ووئیل شو چه پدے کې د نصاراؤ سره مشابهت راځي، (خو دے ته لږ میلان پیدا شو) چا ووئیل چه بوق (ښکر) کې به آواز کوو، نو ویے ویل چه دا خو د یهودو سره مشابهت دے، چا ووئیل : جنډه به وچتوو لیکن دا هم د شپے کار نهٔ ورکوي او د کوټے نه جنډه څه ښکاري۔
نو عمر فاروق رضی الله عنه د «اَلصَّلَاةُ جَامِعَةٌ» آواز کولو مشوره ورکړه نو نبي علیه السلام پدے د

عمل حکم وکړو نو بلال ته ئے ووېل چه پاخیږه آواز وکړه، نو یوه ورځ پدے باندے عمل وشو نو د شپے یو انصاری صحابی (عبد الله بن زید بن عبد ربه رضی الله عنه) خوب ولیدو چه یو سړے روان دے تلئ ورسره ده، دهٔ ورته ووېل : دا خرڅوے ؟

هغه ووېل : پدے څه کوے ؟ دهٔ ووېل چه د مانځه د اطلاع دپاره دا وهو۔ هغه ورته ووېل : زهٔ درته کلمات د اذان نهٔ ښایم؟ نو اذان او اقامت ئے ورته وخودو، سهار ئے رسول الله ﷺ ته دا خوب بیان کړو نو هغه ئے تائید وکړو او وے فرمایل : [إِنَّهَا لَرُؤْيَا حَقٌّ]

دا یقینی رشتینی خوب دے۔ پاخیږه بلال ته ئے وایه او هغه به اذان وکړی ځکه چه هغه ستا نه په آواز کی اُوچت دے۔

د پنځلسو کلماتو والا اذان وو او د اُولس کلمو والا اقامت وو او پدے کی یولسو کلمو والا اقامت هم په ډیرو احادیثو کی راغلے دے، نو هغه ډیر قوی دے لکه صحیحینو کی دی :

[أُمِرَ بِلَالٌ أَنْ يَّشْفَعَ الْأَذَانَ وَيُوْتِرَ الْإِقَامَةَ]

پدے روایت کی احناف شارحین تاویلات شروع کړی چه دا خو صحیح روایت دے او پدے کی اقامت فرادیٰ (یولس) کلمے راغلے دے او زمونږ د مذهب خلاف دے نو د تاویلاتو انبار ولګوی او حدیث رد کړی، ځان او نور خلك دهوکه کړی او د خیر نه ئے محروم کړی۔

**هُزُوًا وَّلَعِبًا** : د دوی توقے داسے وے چه کله به مؤذن اذان وکړو او مسلمانان به دے ته راپاڅیدل نو دوی به ویل چه [قَامُوْا لَا قَامُوْا] ۔ راپاڅیدل دوی ته ډیر د راپاڅیدو توفیق ورنکړے شی، او خندا به ئے شروع کړه (بغویؒ)

او کله به ئے دے ته د خر رمبارے وئیلے، په مدینه کی یو نصرانی وو کله به ئے چه په اذان کی (اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ) واوریدو نو داسے به ئے وئیل (حُرِّقَ الْكَاذِبُ) (دروغجن دے په اُور وسوزی) نو یوه شپه ددهٔ خادم کورته اُور راوړو او دے او ددهٔ اهل اُوده وو نو د هغے نه سپرغے پورته شوے نو ټول کور سره ددهٔ او ددهٔ اهل نه وسوزیدل۔

(ابن جریرؒ وابن ابی حاتمؒ– بغویؒ وزاد المسیر وروح المعانی)

او یهودو به د اذان سره ډیر حسد کولو نو یوه ورځ ئے رسول الله ﷺ ته ویل چه تا داسے یو شے ایجاد کړو چه مونږ دا په پخوانو امتونو کی نهٔ دے آوریدلے، نو که ته د نبوت دعوه کوے نو تا خو د مخکنو ټولو انبیاؤ نه خلاف وکړو او که دا خیر وے نو پدے باندے پخوانی انبیاء ډیر لائق وو نو تا دا چغے د کوم ځای نه ایجاد کړے لکه د چیلو د چغو په شان، ډیر بد آواز او بد کار دے۔ نو الله دا آیت او (وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَا اِلَى اللهِ) نازل کړو۔

(بغويٌّ، والقرطبيٌّ)

او کله چه به دوی اذان واوریدو نو یو بل ته به ئے اشارے کولے او خپل مینځ کی به ئے خندا شروع کړه نو د مؤذن دا کارئے سپك ګنړلو او خلك ئے ترے متنفر کول غوښتل، او اذان کونکے ورته داسے ښکاره کیدو لکه یو تن چه د خپل ځان سره لوبے کوی ځکه چه ددے د مرتبے نه جاهلان وو۔ (قرطبيٌّ)

او علماء لیکی چه څوك اذان واوری او مانځه ته نهٔ حاضریږی نو هغه هم اذان نه تپوقه جوړه کړه۔

**فائده** : ددے ځای نه معلومه شوه چه کله اذان شروع شی نو خبرے بندول پکار دی او الله تعالیٰ ته توجه پکار ده او خشوع اختیارول۔ الزواجر کی لیکی : اذان کی خبرے کول ګناه ده بلکه په دۀ باندے د کفر یره ده۔ بعض سلف به د اذان په وخت بیت الخلاء ته نهٔ داخلیدل د الله تعالیٰ د نوم تعظیم به ئے کولو، اُوس زمونږ زمانه کی څومره بی ادبی شروع ده۔ والله المستعان۔

د بخاريٌّ او مسلمٌ روایت دے چه شیطان کله اذان واوری نو په تیزونو اچولو سره تختی دے دپاره چه اذان وانهٔ وری، او د اذان د ختمیدو نه روستو بیا راواپس کیږی۔ الحدیث۔

**لَا يَعْقِلُوْنَ** : یعنی د الله دکبریاء او عظمت آواز ته دوی لوبی وائی نو دوی غټ بی عقله قوم دے۔

| قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا |
|---|
| ووایه ! اے کتاب والو! عیب نهٔ لګوئ تاسو په مونږ مګر پدے چه ایمان راوړے دے مونږ |
| بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ |
| په الله او په هغه کتاب چه نازل شویدے مونږ ته او په هغه چه نازل شویدے |
| مِنْ قَبْلُ ۙ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿٥٩﴾ |
| مخکی ددے نه او (عیب نهٔ وایئ مګر) پدے وجه چه زیات ستاسو نه نافرمان دی۔ |

**تفسیر** : دے کی د دوی بله استهزاء ذکر ده چه د ایمان والو ایمان ورته کپ شپ ښکاری، او دوی سره په ایمان باندے دشمنی کوی نو دا خلك د موالات لائق نهٔ دی۔

او پدے کی د مخکی استهزاء جواب دے چه اذان خو د ایمان او د توحید اعلان دے نو

تاسو چه اذان پورې توقې کوئ نو اصل کې تاسو د توحید دشمنان یئ نو د توحید دشمنانو سره څنګه موالات وکړې شي؟! ●

هَلْ تَنقِمُونَ : دا مدح مشابه د ذم ده یعنې مونږ کې هیڅ عیب نشته مګر یو عیب شته (ستاسو په ګمان) چه هغه ایمان بالله او ایمان بالکتب المنزله دې او دا خو عیب نهٔ دې بلکه کمال دې، معلومه شوه چه په مونږ کې هیڅ عیب نشته او دا ستاسو بې وقوفي ده چه کمال ته عیب وایئ. او ددې نه معلومه شوه چه د کافرانو مشرکانو او یهود او نصاراؤ دشمني د مؤمنانو سره صرف د توحید په مسئله ده لکه دا خبره په سورة الاعراف (۱۲۶) او سورة الحج (۴۰) او سورة البروج (۸) کې هم راغلې ده.

تنقمون: نقم خفګان کول، بد ګنړل، نفرت کول، عیب ګنړل دي.

او دا خبره بعینه اهل سنت اهل حدیث تهٔ لو مبتدعینو ته کولې شي چه مونږ خو الله تعالیٰ او ټول کتابونه او د نبي کریم ﷺ ټول احادیث منو که د هر امام سره وي او تهٔ صرف په څلورو زرو کې زر حدیث منې او نور نهٔ منې نو مونږ غوره شو او که تهٔ، مونږ د څلورو وارو امامانو ټول صحیح روایتونه منو او ته صرف د یو سره چه کوم روایتونه دي هغه منې نو څوك غوره شو؟! او څوك په حق دي؟ لږ سوچ وکړه.

وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَاسِقُونَ : دا د (وَاعْلَمُوا) پټ سره متعلق دې یعنې پدې خبره پوهه شئ چه په تاسو کې اکثر نافرمان دي. یا دا په محکي (أَنْ) باندې عطف دې [أَيْ هَلْ تَنقِمُونَ مِنَّا إِلَّا أَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَاسِقُونَ] تاسو په مونږ باندې عیب نهٔ وایئ مګر پدې وجه چه تاسو کې اکثر نافرمان دي یعنې زمونږ ایمان او ستاسو فسق (بې ایماني) سبب د دشمنۍ دې.

یا هَلْ تَكْرَهُونَ مِنَّا إِلَّا إِيمَانَنَا وَفِسْقَكُمْ] (بغويّ)

یعنې تاسو مونږ نه بد نهٔ ګنړئ مګر زمونږ ایمان او ستاسو فسق. یعنې تاسو دا وایئ چه دا خلك ولې مؤمنان او مونږ ولې فاسقان یو ځکه چه دوی ته دا معلومه وه چه مؤمنان په حق دي او مونږ په خپل باطل دین باندې د ریاست او مالونو د محبت په وجه کلك ولاړ یو.

یا دا په (بِاللهِ) کې په لفظ د (الله) باندې عطف دې یعنې إِلَّا أَنْ آمَنَّا بِأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَاسِقُونَ. یعنې تاسو په مونږ باندې عیب نهٔ لګوئ مګر ددې خبرې چه مونږ ایمان راوړې په الله او پدې خبره چه تاسو نافرمان یئ. مونږ ته تاسو مشرکان او کافران ښکاره کېږئ.

(ابن کثیرؒ)

او دا آیت اول کې اهل کتابو ته شامل دې او بیا په هر هغه چا باندې رد کوي چه په

مسلمانانو باندے د ایمان او د اسلام د وجه نه عیب لګوی. (المنار)
لکه اُوس د انټرنیټ او اخبارونو او ټی وی او ریډیو په ذریعه د اسلام او مسلمانانو بدنامی عام کولے شي.
وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ : کی د قرآن انصاف دے چه دوی کی چه کوم بنه خلك دی او ایمان ئے راوړیدے هغه ترے وباسی.

| قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكَ مَثُوبَةً |
|---|
| ته ورته ووایه چه آیا خبر نه درکوم تاسو ته په ډیر ناکاره (دین) سره ددے نه په اعتبار د بدلے |
| عِندَ اللَّهِ ۚ مَن لَّعَنَهُ اللَّهُ وَغَضِبَ |
| په نیز د الله تعالیٰ هغه څوك دے چه لعنت کړیدے په هغه باندے الله تعالیٰ او غضب ئے کړے |
| عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوتَ ۚ |
| په هغه او کړخولی ئے دی د هغوی نه شادوګان او خنزیران او عبادت ئے کړے د غیر الله، |
| أُولَٰئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضَلُّ عَن سَوَاءِ السَّبِيلِ ﴿٦٠﴾ |
| دا کسان ډیر ناکاره دی په اعتبار د مرتبے او ډیر ګمراه دی نیغے لارے نه. |

**تفسیر** : پدے کی د ترك موالات څلورم علت دے، چه دوی تاسو او ستاسو دین ته شر وائی.
او دا جواب دے د اهل کتابو د یو قول چه هغوی وئیلی وو: [لَا نَعْلَمُ دِيْنًا شَرًّا مِنْ دِيْنِكُمْ] یعنی مونږ ته ستاسو د دین نه بل لوی شر والا دین نهٔ دے معلوم) یعنی تاسو به بنه خلك یئ لیکن دین مو خراب دے لکه اُوس هم کفار د ځان نه په اسلام باندے تهمتونه بیانوی او بنو خبرو له غلط رنګ ورکوی او دا وائی چه په اسلام کی دهشتګردی او زیاتے دے چه د خلکو نه لاسونه پریکوی او کوړے ورکوی، حدود او رجمونه بدناموی نو اسلام خلکو ته وحشیانه دین ښکاره کوی.
بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكَ : **سوال** دا دے چه زمونږ په دین کی خو هیڅ شر نشته او د (بِشَرٍّ مِنْ) اسم تفضیل نه معلومیږی چه زمونږ په دین کی هم شر شته؟
**جواب** دا دے چه دا د هغوی د ګمان مطابق وئیل شویدے یعنی که ستاسو په ګمان

زمونږ په دین کې شر وی نو راشئ چه ددے نه ډیر لوی شر والا دین تاسو ته وښایم. نو خپل دین ته نهٔ گورے او زمونږ په دین کې عیب راوباسے، لکه بعض خلك د اهل حدیثو د درے طلاقو مسئله، او اته رکعاته تراویحو باندے عیب وائی (حال دا چه دا په احادیثو کې راغلی دی) او خپلے فقهے ته نهٔ گورے چه په هغے کې روستنو خلکو څو مره غلطے او ناکاره مسئلے جوړے کړیدی چه د هغے د بیانولو نه یو حیاء ناك انسان شرم محسوس کوی. نو د قرآن نه دا اهل بدعو جواب هم زده کیږی ځکه چه اهل بدع د یهودو سره مشابه دی.

مَثُوبَةً : په اعتبار د بدلے. مَثُوبَةً مصدر میمی دے په معنیٰ د ثواب (بدلے) سره.

مَنْ لَعَنَهُ اللهُ : دلته دوی ویل چه ستاسو دین شر دے او په آیت کې جواب راغلو چه تاسو شریان یئ، تاسو په لعنت او غضب او د طاغوت په بندگئ اخته شوی یئ نو تاسو ډیر ناکاره خلك یئ ځکه زمونږ دین ته بد گورئ. یعنی تهٔ هم ناکاره او دین دے هم ناکاره.

یا هغوی د دین په باره کې اعتراض کړے وو نو جواب به هم په دین سره وی، نو دلته به مضاف پټ وی [اَیْ دِیْنُ مَنْ لَعَنَهُ اللّٰهُ بِهٖ] او دا بدل دے د (من ذلك) نه. (زاد المسیر)

یعنی تاسو ته هغه ناکاره دین نهٔ ښایم چه الله پرے ناکاره بدلے ورکوی چه هغه دین د لعنتیانو او مغضوب علیهم او د عابدانو د طاغوت دے. یعنی تاسو باندے خو د دغه دین په وجه لعنت او غضب وشو نو دا څنگه بنه شو چه انسان پرے لعنتی کیږی؟! نو دلته به د (لَعَنَهُ الله) او (غَضِبَ عَلَیْهِ) نه روستو (بِهٖ) کلمه مراده وی.

بیا ددے دین نه مراد آسمانی دین نهٔ وو بلکه د دوی د ځان نه ایجاد کړے دین مراد وو چه هغه بعض رسولان منل او بعض نهٔ، او انبیاء قتلول او تحریفونه کول او په دین کې حیلے کول او سودونه او هر قسم فسادونه کول، دغه د دوی دین وو.

وَغَضِبَ عَلَیْهِ : یعنی هغه دین چه د هغے په وجه پرے الله غضب کړے وو. لکه دا غضب په سورة البقره (٦١) (٩٠) آیت کې ذکر شویدے.

وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِیْرَ : پدے کې دوه قوله دی (١) ځینی وائی چه د یهودیانو څه خلك د خالی په ورځ کې د اعتداء (زیاتی) کولو په وجه شادوگان (بیزوگان) جوړ شو او څه خلکو نه خنزیران جوړ شو کله ئے چه په عیسیٰ علیه السلام تکذیب وکړو. التسهیل لابن جزی)

(٢) او ځینی وائی چه د اصحاب السبت ځوانان شادوگان او بوډاگان ئے خنزیران شو.

وَعَبَدَ الطَّاغُوْتَ : دا په (لَعَنَهُ الله) باندے عطف دے اَیْ (دِیْنُ مَنْ عَبَدَ الطَّاغُوْتَ) او مَن

کلمه د جمعې او مفرد دپاره یو شان استعمالیږي. (یعني دین د هغه چا چه بندګي ئې کړیده د طاغوت یعنې د سخی عبادت، او د کاهنانو تابعداري ئې کړیده او په معصیت او د حق په خلاف کې ئې د خپلو مشرانو تابعداري کړیده).

لکه د طاغوت تشریح کې مونږ سورة بقره او سورة نساء کې وئیلي وو چه [ کُلُّ مَعْبُوْدٍ اَوْ مُطَاعٍ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ] ته وائي نو پدې کې عزیر علیه السلام، عیسیٰ علیه السلام، احبار او رهبان او خپل مشران داخل دي، برابره ده چه هغوی د دوی په عبادت راضي وي او که نهٔ.

اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا : مکان نه مراد ځای دے، نو په آخرت کې د دوی مکان د جهنم اُور دے.

او د مؤمنانو په مکان کې هیڅ شر نشته ځکه هغه جنت دے. یا مکان په معنیٰ د مکانت (مرتبې او حالت) سره دے یعني د دوی حالت خراب دے که په دنیا کې وي او که په آخرت کې.

ځینې وائي : (اولئك) کې اشاره ده هغه کسانو ته چه په تاسو ئې عیب لګولے دے یعني دغه کسان چه ستاسو په دین عیب لګوي ډیر ناکاره دي د هغه کسانو نه چه الله پرې لعنت کړیدے. یعني دا کشران د مشرانو نه زیات ناکاره دي نو د هغوی دومره بد حالت وو نو د دوی به څومره بد وي؟! (القرطبي)

وَّاَضَلُّ عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ : یعني دوی لعنتیان هم دي او ورسره په دنیا کې ئې صحیح لاره هم ورکه کړیده نو د دوی به څه دین وي؟!

**فائده** : پدې کې په یهودیانو (او نصاراؤ) باندې ډیر سخت رد دے او د هغوی ډیره بد حالي ئې ذکر کړیده دے دپاره چه آینده دوی مسلمانانو او د هغوی دین ته ژبه را اوږده نکړي، ځکه چه دوی باندې دغه لعنتونه او غضبونه په هغه زمانه کې شوي وو چه رسولان به د دوی ترمینځ موجود وو نو د دوی نه روستنو (کشرانو) حال خو ددوی نه هم ډیر ناکاره دے، او دوی ډیر لائق دي چه دوی ته د هغوی نه زیات شریان وویل شي اګر که روستنو یهودیانو هم د غضب او د لعنت ډیر کارونه کړي وو او د مسلمانانو په دین باندې ئې عیبونه لګولي وو. (التحرير والتنوير ٥/١٤٤)

وَاِذَا جَآءُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَقَدْ دَّخَلُوْا

او کله چه راشي دوی تاسو ته وائي دوی چه ایمان راوړے مونږ او حال دا چه داخل شویدي دوی

بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوْا بِهٖ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا يَكْتُمُوْنَ ﴿۶۱﴾

په کفر سره او دوی وتلی دی په کفر سره او الله پوهه دے په هغه څه چه دوی نے پټوی.

**تفسیر:** مناسبت:

۱- دا د (شَرٌّ مَّكَانًا) تشریح ده یعنی دوی دومره ناکاره دی چه کلام الهی په دوی باندے اثر نکوی. ۲- یا دا د دوی د شر د علاماتو نه یوه علامه بیانوی چه دوی منافقان دی. او تاسو سره منافقت کوی. ۳- نو پدے کی د ترك موالات پنځم علت ذکر دے.

وَقَدْ دَّخَلُوْا بِالْكُفْرِ : اَیْ اِلٰی مَجَالِسِكُمْ. یعنی ستاسو مجلس ته چه راغلی دی نو هم کفر ورسره ملګرے وو او چه بهر وتل نو هم کفر ورسره وو، نو کفر د دوی نه نهٔ دے زائل شوے. یعنی هر کله چه دوی تاسو سره منافقت کوی نو تاسو له د دوی سره دوستانه جائز نهٔ ده.

او دوی به دا منافقت ددے وجه نه کولو چه په مؤمنانو باندے تلبیس وکړی او هغوی بیرته خپل کفر ته واپس کړی لکه په سورة آلعمران (۷۲) آیت کی ددے تفصیل ذکر شویدے. ﴿وَقَالَتْ طَّائِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتَابِ اٰمِنُوْا بِالَّذِیْٓ اُنْزِلَ عَلَی الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَجْهَ النَّهَارِ﴾

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا يَكْتُمُوْنَ : یعنی دوی کی دومره لوی شر او ګمراهی پرته ده چه هغه ستاسو د علم نه بهر ده او صرف الله پرے پوهیږی.

یا دوی چه د خلکو د ګمراه کولو کوشش کوی او دا خبره په زړونو کی پټه ساتی نو الله پرے پوهه دے هغه به خپل مؤمنان بندګان پرے خبروی.

**فائده:** پدے آیت کی په طریقه د اشاره د هغه چا دپاره هم وعید پروت دے چه د دین او د علم او وعظ یو مجلس ته حاضر شی او د هغے نه هیڅ فائده وانخلی بلکه مؤمن سرے به ضرور فائده اخلی، او منافق انسان چه څه زړه کی راوړی وی هغه بیرته ځان سره وړی. او بعض طلباء یوے دینی مدرسے ته راشی خو خپل زوړ بدعت، تقلید، ګمراهی، شرکی عقیده نهٔ پریدی، دلائل اوری او اثر پرے نهٔ کوی دا هم یهودی خوئی دے.

وَتَرٰی كَثِیْرًا مِّنْهُمْ یُسَارِعُوْنَ فِی الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاَكْلِهِمُ

او وینے به ته ډیر د دوی نه چه جلتی کوی په ګناه او ظلم کی او په خوړلو د دوی کی

السُّحْتَ ؕ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ﴿۶۲﴾

حرامو لره، خامخا ډیر بد دے هغه څه چه دوی نے کوی.

**تفسیر** : دا بل علت دے د موالات نهٔ کولو دپاره، او د یهودو خباثت دی۔
یُسَارِعُوْنَ : د دوی بد صفت دا دے چه چرته د گناه او زیاتی کار وی نو یهودی به ورته منډه وهی، د دوی په خلاف د مؤمنانو صفت دا دے (یُسَارِعُوْنَ فِی الْخَیْرَاتِ) دوی هر قسم نیکیانو ته جلتی کوی۔ دنیا کی چه څه فساد شروع دے د دوی سرچشمه یهودیان او نصاریٰ دی او بیا خان ته "بشر دوست" او "سوله ساتی" وائی۔
وَتَرٰی : دا دلیل دے چه دا عمل د گمراهئ او فساد ددوی هر چا ته ښکاره دے۔
یُسَارِعُوْنَ : مسارعه کی اشاره ده چه دوی په غیر د سوچ او فکر نه په عاقبت کی دا کار ونه کوی۔

| لَوْلَا یَنْهٰهُمُ الرَّبّٰنِیُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ |
|---|
| ولے نهٔ منع کول دوی لره الله والا خلقو (پیرانو) او علماؤ د وینا د دوی نه گناه لره |
| وَاَکْلِهِمُ السُّحْتَ ؕ لَبِئْسَ مَا کَانُوْا یَصْنَعُوْنَ ﴿۶۳﴾ |
| او د خوړلو د دوی حرامو لره خامخا ډیر بد دے هغه څه چه دوی ئے کوی۔ |

**تفسیر** : اُوس د دوی په ملیانو رد کوی چه هغه هم ناکاره دی او حق پټوی، او دا اوم علت دے، چه دوی کی د خیر والا خلك ډیر کم دی، اکثر ملیان او ربانیین خلك ئے هم ناکاره دی۔
الرَّبّٰنِیُّوْنَ : ددے نه مراد د نصاراؤ رهبان (پیران) دی، یا هغه خلك مراد دی چه د الله پرستئ دعوه کوی، یهود وی او که نصاریٰ، او د احبار نه د دوی لوی ملیان مراد دی، او دوی اګر که په خپله دغه گناهونه او حرام خوری نهٔ کوله لیکن نور خلك به ئے نهٔ منع کول نو پدے وجه ناکاره شول۔ نو دا خلك د دوی په نیز ربانیون او احبار وو نهٔ د الله په نیز۔
د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی :
[مَا فِی الْقُرْاٰنِ اٰیَةٌ اَشَدَّ تَوْبِیْخًا مِنْ هٰذِهِ الْاٰیَةِ] (ابن جریرؒ، ابن کثیرؒ)
یعنی په قرآن کریم کی د زجر او توبیخ (زورنے) په اعتبار سره ددے نه زیات سخت بل آیت نشته۔ یعنی چه څوك خان ته دینداره خلك او علماء وائی او د گناه نه منع نهٔ نکوی نو هغه غټ بد عمله وی۔ نو دلته دیندارو ته بدعمله پدے وجه وویل شو چه نهی عن المنکر نکوی۔ (ابن جریر)

ضحاكؒ وائی : [مَا فِي الْقُرْآنِ آيَةٌ أَخْوَفُ عِنْدِي مِنْهَا، إِنَّا لَا نَنْهَى]۔ زما په نیز په قرآن کی دا ډیر ډیرے آیت دے څکه چه مونږ هم نهی عن المنکر نهٔ کوو۔ (رواه ابن جریرؒ)

**قَوْلِهِمُ الْإِثْمَ وَأَكْلِهِمُ السُّحْتَ** : پدے کی اشاره ده چه د علماء او نیکانو ذمه واری دا ده چه خلك به د گناه د خبرو او د حرام خورئ نه منع کوی او پدے به سخت ترکیز کوی۔

د گناه ډیرے خبرے دی لکه کنځل، غیبت، بهتان، دروغ، د دین پورے توقے، الله ته د فقر نسبت کول، انبیاء او کتابونو پورے توقے کول، ډیر خلك د قرآن او حدیث د مسائلو پورے استهزاء کوی۔ بکر ابو زیدؒ په خپل کتاب (المناهی اللفظیة) کی پنځلس سوه منع شوی الفاظ جمع کړیدی نو ددے آیت پو قسم حق ئے ادا کړیدے۔ او اویا (۷۰) غلط کلمات چه خلك ئے استعمالوی د هغے تردید زمونږ په کتاب امین الفتاوی (۱) کی ذکر شویدی۔

حرام خورئ هم ډیرے زیاتی دی لکه سود، جواری، رشوتونه، د دهوکے او خیانت مال، ناروا بیوع، غلط معاملات، د رسمونو او رواجونو خوراکونه وغیره۔

**لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَصْنَعُونَ** : أَيْ مِنَ الْكِتْمَانِ۔

یعنی دوی ډیر بد کار کولو چه نهی عن المنکر ئے پریښے وو، او حق ئے پټ کړے وو۔

قرطبیؒ وئیلی دی چه دا دلیل دے چه د نهی عن المنکر پریخودونکے په شان د کونکی د منکر دے۔ او اشاره ده چه نهی عن المنکر مستقله فریضه ده په شان د امر بالمعروف او یو د بل په ځای نهٔ کافی کیږی۔

**يَصْنَعُونَ** : پدے آیت کی د علماؤ ذم (بدی) ده او مخکی آیت کی د عوامو، نو دلته ئے (يَصْنَعُونَ) وویل او هلته ئے (يَعْمَلُونَ)۔ وجه دا ده چه صنع هغه عمل ته وئیلے شی چه همیشه کولے شی او په هغے کی تجربه حاصله شی او جائز گنړلے کیږی نو ملیانو چه نهی عن المنکر نهٔ کولو نو دا عمل دوی ښه گنړلو او همیشه به ئے کولو۔

ابن ابی حاتمؒ د یحیی بن یَعمُر نه روایت کړیدے چه علی بن ابی طالب ﷺ په خطبه کی اُووئیل چه اے خلقو! ستاسو نه مخکنی خلق د گناهونو د کولو په وجه هلاك شول، کله چه هغوی په گناهونو کی مخکی شو او د هغوی علماء او مشرانو (اصحاب الحل والعقد) هغوی منع نکړل نو هغوی د الله په نیوکه کی راغلل۔ پدے وجه تاسو د نیکئ حکم کوئ او د بدو نه منع کوئ مخکی ددے نه چه ستاسو انجام هغه شی کوم چه د هغوی شو۔

| وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ ؕ غُلَّتْ اَيْدِيْهِمْ |
|---|
| او وائی یهودیان لاس د الله تعالیٰ بند کړے شویدے (بلکه) بند کړے شویدی لاسونه د دوی |
| وَلُعِنُوْا بِمَا قَالُوْا ۘ بَلْ يَدٰهُ مَبْسُوْطَتٰنِ ۙ يُنْفِقُ |
| او لعنت شویدے په دوی په سبب د هغه چه وائی دوی بلکه لاسونه د الله فراخه دی خرچ کوی |
| كَيْفَ يَشَآءُ ؕ وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ |
| څنګه چه غواړی او خامخا زیاتوی دیرو لره د دوی نه هغه کتاب چه نازل کړے شویدے تا ته |
| مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ؕ وَاَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ |
| د طرفه د رب ستا نه سرکشی او کفر، او اچولے دے مونږ په مینځ د دوی کی دشمنی او کینه |
| اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ؕ كُلَّمَآ اَوْقَدُوْا نَارًا لِّلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ ۙ |
| تر ورځ د قیامته پورے، هر کله چه بل کړی دوی اور دپاره د جنګ نو مړ کړی هغے لره الله تعالیٰ |
| وَيَسْعَوْنَ فِى الْاَرْضِ فَسَادًا ؕ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿٦٤﴾ |
| او کوشش کوی دوی په زمکه کی د فساد او الله تعالیٰ مینه نکوی د فساد کونکو سره۔ |

**تفسیر:** مناسبت:

دا د (قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ) تشریح ده یعنی یهودو چه کومے د ګناه خبرے کولے نو یوه پکی دا ده چه د الله بی ادبی ئے کړے وه۔ او پدے آیت کی اثم، نهم او لسم علت د ترک موالات ذکر دے۔ چه هغه دا دی (وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ) (كُلَّمَا اَوْقَدُوْا نَارًا) (وَيَسْعَوْنَ فِى الْاَرْضِ)۔

طبرانیؒ او ابن اسحاقؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه شاس بن قیس نومے یهودی رسول الله ﷺ ته اُووئیل: ستا رب خو بخیل دے، خرچ نهٔ کوی، نو دا آیت نازل شو۔

او ابو الشیخؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه دا آیت د بنو قینقاع یهودیانو د سردار ((فنحاص)) په باره کی نازل شویدے چه هغه وئیلی وو چه الله خو غریب دے او مونږ مالداریو، چه په هغے باندے ابوبکر صدیق ﷜ هغه وهلے وو۔ ددے تفصیل د سورة آل عمران په آیت (۱۸۱) کی تیر شویدے، هغه بیا مطالعه کړئ۔

بیا دوی دا خبره په کوم وخت کې کړې وه او ولې ئې کړې وه؟ نو ددې سبب د ابن عباس رضی الله عنهما نه دا نقل دې چه د یهودو علماء او عوام په دنیاوی بنه فراخئ کې وو، د عوامو د طرفنه به علماؤ ته د دین د وجه نه قسم قسم آمدنئ وې او عوامو هم د حلال او حرام فرق نهٔ کولو، لیکن هرکله چه نبی کریم ﷺ مدینې ته هجرت وکړو او هلته دین اسلام خور شو نو د دوی آمدنئ کمې شوې ځکه چه اکثر خلك د دوی نه جدا شول، او اسلام کې داخل شول، نو دوی وویل چه د الله لاس زمونږ نه بند شو او هغه بخل شروع کړو (او خپلو غلطو او گناهونو ته ئې نهٔ کتل) او په سورة آل عمران کې تیر شوی وو چه دوی الله ته د فقر نسبت وکړو لکه اُوس هم ډیر جاهلان چه کله د حرام رزق دروازې پرې بندې شي او روزی ئې تنګه شي نو الله ته ناکاره نسبتونه کوی۔

وَقَالَتِ الْيَهُودُ : أَيْ عِنْدَ نُزُولِ الشَّدَائِدِ بِهِمْ ۔ یعنی دوی دا خبره وکړه کله چه په دوی باندې سختیانی راغلې۔ او دا په دوی باندې امتحان وو دې دپاره چه دین اسلام ته راشی لیکن دوی نهٔ پوهیدل۔

يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ : ((د الله لاس بند شویدې))۔ دا کنایه وه د بخل نه یعنی هغه بخیل شو (العیاذ بالله)۔ نو لاس د الله شته (کما یلیق بشانه) لیکن د (مَغْلُوْلَة) صفت وئیل ورله ناکاره صفت وو نو ځکه پرې الله ددې مطابق رد وکړو۔

دا هغه مجرمان دی چه خپل خالق ئې هم پرینښودو او هغه ته ئې بد بد نسبتونه وکړل، ډیر لوی جرأتمند وو۔ موسیٰ علیه السلام الله ته وفرمایل: [اِجْعَلْ لِيْ اَنْ لَّا اُذْكَرَ اِلَّا بِخَيْرٍ]

ما له دا خصوصیت راکړه چه خلك زما صفتونه کوی او هیڅوك مې بدی نهٔ وائی۔ الله ورته وفرمایل: [يَا مُوْسٰى لَمْ اَجْعَلْهَا لِنَفْسِيْ فَكَيْفَ اَجْعَلُهَا لَكَ]

ما دا د خپل ځان دپاره نهٔ دې ګرځولې نو تا له به ئې څنګه وګرځوم۔

(حلية الاولياء لابی نعيم ۱۹۸/۳)

(دا مشرکان او کفار زما بندګان دی زهٔ ورله رزق ورکوم او ما پیدا کړیدی او ما پسې خبرې کوی) نو پدې کې د یو مؤمن دپاره لویه تسلی پرته ده چه زمونږ د رب پسې دا مجرمان خبرې کوی نو مونږ څوك یو؟!

غُلَّتْ اَيْدِيْهِمْ : دا جمله خبریه هم جوړیږی یعنی ددوی لاسونه بند کړې شویدی، یعنی د بخل دا بد صفت خو په یهودو کې همیشه دپاره راروان دې، نو د خپل بد صفت نسبت رب ته کوی۔

او دا جمله دعائیه هم جوړیږي : یعني بند دې کړې شي د دوی لاسونه د هر خیر نه. او په جهنم کې دې هم بند کړې شي. او (غلت) نې ماضي راوړه دپاره د تیقن او تفاؤل.

وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا : یعني دوی ددې ناکاره وینا په وجه په لعنت اخته شو او د الله د رحمت نه جدا شو. او بخل، حسد، بزدلي او ذلت د دوی قسمت جوړ شویدې.

﴿بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ﴾ یعني الله خو ډیر فضل او کرم او ډیر غټ جود او سخا والا دې. د هغه سره خو د هر شي خزانه ده، د مخلوق سره چه هر نعمت وي دا د الله د طرف نه دې. پدې کې د هغه هیڅوك شریك نشته، هغه دا هر څه مونږ دپاره پیدا کړیدي.

﴿بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ﴾ بلکه د الله دواړه لاسونه کولاؤ دي) دې نه ښکاره ثابتیږي چه د الله تعالیٰ دوه لاسونه دي، لیکن د مخلوق سره مشابه نهٔ دي، لکه الله د خپل ځان په باره کې فرمائي : ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ (الشوری: ١١) د هغه په شان هیڅ شے نشته، (نهٔ په ذات کې او نهٔ په صفاتو کې) او هغه آوریدونکے او لیدونکے دے)

همدا د سلف صالحینو او ائمه کرامو مذهب دې. د الله د لاسونو تاویل په قدرت، یا نعمت، رحمت یا احسان سره کول لکه چه بعض گمراه ډلے ئې کوي صحیح نهٔ دي. دارنګه دا آیت د هغوی غابسونه ماتونکے جواب دې. ځکه د ذکر شوي دریے تاویلاتو نه هیڅ یو تاویل په قطعي توګه سره نشي برابریدې !!. دوه قدرته یا دوه نعمته یا دوه احسانه ئې فراخه دي دا معنیٰ نشي جوړیدې.

يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاءُ : اشاره ده چه الله تعالیٰ د خپل حکمت موافق انفاق کوي په هغه باندې د هیچا اعتراض نشي کیدې.

وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا : (لیزیدن) فعل او (ما انزل الیك) ئې فاعل او (کثیرا) ئې مفعول اول او (طغیانا وکفرا) ئې مفعول ثاني دې.

یعني قرآن به دوی لره طغیان (سرکشي) او کفر زیاتوي او زیات به ئې کړي.

مطلب دا دې چه اے محمد (ﷺ) ! الله چه تا له قرآن او د اسلام په شان نعمت درکړیدې، داستا د دشمنانو (یهود وغیره و) دپاره مصیبت جوړ شویدې، ددوی سرکشي به زیاته کړي. مؤمنان خو د قرآن کریم نه ایمان، نیك عمل او علم نافع حاصلوي، او کافران چه د مسلمانانو سره حسد کوي نو په کفر او طغیان کې زیاتیږي. دا ولے زیاتیږي؟ ځکه چه دوی ظالمان دي ﴿وَلَا يَزِيدُ الظَّالِمِينَ إِلَّا خَسَارًا﴾ او په قرآن باندې د ظالمانو تاوان زیاتیږي، ځکه چه هر کله یو آیت یا سورت نازلیږي او دوی ته بیان شي نو دوی د هغه نه انکار او

سرکشي وکړي، نو طغيان او کفر ئے لا زيات شي. يعني دوی کې مخکې نه طغيان او کفر شته ليکن په قرآن سره نور هم زيات شي او د الله نه ډير جدا شي.

وَاَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ : دا د دوی دپاره الله تعالىٰ عذاب بيانوی چه ما د يهودو او نصاراؤ ترمينځ دشمني او بغضونه تر قيامته پورے اچولي دي. يا دا چه د يهوديانو خپل مينځ کې، او دارنګه د نصاراؤ د فرقو خپل مينځ کې ډيره دشمني ده. پدے وجه يهود په يو اويا او نصارىٰ په دوه اويا ډلو تقسيم شويدي.

كُلَّمَآ اَوْقَدُوْا نَارًا : دا بل علت دے يعني دوی د رسول او مؤمنانو په مقابله کې جنګونه راپورته کوی، نو آيا دوی د موالات لائق دي؟.

لِلْحَرْبِ : فِيْ مُقَابَلَةِ الرَّسُوْلِ وَالْمُؤْمِنِيْنَ. يعني کله چه دوی د رسول او مؤمنانو په مقابله کې اُور د جنګ راپورته کړي، او يو تنظيم ددے دپاره جوړ کړي چه د مسلمانانو پروګرامونه او د هغوی علماء ختم کړي، نو الله د هغوی اُور مړ کړي او پلان ئے شنډ کړي او په يو کار ئے مصروف کړي چه هغه ترے پاتے شي او مسلمان خپل کار جاري وساتي، نو دوی به هميشه دپاره دغه شان سترې ستومانه وي. ليکن د الله دين او مؤمنان به نشي ختمولے، پدے آيت کې ايمان والو ته ډير لوی زيرے دے چه که کافران د اسلام په خلاف هرڅومره زور ولګوی ليکن اسلام نشي ختمولے. دوی د مدرسو د بندولو او د اهل حقو د ختمولو ډير پروګرامونه وکړل ليکن الله تعالىٰ د هغوی مدافعت وکړو او دوی ئے په نورو مصيبتونو کې مصروف کړل. او داسے کار به د هر باطل پرست سره کيږي چه کله د اهل حقو په خلاف پروګرامونه جوړوی نو الله به ئے په مصيبتونو مصروفه کوی.

او د رسول الله ﷺ په زمانه کې هم چه يهوديانو د رسول الله ﷺ په خلاف د جنګ اُور راپورته کول غوختلي دي او د څه شر خورولو اراده ئے کړيده نو الله خپله د هغوی ترمينځ اختلاف پيدا کړيدے، او د هغوی شر ئے د رسول الله ﷺ نه لرے کړيدے، لکه د اُحد، او احزاب او غزوه د بني نضير او بنو قريظه وغيره واقعاتو کې دوی د مؤمنانو په خلاف هر قسم چلونه کړي وو ليکن ناکام او ذليله شو.

يا مراد دا دے چه دوی کله هم د چا په خلاف جنګ کړے نو مغلوب او مقهور شويدی او د الله نصرت هيڅ کله هم دوی ته نه دے حاصل شوے.

نَارًا لِلْحَرْبِ : دا کنايه ده د اسباب د جنګ او مکرونو او چلونو نه.

وَيَسْعَوْنَ فِي الْاَرْضِ فَسَادًا : دا بل علت دے. د فساد في الارض نه مراد د دين اسلام

او د قرآن او سنت نه خلك منع كول او د هغې مقابله كول، او د مسلمانانو په معاشره كې فتنې خورول او د يهوديت او نصرانيت اشاعت كول او په اهل حقو باندې پابندیانې لګول، او هر قسم فساد ته شامل دې ځکه چه پدې سره كفر او شرك عام كيږي او دا د دنيا د خرابۍ سبب دې۔

| |
|---|
| وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا |
| او كه چرې كتاب والو ايمان راوړې وې او ځان ئې بچ كړې وې د ګناهونو نه |
| لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَلَاَدْخَلْنٰهُمْ |
| خامخا رژولی به وې مونږ د هغوی نه بديانې د هغوی او خامخا داخل كړی به وو مونږ دوی لره |
| جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿٦٥﴾ وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ |
| جنتونو د نعمتونو ته۔ او كه چرې دوی قائم كړې وې تورات او انجيل او هغه كتاب |
| اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ لَاَكَلُوْا |
| چه نازل شوېدې دوی ته د طرفه د رب د دوی نه خامخا خوړلی به وې دوی |
| مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ ؕ مِنْهُمْ اُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ؕ |
| د خپل بره طرف نه او د لاندې د خپو د دوی نه، بعض د دوی نه ډله ده درميانه تلونكې |
| وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ سَآءَ مَا يَعْمَلُوْنَ ﴿٦٦﴾ |
| او ډير د دوی نه بد دی هغه عملونه چه دوی ئې كوی |

**تفسير**: ۱- مناسبت: مخكې د هغوی فسادونه ذكر شو او د ترك موالات اسباب او علتونه بيان شو نو اوس هغوی ته د حق دين (او توبې ويستلو) دعوت دې په طريقه د بشارت اخرويه سره، چه ګناهونه به مو معاف كړم او د جنت نعمتونه به دركړم۔

۲- مناسبت: اِنَّ اللّٰهَ ضَيَّقَ عَلَيْهِمْ لِكُفْرِهِمْ وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا لَوَسَّعَ عَلَيْهِمْ۔

الله تعالیٰ په دوی باندې تنګی د دوی د كفر په وجه راوستې وه نو كه دوی صحيح ايمان راوړې وې نو الله به پرې فراخي راوستې وې۔

ددې نه معلومه شوه چه اقتصاد په اسلام باندې برابريږی۔

اهل بدع د خپلو خیتو د خاطره په حق عمل نهٔ کوی نو دلته الله فرمائی : چه په صحیح ایمان او تقوئ سره په انسان باندے رزقونه فراخه کیږی۔

اٰمَنُوْا : د ایمان نه صحیح ایمان مراد دے په الله او په آخری رسول او قرآن باندے۔

سَیِّاٰتِهِمْ : یعنی هر قسم گناهونه او ناکاره صفات ځکه چه په اسلام سره ټول گناهونه معاف کیږی۔

او سیئات کی عذابونو ته هم اشاره ده یعنی په دنیا کی به د دوی نه عذابونه دفع شوی وے او په آخرت کی به نعمتونو ته رسیدلی وے۔

اَقَامُوا التَّوْرٰةَ : د تورات او انجیل د قائمولو معنیٰ دا ده چه د هغے احکام او حدود ئے نافذ کړی وے او د نبی آخر الزمان ﷺ چه کوم صفات په هغه دواړو کی ذکر شویدی په هغے باندے ئے ایمان راوړے وے چه هغه دوی لره په ایمان کی داخلولو باندے مجبوره کوی او د قرآن کریم په کلام الهٰی کیدو باندے ئے ایمان راوړے وے، نو الله تعالیٰ به د آسمانونو او زمکے نه د خپلو برکتونو دروازے په دوی باندے راکولاوے کړے وے، او د روزی ټول اسباب به ئے ورته آسان کړی وے او د ونو میوے او غلے به ډیرے پیدا کیدلے۔

اقاموا التورات : د تورات او انجیل په قائمولو سره ایمان او تقوئ حاصلیږی، نو دا د تقوئ او ایمان بل تعبیر دے۔

دا آیت دلیل دے چه د الله تعالیٰ بندگی او اطاعت د رزق د فراخئ سبب دے، لکه چه الله تعالیٰ په سورة الاعراف آیت (۹٦) کی فرمایلی دی:

﴿ وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ﴾

چه (که کلو والو ایمان راوړے وے او تقوئ ئے اختیار کړے وے نو مونږ به په دوی باندے د آسمان او زمکے نه د برکتونو دروازے کولاوے کړے وے)۔

لَاَكَلُوْا : ددے فائده دا ده چه په ایمان او عمل صالح سره انسان ته الله تعالیٰ په دنیا کی هم بدلے ورکوی او په آخرت کی هم، ځکه چه د الله رحمت فراخه دے۔ نو مخکی (لَكَفَّرْنَا) کی آخرت مراد دے او دلته دنیا شوه۔

او دلته ئے خوراك ذکر کړو ځکه چه د عامو انسانانو خوراك ته ډیرے سترگے پورته کیږی۔

مِنْ فَوْقِهِمْ : ۱-دا یا کنایه ده د ټولو اطرافو نه۔ ۲- یا (فوقهم) ځکامو ته او (تحت ارجلهم) عوامو ته وائی، یعنی دوی ته به دا رزقونه د ځکامو او عوامو د طرفنه راتللے۔

۴- یا فوق آسمان ته او تحت زمکے ته وائي. دلته تول مراد دی.
أُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ : درمیانه روان دی. یعنی په حق باندے روان دی. د اهل کتابو نه چه کومو خلقو په نبی کریم ﷺ باندے ایمان راوړو لکه عبد الله بن سلام، نجاشی او سلمان الفارسی رضی الله عنهم وغیرهم نو الله تعالیٰ د دوی صفت وکړو چه دا یو جماعت او ډله ده چه درمیانه روان دی یعنی په حق. لیکن دوی ډیر کم وو او اکثرو اهل کتابو بد اعمال کول، حق ئے بدل کړو او د هغے نه ئے اعراض اُوکړو، او د اسلام او د مسلمانانو په دشمنئ کی ئے د حد نه تجاوز اُوکړو.

| يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ |
|---|
| اے رسوله! (ﷺ) ورسوه ټول هغه چه نازل شویدے تا ته د طرفه د رب ستا نه |
| وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ |
| او که تا داسے ونکړل نو نهٔ دے رسولے تا هیڅ پیغام د الله تعالیٰ او الله به ساتی تا لره |
| مِنَ النَّاسِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿٦٧﴾ |
| د خلقو نه یقیناً الله تعالیٰ هدایت نهٔ کوی قوم کافرانو ته. |

**تفسیر** : ددے ځای نه روستو بیان د طرق التبلیغ دے یعنی اهل کتابو ته به په کومو طریقو دعوت ورکولے شی سره د بیان د خباثتو د هغوی نه، او علتونه د ترك د موالات د هغوی نه. سره د تحذیر (بچاؤ) نه د هغوی د صفاتو نه او د هغوی سره د تشبه کولو نه. او په هغوی باندے نهٔ دهوکه کیدل او ددے خبرے بیان چه دوی د الله تعالیٰ دشمنان دی او د هغه اولیاء نهٔ دی.

طرق التبلیغ دا دی: اول (بَلِّغْ مَا أُنزِلَ إِلَيْكَ) (قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَسْتُمْ) (إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا) (لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ) (قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا) (لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً) یعنی په تبلیغ کی نرم او سخت دشمن پیژندل ضروری وی.

او علی العموم د یهودیانو خباثتونه او د هغوی د موالات پریخودل او هغوی صحیح لارے ته رابلل بیان شویدی. او د امت اسلامیه دپاره پکی ډیرے فائدے دی.

الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ په لفظ د (الرسول) سره پدے وجه مخاطب کړو چه هغه ته دا خبره رایاده کړی چه د رسالت منصب ددے خبرے تقاضا کوی چه دا د کوم پیغام په رسولو

مکلف شویدے نو دا په پوره ذمه واریٔ سره ادا کړی او پدے کی هیڅ تقصیر ونکړی۔
امام شوکانیؒ لیکلی دی چه د (بلغ ما انزل الیك) د عموم نه دا خبره معلومیږی چه په رسول الله ﷺ باندے د الله د طرف نه واجب وه چه په هغه باندے کومه وحی نازلیږی خلقو ته ئے بغیر د کمی زیاتی نه اُورسوی۔ د هغے نه هیڅ شے پټ نکړی، او دا ددے خبرے دلیل دے چه نبی ﷺ د الله د دین هیڅ حصه په پټه سره کوم خاص شخص ته نهٔ ده خودلے چه هغه ئے نورو ته نهٔ وی خودلی،
پدے وجه په صحیحینو کی د عائشه رضی الله عنها نه روایت شویدے هغه فرمائی:
[مَنْ زَعَمَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ كَتَمَ شَيْئًا مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ فَقَدْ أَعْظَمَ عَلَى اللّٰهِ الْفِرْيَةَ وَاللّٰهُ يَقُوْلُ: يَا أَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ]۔
یعنی چه څوك دا گمان کوی چه محمد ﷺ د وحی څه حصه پټه ساتلے وه، نو دے په الله باندے ډیر لوی دروغ جوړوی ځکه چه الله فرمائی: که تا ټوله وحی ونهٔ رسوله نو تا د الله هیڅ پیغام نهٔ دے رسولے۔
په صحیح بخاری کی د ابوجُحیفه وَهْبَ بن عبد الله السُوائیؒ روایت دے چه ما د علی بن ابی طالب رضی الله عنه نه تپوس اُوکړو چه آیا تا سره د وحی څه حصه شته چه په قرآن کی موجود نهٔ وی؟ نو هغه اُووئیل چه نهٔ، [لَا وَالَّذِيْ فَلَقَ الْحَبَّةَ وَبَرَأَ النَّسَمَةَ إِلَّا فَهْمًا يُعْطِيْهِ اللّٰهُ فِي الْقُرْآنِ وَمَا فِيْ هٰذِهِ الصَّحِيْفَةِ] (بخاری: ٣٠٤٧)
قسم په هغه ذات چه هغه دانے څیری کړی او روح ئے پیدا کړے سوا د هغه فهم (پوهے) د قرآن نه چه الله ئے یو بنده ته ورکوی او څه چه پدے صحیفه کی دی۔ راویؒ وائی چه ما اُووئیل: پدے صحیفه کی څه دی؟ هغه اُووئیل چه د دیت احکام، د قیدی آزادول او دا چه د کافر په بدله کی به مسلمان نشی قتل کیدے)۔
د آیت نه دا هم معلومیږی چه که د وحی څه حصه نبی ﷺ پټولے نو د رسالت ذمه واری نهٔ ادا کیدلے۔ او په حجة الوداع کی شریك تمامو صحابه کرامو ددے خبرے گواهی ورکړه چه تا د الله پیغام بغیر د کمی زیاتی نه خلقو ته اُورسولو او امانت دِے پوره طریقے سره ادا کړو لکه چه امام مسلمؒ د جابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه نبی ﷺ د خطبے په وخت کی د خلقو نه تپوس اُوکړو او ټولو گواهی ورکړه چه آؤ تا پیغام اُورسولو۔
او دا هم معلومه شوه چه دین کامل مکمل شویدے او د امت دپاره ټول ضروری احکام خودلے شویدی نو څوك چه دا ناقص گنړی لوی دروغجن دے۔

وَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ :

سوال دا دے چه دلته شرط او جزاء یو شان مطلب ورکوی، یعنی که تبلیغ دِے ونکړو نو تا تبلیغ ونکړو او ددے خو پوره فائده نهٔ راوخی؟

نو اهل التفسیر پدے مقام کی ډیر توجیهات کړیدی :

(۱) یو دا چه د (ان لم تفعل) سره بعض تبلیغ مراد دے او (فما بلغت رسالته) کی کل مراد دے۔ [اَیْ اِنْ لَّمْ تَفْعَلْ بَعْضَهٗ فَمَا بَلَّغْتَ كُلَّ الرِّسَالَةِ]

که تا بعض حصه تبلیغ پریخودو نو تا ټول رسالت نهٔ دے رسولے، یعنی که د وحی پدے پیغام کی یوه مسئله هم درنه پاتے شوه نو ټوله پیغمبری ډِے نا منظوره ده۔

(۲) بَلِّغْ جَهْرًا وَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ جَهْرًا فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ۔ ښکاره تبلیغ وکړه (کوم ځای چه جهر ته ضرورت وی) که په ښکاره تو که ډِے ونهٔ رسولو نو تا پیغام نهٔ دے رسولے۔

(۳) بَلِّغْ مِنْ غَيْرِ مَخَافَةِ النَّاسِ وَمُدَاهَنَتِهِمْ وَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ۔

یعنی پیغام ورسوه په غیر د یرے او د مداهنت د خلکو نه او که دا کار ډِے ونکړو او د خلکو نه ډِے یره وکړه نو تا به پیغام نهٔ وی رسولے۔

ډیره سخته خبره ورته الله تعالیٰ کړیده۔ نو پدے خبره به رسول الله ﷺ ته خو مره زور ملاؤ شوے وی۔

**یَعْصِمُكَ** : اَیْ یَمْنَعُكَ مِنْ فَتْكِهِمْ ۔ تا به محفوظ کوی د هغوی قتل کولو نه تا لره۔ (المنار) او نفس تکلیف خو رسول الله ﷺ ته رسیدلے شی لکه په اُحُد وغیره کی۔

په ((والله یعصمك من الناس)) کی د الله وعده ده چه هغه به د خپل رسول ﷺ حفاظت کوی۔ نو همدغسے اُوشوه چه الله تعالیٰ په هر قدم کی د هغه حفاظت اُوفرمایلو۔

بخاری او مسلم او ابن ابی حاتم وغیرهم د عائشه رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه ددے آیت د نزول نه مخکی به د نبی ﷺ نګرانی (حفاظت) کیدو، کله چه دا آیت نازل شو نو نبی ﷺ د خیمے نه سر رابهر کړو وے فرمایل : اے خلقو ! واپس لاړ شئ اُوس به زما حفاظت الله تعالیٰ کوی۔

الله تعالیٰ د هغه حفاظت د مکے د مشرکانو نه اُوکړو، نو د زرګونو دشمنانو باوجود هغوی د رسول الله ﷺ یو ویښته ته هم نقصان اُونهٔ رسولو۔ په ابتداء کی ئے د تره ابو طالب په ذریعه حفاظت اُوکړو کوم چه د قریشو منلے شوے سردار وو۔ د ابو طالب د مرګ نه روستو مشرکانو څه ضررونه اُورسول لیکن الله د مدینے انصار د نبی ﷺ د

حفاظت دپاره تيار كړل چه هغوى د نبى ﷺ هر قسم مدد اُوكړو، او په خپل ځانونو ئے لوبے اُوكړے خو د نبى ﷺ حفاظت ئے اُوكړو، د اهل كتابو يا د مشركانو نه چه كله هم چا نبى ﷺ ته نقصان رسول غوختل نو الله د هغوى مكرونه ناكام كړل، يهوديانو جادو اُوكړو نو الله معوذتين د علاج په توګه نازل كړل. او د خيبر يهوديانو چه كله په غوښه كى زهر واچول او په نبى ﷺ باندے ئے د خوړلو اراده اُوكړه نو د وحى په ذريعه الله تعالىٰ نبى ﷺ ته خبر وركړو او د هغوى د شر نه ئے بچ اُوساتلو.

ماوردى په خپل كتاب «اعلام النبوة» كى د نبى كريم ﷺ د عصمت او حفاظت د عنوان لاندے داسے واقعات ليكلى دى چه په هغے كى دشمنانو د نبى ﷺ د قتل ارادے كړيدى، ليكن الله تعالىٰ د هغه حفاظت كړيدے. پدے ضمن كى ئے د ابوجهل، معمر بن يزيد او كلدة بن اسد واقعات ذكر كړيدى چه هغوى د نبى كريم ﷺ قتل غوختل ليكن الله كله په يرونكے اژدها سره او كله د خطرناك اُوښ په ذريعه دغه دشمنان داسے مرعوب كړيدى چه د هغوى د تيختے لاره نۀ وه.

لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ : دا علت دے د مخكى (يَعْصِمُكَ) دپاره يعنى الله به دغه كسان مقصد ته نۀ رسوى كوم چه ستا د ضرر پسے لګيدلى وى بلكه دوى به نا مراده او ناتوانى وى او د الله وعدے به پوره كيږى تردے چه د هغه دين پوره شى. (المنار)

يا مقصد دا دے چه ستا په دعوت به چا ته هدايت كيږى او چا ته نۀ خو چه څوك د كفر اراده لرى او انابت پكى نۀ وى نو هغه ته به هدايت نۀ كيږى.

| قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَسْتُمْ عَلٰى شَىْءٍ حَتّٰى تُقِيْمُوا التَّوْرٰىةَ |
|---|
| ته ووايه ! اے كتاب والو! نۀ يئ تاسو په هيڅ شى (د دين) تردے چه عمل وكړئ په تورات |
| وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ |
| او انجيل او په هغه كتاب چه نازل كړے شويدے تاسو ته د طرفه د رب ستاسو نه |
| وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ |
| او خامخا زيات به كړى ډيرو لره د دوى نه هغه كتاب چه نازل شويدے تا ته |
| مِنْ رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۚ فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٦٨﴾ |
| د طرفه د رب ستا نه سركشى او كفر لره نو مۀ غمجن كيږه په قوم كافرانو. |

**تفسیر**: پدے کی بله طریقه د دعوت ده او دا بیان دے د (بَلِّغْ)

شان نزول

د تفسیر علماؤ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه څه یهودیان د رسول الله ﷺ خواته راغلل (چه په هغوی کی رافع بن جاریه، سلام بن مِشْکم، مالك بن الصیف او رافع بن حُرَیْمِله وو) او وے وئیل چه آیا ته ددے خبرے اقرار نهٔ کوے چه تورات د الله کتاب دے؟ نبی ﷺ اُووئیل چه آؤ، نو هغوی اُووئیل چه مونږ په هغے باندے ایمان راوړو او د هغے نه سِوئ نورو نه انکار کوو.

نو دا آیت نازل شو چه اے زما رسوله (ﷺ)! ته اُووایه چه اے اهل کتابو! تاسو په هیڅ دین باندے نهٔ یئ ترڅو چه تاسو په تورات او انجیل کی په موجود اوامرو او نواهیو باندے عمل اُونکړئ چه په هغے کی دا حکم د تولو نه رومبے دے چه تاسو به د نبی کریم ﷺ اتباع کوئ او په قرآن به هم عمل کوئ. (الطبری والتحریر والتنویر)

حَتّٰی تُقِیْمُوا التَّوْرٰةَ وَالْاِنْجِیْلَ : ۱- ددے یوه معنیٰ دا ده چه د اهل کتابو سره د تورات او انجیل کوم باقیمانده احکام پاتی دی سره ددے نه چه په هغے کی تبدیلی او تحریف هم شویدے چه په هغے باندے عمل وکړی ځکه چه ددے کتابونو په احکامو او اوامرو او نواهیو کی تحریف ډیر کم شویدے او اکثر تحریف په قِصَص او اخبار او عقائدو کی شویدے او د هغے د اقامت امر نهٔ کیږی، او شك نشته پدے کی چه د تورات او انجیل احکام او مواعظ او نصائحو کی ډیر داسے څیزونه شته چه په هغے کی هیڅ عیب نشته او په هغے کی د خلکو دپاره هدایت دے نو که دوی دغه کتابونه قائم کړی سره د تحریف نه نو دوی به په یو معتبر شی باندے روان شی چه هغے ته دین وئیلے شی، او کله چه هغه قائم نکړی او د هغے په خلاف روان شی نو دوی به د هر شی نه خالی شی چه هغے ته دین وئیلے شی او دوی به په خپل دین باندے کامل مؤمنان نهٔ حسابیږی.

او دا صحیح معنیٰ ده. او ددے نه دا نهٔ معلومیږی چه گنے تورات او انجیل قائمولو باندے امر کول ددے تقاضا کوی چه د هغوی دین محفوظ دے.

۲- دویم مطلب دا بیان شویدے چه دلته حقیقی او صحیح تورات او انجیل قائمولو باندے امر شویدے او دا دے لره مستلزم ده چه دوی به ددے تالاش کوی چه کوم کی

تحریف شویدے او کوم کی نهٔ، چه پدے کی حق او باطل معلوم کړی لیکن دا کار انتهائی مشکل دے، نو بیا به دوی په حق دین باندے روان شی. لیکن که دوی د قرآن کریم اتباع وکړی نو ددے تولو مشقتونو نه به خلاص شی مګر دوی خپل صحیح کتابونو باندے هم عمل ونکړو او نهٔ یے د قرآن اتباع شروع کړه نو په حق دین روان نشو،

نو ګویا که آیت دوی ته دا خبره وربنائی چه کله دوی د قرآن کریم اتباع ونکړی نو دوی باندے به لوی مشقت لازم وی چه هغه تالاش کول د حق تورات او انجیل دی، او د هغے نه روستو به دوی په یو شی د حق باندے روان شی لیکن بیا به هم تول حق باندے روان نهٔ وی اګرکه حقیقی تورات او انجیل قائم کړی، او بیا چه کله دا کتابونه په خپل حقیقت باندے پاتے هم نهٔ دی نو دوی به خامخا په حق باندے روان نهٔ وی نو معلومه شوه چه دوی په هیڅ شی باندے مطلقاً روان نهٔ دی۔ نهٔ یے خپل صحیح کتابونه راواخستل او نهٔ حق قرآن۔

بیا **سوال** راپیدا شو چه هرکله دوی سره حق دین نشته نو بیا دوی ته الله تعالیٰ د تورات او انجیل د قائمولو حکم ولے کوی سره ددے نه چه هغه په قرآن کریم باندے منسوخ شویدی ؟ **جواب** دا دے چه هر عقلمند پدے کی هیڅ شك نهٔ کوی چه دا اهل کتابو دپاره دا غوره ده چه د خپل دین په اصلی احکامو عمل وکړی ځکه چه کله دوی په اصلی احکامو عمل شروع کړو نو د ډیرو دروغو او تحریف او عناد او ضرر او فساد فی الارض او د هلاکولو د فصل او د نسل او د زنا نه به بچ شی۔

نو د اول تفسیر په بناء به د قرآن مقصد دا وی چه دوی ته تیزی ورکوی چه که تاسو ایمان په قرآن نهٔ راوړئ نو کم از کم په خپل دین خو عمل شروع کړئ دے دپاره چه نبی کریم ﷺ او د هغه ملګری د دوی د شرونو او ضررونو نه محفوظ شی لیکن کله چه دوی په خپل دین باندے عمل شروع هم کړو بیا به هم دوی په حق او کامل دین باندے روان نهٔ وی بلکه د آیت نه دا معلومیږی چه دوی به په یو شی د دین باندے وی چه هغه د نهٔ دین نه غوره ده، او دا ترے نهٔ معلومیږی چه دوی به په دغه وخت کی په تول حق او کامل دین باندے روان وی ځکه چه دا صرف اسلام دے چه د الله په نیز باندے کامل مکمل دین دے۔

انتهیٰ ما نقله القاسمی عن بعض المحققینؒ)

**عَلٰی شَیْءٍ** : اَیْ عَلٰی دِیْنٍ یُعْتَدُّ بِهٖ)۔

یعنی په یو داسے دین باندے چه هغه معتبر وی د الله په نیز۔ دوی خو په یو شی روان دی چه هغه ګمراهی ده، لیکن په صحیح دین نهٔ دی روان۔

او پدے تعبیر کی انتهائی تحقیر او سپکاوے دے د دوی یعنی ستاسو دین داسے فاسد او باطل دے چه هغه ددے مستحق نهٔ دے چه هغے ته څه شے وویل شی۔ (القاسمیؒ)

وَمَآ اُنۡزِلَ اِلَيۡكُمۡ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ : ١- ددے نه مراد قرآن کریم دے چه پدے سره د پخوانو انبیاؤ علیهم السلام دینونه کامل شویدی۔ ځکه چه قرآن کریم موجوده یهود او نصاراؤ ته هم راغلے دے۔

٢- یا ددے نه مراد هغه وحی ده چه پخوانو انبیاؤ ته ورکړے شوے وه چه په هغے کی د رسول الله ﷺ د بشارت خبره هم وه۔ (روح المعانی والمنار)

او دغه شان مصداق په ﴿وَلَوۡ اَنَّهُمۡ اَقَامُوا التَّوۡرٰىةَ وَالۡاِنۡجِيۡلَ وَمَاۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡهِمۡ مِّنۡ رَّبِّهِمۡ﴾ کی هم تیر شو، فرق دا دے چه هلته د تیر شوے زمانے حال بیانیدو او دلته د موجوده زمانے خلکو ته خطاب دے، او په دواړو زمانو کی دوی باندے حجت قائم شویدے، نو دوی دغه کتابونه مخکی هم نهٔ وو قائم کړی او نهٔ ئے ددے خطاب په وخت کی قائم کړل، او د دوی دا وس نهٔ وو چه په هغه زمانه کی ئے قائم کړی او نهٔ موجوده زمانه کی نو پدے کی د دوی پدے دعوئ باندے رد دے چه دوی وئیلی وو چه زمونږ د آخری رسول تابعدارئ ته ضرورت نشته ځکه چه مونږ د پخوانو انبیاؤ پسے روان یو نو الله ورته فرمائی چه تاسو نهٔ په پخوانو کتابونو عمل کړیدے او نهٔ په موجوده کتاب (قرآن) باندے۔ (المنار ٦/٣٩٢)

مفسرین لیکی : [أَخۡوَفُ آيَةٍ فِي الۡقُرۡآنِ] : دا آیت هم په قرآن کریم کی ډیر ډیرے آیت دے۔ ځکه چه الله فرمائی چه تاسو بی دینه یئ چه آسمانی کتابونه ونهٔ دروئ او په هغے عمل ونکړئ نو هغه خلك بی دینه دی چه د هغوی په مُلك کی او د هغوی په بدن کی قرآن قائم نهٔ وی او په هغے عمل نهٔ وی۔

صاحب المنار وائی : پدے کی عبرت دا دے چه مسلمانان به په هیڅ معتبر دین روان نهٔ وی تردے چه قرآن کریم قائم کړی او ددے هدایت قبول کړی ځکه چه د الله حجت په ټولو بندګانو باندے یو شان دے، نو کله چه الله تعالیٰ د اهل کتابو نه دغه تقلیدونه نهٔ قبلوی کوم چه دوی لره د وحی نه منع کړیدی او سره ددے نه چه په دغه کتابونو کی تحریف او زیادت او نقصان هم شویدے، نو ډیره لائقه ده چه مونږ نه به هم دغه شان کار نهٔ قبلوی سره ددے نه چه زمونږ کتاب محفوظ هم دے۔ لیکن عام خلك ددے نه غافله دی او مذاهبو ته په نسبت کولو باندے راضی شویدی او زمونږ د مشرانو امامانو اقتداء نهٔ کوی او د دین حکمتونو او مقاصدو ته نظر نهٔ کوی۔ او هر کله چه دین ته نسبت کول په آخرت

کې فائده نهٔ ورکوي مګر هله چه د دین کتاب قائم کړے شي نو پدے وجه الله تعالیٰ د دغه دلیل نه روستو د دین اصول بیان کړیدي کوم چه د اقامت د کتابونو الهیهٔ مقصود دے چه په هغے باندے جزاء او ثواب مرتب دے۔ (المنار)

وَلَيَزِيدَنَّ : یعني د ډیرو اهل کتابو دپاره قرآن کریم طغیان (سرکشي) او کفر زیاتوي ځکه چه دوی په الله او په رسولانو باندے صحیح ایمان نهٔ لري او نهٔ په صحیح عمل روان دي کوم ته چه دغه کتابونو دعوت ورکړیدے بلکه دوی د خپلو مشرانو باطل تقلیدونو پسے روان دي او جنسي عصبیت (تعصب) راخستي دي، او غلط عادات او ردي عملونو کې اختهٔ دي، نو پدے وجه دوی قرآن ته د انصاف په نظر نهٔ ګوري او دوی سره حق دین نشته چه په هغے باندے عمل وکړي او هغه عمل د دین اسلام حقیقت معلوملو ته رانږدے کړي او پدے خبره پوهه شي چه د الله دین یو دے مخکني دینونه ئے ابتداء وه او دا دین اسلام ئے اتمام (پوره والے) دے، بلکه دوی اسلام او قرآن ته د تعصب او ظلم په نظر ګوري نو دائے سبب د زیادت د کفر او طغیان شو۔

او هرچه په دوی کې لږ خلك دي نو هغوی د توحید حفاظت کړیدے او دغه تقلیدونو د حق د رڼا نه نهٔ دي منع کړي، نو هغوی قرآن ته د بصیرت په نظر ګوري او پدے پوهیږي چه دا د رب د طرفنه حق کتاب دے او دا نبي حق نبي دے چه د دوی په کتابونو کې ئے زیرے ورکړے شویدے نو په جلتئ سره په دهٔ باندے ایمان راوړي۔ (المنار ۳۹۳/۶)

(ما انزل الیك) : مخکې ئے (ما انزل الیهم) وویل او دلته ئے نسبت رسول الله ﷺ ته وکړو دے کې فرق دا دے چه اول کې اشاره ده چه په قرآن کریم باندے اهل کتاب هم مخاطب دي او هغوی ته هم پدے باندے د ایمان دعوت ورکړے شویدے۔ او دلته ئے نسبت رسول الله ﷺ ته وکړو پدے کې اشاره ده چه ددے کتاب رسول الله ﷺ ته نازلیدل دا سبب د طغیان او د کفر د دوی دے، او دوی پدے قرآن پدے وجه کفر نهٔ کوي چه ګنے ددے د عقائدو او آدابو او شرائعو نه منکر دي او دا بد ګڼري بلکه د دوی د رسول الله ﷺ او ددهٔ د قوم عربو سره دشمني ده۔ ځیني وائي : دا فائده کوي چه دوی د رسول الله ﷺ نه بیزاره دي او د دوی پدے قرآن کریم کې هیڅ برخه نشته۔ (المنار)

فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِينَ : ۱- یعني کله چه الله تعالیٰ دوی لره ګمراه کوي یائے هلاکوي نو په دوی غم مهٔ کوه ځکه چه دوی ځانونه خپله هلاکت ته ارتوي۔

۲- یا مطلب دا دے چه کله تا دوی ته د ما انزل دعوت ورکړو او د دوی طغیان او زیات

کفر ډیر ولیدو نو په دوی باندې خفګان مه کوه ځکه چه د دوی په نفسونو کی انتهائی خباثت دے نو ددے ضرربه دوی ته راواپس کیږی نه تا ته او ستا دپاره په مؤمنانو سره د دوی نه بی پرواهی ده. (القاسمیؒ)

۳- یعنی په دوی باندې خفګان مه کوه ځکه چه دا داسې خلك دی چه کفر په دوی کی ځای مونډلے دے او کفر د دوی لازمی صفت ګرځیدلے دے او دا نکته ده د وضع د اسم ظاهر په ځای د ضمیر، او ستا دپاره الله کافی دے او بیا ستا د قوم مؤمنان او د اهل کتابو مؤمنان لکه عبد الله بن سلام وغیره. (المنار)

٤- یا د دوی په ایمان نهٔ راوړو مهٔ خفه کیږه او هیڅ پرواه ئے مهٔ ساته. (التحریر)

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِئُوْنَ |
| یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او هغه کسان چه یهودیان دی او صابئین |
| وَالنَّصٰرٰى مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا |
| او نصارئ چا چه ایمان راوړو (د دوی نه) په الله او په ورځ روستنئ او عمل ئے وکړو نیك |
| فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ﴿٦٩﴾ |
| نو نهٔ به وی هیڅ یره په دوی او نهٔ به دوی غمجن شی. |

**تفسیر**: پدے کی د دعوت طریقه دا ده:

[لَا اِعْتِبَارَ لِلدَّعَاوِیْ اِنَّمَا الْاِعْتِبَارُ لِلْاِیْمَانِ وَالْعَمَلِ الصَّالِحِ]

یعنی دعوو له اعتبار نشته بلکه ایمان او عمل صالح لره اعتبار دے. تاسو د یهودیت او د نصرانیت دعوے کوئ چه دا الله ته نژدے دین دے او مونږ د الله دوستان او محبوبان یو نو دے دعوو له اعتبار نشته، راشئ صحیح ایمان او نیك عمل شروع کړئ.

ربط:

۱- مخکی د هغوی کفر بیان شو نو اُوس هغوی ته ایمان طرفته دعوت ورکولے شی.

۲- پدے کی تفسیر د اقامة الکتب ذکر دے.

۳- صاحب المنار وائی: هرکله چه یو دین ته نسبت کول په آخرت کی هله فائده ورکوی چه د دغه دین په کتاب باندے عمل وکړے شی نو الله تعالیٰ ددے نه روستو د دین اصول بیان کړل کوم چه د آسمانی کتابونو د قائمولو نه مقصود دی او په کوم باندے چه

جزاء او ثواب مرتب کیږي نو ان الذین ئې وفرمایل: ددې مناسبت دا شو چه پدې کې الله تعالی دا بیانوي چه اهل کتابو د الله دین نۀ دې قائم کړې، نۀ اصول او نۀ فروع، او نۀ ئې د الله تعالیٰ د کتابونو حفاظت کړیدې بلکه په هغې کې ئې تحریفونه کړیدي او د خپل ظاهر نه ئې اړولې دي، او نۀ ئې په الله تعالیٰ او په ورځ د آخرت هغه شان ایمان راوړو په کومه طریقه چه د دوی نیکانو مشرانو راوړې وو او نۀ دوی د هغوی په شان نیك عملونه وکړل البته معمولي شان څه کسان وو چه هغه په بناړونو کې پټ وسیدل او د الله په توحید به ورته عذابونه ورکړې کیدل چه هغوی د کیرجو تقلیدونه پرینښي وو۔ (المنار)

پدې آیتِ کریمه کې د الله تعالیٰ دا وعده ذکر شوه چه څوك په الله او په ورځ د آخرت ایمان راوړي او نیك عمل کوي هغه باندې به په ورځ د قیامت نۀ څه یره وي او نۀ به غم وي، لیکن د نبي کریم ﷺ د بعثت نه روستو دا وعده پدې شرط سره مشروط ده چه هغه تمام خلق او هغه تمامو ډلې چه پدې آیت کې ذکر شویدی دوی به په نبي ﷺ باندې ایمان راوړي، او دین اسلام به قبلوي، او د شریعتِ اسلامیه مطابق به عمل کوي۔

البته کومو خلکو چه د رسول الله ﷺ د راتګ نه مخکې ایمان راوړې وو او عمل صالح ئې کړې وو هغه هم کامیاب وو۔ او ددې آیت باقي تشریح د سورة البقره په آیت (۶۲) کې ذکر شویده۔

صرف فرق دا دې چه هلته (الصابئین) منصوب وو او دلته مرفوع راوړلې شویدې۔

حکمة دا دې چه د نحو قواعد اکثري دي، (مګر دا قول زجاجؒ ضعیف کړیدې- التحریر)

یا دا چه دا عطف دې په محل د اسم د إن او محل د اسم د إن مرفوع وي یا دا چه (الصابئون) مبتداء ده او خبر ئې پټ دې [أَيِ الصَّابِئُونَ حُكْمُهُمْ كَذٰلِكَ] د صابئون حکم هم دغه شان دې۔ او مقصد پدې کې تاخیر او روستو کول د دوی دي د ټولو نه روستو۔

بیا پدې تاخیر کې فائده څه ده؟

نو فائده دا ده چه پدې کې تنبیه ده پدې خبره چه که صابئینو صحیح ایمان او عمل صالح اختیار کړو نو په هغوی باندې به هم رحم کولې شي نو پاتې لا نور خلك؟ ځکه چه صابئین پدې ټولو ډلو کې لوی ګمراهان او د حق نه ډیر جدا دي، او دوی ته صابئین په همدې وجه وئیلې شویدي چه دوی د ټولو دینونو نه وتلي دي۔ (القاسميؒ)

صاحب المنار وائي: چه د عربو بلغاؤ دا قاعده ده چه په کوم شي باندې تنبیه په سمع (آوریدو) مقصود وي یا مفرداتو یا جملو ته متوجه کول مقصود وي نو هغه د نورو نه په

تـغییـر د اعراب سره یا په خطابت کې د آواز په پورته کولو سره یا د حروفو په غټوالی سره یا د سیاهی د رنګ په بدلولو سره جدا کولے شی، نو دلته هم (الصابئون) باندے دا تنبیه ورکوی چه دوی اهل کتاب دی لیکن پدے آیت باندے مخاطبینو خلکو دوی لره نهٔ پیژندل نو دا ګمان نهٔ کیدو چه دوی به د آسمانی کتابونو والو سره پدے حکم کې شریک وی نو په شریعت د بلاغت کې دا خبره ښه شوه چه تنبیه ورکړی پدے خبره سره چه د دوی به هم د نورو مسلمانانو او یهود او نصاراؤ په شان حکم وی کله چه صحیح ایمان راوړی او عمل صالح وکړی، او دا تنبیه ئے د اعراب په ترتیب بدلولو سره ورکړه، او دا تغییر پداسے مقام کې صرف فصیح شمارلے کیږی،

او ددے مثال داسے دے لکه یو تن ووائی : [اِنَّ زَیۡدًا وَعَمۡرًا وَکَذَا بَکۡرٌ اَوۡ بَکۡرٌ کَذٰلِکَ- قَادِرُوۡنَ عَلٰی مُنَاظَرَۃِ خَالِدٍ] - یعنی زید او عمر او دغه شان بکر د خالد په مناظره قادر دی، دا به هله بلیغ وی چه کله دا ګمان کیږی چه بکر د خالد په مناظره کې عاجز دے او ستا مقصد دا وی چه تهٔ تنبیه ورکړے په خطائی ددے ګمان باندے نو اعراب د بکر بدل کړه ددے نکتے دپاره۔ (المنار)

| لَقَدۡ اَخَذۡنَا مِیۡثَاقَ بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ وَاَرۡسَلۡنَاۤ اِلَیۡهِمۡ |
|---|
| یقیناً اخستے ده مونږ مضبوطه وعده د بنی اسرائیلو نه او رالیږلی وو مونږ دوی ته |
| رُسُلًا ؕ کُلَّمَا جَآءَهُمۡ رَسُوۡلٌۢ بِمَا لَا تَهۡوٰۤی |
| رسولان هر کله چه به راغلو دوی ته یو رسول په هغه خبرو چه نهٔ به خوښولو |
| اَنۡفُسُهُمۡ ۙ فَرِیۡقًا کَذَّبُوۡا وَفَرِیۡقًا یَّقۡتُلُوۡنَ ﴿۷۰﴾ |
| زړونو د دوی نو یوه ډله به ئے دروغجنه کړه او بله ډله به ئے وژله۔ |

**تفسیر** : پدے (۷۰/۷۱) آیتونو کې د بنی اسرائیلو تاریخ بیان شویدے۔

الله تعالیٰ د دوی نه لوظ واخستو چه دوی به صرف د هغه عبادت کوی او اوامرو او نواهیو کې به صرف د هغه اطاعت کوی، او د دوی په حال ئے رحم اُوکړو، د دوی د هدایت دپاره ئے انبیاء علیهم السلام راولیږل، او دوی له ئے حکومت او سلطنت ورکړو، لکه د یوشع بن نون (علیه السلام) په زمانه کې د دوی حکومت شو،

لیکن دوی د زمانے په تیریدو سره د بتانو عبادت شروع کړو، او د انبیاؤ علیهم السلام نه

د بعضو تکذیب ئے اُوکړو او بعض ئے قتل کړل، او ګمان ئے اُوکړو چه دوی به نهٔ رانیولے کیږی، پدے وجه د حق د قبلولو نه راندهٔ او کانړهٔ شو نو الله په دوی باندے د بابل بادشاه بخت نصر مسلط کړو. چه هغوی د دوی نه غلامان جوړ کړل او بیت المقدس ښارئے برباد کړو. دے نه روستو الله تعالیٰ تقریباً اویا (۷۰) کاله روستو په دوی باندے بیا رحم اُوکړو او دوی ئے دویم ځلې بیت المقدس ښار ته اُورسول، او د دوی د هدایت دپاره ئے بعض انبیاء علیهم السلام راولیږل چه د هغوی د دعوت نه متأثره شو او بیرته ئے د الله عبادت شروع کړو، لیکن د وخت په تیریدو سره د دوی دینی حالت خراب شو تردے چه عیسیٰ علیه السلام الله راولیږلو نو دوی د حق قبلولو نه بیا راندهٔ او کانړهٔ شول او د هغه د وژلو سازش ئے اُوکړو نو الله خپل نبی عیسیٰ علیه السلام لره آسمان ته پورته کړو، او د رومانیانو په لاس ئے دوی تباه او برباد کړل.

## ربط :

یهود او نصاریٰ پدے باندے عادت دی چه د الله د آیتونو نه اثر نهٔ اخلی بلکه خپل خیرخواهان وژنی.

كُلَّمَا جَآءَهُمْ : ددے جواب پټ دے [اِسْتَكْبَرُوْا وَأَعْرَضُوْا] دوی به تکبر وکړو او د هغه نه به ئے مخ واړولو.

فَرِيْقًا : دا د دوی د استکبار بیان دے.

په تکذیب کی ئے د ماضی صیغه استعمال کړه او په قتل د رسولانو کی د مضارع پدے کی اشاره ده تصویر د جرم د قتل ته او د هغے د ناکاره صورت استحضار ته چه دا دومره شنیع او قبیح کار وو چه ګویا کهٔ دا دے اُوس ئے وژنی دے دپاره چه دوی ته په طریقه د مبالغه توبیخ ورکړے شی. او اشاره ده چه دوی په هره زمانه کی د انبیاؤ د قتل اراده کړیده او کوی ئے.

| وَحَسِبُوْٓا اَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ فَعَمُوْا |
|---|
| او ګمان ئے وکړو چه نهٔ به شی (دا کار) عذاب (د دوی دپاره) نو راندهٔ شول |
| وَصَمُّوْا ثُمَّ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوْا وَ |
| او کانړهٔ شول دوی بیا مهربانی وکړه الله په دوی باندے بیا راندهٔ شول او |

صَمُّوْا كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ ۭ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿۷۱﴾

کانړهٔ شول ډیر د دوی نه او الله لیدونکے دے د هغه څه چه دوی ئے کوی۔

**تفسیر:** ربط: دوی کی دا مرض همیشه دے۔

وَحَسِبُوْٓا : یعنی دوی داسے مضبوط گمان وکړو چه هغه په درجه د یقین کی وو. اَیْ بِسَبَبِ تَاخِيْرِ الْعَذَابِ. یعنی دوی به گمان وکړو په سبب د روستو کیدو د عذاب سره چه گنے عذاب به بیخی نهٔ راځی۔

اَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ : فتنه په معنیٰ د عذاب سره. اَیْ اَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ بِقَتْلِ الْاَنْبِيَاءِ.

یعنی دوی گمان وکړو چه موجود به نهٔ شی عذاب په وژلو د انبیاؤ سره۔

د عام انسان په قتل انسان څومره پریشانه وی او بیا لا د نبی قتل نو پکار دا وه چه دوی ډیر پریشانه شوی وے. لیکن بیخی بی پرواه وو، سهار کی به ئے نبی مړ کړو او په مازیگر کی به ئے د سبزئ کارے ولگولو۔

فتنه : امتحان په شدائدو او تکلیفونو ته هم وائی لکه دوی باندے قوی امتونه مسلط شو چه دوی ئے قتل کړل او علاقے ئے ورله خرابے کړے او دوی ئے مغلوبه او ماتحت کړل۔ لکه ددے تفصیل په سورة الاسراء (٤) آیت کی راغلے دے۔

فَعَمُوْا وَصَمُّوْا : یعنی ړانده شو د آیتونو د الله نه کوم چه د هغه په کتابونو کی وو، په هغے کی د پخوانو ظالمانو امتونو عقاب او سزا ذکر وه، او ړانده شو د طریقے د الله نه چه د خپل مخلوق سره ئے کړیدی او کانړه شو د آیات الهیه ؤ نه، د الله نبئنو نبئانو ته ئے نهٔ کتل او کانړه شو د آوریدو د نصیحتونو نه کوم چه دوی ته د دوی رسولانو راوړی وو، او د الله د عذابونو نه ئے یرولی وو څکه چه الله ورته صبر کولو. نو هرکله چه دوی په ظلم او فساد کی بنه ننوتل نو الله پرے بابل والا مسلط کړل چه د دوی کورونو ته ورننوتل او مسجد اقصیٰ ئے ورله وسیزلو او مالونه ئے ورله لوټ کړل او د دوی حکومت او استقلال ئے ختم کړو۔

ثُمَّ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ : الله پرے مهربانی وکړه چه نور رسولان ئے ورته راولیږل نو د هغے په وجه دوی ته بیرته عزت او بادشاهی ملاؤ شوه لیکن بیا د وخت په تیریدو ړانده کانړه شول نو الله په دوی باندے فارس والا بیا روم والا (رومانیین) مسلط کړل چه د دوی بادشاهی او استقلال ئے ختم کړو۔ (المنار)

وَصَمُّوْا كَثِيْرٌ مِّنْهُمْ : پدے کی (کثیر) فاعل د (صَمُّوْا) دے او دا د [اَكَلُوْنِي الْبَرَاغِيْثُ] او (ذَبْرَنَ النِّسَاء) او (يَتَعَاقَبُوْنَ فِيْكُمْ مَلَائِكَةٌ بِاللَّيْلِ) د قبیلے نه دے او دا په نیز د بعض عربو (اَزْد قبیله) جائز ترکیب دے، او د دوی په نیز واو علامه د جمع ده نهٔ فاعل. او خینی ددے تاویل داسے کوی چه (صَمُّوْا) کی واو مبدل مِنْهُ دے او (کثیر) د هغے نه بدل دے نهٔ فاعل.

او پدے ترکیب راوړو کی فائده دا ده چه اشاره ده چه د بصیرت ړوندوالے او په غوږونو باندے مهر وهل دا ټولو افرادو ته عام نهٔ وو بلکه ډیر خلك په کی دغه شان وو، او د الله قانون او عادت دا دے چه کله فساد او گناهونه په اکثرو کی راشی نو الله عذابونه راولی. ځکه چه د لږو خلکو د صلاح (نیکئ) او فساد دومره تاثیر نهٔ وی. (المنار)

| لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ؕ وَقَالَ |
|---|
| یقیناً کافران دی هغه کسان چه وائی یقیناً الله همدا مسیح ځوی د مریم دے او ویلی دی |
| الْمَسِيْحُ يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبَّكُمْ ؕ اِنَّهٗ |
| مسیح اے بنی اسرائیلو! بندگی وکړئ د الله چه رب ځما او رب ستاسو دے یقیناً شان دا دے |
| مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَاْوٰىهُ |
| چا چه شرك وکړو د الله سره نو یقیناً حرام کړیدے الله تعالیٰ په هغه باندے جنت او ځای ددهٔ |
| النَّارُ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿٧٢﴾ |
| اُور دے او نشته ظالمانو له هیڅ مددگاران. |

**تفسیر** : ربط : ۱- دا د هغوی د ړوندوالی او د کوڼ والی بیان دے اَیْ وَمِنْ عَمْيِهِمْ وَصَمَمِهِمْ هٰذَا الْقَوْلُ. یعنی د دوی د ړوندوالی او د کوڼ والی نه دا وینا ده چه هلته نبی وژنی او چه کله عیسیٰ علیه السلام راغے نو هغه نه ئے اله جوړ کړو.

۲- لکه څنګه چه یهودیانو د الله لوظونه مات کړل نو دغه شان نصاراؤ ډلو هم د الله لوظ مات کړو.

لَقَدْ كَفَرَ : د اول نه الله د دوی په کفر فتوىٰ وکړه ځکه چه خبره ئے انتهائی د الله د بی ادبئ ده.

پدے کی د نصاراؤ په هغه ډلو د کفر حکم لګولے شویدے چه هغوی اُووئیل چه الله د

عیسیٰ ؑ په ذات کې داخل شویدے او دواړه متحد شویدی۔ او دا په کې د یعقوبیه ؤ عقیده وه چه دوی به دا وئیل چه اِله مرکب دے د درے اصولو نه چه دے ته اقانیم وائی، یعنی اب، ابن او روح القدس، او دا به ئے وئیل چه عیسیٰ ؑ ابن دے او الله اب دے او هر یو د درے وارو نه د بل سره عین او یو شے دے، نو ددے نتیجه دا شوه چه الله بعینه مسیح شو او مسیح بعینهٖ الله شو۔ دا د دوی ګډے وډے عقیدے وے۔ (المنار)

او روستو چه کوم قول د نصاراؤ راځی هغه دا دے چه درے آلهه بیل بیل ګنړی۔

دے نه روستو ئے ددے رد د عیسیٰ ؑ په ژبه سره وکړو چه اے بنی اسرائیلو ! د هغه الله عبادت کوئ چه زما او ستاسو رب دے۔ یعنی زۀ د الله یو بنده یم، زۀ الله څنګه کیدے شم ؟ عیسیٰ ؑ چه کله د مور په غیږه کې وو نو وے وئیل چه زۀ د الله بنده یم، او کله چه لوی شو او الله هغه ته نبوت ورکړو نو هم دغه خبره ئے اُوکړه، او خلق ئے د الله عبادت طرف ته راوبلل، او وے وئیل چه د الله سره چه څوك شرك اُوکړی، په هغه جنت حرام دے او د هغه ځای جهنم دے، په مشرك باندے د الله جنت حرام دے۔ الله دا مضمون د سورة الاعراف په آیت (۵۰) کې هم بیان کړیدے۔ فرمائی : ﴿ وَنَادٰى اَصْحَابُ النَّارِ اَصْحَابَ الْجَنَّةِ اَنْ اَفِيْضُوْا عَلَيْنَا مِنَ الْمَآءِ اَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللهُ قَالُوْا اِنَّ اللهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكَافِرِيْنَ ﴾۔

او دوزخ والا به جنتیانو ته آواز اُوکړی چه په مونږ باندے لږے اُوبه راواړوئ یا هغه څه چه الله تاسو ته درکړیدی نو جنتیان به وائی چه الله تعالیٰ دواړه څیزونه په کافرانو حرام کړیدی۔

او بخاریؒ او مسلمؒ روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ یو سړی ته حکم اُوکړو چه په خلقو کې آواز اُوکړی چه جنت ته به صرف مسلمان داخلیږی۔

نو عیسیٰ ؑ خو په شرك رد کوی او جنت پرے حراموی او توحید ته دعوت ورکوی، نو تاسو څنګه هغه د الله سره شریك ګنړئ، دا د دعوت یوه طریقه ده چه مشرکان په چا ګمراه شویدی د هغه اقوال ورته پیش کړه، بعض خلك په شیخ عبد القادر جیلانیؒ ګمراه شو نو ورته ووایه چه هغه خو موحد وو هغه څنګه د الله سره شریك کیدے شی؟۔ دغه شان مقلدینو ته د امامانو اقوال پیش کړه چه هغوی د تقلید نه منع فرمایلے ده۔

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ۘ وَمَا مِنْ اِلٰهٍ

یقیناً کافر شو هغه کسان چه وائی یقیناً الله دریم دے د دریو نه او نشته لائق د بندګۍ

| |
|---|
| اِلَّآ اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ ؕ وَاِنْ لَّمْ یَنْتَهُوْا عَمَّا یَقُوْلُوْنَ |
| سوی د یو ذات (الله) نه او که منع نشو دوی د هغه څه نه چه وائی دوی |
| لَیَمَسَّنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ﴿۷۳﴾ |
| (نو) خامخا به ورسی هغه کسانو ته چه کفر ئے کړے دے د دوی نه عذاب دردناك. |

**تفسیر** : دلته په هغه نصاراؤ باندے د کفر فتوی کیږی چه د اقانیم ثلاثه ؤ عقیده ئے لرله چه الله د درے مجموعے نه یو دے، یعنی پلار، ځوی، او روح القدس. یا پلار ځوی او مور. دریواړه په یو ځای معبود دی.

او علامه قاسمیؒ وئیلی دی چه په دوی کی (کولی ری دینس) فرقے به وئیل چه آلِهه درے دی : اب، ابن او مریم. او په علم الیقین کتاب کی دی چه په دوی کی یوه فرقه (مَرْیَمِین) عقیده لری چه مریم او مسیح دواړه آلهه دی او دغه شان عقیده د بربراثیون هم ده. او د ابن اسحاقؒ نه نقل دی چه د نجران نصاراؤ نه هم بعض خلکو دغه عقیده لرله. انتهی.

الله تعالیٰ داسے عقیده لرونکو ته کافر اُووئیل او وے وئیل چه معبود خو صرف یو دے. په انجیل او تورات او تمام آسمانی کتابونو کی دا خبره په ډاګه موجوده وه چه د یو الله نه سوی هیڅوك لائق د عبادت نشته. پدے وجه الله دوی ته دهمکی ورکړه چه د الله په وحدانیت باندے د قطعی دلائلو کیدو باوجود که دوی خپل دروغ جوړوی نو د قیامت په ورځ به دوی ته د اُور دردناك عذاب ورکولے شی.

نصاراؤ دا عقیده د خپلو مشرانو ته اخستے وه لیکن په هغے باندے نهٔ وو پوهه شوی، پدے وجه په دوی کی چه کوم عقلاء دی هغوی دا ارمان کوی چه ارمان چه دوی قادر شی ددے عقیدے نه په خلاصیدو سره نو ښه به وی، لیکن که دوی ترے چرته انکار وکړی نو د عوامو په نصرانیت باندے اعتماد ختمیږی. او ځینی پکی د خلکو ذهنونو د راړولو دپاره څه مثالونه ورکوی چه هغه پدے عصده نهٔ صادقیږی لکه وائی چه ددے مثال د نمر دے چه د ککوری، او رڼا او ګرمائش نه مرکب دے حال دا چه دا مثال صحیح نهٔ دے ځکه چه ګرمائش او رڼا اعراض د نمر دی او عرض د شی عین د شی سره نهٔ وی ځکه چه ګرمائش د نمر ته نمر نهٔ وئیل کیږی او نهٔ رڼا ته نمر وئیلے شی. نو دغه شان ابن (عیسی) او روح القدس عین اب (الله) نشی کیدے. (المنار)

| اَفَلَا يَتُوْبُوْنَ اِلَى اللّٰهِ وَيَسْتَغْفِرُوْنَهٗ ط |
|---|
| آیا پس توبه نهٔ وباسی (په زړهٔ) دوی الله ته او بخنه نهٔ غواړی (په ژبه) د هغه نه |
| وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٧٤﴾ |
| او الله بخونکے رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** : حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه دا د الله تعالیٰ لطف او کرم او خپلو بندګانو سره د فضل او رحمت معامله ده چه ددے لوی ګناه او بنکاره دروغو باوجود هغوی توبی او استغفار طرف ته رابلی او وعده کوی چه څوك توبه اُوباسی نو الله به ئے معاف کوی او په هغه باندے به رحم کوی۔

## د توبه او استغفار فرقونه

۱- توبه په زړه سره وی یعنی په زړه سره دِے الله ته رجوع وکړی او استغفار په ژبه سره۔
۲- توبه د توحید په قبلولو سره ده، او استغفار د شرك نه دے۔
۳- ظاهر دا دے چه توبه الله تعالیٰ ته په طاعت ده، او استغفار د شرك او معاصی نه دے۔
ځکه چه توبه کی دا شرط دے چه په مخکنی شرك او ګناهونو به استغفار کوے او بیا به د الله په بندګئ کی لګیا کیږے۔

**أَفَلَا يَتُوْبُوْنَ** : همزه په پټ فعل باندے داخله ده چه په هغے باندے (فلا يتوبون) عطف دے ۱- أَیْ أَيَسْمَعُوْنَ مَا ذُكِرَ مِنَ التَّفْنِيْدِ وَالْوَعِيْدِ فَلَا يَتُوْبُوْنَ۔

آیا دوی دغه خپلے بیوقوفتیاګانے او عذابونه آوری او بیا هم توبه نهٔ وباسی او الله ته رجوع نهٔ کوی۔ دا خو ډیره عجیبه خبره ده۔

۲- أَيُصِرُّوْنَ عَلٰى مَا ذُكِرَ بَعْدَ إِقَامَةِ الْحُجَّةِ وَدَحْضِ الشُّبْهَةِ فَلَا يَتُوْبُوْنَ؟ الخ۔

آیا دوی په خپل دغه جهالتونو همیشوالے کوی پس د هغے نه چه دوی باندے دلیل قائم شو او شبهات ئے رد شو او توبه نهٔ وباسی۔ (المنار)

| مَا الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ اِلَّا رَسُوْلٌ ج قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ط |
|---|
| نهٔ دے مسیح ځوی د مریم مګر رسول دے یقیناً تیر شویدی مخکی ددهٔ نه ډیر رسولان |

وَ اُمُّهٗ صِدِّيْقَةٌ ؕ كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ

او مور ددهٔ ډیره رشتینې وه، دواړو به خوړلو خوراك، وګوره چه څرنګه بیانوو مونږ دوی ته

الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿۷۵﴾

دلیلونه (د توحید) بیا وګوره چه څرنګه اړولے شي دوی (د توحید نه).

**تفسیر**: اُوس دا خبره بیانوی چه د عیسیٰ علیه السلام په باره کی به کومه عقیده ساتل پکار وی؟ او هرکله چه حق الٰه یو شو او د اقانیم ثلاثه ؤ نه مرکب نشو او د اجسامو سره په ذات او صفاتو کی مشابه نشو نو بیا به د عیسیٰ علیه السلام څه حال وی؟ ددهٔ په باره کی به کومه عقیده لرو؟ نو الله ددے جواب ورکوی او اول هغه خصوصیت د عیسیٰ علیه السلام ذکر کوی چه په هغے سره د نورو خلکو نه جدا دے، او بیا ئے هغه حقیقت بیانوی چه د نورو سره پکی شریك دے. (المنار)

او پدے آیتِ کریمه کی الله تعالیٰ ددے خبرے رد کړیدے چه د عیسیٰ علیه السلام معجزات او د مریم علیها السلام کرامات د دوی د معبود کیدو دلیل دے بلکه ددے نه زیات نه د عیسیٰ علیه السلام د نبي او د مریم ولي کیدل ثابتیږی.

الله تعالیٰ اُوفرمایل چه مسیح ابن مریم د نورو رسولانو په شان یو رسول وو، لکه څنګه چه هغه انبیاؤ علیهم السلام ته الله تعالیٰ معجزات ورکړی وو نو دغه شان دهٔ ته ئے معجزات ورکړیدی. که په دهٔ سره الله برګی بیماری والا ته شفاء ورکړے او مړی ئے راژوندی کړی نو په موسیٰ علیه السلام سره ئے امسا ژوندیٔ کړیده او د هغے نه ئے مار جوړ کړیدے او دریاب ئے پرے دوه حصے کړیدے. دا ډیر تعجب والا کار وو. که دا الله په غیر د پلار نه پیدا کړے نو آدم علیه السلام ئے بغیر د مور او پلار نه پیدا کړے او دا زیات تعجب والا پیدائش وو.

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ : ددے یو مطلب خو مخکی بیان شو. دویم دا چه لکه څنګه چه مخکنی رسولان تیر شویدی او د دنیا نه تلی دی نو دغه شان به دے هم د دنیا نه ختمیږی نو پدے جمله کی ددهٔ داسے صفت بیان شو چه ددهٔ د الوهیت منافي دے. (القاسمیؒ)

**حکمة**: علامه قاسمیؒ وائی چه اول ئے د رسولانو مشابه کړو دا جلی (ښکاره) خبره وه او بیا ئے د دوی حاجت طعام ته بیان کړو دا اجلیٰ (ډیره ښکاره) خبره وه نو پدے کی د

نصاراؤ په خلاف دلیل نیولو کي ترقي ده د جلي نه اجلیٰ ته، دے دپاره چه تنبیه راشي په غباوت د دوی باندے که په جلي نهٔ پوهیږي نو په اجلیٰ خو به پوهه شي۔

وَأُمُّهُ صِدِّيقَةٌ : یعني تصدیق کونکے وه په وعدو د الله۔ لکه سورة التحریم (۱۷) آیت کي دي: ﴿وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهِ﴾ د الله د وعدو او د هغه د کتابونو تصدیق ئے کړے وو۔ یعني تقدیر او شرع دواړه ئے منلو وه، او تصدیق په معنیٰ د یقین سره دے، یعني یقین والا زنانه وه۔ نو هغه هم معبود نشي کیدے۔

او دا هم دلیل دے چه عیسیٰ ﷺ د مور نه پیدا دے نو محتاج دے۔ نو پدے آیت کي په ډیرو طریقو سره د عیسیٰ ﷺ داسے صفات بیان شویدي چه هغه د اُلوهیت منافي دي۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکي چه دا آیت دلیل دے چه مریم بنت عمران (د عیسیٰ ﷺ مور) نبیه نهٔ وه لکه چه د ابن حزمؒ وغیره ګمان دے چه ام اسحاق، ام موسیٰ او ام عیسیٰ الله نبیان جوړ کړي وو۔ هغه وائي چه ملائك د ساره او مریم علیهما السلام سره مخاطب شوي وو، او الله په قرآن کي ښکاره وئیلي دي چه مونږ ام موسیٰ ته وحي کړے وه چه ته دهٔ ته پيئ ورکوه۔ لیکن د جمهورو رائے دا ده چه انبیاء صرف سړي راغلي دي۔ الله په سورة یوسف آیت (۱۰۹) کي فرمایلي دي: ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُوحِي إِلَيْهِمْ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى﴾ چه (ستا نه مخکي مونږ څو مره انبیاء لیږلي، هغه ټول د ښارونو اُوسیدونکو نه سړي وو چه په هغوی باندے مونږ وحي نازل کړے وه)۔

ابو الحسن اشعريؒ پدے رائے باندے د امت اجماع نقل کړیده، او دلته په اُوچت او اشرف مقام کي ئے د هغے صدیقیت بیان کړو که هغه نبیه وے نو د هغے نبوت به ئے بیان کړے وے لکه څنګه ئے چه د عیسیٰ ﷺ رسالت ښکاره بیان کړیدے۔ آه۔

کانا یأکلان : د دعوت یو ښه او ادبي انداز دا دے چه څوك د چا عبادت کوي نو تهٔ د هغوی عاجزي بیان کړه، لکه دا الفاظ ښکاره دلیل دے چه عیسیٰ ﷺ او د هغه مور دواړه د تمامو انسانانو په شان انسانان وو، څکه چه څوك چه خوراك کوي، د هغه هضمیدو او بیا د هغے ویستو ته محتاج وي، هغه د غوښے، پوستکي او هډوکو او پلو او نورو اجزاؤ نه مرکب د تمام اجسامو په شان یو جسم وي، نو داسے عاجز مخلوق معبود څنګه کیدے شي ؟!۔

كَانَا يَأْكُلَانِ الطَّعَامَ : خوراك ئے ذکر کړو دا کنایه ده د عاقبت د خوراك نه چه هغه احتیاج دے ډیرو څیزونو ته۔ (تفسیر ابن ابي زمنین)

اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ : یعنی مونږ دوی ته په توحید د الله باندے او په بطلان د اتحاد او الُوهیتَ د عیسیٰ علیه السلام او د هغه د مور باندے او د هغوی د شبهاتو په باطلولو باندے ښکاره دلیلونه بیانوو۔ نو ددے نه دلیل ونیسه د نصاراؤ په خلاف۔

ثُمَّ انْظُرْ : دوباره ئے په نظر او فکر باندے حکم وکړو، پدے کی مبالغه ده په تعجب کولو په حال د نصاراؤ باندے چه د دومره ښکاره بیان نه روستو چه هیڅ شك نهٔ پریدی بیا هم دوی د خپل کفر نه نهٔ منع کیږی پدے باندے تعجب پکار دے۔ (ابو السعودؒ) نو اول نظر د استدلال دے او دویم نظر د تعجب شو۔

يُؤْفَكُوْنَ : دا د افك نه ماخوذ دے، اوریدو ته وائی۔ وَهُوَ انْتِقَالٌ مِنَ الْجَمِيْلِ اِلَى الْقَبِيْحِ وَمِنَ الصِّدْقِ اِلَى الْكَذِبِ وَمِنَ الْحَقِّ اِلَى الْبَاطِلِ ۔ (مفردات) او دا په هغه انتقال کی استعمالیږی چه د ښائسته نه بدرنګ ته وی، او د رښتیاؤ نه دروغو ته او د حق نه باطل ته وی۔ او (یؤفکون) مجهول صیغه ئے پدے وجه راوړے ده چه دوی شیطان باطل ته اړولی دی او د هغه د وسوسے تابع دی۔

| قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَالَا يَمْلِكُ لَكُمْ |
|---|
| ته ووایه !آیا بندګی کوئ تاسو سوی د الله تعالیٰ نه د هغه څه چه اختیار نهٔ لری تاسو لره |
| ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ۔ وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۷۶﴾ |
| د ضرر او نهٔ د فائدے او خاص الله آوریدونکے ، ډیر پوهه دے۔ |

**تفسیر** : دا بله طریقه د تبلیغ ده او پدے کی ورته د دوی د معبودانو کمزوری بیانوی۔ او د نصاراؤ د عقیدے د بطلان یو بل دلیل دے۔

مَالَا يَمْلِكُ : په آیت کی (ما) اسم موصول دے چه ددے نه مراد عیسیٰ او ام عیسیٰ او عزیر علیهم السلام او نور بتان وغیره دی، چه دا ټول نهٔ څه نفع رسولے شی او نهٔ نقصان۔ د هر څه اختیار صرف الله ته حاصل دے۔ که مخلوق ته څه قدرت حاصل دے نو الله ورکړیدے، پدے وجه عیسیٰ علیه السلام او ام عیسیٰ هم د هیڅ شی مالکان نهٔ دی۔

او د همدے حقیقت ښکاره کولو دپاره په قرآن کی د (مَنْ) په ځای (مَا) استعمال شویده، چه د غیر ذی روح دپاره استعمالیږی یعنی ددے دواړو حیثیت د نورو تمامو څیزونو په شان دے چه په هغے کی قدرت نهٔ وی۔ (زاد المسیر والمدارك)

نو کوم خلك چه وائی (لکه بریلیان په "مقیاس حنفیت" کی لیکی) چه په قرآن کریم کی د بتانو د عبادت رد شته او د نیکانو بندګانو د عبادت رد نشته ځکه چه د اولیاؤ عبادت په حقیقت کی د الله عبادت دے، نو دا سو چه دروغ وائی بلکه دلته مدارك وغیره د (ما) نه مراد عیسیٰ او عزیر علیهما السلام اخستی دی۔

او شعرانیؒ د سیبویه وغیره نحاتو نه نقل کړیدی چه (مَا) کلمه د ذوی العقول او غیر ذوی العقول ترمینځ مشترکه ده۔

صاحب د فتح البیان لیکلی دی چه هر کله د عیسیٰ علیه السلام دا حیثیت وو (چه نبی وو) نو د اولیاؤ څه حیثیت کیدے شی، ظاهره ده۔

ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا : یعنی بندګی خو د هغه چا پکار ده چه هغه دشمنانو ته په ضرر او خپلو بندګانو ته په نفع ورکولو قادر وی۔

ضرا : ۱- اَیْ دَفْعَ ضُرٍّ وَّلَا جَلْبَ نَفْعٍ۔ یعنی د ضرر دفع کولو او د فائدے راخکلو۔

۲- یا دا مبالغةً وئیل شویدے یعنی ضرر هم نشی درکولے۔ (ابن کثیرؒ)

۳- یا دشمنانو ته د ضرر ورکولو او دوستانو ته د نفع ورکولو۔ دویم تفسیر ډیر غوره دے۔

ددے مثال خلك داسے وائی چه هغه دوائی چه د خوړلو نه روستو ئے نۀ په ضرر پو هه شی او نۀ په فائده نو دا هسے ګیاه وه۔

| |
|---|
| قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِیْ دِيْنِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ |
| تۀ ووايه ! اے کتاب والو ! زیاتے مۀ کوئ په دین ستاسو کی بغیر د حق نه |
| وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ |
| او تابعداری مۀ کوئ د خواهشاتو د هغه قوم چه ګمراه شویدی مخکی ستاسو نه |
| وَاَضَلُّوْا كَثِيْرًا وَّضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ ﴿۷۷﴾ |
| او ګمراه کړیدی دوی ډیر خلق او بے لارے شویدی (خپله هم) د نیغے لارے نه۔ |

**تفسیر** : مناسبت :

۱- په باطلو معبودانو کی د ضرر او نفع عقیده ساتل په دین کی غلو ده نو اُوس ئے د غلو نه منع کوی۔

۲- او دا د تبلیغ بله طریقه ده۔ هر کله چه د نصاراؤ د عقیدے بطلان وشو نو اُوس دوی ته

د حق د اتباع او په باطل کې د غلو نه د لرې کیدو نصیحت کیږی چه اے اهل کتابو! د حد نه تجاوز مهٔ کوئ او د کومو خلکو د تعظیم حکم چه تاسو ته شویدے د هغوی په باره کې دومره غلو مهٔ کوئ چه هغوی د نبوت مقام نه پورته کړئ او د اُلوهیت مقام ته ئے اُورسوئ، لکه څنګه چه تاسو د مسیح علیه السلام سره کړیدی، او د خپلو ګمراه علماؤ اتباع مهٔ کوئ کوم چه خپله ګمراه شو او نورو ئے هم د حق نه واړول۔

دا آیت دلیل دے چه په دین کې غلو جائز نهٔ ده، لکه ډیر خلق په طهارت کې غلو کوی، او په شریعت کې چه څه ثابت دی د هغے نه مخکې تلل تقوی ګنړی، او لکه ډیر خلق د صالحینو او د قبرونو په باره کې غلو کوی او د بتانو په شان د هغوی عبادت کوی۔ امام احمدؒ، نسائیؒ او ابن ماجهؒ وغیرهم د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل: [إِيَّاكُمْ وَالْغُلُوَّ فِي الدِّيْنِ فَإِنَّمَا أَهْلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمُ الْغُلُوُّ فِي الدِّيْنِ] (په دین کې د غلو کولو نه بچ شئ، ځکه چه ستاسو نه مخکې خلق په دین کې د غلو کولو په وجه هلاک شو)۔ (نسائی: ۳۰۵۷ وابن ماجه ۳۰۲۹ وسنده صحیح)

او امام بخاریؒ د عمر رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل:

[لَا تُطْرُوْنِي كَمَا أَطْرَتِ النَّصَارٰى عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ، فَإِنَّمَا أَنَا عَبْدُهٗ فَقُوْلُوْا عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُوْلُهٗ]

(زما په صفت کې د حد نه زیاتے مهٔ کوئ لکه چه نصاراؤ د ابن مریم سره اُوکړل، زهٔ خو د الله یو بنده یم، پدے وجه ما ته د الله بنده او د هغه رسول وایئ))۔ (بخاری: ۳۴۴۵)

د غلو ډیره تشریح مخکې سورة النساء کې ذکر شوه۔

**لَا تَغْلُوْا**: یعنی هغه څوک چه تاسو ته نفع او ضرر نشی درکولے نو هغوی ته اله وئیل غلو ده۔ او هغه ساجد دے تهٔ ترے مسجود او هغه عابد دے ته ترے معبود جوړوے نو دا غلو ده۔

او دلته غلو د افراط مراد ده لکه فتح البیان د قتادهؒ نه ددے معنیٰ په [لَا تَبْتَدِعُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ] سره نقل کړیده یعنی په دین کې بدعت مهٔ کوئ۔ او نصاراؤ به د احبار او رهبانو په وجه د ځان نه تحلیل او تحریم کولو۔

**فِيْ دِيْنِكُمْ**: **فائده**: د فِيْ دِيْنِكُمْ نه دا فائده معلومیږی چه غلو په دوه قسمه ده یو غلو لِلدِّین ده (د دین دپاره) او بل غلو فی الدین ده۔ چه ددے نه په غلو د حق او غلو د باطل سره تعبیر کیږی۔ دارنګه یو بدعت للدین دے او بل بدعت فی الدین یا بدعت فی الوسائل او بدعت فی المقاصد دے۔ نو اول قسم هغه دے چه د دین د ترقئ دپاره وسائل جوړ کړی او

هغه وسائلو ته دین نهٔ وائی لکه علم د نحو او صرف وغیره او طریقه د مدارسو او تصنیف او تالیف، او دارنګه د مسجد محراب او لاوډ سپیکر وغیره نو پدے قسم کې منع نشته پدے شرط چه سنت ته نقصان نهٔ ورکوی، او التزام ئے نهٔ کوی.

او دویم قسم ته بدعت شرعیه هم وئیلے شی هغه دا چه یو شے په دین کې داخل کړی، په عقیده کې وی یا په عمل کې او که نفسِ شے وی یا کیفیت وی، یا مقدار او ځت وی او دے ته دین وائی نو دا بدعت ضلالت دے او پدے آیت کې مراد دے لکه دلته ئے فِیْ دِیْنِکُمْ وئیلے دے یعنی په دین کې دننه۔ (احسن الکلام)

غَیْرَ الْحَقِّ : دا قید اتفاقی دے۔ په دین کې هره خبره چه د ځان نه زیاته شی هغه ناحقه ده لیکن دا قید ئے ورسره دے دپاره ووئیلو چه اشاره شی چه څوک غلو په دین کې وکړی نو هغه د حق نه وړاندے کیږی۔

لکه ددے بعض مفسرینو داسے تعبیر کړیدے (مُتَجَاوِزِیْنَ وَمُغَایِرِیْنَ عَنِ الْحَقِّ) یعنی چه تجاوز کونکی یئ او جدا کیدونکی یئ د حق نه۔ نو دا حال دے د ضمیر د فاعل نه۔

یا غیر منصوب دے صفت د مصدر محذوف دے۔ اَیْ غُلُوًّا غَیْرَ الْحَقِّ اَیْ غُلُوًّا بَاطِلًا ۔ (قاسمی) یعنی داسے غلو مهٔ کوئ چه هغه باطله وی۔

علامه قاسمیؒ وائی چه ددے نه معلومه شوه چه په دین کې غلو په دوه قسمه ده یو غلو الحق ده چه د دین د حقیقت تلاش وکړی او د هغے لرے معانی او مقاصد ولټوی او د هغے په حجو او دلائلو حاصلولو کې کوشش وکړی۔ او دویم غلو الباطل ده او هغه دے ته وائی چه د حق نه تجاوز وکړی او ترے واوړی پدے طریقه چه د دلائلو نه اعراض وکړی او د شبهاتو پسے روان شی۔

بغویؒ وائی : فِیْ دِیْنِکُمُ الْمُخَالِفِ لِلْحَقِّ۔ یعنی تاسو په دین کې داسے غلو مهٔ کوئ چه هغه د حق مخالفه وی ځکه چه دوی په خپل دین کې د حق خلاف شروع کړو او بیا ئے په هغے کې غلو وکړه چه همیشه پرے پاتے شو۔

وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَآءَ قَوْمٍ : دا پسے ځکه وائی چه ډیر خلك چه ګمراه کیږی نو د مشرانو د خواهشاتو او غلطو وینا ګانو د وجه نه۔ او ډیر روستو خلك پدے وجه هم ګمراه شی چه هغوی په مخکنو خلکو باندے ښه ګمان لری چه مخکې ټول نیکان او بزرګان تیر شویدی حال دا چه په امت کې ډیر ګمراهان هم تیر شویدی چه د شرك او بدعت په اثبات باندے ئے کتابونه لیکلی دی، او اهل حق ئے په خپله زمانه کې بدنام کړیدی، نو د داسے

مشرانو پسے ورتلل هلاکت دے، نو ته پدے خبره نشے خلاصیدے چه دا مشرانو لیکلی دی، هغوی خپله گمراه وو نو تهٔ د هغوی په وجه ځان مهٔ گمراه کوه بلکه تحقیق کوه. او په علماؤ واجبه ده چه په داسے مبتدعین او گمراهانو به رد کوی دے دپاره چه روستنی خلك د هغه په وجه گمراه نشی.

قَدْ ضَلُّوْا : پدے کی اشاره ده چه سبقیت او مشری د هغوی فائده نهٔ ورکوی. (قاسمی)

وَاَضَلُّوْا كَثِيْرًا : اشاره ده چه ډیر والے د تابعدارو له ئے اعتبار نشته. قاسمی)

وَّضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ : اول ضلال د هغوی شرك او بدعات وو او دویم ضلال د هغوی دعوت وو شرك او بدعت ته. او دریم ضلال په دغه شرك او گمراهئ باندے همیشه پاتے کیدل وو. او ددے حالت نه بل داسے حالت مونږ نهٔ دے موندلے چه هغه د الله نه لرے کونکے وی او د الله عذاب ته نزدے کونکے وی. نعوذ بالله منها. (امام رازیؒ)

یا دریم ځل د دوی د گمراهئ غټ والی ته اشاره ده چه د سواء السبیل نه بالکل گمراه دی، لږ گمراه نهٔ وو.

وَّضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ : یعنی دوی د انجیل او د نصوصو په متشابهاتو پسے روان وو او هغهٔ ئے محکماتو نه نهٔ واپس کول نو پدے وجه د نیغے لارے نه گمراه شو. (قاسمیؒ)

یا اول ضلال د دین نه دے او دریم ضلال د جنت د لارے نه دے. یا اول خپله گمراه شو بیا ئے خلکو ته د گمراهئ دعوت ورکړو بیا ئے دا عقیده وساتله چه دغه د گمراهئ دعوت خلکو لره حق ته رابلل دی. (کله فی القاسمی)

**فائده** : د مشرانو خبره منل لازم نهٔ دی کله چه بی دلیله وی او د هغوی تقلید د انسان دپاره عذر نشی جوړیدلے، پدے آیت کی دا خبره دننه پرته ده. فتدبر.

| لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ |
|---|
| لعنت کړے شویدے په هغه کسانو چه کافران دی د بنی اسرائیلو نه په ژبه د داؤد (علیه السلام) |
| وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا |
| او د عیسیٰ (علیه السلام) ځوی د مریم دا پدے وجه چه دوی نافرمانی کړے وه |
| وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿٧٨﴾ كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ ؕ |
| او وو دوی چه د حد نه تیریدل. وو دوی چه منع به ئے نهٔ کوله د بد کار نه، چه کوو به ئے هغه |

لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۸﴾

خامخا بد دے هغه څه چه دوی به کولو۔

**تفسیر:** ربط:

دا متعلق دے د (بَلِّغْ مَا اُنْزِلَ) سره یعنی تبلیغ ددے دپاره کولے شی چه بنده د لعنت نه بچ شی لکه څنګه چه بنی اسرائیلو نهی عن المنکر پریښے وو نو په لعنت اخته شو۔

پدے آیت کی د الله تعالیٰ د طرفنه بل رد دے په اهل کتابو باندے، پدے کیخبر ورکړے شویدے چه د الله تعالیٰ د طرفنه د پخوا زمانے نه د بنی اسرائیلو په کافرانو باندے د داود او عیسیٰ علیهما السلام په ژبه لعنت شویدے، او ددے وجه ئے دا بیان کړه چه دوی د الله نافرمانی کړے وه او د حد نه ئے تجاوز کولو، انبیاء علیهم السلام ئے قتل کړی وو او ګناهونه او معصیتونه ئے ځان دپاره حلال ګنړل، او یوه لویه ګناه ئے دا هم کړے وه چه دوی به یو بل د ګناهونو کولو نه نهٔ منع کول، د دوی پدے بد کار باندے د زیات انکار دپاره الله اُوفرمایل چه د دوی عملونه ډیر بد وو۔

او دا جواب د یو وَهم هم کیدے شی چه دوی وائی مونږ د انبیاؤ علیهم السلام اولاد یو، مونږ ته ګناهونه نقصان نهٔ راکوی نو جواب وشو چه تاسو باندے خو انبیاؤ لعنتونه وئیلی دی۔ بل تعبیر دا دے چه دا یهود او نصاریٰ آزاریان دی، د رسولانو ښیرو وهلی دی او ځان بزرګان ګنړی۔

لِسَانِ دَاوُدَ : ۱- د ژبے نه مراد یا زبور او انجیل وو۔ ۲- ظاهر دا ده چه ظاهری ژبه مراد ده چه داود ؑ اصحاب السبت والو ته ښیرے کړے وے نو د هغوی نه شادوګان جوړ شو او عیسیٰ ؑ اصحاب المائده ته ښیرے وکړے کله چه دسترخوان نازل شو نو هغوی پکی ناشکری شروع کړه، عیسیٰ ؑ ورته ښیرے وکړے نو الله ترے خنزیران جوړ کړل، نو پدے کی د ترك موالات علت هم ذکر شو چه اے مؤمنانو او منافقانو! تاسو داسے خلك په دوستانے سره نیسئ چه د پیغمبرانو ښیرو وهلی دی او لعنتیان او آزاریان دی۔

كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ : ۱-دا یا لازم صیغه ده اَیْ لَا یَنْتَهُوْنَ۔ خپله به د منکراتو نه نهٔ منع کیدل۔ او فَعَلُوْهُ: کول به ئے منکرات۔ یعنی اصحاب المنکرات وو او تائبین نهٔ وو۔

۲- دویم: تناهی یو بل منع کولو ته وائی: اَیْ لَا یَنْهٰی بَعْضُهُمْ بَعْضًا۔

یعنی یو بل به ئے نهٔ منع کول د منکراتو نه او (فَعَلُوْهُ) صفت د (مُنْكَرٍ) دے، یعنی د هغه

منکرونه به ئے یو بل نهٔ منع کول کوم چه به دوی کولو، او یو بل به ئے پرے لیدل۔ نو دیے کی دوه جرمونه دی یو خپله گناه کول او دویم: بل د گناه نه نهٔ منع کول۔

مفسرین لیکی چه ددے دواړو آیتونو نه معلومیږی چه د بنی اسرائیلو په کافرانو باندے لعنت لیږل جائز دی اګرکه د انبیاؤ اولاد وی، او دا هم معلومه شوه چه نهی عن المنکر یعنی د بد اعمالو نه خلق منع کول واجب دی،

پدے وجه امام حاکم وئیلی دی چه نهی عن المنکر نهٔ کول کبیره گناه ده۔ (قاسمیؒ)

امام شوکانیؒ لیکلی دی چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر (یعنی د نیکئ حکم او د بدئ نه منع کول) د اسلام اهم ترینه قاعده او عظیم ترینه فریضه ده پدے وجه ددے پریخودونکے د گناه کونکو سره شریك او د الله د غضب او انتقام مستحق کیږی، لکه څنګه چه د هغه یهودیانو سره اُوشو کومو چه د خالی د ورځے په باره کی د الله د حکم لحاظ اُونهٔ ساتلو نو الله د هغه خلقو هم شکلونه مسخ کړل کوم چه په هغه عمل کی شریك نهٔ وو، ځکه چه دوی په هغوی باندے انکار نهٔ وو کړے۔ نو د تولو شکلونه د شادوګانو او خنزیرانو په شان شو۔

امام احمدؒ، ابوداودؒ، ترمذیؒ او ابن ماجهؒ وغیرهم ددے آیت په تفسیر کی د عبد الله بن مسعود ﷛ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل:

((بنی اسرائیلو چه کله گناهونه کول نو د هغوی علماؤ منع کړل لیکن هغوی نهٔ منل، او هغه علماء به د هغوی ددے حرکت باوجود د هغوی په مجلسونو کی شریك کیدل، د هغوی سره به ئے خوراك څکاك کولو، نو الله تعالیٰ د هغوی زړونه د یو بل سره یو شان کړل۔ (یعنی ناکاره شول او د گناه نفرت ترے ختم شو) او د داود او عیسیٰ علیهما السلام په ژبه ئے پرے لعنت اوکړو، دا پدے وجه اُوشو چه دوی د الله نافرمانی اُوکړه او د حد نه تجاوز ئے اُوکړو))۔ (و سنده حسن)

د امر بالمعروف او نهی عن المنکر د اهمیت په باره کی امام احمدؒ او ترمذیؒ د حذیفه بن الیمان ﷛ نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ اُوفرمایل:

((قسم په هغه ذات چه د هغه په لاس کی زما نفس دے، تاسو به د نیکئ حکم کوئ او د بدئ نه به منع کوئ ورنه نزدے ده چه الله به په تاسو باندے د خپل طرف نه یو عذاب نازل کړی بیا به تاسو د الله نه دعا غواړئ نو هغه به نهٔ قبلوی))۔

اسناده حسن- صحیح الجامع: ۷۰۷۰)

| تَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
|---|
| وينې به ته ډير د دوی نه چه دوستانه کوی د هغه کسانو سره چه کافران دی |
| لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ اَنْفُسُهُمْ اَنْ |
| خامخا بد دے هغه څه چه مخکې ليږلی دی دوی لره نفسونو د دوی دا چه |
| سَخِطَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خٰلِدُوْنَ ﴿٨٠﴾ وَلَوْ |
| غضب کړے دے الله تعالیٰ په دوی باندے او په عذاب کې به دوی هميشه وی۔ او که چرته |
| كَانُوْا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالنَّبِيِّ وَمَآ |
| وے دوی چه ايمان ئے راوړے وے په الله تعالیٰ او (پدے) نبی او په هغه کتاب |
| اُنْزِلَ اِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوْهُمْ اَوْلِيَآءَ وَلٰكِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿٨١﴾ |
| چه نازل شويدے هغه ته، نۀ به دوی نيولے هغوی لره دوستان ليکن ډير د دوی نه نافرمان دی۔ |

**تفسير** : ځينې مفسرين وائی چه پدے کی منافقانو ته زجر دے ليکن ظاهر دا ده چه دا زجر دے اهل کتابو ته، يهود او نصاریٰ اهل کتاب دی او ځان ته جنتيان او د الله محبت والا وائی، نو الله پرے رد کوی چه تاسو ځان ته جنتيان او د الله محبوبان وايئ او بيا د الله د دشمنانو سره دوستی هم کوئ، ځکه چه په اهل کتابو باندے هم د موالات او معادات مسئله فرض وه چه هغوی به هم د الله د دوستانو سره دوستی او د الله د دشمنانو سره دشمنی لری، نو دوی خبره برعکس کړه چه کافرانو سره ئے دوستی شروع کړه او د مؤمنانو سره دشمنی۔ لکه اُوس هم د يورپ وغيره کافرانو دغه طريقه ده چه د اسلام او د مسلمانانو نوم پرے بد لګی عرب وی که عجم، او د اسلام په خلاف روسانو چينيانو او هندوانو بت پرستو کافرانو سره ئے تعلقات وی۔

او د مدينے يهوديانو به د مکے مشرکانو او د مدينے منافقانو سره دوستانه تړله او د هغوی مدد به ئے کولو۔

اَنْ سَخِطَ اللّٰهُ : يعنی دا خبره ئے د خپلو ځانونو دپاره مخکې وليږله چه الله پرے غصه شو او هغه ترے ناراضه شو پدے کار سره۔

اَنْ سَخِطَ : په ترکيب کی د (مَاقَدَّمَتْ) کی د (مَا) نه بدل دے يعنی هغه شے څه شے دے

چه دوی مخکی لیږلی دی؟ هغه د الله غضب دی. یا لام مقدر دی (لأنْ سَخِطَ اللّٰه)
پدی وجه چه الله په دوی باندی غضب کړیدی.
سخط : سخت او لوی غضب ته وائی چه په هغې کی خفګان سره غصه هم وی.
او دی آیت نه دا معلومه شوه چه د کافرانو په دوستانه سره په انسان باندی یو د الله
غضب راځی او بل په عذاب کی همیشوالی.
وَلَوْ كَانُوْا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ : یعنی که دوی په تورات او انجیل باندی په ایمان راوړو کی
رشتینی وی، او صحیح ایمان ئی راوړی وی نو دوی به کافران په دوستیٔ سره نهٔ نیولی
ځکه چه په دغه کتابونو کی هم د کافرانو ددوستیٔ نه منع راغلی وه. ددی نه معلومه
شوه چه یهودو خپل دین کامل مکمل پریښودی وو. او د موالات او معادات مسئله ئی
هم تر ی ختمه کړی وه.
وَالنَّبِيِّ : ۱- د نبی نه مراد جنس نبی دی نو ټولو انبیاؤ ته شامل دی،
۲- یا د نبی نه مراد موسیٰ علیه السلام او (ما انزل الیه) نه مراد تورات دی.
(۳) یا د نبی نه مراد رسول الله ﷺ او د (ما انزل الیه) نه قرآن کریم دی. اول ظاهر دی.
فٰسِقُوْنَ : یعنی د الله د طاعت نه بیخی بهر شویدی، نو دی ته فاسق فی الکفر وائی.
یعنی په کفر کی دننه فاسقان دی.
پدی آیتونو کی الله تعالیٰ ایمان والو ته وائی چه دوی ته دعوت وکړئ او د دوی نه مهٔ
متأثره کیږئ او دوی په دوستانه مهٔ نیسئ او جهاد ورسره وکړئ.

| لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الْيَهُوْدَ |
|---|
| خامخا مونده به کړې ته ډیر سخت د خلقو نه په دشمنیٔ کی د مؤمنانو سره یهودیان |
| وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚ وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً |
| او هغه کسان چه مشرکان دی او خامخا مونده به کړې ته ډیر نږدی د دوی نه په دوستیٔ کی |
| لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰى ۚ ذٰلِكَ بِاَنَّ |
| د مؤمنانو سره هغه کسان چه وائی بیشکه مونږ نصاریٰ یو دا په دی وجه چه بیشکه |
| مِنْهُمْ قِسِّيْسِيْنَ وَرُهْبَانًا وَّاَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۸۲﴾ |
| بعض د دوی نه عالمان دی او عابدان دی او یقیناً دوی لوئی نهٔ کوی (د حق نه). |

**تفسیر** : پدے آیت کی الله تعالیٰ د یهودیانو او مشرکانو د مسلمانانو سره د دشمنۍ سخت والے او د نصاراؤ نرم والے بیانوی، او دا تعارف الله تعالیٰ ولے کوی؟ نو پدے کی یوه فائده دا ده چه [مَعْرِفَةُ الْمَدْعُوِّيْنَ فِيْ بَابِ الدَّعْوَةِ]

دعوت الی الله چه کوے نو مدعوین (چا ته چه دعوت ورکولے شی) د هغوی حالت به پیژنے چه څوك سخت دی او څوك نرم، نو هر یو سره به جدا جدا برتاؤ او سلوك کولے شی، هر چا ته یو قسم بیان نهٔ وی، عوامو ته یو شان وی او علماؤ ته بل قسم، ضدیانو ته بل قسم وی، د درس یو شکل وی او د نصیحت بل شکل۔

نو دا هم د طرق الدعوة سره متعلق شو۔

دویم پدے کی الله تعالیٰ مونږ ته انصاف راښائی چه ټول یهود او نصاریٰ گمراهان نهٔ دی بلکه دوی کی ښه خلك هم شته۔

**اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً** : اَلْمَوَدَّةُ : مَحَبَّةٌ يَظْهَرُ اَثَرُهَا فِي الْقَوْلِ وَالْعَمَلِ۔

دا هغه مینه ده چه اثر ئے په خبرو او عمل کی راښکاره کیږی، او دا ئے صحیح تفسیر دے او په مطلق محبت سره ددے تفسیر ضعیف دے لکه جمهورو هغه کړیدے۔ (المنار/۷/۲)

**اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً** : اَيْ بِاعْتِبَارِ قَبُوْلِهِمُ الدَّعْوَةَ۔

یعنی دوی په مینه کی زیات نزدے دی یعنی په اعتبار د قبولولو د دوی دعوت د اسلام لره۔ یعنی نصرانی په نسبت د یهودی سره اسلام زر قبلوی۔

## یهودیان ولے په دشمنۍ کی سخت دی؟

الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته خبر ورکړیدے چه یهودیان او مشرکان د نورو خلقو په نسبت د مسلمانانو په دشمنۍ کی زیات سخت دی۔ ۱ – یهودیان د دوی سره پدے وجه دشمنی کوی چه مسلمانانو په عیسیٰ علیه السلام او محمد ﷺ دواړو باندے ایمان راوړو، او دوی د دواړو نه منکر دی۔ ۲ – او پدے وجه چه د حق نه انکار او د داعیانو او دعوت الی الله سره دشمنی دوی ته په میراث کی رسیدلے وه، ډیر انبیاء علیهم السلام ئے قتل کړی، او څو ځل ئے د نبی کریم ﷺ د قتل کولو سازش هم کړے، لیکن هر ځل الله د دوی سازشونه ناکام کړیدی، او د خپل رسول ﷺ حفاظت ئے کړے نو د دوی د حق داعیان بدی شی۔ ضدیان، حسدگر دی۔

۳- او پدے وجه هم چه د اسلام د راتلونه روستو د لوئی یهودی سلطنت قائمیدل ښکاره ختم شو. ٤- بله دا چه دوی د خپل دین په مخالف باندے ظلم جائز گنړی او هغوی غلامان گنړی او د هغوی قتل ورته مباح ښکاری، او مؤمنان د دوی بیخی برعکس دی، هغوی د دوی په ظلمونو او فسادونو رد کوی نو ځکه ورسره د یهودو دشمنی سخته ده.

٥- دارنګه په یهودو کی د دنیا حرص او مشری طلب کول او تکبر کول عادت دے او نصاراؤ کی دا صفتونه لږ دی.

او شربینیؒ او محمد رشید رضاؒ لیکلی دی چه دا وجه ده چه کله د نبی کریم ﷺ خطونه نصاراؤ ته رسیدلی دی نو یا ئے ایمان راوړیدے او یا نرم شویدی لکه هرقل بادشاه او مقوقس او هوذه بن علی او د عُمان بادشاه جیفر بن جلندی او عبد بن جلندی او غیر د نصاراؤ نه هغوی د رسول الله ﷺ د خط ډیره بی عزتی کړیده لکه کِسریٰ د فارس چه خط ئے ذرے ذرے کړو. نو رسول الله ﷺ او صحابه کرامؓ په خپله زمانه کی د نصاراؤ مودت او اسلام ته قرب لیدلے وو او دغه ئے شواهد وو او د یهودو نه ئے ډیر تکلیفونه لیدلی وو. (المنار ٧/٤)

او مشرکان پدے وجه دشمنی کوی چه مسلمانانو د الله د وحدانیت اقرار اُوکړو او د انبیاء کرامو په نبوتونو ئے ایمان راوړو، او دوی د کفر او شرك په زوړو تیارو کی ګډود پاتے وو.

## نصاریٰ ولے مؤمنانو ته په مینه کی نزدے دی؟

او د مسیح ؑ منونکو نه چه کوم خلق خپل ځان ته نصاریٰ وائی او د انجیل د منهج مطابق خپل ژوند تیروی، هغوی په مجموعی توګه په خپلو زړونو کی د اسلام او مسلمانانو دپاره نرمی لری، او ددے وجه دا ده چه د دوی په زړونو کی نرمی وی او د یهودیانو په نسبت د دوی په زړونو کی کینه او حسد کم وی.

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه ددے سبب دا دے چه د مسیح په دین باندے د قائم پاتے کیدو په وجه د دوی په زړونو کی نرمی او د همدردیٔ جذبه وی لکه چه الله تعالیٰ په سورة الحدید آیت (۲۷) کی فرمایلی دی: ﴿ وَجَعَلْنَا فِي قُلُوبِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ رَأْفَةً وَرَحْمَةً ﴾ چه مونږ د مسیح د منونکو په زړونو کی د همدردیٔ او رحمت جذبه ایخودے ده. په انجیل کی دی چه «څوك تا په ښی اننګی باندے په څپیړه وهی نو ته هغه ته خپل کس اننګے وړاندے کړه». او ددے وجه دا ده چه د دوی مشر (عیسیٰ ؑ) هغه پیغمبر وو چه انتهائی درجه

رقت او نرمي پکې وه، او انتهائي درجه زاهد وو او دا قانون دے چه څوك د چا منونکے شي نو د هغه صفات پکې راځي لکه پدے خبره سوچ وکړه چه د چا شاګردي دے وکړه نو د هغه استاذ صفات به په تا کې راځي، که استاذ ضدي عنادي وو، نو تا کې به هم راځي، که مشران دے صوفیان وو نو تا کې به هم صوفیت راځي او خرافات به بیانوے، نو دا امتِ محمدیه د رسول الله ﷺ تابعدار دي او په هغه کې خو بیشماره کمالات وو نو ددے د وجه نه پدے امت کې مجموعي طور سره کمالات زیات دي۔

او ددے وجه دا هم ده چه جنګ کول په دین مسیح کې مشروع نهٔ وو۔ ددے برعکس د یهودو په مذهب کې دي چه څوك ستاسو د دین مخالف وي نو هغه ته په نقصان رسولو کې هر ممکن کوشش کوئ۔

ابن مردویهٔ د ابو هریره ﷛ نه مرفوعاً روایت کړیدے چه کله هم یو یهودي کوم مسلمان یواځے اُومومي نو د هغه د قتلولو کوشش کوي۔ وسنده ضعیف (ابن کثیر ۳/۱٦٦)

نصاریٰ مسلمانانو ته زیات نزدے پدے وجه هم دي چه په هغوی کې د علم حاصلولو او د زهد فی الدنیا رغبت موندلے شي او چا کې چه دا دواړه څیزونه موجود وي نو په هغه کې د بغض او حسد ماده کمه وي۔ (السعدي)

لکه دے طرف ته د آیت په آخر کې اشاره ده (منهم قسسین ورهبانا) چه په دوی کې علماء او عباد او زهاد وي چه تواضع اختیاروي او د یهودیانو په شان په کبر او غرور کې نهٔ اخته کیږي، او هر کله چه په دوی کې نرمي ده نو د دوی نه اُوس زمانه کې ډیر خلك په اسلام کې داخلیږي لکه د "ډاکټر ذاکر نائیك" حفظه الله په دعوت ډیر څو مره نصاریٰ مسلمانان شو دا هر چا ته ښکاره ده۔ او دارنګه د عربو علماؤ په دعوت سره۔ او بعض صوفیان دعویٰ کوي چه مونږ مسلمانان کړل حالانکه هغه اهل حدیث مسلمانان دي صوفیه نهٔ دي، بلکه دا چه د صوفیه ؤ دعوت خو کفارو ته نهٔ دے هغوی خو صرف مسلمانانو پسے ګرځي، او دا د هغوی په مشن کې نشته چه کفارو ته دعوت ورکړي۔

او د نصاراؤ صفت دا هم دے چه کله دوی د الله کلام آوري نو د دوی د سترګو نه اُوښکے روانیږي ځکه چه په هغے کې د نبی کریم بشارت (زیرے) موجود دے او دعا کوي چه اے الله ! مونږ هغه خلقو کې اُولیکه چه د هغه د صحیح کیدو ګواهي ورکوي او په هغه باندے ایمان راوړي۔

پدے آیتونو کې د عیسایانو نرمي چه کومه ذکر شویده دا ددے خبرے دلیل نهٔ دے چه

دوی د مسلمانانو سره دشمنی نهٔ لری۔ پدے وجه قرآن (أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً) کلمات استعمال کریدی چه نصاریٰ هم دشمنان دی لیکن یهودیان او مشرکان په دشمنیٔ کی ډیر سخت دی۔ په تیره شوے زمانه کی د مسلمانانو او عیسایانو ترمینځ چه کوم جنګونه شویدی د هغے وجه دشمنی هم وه او د یهودیانو د سازشونو په وجه هم داسے شویدی۔

دا خبره په ذهن کی ساتل پکار دی چه ډیر کرته په زړونو کی نرمی کیدو باوجود د ذاتی یا قومی مفاداتو د خاطره د ورونو، رشته دارو او قبیلو او قومونو ترمینځ جنګونه کیږی، نو دا دینی نهٔ دی لکه اُوس نصاریٰ خپل مینځ کی هم په جنګ دی لکه امریکا او برطانیه ئے مثالونه دی۔ نو معلومه شوه چه د دشمنیٔ او مودت اصلی سبب هغه روحانی حالت دے نو په روحانی حالت کی نصاریٰ مسلمانانو ته نزدے دی او یهود او مشرکان ترے لری دی لکه یهود او مشرکان په راتلونکی اخلاقو او صفاتو کی د یو بل سره شریک دی، لکه کبر، عتو، ظلم، حُبُّ الْعُلُو (د مشریٔ سره مینه)، جنسی تعصب، قومی غیرت، د مادی حیات غلبه، قسوة القلب، د نرمیٔ او شفقت کمزوری، (المنار وتیسیر الرحمن)

دلته صاحب المنار ډیر ښائسته تفصیلات ذکر کړیدی چه د کتلو قابل دی۔

پدے وجه دلته الله تعالیٰ قضیه مهمله وئیلے ده، او داسے ئے نهٔ دی وئیلی چه ټول نصاریٰ نرم دی، ولے دوی خو اُوس په مسلمانانو باندے بمباری کوی او هر قسم فسادونه کوی۔ او قضیه مهمله په قوت د جزئیه کی وی یعنی مجموعی طور سره نصاراؤ کی په نسبت د یهودیانو نرمی شته، لکه اُوس هم دوی د بشر دوستیٔ آوازونه کوی او څه ناڅه ددے دپاره منډه هم وهی۔

ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ : قسیسین جمع د قِسِّيس یا د قَسّ ده د نصاراؤ عالِم ته وائی (قاله قطربٌ- قرطبیٌ) دا د قَسّ نه دے په معنیٰ د یو شی پسے ددے دپاره وړپسے کیدل چه هغه طلب کوی۔ او قس او قِسیس د علماء او عابدانو تابعدار ته هم وائی۔

او قرطبیٌ د عروه بن الزبیرؓ نه روایت ذکر کړیدے چه هرکله نصاراؤ خپل کتاب (انجیل) ضائع کړو او تبدیلی ئے پکی وکړه نو د هغوی نه یو عالِم په حق او استقامت باندے پاتے شو چه د هغه نوم قسیس وو نو څوک چه د هغه په دین باندے وو نو هغوی ته به ئے قِسِّيسِينَ ویل یعنی د قسیس تابعداران۔

وَرُهْبَانًا : رهبان: جمع د راهب ده، هغه کسان دی چه عبادتونه کوی او د الله نه یره کوی او مال او جاه ئے مطلب نهٔ وی۔

وَّأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ : دا بل سبب دے یعنی دوی کی د کبر ماده کمه ده، حق زر منونکی دی، پدے وجه مؤمنانو ته نزدے دی، ځکه چه عاجزی کونکے شخص خیر طرفته د مستکبر نه زیات نزدے وی۔ (السعدیؒ)

## شان نزول

د مفسرینو اتفاق دے چه دا آیتونه د نجاشی او د هغه د ملګرو د ایمان او د هغوی د صفاتو د بیانولو دپاره نازل شوی وو۔ ابن ابی حاتمؒ د سعید بن مسیبؒ، ابوبکر بن عبد الرحمنؒ او عروه بن زبیرؒ نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ عمرو بن اُمیه ضَمریؓ ته یو خط ورکړو او نجاشی ته ئے ولیږلو او نجاشی خط لوستو سره جعفر بن ابی طالبؓ او د هغه سره موجود نور مهاجرین راوغوختل او خپل علماء او زاهدان ئے راطلب کړل، سیدنا جعفر ؓ د سورة مریم تلاوت اُوکړو نو نجاشی او د هغه تمامو ملګرو په قرآن باندے ایمان راوړو او د هغوی د سترګو نه اُوښکے روانے شوے، د هغه خلقو حالت او د ایمانی کیفیت د بیانولو دپاره په مدنی ژوند کی دا آیتونه نازل شوی وو۔

محمد بن اسحاقؒ د ام المؤمنین ام سَلَمه رضی الله عنها نه یو اُوږد حدیث روایت کړیدے چه په هغے کی هغوی د مسلمانانو حبشو ته د هجرت واقعه بیان کړیده۔

او دا چه د قریشو کافرانو عبد الله بن ابی ربیعه او عمرو بن العاص (چه لا تردے وخت پورے ورته د "رضی الله عنه" لقب نۀ دے ملاؤ شوے) ته ډیرے تحفے او هدیی ورکړے او حبشو ته ئے اُولیږل چه دوی هلته لاړل نجاشی او د حبشو پادریان ئے د مسلمانانو په خلاف ډیر زیات راوپارول چه په څه طریقه مسلمانان مهاجرین د قریشو کافرانو ته حواله کړے شی لیکن کله چه جعفر بن ابی طالبؓ د اسلام تشریح اُوکړه او د نبی کریم ﷺ صفات ئے بیان کړل او د مسیح ابن مریم (عليه السلام) په باره کښ ئے د اسلام صحیح عقیده پیش کړه نو نجاشی ډیر زیات متأثر شو او په اسلام مشرف شو۔ انتهیٰ۔

(القرطبی۲۵۵/۶ وابن کثیر۱۶۶/۳ والبغوی وغیرهم)

حافظ ابن القیم رحمة الله علیه په ((زاد المعاد)) کی لیکلی دی چه حبشو ته د مسلمانانو هجرت په سنه (۵ ھ) کی شوے وو۔ انتهیٰ۔

د بخاریؒ او مسلمؒ روایت دے چه کله نبی کریم ﷺ ته د نجاشی د مرګ خبر اُورسیدو نو هغه صحابه کرام رضی الله عنهم ته اُوفرمایل چه په حبشو کی ستاسو ورور نجاشی

وفات شویدیے، د هغـه د جنازے مونځ وکړئ نو تولو صحابه ؤ سره نبی ﷺ صحراء ته ووتلو او د هغه د جنازے (غائبانه) مونځ ئے وکړو۔

دارنګه دا آیتونه د هغه وفد په باره کی نازل وو چه د حبشو نه مدینے ته راغے، نجاشی رالیږلے وو نو رسول الله ﷺ په هغوی باندے سورة یس ولوستلو نو هغوی تولو وژړل او ایمان ئے راوړو او بیرته په اسلام مشرف واپس شول، نو پدے کی ابوجهل ورته وویل چه تاسو خو ډیر کم عقلان یئ چه قوم د تحقیق دپاره راولیږلئ او تاسو په یو مجلس په محمد (ﷺ) باندے خپل دین پریخودو نو هغوی ورته وویل چه ﴿ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ لَا نَبْتَغِی الْجٰهِلِیْنَ﴾ سورة القصص کی به ئے تفصیل راشی ان شاء الله تعالیٰ۔ ینظر تفسیر ابن کثیر (۱۶۶/۳)

| |
|---|
| وَاِذَا سَمِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَى الرَّسُوْلِ تَرٰٓى اَعْيُنَهُمْ |
| او کله چه واوری دوی هغه قرآن چه نازل شویدے رسول ته وینے به تۀ سترګے د دوی |
| تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوْا مِنَ الْحَقِّ ۚ يَقُوْلُوْنَ |
| چه بهیږی به د اوښکو نه د وجه د هغے نه چه وپیژندلو دوی حق لره وائی دوی |
| رَبَّنَآ اٰمَنَّا فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۳﴾ |
| اے ربه زمونږه! ایمان راوړیدے مونږ نو ولیکه مونږه د (حق) ګواهی کونکو سره۔ |
| وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَا جَآءَنَا |
| او څه وجه ده مونږ لره چه ایمان به نۀ راوړو په الله تعالیٰ او په هغه څه چه راغلی دے مونږ ته |
| مِنَ الْحَقِّ ۙ وَنَطْمَعُ اَنْ يُّدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۸۴﴾ |
| د حق نه او طمع لرو مونږ چه داخل به کړی مونږ لره رب زمونږه سره د قوم نیکانو نه۔ |
| فَاَثَابَهُمُ اللّٰهُ بِمَا قَالُوْا جَنّٰتٍ تَجْرِىْ |
| پس بدله ورکړه دوی ته الله تعالیٰ په سبب د هغے چه دوی وویل جنتونه چه بهیږی به |
| مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ وَذٰلِكَ جَزَآءُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۸۵﴾ وَالَّذِيْنَ |
| لاندے د هغے نه نهرونه همیشه وی په هغے کی او دا بدله د ښائسته عمل کونکو۔ او هغه |

كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿٨٦﴾

کسان چه کفرئے کړیدے او دروغجن ئے گنړلی آیتونه زمونږ. همدا کسان اُور والا دی۔

**تفسیر** : دا د هغوی د نرمئ نښه ده چه د الله کتاب واوری نو د سترګو نه ئے اُوښکی روانی وی۔

تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ : سترګے نهٔ بهیږی، بلکه اُوښکے بهیږی مګر دا مبالغه ده او اشاره ده ډیرے ژړا ته ځکه چه سترګه هر طرفته وبهیږی نو ډیره ژړا وی او چه اُوښکی راوبهیږی نو لږه ژړا وی۔

مِمَّا عَرَفُوْا مِنَ الْحَقِّ : اول مِنْ اجلیه او دویم تبعیضیه دے یعنی پدے وجه چه دوی د بعض حق په پیژندلو ژړا وکړله او کله چه ټول واوری نو بیا خو به ددے نه زیات ژاړی۔

من الحق : بیا ژړا کله د خپلو ګناهونو د وجه نه وی او کله د الله نعمتونه رایاد کړی، نو حیاء ورشی وژاړی، او کله د عذابونو د وجه نه وی، او کله د حق د پیژندلو د وجه نه وی چه اُوه! مونږ خو په ډیره غټه ګمراهئ کی پراته وو حقه لاره خو دا ده، ښه دے چه الله مونږ ته حق رانصیب کړو۔

يَقُوْلُوْنَ : دوی ډیرے ښے دعاګانے وکړے. الله ته هغهٔ خوښے شوے نو په قرآن کریم کی ئے نازلے کړیے۔ او دا د دوی د نهٔ تکبر دلیل دے۔

مَعَ الشّٰهِدِيْنَ : بالحق۔ یعنی د هغه کسانو سره مو ولیکه چه د حق ګواهی ورکوی۔ او مراد ددے نه امت محمدیه دے چه دوی به په قیامت کی د حق ګواهی ورکوی۔

**فائده** : قرطبیؒ لیکی : [وَهٰذِهٖ اَحْوَالُ الْعُلَمَاءِ يَبْكُوْنَ وَلَا يَصْعَقُوْنَ وَيَسْاَلُوْنَ وَلَا يَصِيْحُوْنَ وَيَتَحَازَنُوْنَ وَلَا يَتَمَوَّتُوْنَ] (القرطبی٦/٢٥٨)

دا صفات د حق پرستو علماؤ دی چه قرآن آوری نو ژړا کوی خو بیهوشی ورباندے نهٔ راځی، او د الله نه دعاګانے غواړی لیکن چغے نهٔ وهی او اظهار د غم کوی لیکن د مرګ حالت نهٔ ښکاره کوی لکه څنګه چه دا کارونه په متصوفو باندے کیږی۔

وَمَالَنَا : دا وینا په جواب د هغه خلکو کی وه چه دوی ئے په ایمان راوړو ملامته کول چه تاسو ولے بل دین غوره کړو؟ د یو روایت مطابق ابوجهل ورته ووئیل : تاسو ولے په محمد (ﷺ) باندے ایمان راوړو؟ نو دوی یو باعث او بل مانع او عذر ختمیدل بیان کړل یعنی سبب موجود دے او مانع او عذر نشته نو ایمان به خامخا راوړو، ځکه چه سبب موجود وی

او مانع نهٔ وی نو حکم واجب وی. هغه سبب دا دے چه (و نطمع أن یدخلنا) یعنی مونږ د خپل رب نه دا طمع لرو چه مونږ ته به بخنه وکړی. او مونږ به په نیکانو کی داخل کړی او د نیکانو طریقه دا ده چه هر چرته حق وی هغه قبلوی او ضد او عناد نهٔ کوی. نو دلته به (مَعَ) په معنیٰ د (فِیْ) سره وی، یا دا داخلیدل جنت ته مراد دی.

اَیْ یُدْخِلَنَا رَبُّنَا الْجَنَّةَ مَعَ الْقَوْمِ الصّٰلِحِیْنَ. مونږ به داخل کړی جنت ته د نیکانو سره.

وما لنا: یعنی څه وجه ده چه مونږ به ایمان نهٔ راوړو یعنی هیڅ عذر نشته.

وَمَا جَآءَنَا مِنَ الْحَقِّ: دا عطف دے په (بالله) باندے. یعنی یو به په الله ایمان راوړو او بل په هغه حق باندے چه مونږ ته راغلو.

فَاَثَابَهُمُ اللّٰهُ: دا د آخرت زیرے دے دوی دپاره.

بِمَا قَالُوْا: دا قول (اقرار) وو په ژبه لیکن د زړه نه وو، لکه مخکی د دوی اخلاص ذکر شو په حق قبلولو او په ژړا کولو سره. نو ددے نه د کرامیهٔ مذهب نهٔ ثابتیږی چه صرف په اقرار سره جنت ملاویږی بلکه دلته دوی تصدیق او اقرار او عمل ټول جمع کړیدی ځکه نے ورته د آیت په آخر کی (مُحْسِنِیْنَ) هم ووئیل.

اَلْمُحْسِنِیْنَ: یعنی د دوی نظر په بره الله باندے لګیدو پدے وجه ئے حق قبول کړو او دعاء هم بنده لره د احسان درجے ته رسوی. بنه فکر او دعا دواړه د احسان اسباب دی.

| |
|---|
| یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَیِّبٰتِ مَاۤ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ |
| اے ایمان والو! مهٔ حراموئ (په ځان) پاك څیزونه هغه چه حلال کړیدی الله تاسو لره |
| وَلَا تَعْتَدُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ الْمُعْتَدِیْنَ ﴿۸۷﴾ |
| او زیاتے مهٔ کوئ د حد نه یقیناً الله تعالیٰ مینه نهٔ کوی د زیاتی کونکو سره. |
| وَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ حَلٰلًا طَیِّبًا ۪ وَّاتَّقُوا |
| او خوراك کوئ د هغے نه چه درکړیدی تاسو ته الله تعالیٰ حلال پاك او ویریږئ |
| اللّٰهَ الَّذِیْۤ اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ﴿۸۸﴾ |
| د الله نه هغه ذات چه تاسو په هغه ایمان لرونکی یئ. |

**تفسیر**: ددے نه روستو اُوس بیرته د سورت ابتداء ته واپسی ده چه هغه د حلالو او د

حرامو مسائل دي تر آخر د سورت پورې او په آخر کې به بیا واقعه د عیسیٰ علیه السلام راوړي، دپاره د رد په نصاراؤ باندې ځکه چه دا اکثر امت دې نو د دوی د عقیدې اصلاح به وکړي. او مخکې ئې دا بیان کړل چه یهودو د حلال او د حرامو لحاظ ونهٔ ساتلو او د الله حکمونه ئې مات کړل نو الله څنګه ذلیله کړل د هغوی مثالونه ئې بیان کړل، او ورسره ئې دا هم بیان کړل چه هر کله دوی کې داخباثتونه دي نو تاسو له د هغوی سره موالات (دوستي) جائز نهٔ ده لکه منافقان دا کار کوي.

نو ددې نه روستو د سورت دویمه موضوع بیانیږي چه تحلیل او تحریم به د شارع د طرفنه وي، بندګان به ئې د ځان نه په خپل مزاج او رایه او فکر سره نکوي، او په آخر کې به وړائي ﴿قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ﴾ چه په قیامت کې به درسره حساب کوي نو رسول الله ﷺ چه تاسو ته کوم حلال حرام راوړل د هغې تابعداري وکړئ.

## شان نزول

ددې آیت د شان نزول په باره کې ګڼړ روایات راغلي دي چه بعض دا دي :

رسول الله ﷺ په یوه موقعه کې د دنیا د بې رغبتئ خبرې وکړې نو څه مؤمنان د عثمان بن مظعون رضی الله عنه په کور کې راجمع شو چه تقریباً لس کسان وو نو دا فیصله ئې وکړه چه مونږ به نکاح نهٔ کوو، غوښه به نهٔ خورو او خپل ځان به خسره ګان (خصیان) کوو [وَأَنْ يَجُبُّوْا مَذَاكِيْرَهُمْ] (خپل خاص اندامونه به پریکوو) او د مسوح (ټاټونو) جامې به اچوو او په زمکه کې به سیاحت کوو، او په دنیا کې به زهد او د آخرت سره به مینه کوو تردې چه مرګ راشي او آخرت مو بنه شي.

مفسرین لیکي چه په دوی کې سیدنا ابوبکر صدیق، علي بن ابي طالب، عبد الله بن مسعود، مقداد بن الاسود، سلمان فارسي او ابوذر غفاري او معقل بن مقرن (رضی الله عن الجمیع وارضاهم) وو، نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو چه اې مؤمنانو! په ځان باندې پاک څیزونه مهٔ حراموئ چه الله درله حلال کړیدي. (دا خو بیا رهبانیت دې او د دنیا نظام خرابول دي، زمونږ په اسلام کې زهد شته لیکن غلو نشته) (ابن جریرؒ وابن کثیرؒ)

۲- ترمذيؒ د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت کړیدې چه یو سړي رسول الله ﷺ ته راغلو او وې وئیل [إِنِّيْ إِذَا أَصَبْتُ اللَّحْمَ انْتَشَرْتُ لِلنِّسَاءِ وَأَخَذَتْنِيْ شَهْوَتِيْ فَحَرَّمْتُ عَلَيَّ اللَّحْمَ] چه کله زهٔ غوښه خورم نو د ښځې خواهش راځي او زما شهوت رابورته کیږي پدې

وجه ما په ځان باندې غوښه حرامه کړېده، نو دا آیت نازل شو.

(الترمذی: ٣٠٥٤ وسنده صحیح -البانی ومحمد احمد شاکر) (وابن کثیر)

٣- په صحیحینو کې د انس ﷺ نه روایت شویدې چه بعض صحابه کرامو د امهات المؤمنین نه د نبی ﷺ د پټ نیك اعمالو په باره کې معلومات اُوکړو (او د معلومات نه روستو) نو د هغوی نه یو تن اُووئیل چه زهٔ به غوښه نهٔ خورم. او چا اُووئیل چه زهٔ به وادهٔ نهٔ کوم او چا اُووئیل چه زهٔ به په بستره خوب نهٔ کوم، او چا وویل چه زهٔ به همیشه روژه یم، خوراك به نهٔ کوم. نبی کریم ﷺ چه کله ددې نه خبر شو نو وې وفرمایل:

((څه خلق داسې وائی، لَـٰكِنِّي أَصُومُ وَأُفْطِرُ وَأُصَلِّي وَأَرْقُدُ وَأَتَزَوَّجُ النِّسَاءَ فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِيْ فَلَيْسَ مِنِّيْ] حلال دا چه زهٔ روژه نیسم او ماتوم ئې هم، او اُوده کیږم او رابیداریږم، او غوښه خورم او واده کوم، نو څوك چه زما د سنت نه اعراض کوی هغه به ما نه نهٔ وی)).

(صحیح بخاری: ٥٠٦٣) وابن کثیر)

او پدې کې حکمة دا دې چه هرکله بنده په ځان باندې دا څیزونه حراموی نو بیا دا څیزونه الله تعالیٰ ولې پیدا کول، دا د الله د حکمة خلاف راځی، او پدې سره په دین کې غلو او د الله د حدودو نه تجاوز راځی. ددې د پیدا کولو حکمة هم دا دې چه ددې په استعمالولو کې په بندګانو باندې امتحان شی. دا وجه ده چه پدې مقام کې مفسرینو په هغه صوفیاؤ زاهدانو باندې رد کړیدې چه هغوی په زهد کې داسې مرتبې ته ورسیږی چه په زهد کې غوښه نهٔ خوری، او حلال څیزونه په ځان حراموی. (القرطبی)

ابن الجوزیؒ وائی چه د بعض صوفیاؤ نه نقل دی چه هغوی به ویل چه د یوې روپۍ په اندازه غوښه خوړل څلویښت ورځې زړه سختوی. (تلبیس ابلیس ١/١٨٧)

نو د الله د رسول نه پدې کې مخکې کیدل بې دینی ده، او د هغه طریقه دا وه چه یو شې به ملاویدو نو هغه به ئې استعمالولو او د الله شکر به ئې کولو او چه کله به نهٔ ملاویدو نو پرواه به ئې نهٔ کوله، او ددې دپاره به ئې جنګ جګړې نهٔ کولې او نهٔ به د هغې پسې خفه کیدو. او په اکثرو انسانانو کې ددې په باب کې افراط او تفریط دې.

ځینې صوفیان پکې لا دا هم وائی چه د خپلې ښځې سره به د څلورو کینتو نه زیات نهٔ کینې ګنې ایمان به دې خرابیږی. دا هم په دین کې غلو ده.

## مضمون

ددے آیت نه روستو بیان د اقسامو د قسم دے، چه تحریم حلفی جائز دے او د قسم دوه نوعے ئے ذکر کړیدی، یمین لغو او یمین منعقد، بیا ئے محرمات الٰهیه په (۹۰) آیت کی بیان کړیدی، بیا ئے په اطاعة الله والرسول باندے امر کړیدے او په (۹۳) کی جواب د یو سوال دے د شرابو متعلق۔ بیا د تحریمات الٰهیه موقته ؤ بیان دے چه د یو وخت پورے حرام وی چه هغه په حالت د احرام او حَرَم کی د ښکار کول دی تر (۹۶) پورے،

بیا په (۹۷) کی د نذرونو او نور محرمات الٰهیه ؤ بیانول دی بیا تخویف او بشارت دے، بیا ئے امر په تبلیغ ذکر کړیدے، بیا ئے ترغیب په خیر کی او ترهیب عن الشر بیان کړیدے (قل لا یستوی الخبیث) سره۔ بیا دوه عنوانه دی، یو ځایه تپوسونه مهٔ کوئ او صحیح دین زده کړئ۔ بیا تحریمات د غیر الله دی چه انسانانو حرام کړیدی نهٔ الله تعالیٰ، بیا د مشرکانو دلیل په (۱۰٤) کی، بیا ترغیب دے، بیا مسئلة الوصیة ده او په دروغجن قسم باندے رد دے۔ او په آخر کی الله تخویف اخروی بیانوی مخالفینو د پیغمبر ته په (يَوْمَ يَجْمَعُ اللهُ الرُّسُلَ) سره چه دوی به په قیامت کی انتهائی پښیمانه او شرمنده وی او دا د ټولو انبیاؤ حکم دے او خصوصاً بیا د نصاراؤ او ورسره د یهودو قصه بیانوی چه د دوی عقیده د عیسیٰ علیه السلام په باره کی خرابه شوے وه۔

او په آخر د سورت کی داسے آیت دے چه د ټول سورت مضمون لره شامل دے چه بادشاهی د الله ده نو نظام به د هغه چلیږی۔

**تفسیر : لَا تُحَرِّمُوْا** : أَيْ لَاتَعْتَقِدُوْا حُرْمَتَهٗ۔ یعنی ددے پاکو څیزونو د حرامو الی عقیده مهٔ ساتئ۔ ځکه دا د الله په خلاف کی ودریدل دی او که چا د ځان نه تحریم وکړو سره د علم نه نو دا مشرك دے په اجماع د مسلمانانو سره ځکه چه دا د ځان نه قانون جوړول دی۔

۲ -لَا تَنَزَّهُوْا عَنْهُ مِثْلَ الْحَرَامِ وَلَاتُعَامِلُوْا مَعَهٗ مُعَامَلَةَ الْحَرَامِ ۔ یعنی ددے نه د حرامو په شان ځان مهٔ ساتئ او دے سره د حرامو په شان معامله مهٔ کوئ۔ کله یو سړے یو شے حرام نهٔ ګنړی لیکن دومره ورته بد ښکاره کیږی لکه د حرامو په شان او د هغے په استعمالولو کی عیب ګنړی۔ (تفسیر النیسابوری)

بیا دا تحریم په څلورو طریقو سره دے (۱) د الله حلال د انکار د وجه نه حرام وګنړی او د هغه حرام حلال وګنړی۔ (۲) د عقیدے او د شرکی یرے د وجه نه یعنی یو حلال شے (چه

نسبت ئې يو باطل معبود ته کړے شوے وی) هغه په ځان باندے حرام کړی پدے عقیده چه که دا په ځان حلال کړم نو دغه معبود به ما ته تکلیف او ضرر راورسوی لکه بحیره او سائبه شوه. (۳) په قرآن او حدیث کی یو شے حلال وی لیکن د علماءِ سوء د تقلید په وجه بی دلیله هغه حرام وګرځوی. (٤) د رهبانیت (صوفیت) د وجه نه بعض حلال څیزونه په ځان باندے حرام کړی لکه بعض صوفیاء بعض جائز لباس او غوښه خوړل، نکاح کول او میوے او غوړی استعمالول بند کړی لکه بعض ملنګان دا کارونه کوی نو دلته دا نهی (لَاتُحَرِّمُوا) دے ټولو قسمونو ته شامل ده. او خصوصاً په آخری قسم باندے رد اول مقصد دے. (احسن الکلام)

طَيِّبٰتِ : مَا أَغْذَى وَأَنْمٰى . چه انسان ته غذاء او نمو پرے ملاویږی. او طیبات بیا هر قسم کارونو، کسبونو، خوراکونو، نکاحونو ته شامل دے، یواځے د خوراکونو پورے خاص نۀ دے او دلیل پرے دغه مخکنی شان نزول کی د حلال څیزونو حراموالے دے.

او حلال هغے ته وائی چه د هغے کسب حلال وی او په صحیح طریقه ګټلے شوی وی.

بیا ئې حلال او طیب دواړه جمع کړل ځکه بعض څیزونه حلال وی لیکن طیب نۀ وی لکه سکاره، کاڼړے او وسپنه وغیره وخوری، او بعض طیب وی لیکن حلال نۀ وی لکه پردے مال.

حسن بصریؒ ته چا وویل چه دلته یو سړے دے فالوده نۀ خوری، هغه وویل : ولے ؟ وے ویل : هغه وائی چه مونږ ددے شکر نشو کولے. نو حسنؒ ورته وفرمایل: آیا دے یخې اوبه څکی؟ وے ویل : آؤ، ورته ئې وویل : ستا ګاونډی جاهل دے، د یخو اوبو نعمت د فالودے نه زیات دے، آیا ددے شکر کولے شی؟. (القرطبی٦/٢٦٢)

وَلَا تَعۡتَدُوۡا : ابن الجوزیؒ ددے پنځه معانی ذکر کریدی :

(۱) لَا تَجُبُّوْا أَنْفُسَكُمْ (ابن عباسؓ ومجاهدؒ)

زیاتے مۀ کوئ چه خپل ځانونه خصیان کړئ.

(۲) لَا تَاْتُوْا مَا نَهَى اللّٰهُ عَنْهُ (الحسنؒ)

هغه کارونو ته راتلل مۀ کوئ چه الله ترے منع کریده.

(۳) لَا تَسِيْرُوْا بِغَيْرِ سِيْرَةِ الْمُسْلِمِيْنَ مِنْ تَرْكِ النِّسَاءِ وَإِدَامَةِ الصِّيَامِ وَالْقِيَامِ (عکرمة)

تاسو د مسلمانانو نه په غیر د بل چا په طریقه مۀ روانیږئ چه د ښځو نکاح پریدئ او همیشه روژے او قیام اللیل وکړئ.

(٤) لَا تُحَرِّمُوا الْحَلَالَ (مقاتل) حلال مهٔ حراموئ.
(٥) لَاتَغْصِبُوا الْأَمْوَالَ الْمُحَرَّمَةَ] (الماوردیؒ) پردی مالونه مهٔ غصب کوئ.
(زاد المسیر: ٢/ ٢٥٦)
(٦)- علامه قاسمیؒ وائی: لَاتَعْتَدُوا عَلَى النَّفْسِ وَالْأَهْلِ بِمَنْعِ الْحُقُوقِ.
زیاتے مهٔ کوئ په نفس او په اهل باندے چه د دوی نه حقوق منع کرئ.
(٧) - یا لَاتَعْتَدُوا حُدُودَ مَا أَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ إِلَى مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ.
تجاوز مهٔ کوئ د حلالو د حدودو نه حرامو طرفته.
(٨) یا د حلالو په حاصلولو کی د حد نه تجاوز مهٔ کوئ چه اسراف طرفته ورشئ. لکه کلوا واشربوا ولا تسرفوا په شان دے. (القاسمیؒ)
وَكُلُوا : یعنی د خان نه ئے مهٔ حراموئ.

## آیا حلال شی حرامولو سره کفاره لازمیږی؟

(١) امام شافعی رحمة الله علیه او د جمهورو علماؤ مذهب دے چه که یو شخص په خان باندے د خوراك څکاك شے یا لباس یا بل شے حراموی نو هغه شے نهٔ حرامیږی او نهٔ په دهٔ باندے کفاره شته. (علماؤ د ښځے حرامول ددے نه مستثنیٰ ګرځولی دی) څکه چه د آیت حکم مطلق دے او څکه چه کوم صحابی (د ترمذی تیر شوی روایت مطابق) په خان باندے غوښه حرامه کړے وه، هغه ته د الله رسول ﷺ د کفارے حکم ورنکړو.
(٢) د امام ابوحنیفه او امام احمد رحمهما الله مذهب دا دے چه که یو شخص یو شے په خان باندے حراموی نو هغه شے حرامیږی اود هغے په خوړلو سره کفاره لازمیږی. امام شوکانیؒ وائی چه دا مذهب د آیت خلاف دے او د صحیح احادیثو هم خلاف دے. (فتح القدیر) مګر صحیح خبره دا ده چه همدا مذهب د صحیح احادیثو مطابق دے څکه چه په قصه د ابوبکر صدیق رضی الله عنه کی په بخاری کی راغلی دی چه هغه د طعام نه قسم وکړو نو میلمه هم وکړو، بیا ابوبکر صدیق رضی الله عنه وفرمایل چه دا شیطانی عمل دے، نو قسم ئے مات کړو او کفاره ئے ورکړه. او رسول الله ﷺ فرمائی: زهٔ چه کله په یو شی قسم وکړم او د هغے نه بهتر وینم نو قسم ماتوم او کفاره ورکوم. (صحیحین) او سورة التحریم کی راغلی دی چه رسول الله ﷺ د بیبیانو او د حلالو شاتو نه قسم وکړو او په خان ئے حرام کړل نو الله ورته وفرمایل: چه (قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ) ستاسو د قسمونو کفاره الله تعالیٰ تاسو

باندے لازمه کړه- وانظر تفسیر ابن کثیر)

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ

نهٔ رانیسی تاسو الله تعالیٰ په بے ارادے په قسمونو ستاسو کی لیکن رانیسی تاسو لره

بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ۚ فَكَفَّارَتُهٗٓ اِطْعَامُ عَشَرَةِ

په هغهٔ څه چه مضبوط تړلی وی تاسو قسمونه پس کفاره د هغے خوراك ورکول د لسو

مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ

مسکینانو دی د درمیانه هغه خوراك نه چه خوروئ تاسو په اهل خپل باندے یا جامے د هغوی

اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ۭ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ۭ

یا آزادول د مرئی دی پس څوك چه نهٔ مومی په دهٔ باندے روژی دی درے ورځے (پرله پسے)

ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ ۭ وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْ ۭ

دا کفاره د قسمونو ستاسو ده کله چه قسمونه وکړئ تاسو او بچ ساتئ قسمونه خپل

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٨٩﴾

دغسے بیانوی الله تعالیٰ تاسو ته احکام خپل دے دپاره چه تاسو شکر وکړئ-

**تفسیر**: دا دفع د سوال ده چه یو تن په ځان باندے د قسم په وجه یو حلال شے حرام کړی لکه د یو حلال خوراك په باره کی ووائی چه قسم په الله زهٔ ئے نهٔ خورم نو آیا دا به هم گناه وی او بنده به پدے سره مشرك کیږی؟ نو جواب کوی چه تحریم حلفی جائز دے یعنی په قسم باندے یو شے د یو وخت پورے منع کول د یو حکمة د وجه نه جائز دی لکه رسول الله ﷺ دا کار کړیدے، د شاتو په باره کی ئے وئیلی وو (وَاللّٰهِ لَا اَعُوْدُ) قسم په الله زهٔ به بیا شات نهٔ خورم- او ځان باندے ئے ماریه قبطیه حرامه کړه لیکن الله ورته تنبیه ورکړه چه په ځان باندے هسے حلال څیزونه مهٔ بندوه اگرکه دا جائز کار دے کله چه پکی فائده وی او ددے په وجه بل ته تکلیف نهٔ وی-

او په قسم کی چونکه د الله تعظیم دے او د ځان نه په حرامولو کی تعظیم د غیر الله دے نو د دواړو ترمینځ فرق دے- لکه رسول الله ﷺ فرمایلی دی:

(اِحْلِفُوْ بِاللّٰهِ وَبَرُّوْا وَاصْدُقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ یُحِبُّ اَنْ یُحْلَفَ بِهٖ)

تاسو په الله قسمونه کوئ او پکې نیکي کوئ او رشتیا وایئ ځکه چه الله تعالیٰ دا خوښوي چه د هغه په نوم قسم وکړے شي. (ځکه چه په دے کي د الله تعظیم راځي). (حلیة ابی نعیم (۲٦۷/۷) صحیح الجامع رقم: (۲۱۱) وسنده صحیح)

## شان نزول

ابن جریرؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه کله آیت ﴿یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَیِّبَاتِ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَکُمْ﴾ نازل شو نو کومو صحابه کرامو چه په ځان باندے ښځے او غوښه حرامه کړے وه نو هغوی د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اُوکړه چه مونږ به په دے باره کي د خپلو قسمونو سره څه کوو؟ نو الله دا آیت نازل کړو، او د لغو قسم او د زړهٔ نه خوړلے شوی قسم حکم ئے بیان کړو.

او دا دواړه (سوال او شان نزول) د ربط وجوهات هم شو.

بِاللَّغْوِ فِیٓ اَیْمَانِکُمْ : لغو هغه شي ته وائي چه په بي پرواهئ سره وغورځولے شي.

دا آیت دلیل دے چه په لغو قسم باندے الله تعالیٰ رانیول نهٔ کوي او نهٔ پرے کفاره شته.

لغو قسم هغه دے چه هغه انسان بغیر د نیت نه دغه شان په ژبه باندے د عادت په توګه په غیر د ارادے نه راولي، لکه څوک وائي: قسم په الله، قسم په رب، په خپل پیدا کونکي قسم، او د هغه هیڅ نیت نهٔ وي. لیکن که یو شخص په یوه خبره باندے د زړهٔ په نیت سره قسم خوري او هغه نهٔ پوره کوي نو دا به د هغے کفاره ورکوي لکه چه دلته ددے تفصیل بیان شویدے.

د درے واړو قسمونو تفصیل د سورة البقره آیت (۲۲۵) لاندے تیر شویدے یو ځل بیا هغے ته رجوع کول فائده ورکوي.

په یمین منعقد کي معمولي شان زیات وضاحت دا دے چه که دا قسم په ګناه شوے وو نو د هغے ماتول واجب دي لکه رسول الله ﷺ فرمائي: چه زهٔ په یو شي قسم وخورم او د هغے نه راته غوره ښکاره شي نو قسم ماتوم او کفاره ورکوم. (صحیحین)

او که په نیکئ باندے قسم وي، مثلاً قسم په الله صدقه به کوم، نو دا به خامخا پوره کوي او که پوره ئے نکړو نو ګناهګار دے او توبه او استغفار به کوي او بیا به کفاره هم ورکوي. او که په جائزو څیزونو باندے قسم شوے وو لکه تا وویل چه قسم په الله زهٔ به نن

شپـه کتـاب مطالعه کوم، یا به زهٔ بازار ته نهٔ ځم، نو ستا خوښه ده که دا پوره کوے او که نهٔ لیکن که پوره دِے نکړو نو کفاره به ورکوے۔

بِمَا عَقَّدْتُمُ الْاِيْمَانَ : سوال دا دے چه په قسم کولو رانیول څنګه وشی حال دا چه قسم ته خو په احادیثو کی ترغیب راغلے دے؟

جواب : دلته مضاف پټ دے۔ أَيْ بِنَكْثِ مَا عَقَّدْتُمُ الْاَيْمَانَ۔

یعنی په ماتولو د قسمونو مو رانیسی۔

ځینی روستو (اِذَا حَنَثْتُمْ) لفظ راوباسی۔ یعنی کله چه تاسو قسم مات کړو۔

مګر کـه آیت پـه ظاهـر بانـدے واخستے شی نو هم خبره جوړه ده یعنی الله تاسو پـه قسمـونـو رانیسـی کـه چرته قسم په ګناه شوے وو نو په عین قسم کی ګناه ده، او که جائز قسم وی او درنه مات شو نـو بیـا دِے په کفاره رانیسی، او که د ګناه قسم نهٔ وی نو بیا دِے پـدے بانـدے رانیسـی چـه دا قسـم پوره کړه۔ نو په درے واړو صورتونو کی په قسم باندے رانیول راغلل۔

عَقَّدْتُمُ الْاَيْمَانَ : عَقْدُ الْيَمِيْنِ۔ دے ته وائی چه قسم ئے په زړه کی غوټه کړے وی یعنی نیت ئے ورله کړے وی۔ الایمان جمع د یمین ده۔ او یمین قسم ته هم وائی او ښی لاس ته هم او قسم ته ځکه یمین وائی چه په ښی لاس کی قوت وی نو په قسم سره هم یوه خبره قوی کیږی۔

فَكَفَّارَتُهٗ : د کفارے معنیٰ ده ګناه رژول او پټول۔

دلته په کفاره د قسم کی څلور څیزونه خودلے شویدی یو اطعام، دویم جامے ورکول۔ دریم غلام آزادول او څلورم درے روژے نیول۔ نو پدے درے څیزونو کی اختیار دے چه هر یو باندے عمل کوی لیکن دلته الله اطعام (طعام ورکول) مخکی ذکر کړیدی ځکه چه دا افضل ده، وجه داده چه په حجاز کی طعام ته ډیر ضرورت وو، عام خلك په فقر او مسکنت کی اخته وو۔

او ابن العربی رحمه الله وائی چه دا د حالاتو مطابق ورکول پکار دی، که مسکینان طعام ته ضرورت لری نو طعام ورکول افضل دی ځکه که تهٔ پدے وخت کی غلام آزاد کړے نو تا یولسم محتاج زیات کړو۔ او بیا ددے پسے کپړے ورکول دی۔ او الله ته د بندګانو ضرورت معلوم وو پدے وجه ئے اهم مقدم کړو۔ (القرطبیؒ) لیکن غلام آزادول بالکل صحیح دی۔

او حافظ ابن کثیرؒ وائی چه پدے کی ترقی ده د ادنیٰ نه اعلیٰ ته، ځکه اطعام د جامو نه

آسان دے او جامے د غلام آزادولو نه آسان دی،

## د قسم د کفارے اندازه

د لسو مسکینانو د خوراك ورکولو د تحدید په باره کی د صحابه کرامؓ او تابعینؒ ډیر اقوال دی:

۱- د علي بن ابی طالب ؓ قول دے چه د غرمے او ماښام دوه وخته خوراك ورکول دی۔

۲- حسن بصریؒ او محمد بن الحنفیةؒ وائی چه صرف یو کرت غوښه او روټئ ورکول کافی کیږی۔ ۳- عمر فاروقؓ او عائشهؓ او بعض تابعینؒ وائی چه یو سړی ته به نیم صاع (تقریباً پاؤ باندے یو کلو) غنم یا کجورے ورکول کافی کیږی۔

٤- سلیمان بن یسارؒ وائی ما خلك موندلی دی چه هغوی به په کفاره د قسم کی د غنمو یو مد ورکولو او دا به ئے کافی گنړلو او دا قول د ابن عمر، ابن عباس، زید بن ثابت رضی الله عنهم دے او دے ته عطاء بن ابی رباحؒ ذهاب کریدے۔ (القرطبی ۲۷۶/۶) وهو الظاهر۔

که یو تن صرف د غنمو شل دوډئ واخلی او مسکینانو ته ئے ورکړی نو هم جائز ده ځکه چه دا به پخوا زمانه کی بغیر د سالن نه خوړلے شوه او که ترکاری (سالن) ورسره ملگرے کړی نو بهتره ده۔ او دا ډیر آسان کار دے مگر خلك روژو ته رجوع زیاته کوی او مال نه لگوی۔

چونکه په آیت کی ددے هیڅ تحدید نشته پدے وجه راجح دا معلومیږی چه لس مسکینانو ته په ډکه خیټه خوراك ورکول کافی کیږی۔

بیا په طعام کی دا هم صحیح ده چه لسو مسکینانو دپاره وړه واخلی او هغوی ته ئے ورکړی مثلاً په یو کور کی لس کسان وسیږی او هغه مسکینان وی نو هغوی دپاره دے وړه واخلی او ورډے ئے کړی، یا دے طعام پوخ کړی او لس مسکینان دے ورته راوغواړی۔

دغه شان د لباس هم څه تحدید نه دے راغلے۔ پدے وجه د وخت او حالاتو مطابق رائج لباس ورکول کافی کیږی، قمیص پرتوگ، یا لنگ او قمیص۔

ابراهیم نخعیؒ وائی چه داسے لباس به وی چه یو د قمیص او بل د لنگ په ځای کار ورکړی، او صرف جانگے یا قمیص ته جامع لباس نه وائی۔

او امام مالكؒ او احمدؒ وائی چه هغه جامه به ورکړی چه په هغے کی د ښځے یا د سړی مونځ کول صحیح وی یعنی چه اُوږے او عورت پټوی۔ یا ټول بدن پټوی۔ (ابن کثیر)

نو لس جوړې به واخلي او مسکینانو ته به ئې ورکړي.
اَوۡ تَحۡرِیۡرُ رَقَبَةٍ : د رقبه نه مراد غلام یا وینځه ده، او دې ته رقبه ځکه وائي چه ددۀ څټ د مالك سره بند وي.
د غلام یا وینځې په باره کې د ابو حنیفهؒ قول دې چه مسلم او کافر هر یو کافي کیږي.
لیکن د شافعيؒ او نورو خیال دې چه مسلمان کیدل ضروري دي لکه چه د معاویه بن الحکم السلميؓ په روایت کې راغلي دي چه هغه امام مسلمؒ او امام مالك وغیرهما ذکر کړیدې چه دۀ باندې یو غلام آزادول وو، دۀ یوه توره وینځه راوسته نو رسول الله ﷺ د هغې نه تپوس اُوکړو چه (اَیۡنَ اللّٰهُ ؟) الله چرته دې ؟ هغې اُووئیل : په آسمان کې.
بیا ئې تپوس اُوکړو چه زۀ څوك یم ؟ نو ورته وئیل چه ته د الله رسول ئې. نو نبي ﷺ اُوفرمایل : دا آزاده کړه، دا مسلمانه ده.
مګر راجح قول د امام ابو حنیفهؒ دې ځکه چه دلته آیت مطلق دې او حادثه یوه نۀ ده نو مطلق به په خپل اطلاق جاري کیږي، او دغه روایت کې دا خبره نشته چه دا وینځه آزادول د قسم په کفاره کې وو، بلکه هغه پدې وجه آزادوله چه په مخ ئې وهلې وه او رسول الله ﷺ ورته غصه کړې وه. کما في روایة ابي داود رقم : (۹۳۱)
فَمَنۡ لَّمۡ یَجِدۡ : یعنی که مخکنی څیزونه نۀ مومي، دومره مال ورسره نشته چه مسکینانو ته پرې طعام یا کپړې واخلي، او مریان هم نشته نو بیا به روژې نیسي.
فَصِیَامُ ثَلٰثَةِ اَیَّامٍ : آیا دا روژې پرله پسې نیول واجب دي او که مستحب ؟ امام شافعيؒ وائي چه پرله پسې نیول واجب نۀ دي، امام مالك هم دا وائي ځکه چه دلته حکم مطلق دې هیڅ قید پکې نشته لکه د رمضان مسلسل روژې قضاء شي نو په هغې کې پرله پسې نیول ضروري نۀ دي ځکه چه (فَعِدَّةٌ مِّنۡ اَیَّامٍ اُخَرَ) مطلق حکم دې. او احناف او حنابله وائي چه پرله پسې والې شرط دې، دلیل کې یو شاذ قراءت د عبد الله بن مسعود ؓ پیش کوي چه په هغې کې (ثَلٰثَةِ اَیَّامٍ مُّتَتَابِعَاتٍ) راغلې دې. لیکن جمهور وائي چه دا قراءت متواتر نۀ دې بلکه شاذ دې او شاذ قرائت په منزله د ضعیف حدیث وي. (ابن کثیرؒ) او په ضعیف روایت باندې احکام شرعیه نۀ بناء کیږي لهذا دا حکم به مطلق پریښودې شي.
ذٰلِكَ کَفَّارَةُ اَیۡمَانِکُمۡ اِذَا حَلَفۡتُمۡ : اَیۡ وَحَنِثۡتُمۡ. یعنی چه کله حانث شئ. نو ددې سره حنث مراد دې لیکن حلف (قسم) د کفارې دپاره اصل سبب دې، پدې وجه ئې هغه ذکر کړو، نو دا دلیل دې چه کفاره به د قسم نه مخکې نۀ ورکوي، او د حانث کیدو نه مخکې

کفاره ورکولو کې اختلاف دے، د یو حدیث نه معلومیږي چه مخکې والے جائز دے۔ کما رواه مسلم "وَلْيُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِهِ وَلْيَأْتِ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ"۔ یعنې د خپل قسم کفاره دې ورکړي او هغه کار ته دې راتلل وکړي چه هغه غوره وي۔ (مسلم: ٤٣٦٦)

وَاحْفَظُوٓا اَيْمَانَكُمْ : د قسم د حفاظت ډیر شکلونه دي:

(١) اَلْاِحْتِرَازُ عَنِ الْيَمِيْنِ۔ په بې ضرورته خبرو باندے قسمونو کولو نه ځان ساتل۔ (خازن)

(٢) بِعَدَمِ الْحِنْثِ۔ د قسم حفاظت دا دے چه ځان حانث نکړي یعنې قسم مات نکړي، نو بیا دا دلیل دے چه قسم نهٔ ماتول غوره دي، مګر که په قسم ماتولو کې کومه زیاته نیکي وي نو بیا ماتول غوره دي۔

(٣) بِأَدَاءِ الْكَفَّارَاتِ ۔ د قسم حفاظت دا دے چه کله هغه مات کړي نو بیا کفاره ورکړي، ډیر خلك قسم ماتوي او بیا کفاره نهٔ ورکوي حال دا چه د کفارے ادا کول د ایمان د شعبو نه یوه لویه شعبه ده، او داسے فرض دي لکه څنګه چه مونځ، روژه او زکاة فرض دي۔

(٤) لَا تَحْلِفُوْا بِغَيْرِ اللّٰهِ۔

د قسم حفاظت دا هم دے چه صرف په الله به قسم کوي، نهٔ په غیر الله۔

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ : دا احکام راتلل د شکر لائق دي ځکه چه که الله تعالیٰ قسم په بندګانو باندے مطلقاً حرام کړے وے نو بندګانو ته ضرر وو، د هغوی په ژوند کې به ډیره تنګي پیدا شوے وے، او که د قسم کفاره ئے نهٔ وے وئیلې او د قسم ماتول ئے ناجائز کړے وے لکه په پخوانو امتونو باندے د قسم کفاره نهٔ وه نو بیا به هم ډیره ګرانه وه، نو دا آسانیانې الله راولیږلے نو ددے احساناتو شکر لازم دے۔

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ |
|---|
| اے ایمان والو ! یقیناً شراب او جواري او بندګي د بتانو او قسمت معلومول په غشو |
| رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿٩٠﴾ |
| پلیتي ده د عمل د شیطان نه دي نو ځان وساتئ ددے نه دے دپاره چه کامیاب شئ۔ |

**تفسیر** : پدے کې محرمات الهیه مُؤَبَّدَه بیانیږي یعنې هغه څیزونه چه الله همیشه دپاره حرام کړیدي۔ او دا بل عقد دے د عقودو نه چه څلور څیزونه پکې الله حرام کړځولي دي او د هغے دوه وجے ئے بیان کړیدي، یو ایراث الخبائث۔ چه دا څیزونه خباثتونه پیدا

کوی- بل تَخْلِيَةُ الْمَحَاسِن- دا درنه نیك اخلاق او نیك صفات وباسی- نو هرهغه شے چه د انسان نیك صفات وباسی او بد اخلاق پکی پیدا کوی نو د هغے نه ځان ساتل د هر عاقل دپاره لازم وی-او دا آخرنے آیت دے چه الله تعالیٰ پرے شراب همیشه دپاره حرام کړیدی-

اول د سورة البقرے آیت (۲۱۹) کی د شراب او جوارئ خرابیانے بیان شوے، بیا د سورة النساء آیت کی ئے وویل چه د مانځه په وخت کی ئے مهٔ څکئ،

بیا عمر فاروق ﷺ وفرمایل : [اَللّٰهُمَّ بَيِّنْ لَنَا فِي الْخَمْرِ بَيَانًا شَافِيًا] اے الله! مونږ دپاره د شرابو په باره کی ښکاره تسلی بخش بیان وکړه، نو الله دا آیت نازل کړو- او ﴿فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُوْنَ﴾ چه ووبل شو (آیا تاسو منع کیدونکے یئ؟) نو هغوی ووبل : [اِنْتَهَيْنَا اِنْتَهَيْنَا]

مونږ منع شو مونږ منع شو- نو د مدینے په لارو کوڅو کی شراب وارولے شو او کتوئ ګانے ئے ماتے کړے شوے، او د یتیمانانو شراب هم وارولے شو، تپوس وشو چه یا رسول الله ! سرکه ترے نهٔ جوړه وو؟ وے فرمایل: مه ئے جوړوئ، او رسول الله ﷺ د شرابو په باره کی سخت وعیدونه بیان کړل چه مُدْمِنُ الخمر (همیشه شراب څکونکے) به الله تعالیٰ جنت ته نهٔ بوځی- او چا چه په دنیا کی وڅکل په آخرت کی به ئے نهٔ څکی- (صحیح مسلم : ۵۳۳۶)

حکمة دے کی دا دے چه شراب عقل ختموی او مؤمن نه چه عقل لاړ شی نو الله به نهٔ پیژنی، د مانځه وخت، خور او مور به نهٔ پیژنی، کنځل او رد بد به وائی-

نو پدے سره ډیرے بد اخلاقیانی پیدا کیږی، او ورسره درے څیزونه ئے نور هم حرام کړل (جواری، د بتانو عبادت، او د غشو په ذریعه د قسمت معلومولو عمل) دے دپاره چه معاشره بیخی صفا شی-

## مناسبت او ارتباط

۱- اول الله تعالیٰ مسلمانان منع کړل چه دوی د الله حلال کړی څیزونه ځان دپاره حرام نهٔ کړی- اُوس د الله حرام کړی څیزونه بیانیږی دے دپاره چه ددے نه بچ شی-

۲- مخکی ئے ووبل چه طیبات مهٔ حراموئ نو د بعضو په نیز خمر او میسر هم د طیباتو نه وو نو اُوس د هغے حرمت بیانوی-

**بلاغة** : پدے آیتِ کریمه کی د شراب او جوارئ حراموالے په مضبوطیا سره بیانولو دپاره الله تعالیٰ ډیرے طریقے اختیار کړیدی :

د (انما) لفظ په ابتداء د جمله کې ئې استعمال کړو، د بتانو د عبادت سره ئې دواړه ذکر کړل، دواړو ته ئې (رجس) یعنی گنده شے اُونیلو. د دواړو استعمال ئې شیطانی عمل اُوگرځولو. ددے نه د اجتناب کولو حکم ئې اُوکړو. او په آخر کې د دواړو د استعمال بد ترین نتائج ئې ذکر کړل.

اِنَّمَا الْخَمْرُ : خمر په لغت کې په معنیٰ د پټولو سره او خمر ته هم ځکه خمر وائی چه دا هم عقل پټوی. په عرف کې: هُوَ النِّيُّ مِنْ مَاءِ الْعِنَبِ إِذَا اشْتَدَّ وَغَلٰى وَقَذَفَ بِالزَّبَدِ (فتح البیان) د انگورو کچه اُوبه چه کله ټینګے شی او وخوټ کیږی او زګونه ګوزار کړی. او بیا نشه پیدا کړی او فقهاء احنافو همدے لغوی عرف ته کتلی دی پدے وجه ئې شراب صرف د انگورو نه حرام گرځولی دی. او دا ئې وئیلی دی چه شراب صرف د انگورو نه جوړیږی او که د نورو څیزونو نه جوړ شو هغے ته به شراب نهٔ وائی بلکه هغه به نبیذ وی نو که ډیر ئې نشه پیدا کوله او لږ ئې نهٔ پیدا کوله او لږ ئې استعمال کړل نو دا به حرام نهٔ وی البته که نشے حد ته ورسیدل نو بیا به حرام وی او کله چه د انگورو نه وی نو هغه به مطلقاً حرام وی لږ وی که ډیر وی اګرکه یو څاڅکے وی. دا مذهب د آیت او د صحیح حدیث او د صحیح قیاس خلاف دے. (القرطبی ۲۹٤/٦)

او قاعده دا ده چه کله شارع یو لفظ استعمال کړی او هغه ئې تشریح ونکړی بیا به لغت ته رجوع کیږی لیکن کله چه شارع د هغے تشریح خپله وکړی نو بیا به لغت ته رجوع نهٔ کیږی. نو شارع د خمر تعریف داسے کړیدے امام مسلمؒ د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: [ کُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ ] هر نشه راوستونکے شے شراب دی او نشه راوستونکے شے حرام دے) (صحیح مسلم: ٥٣٣٦)

او حدیث کې دا قانون هم راغلے دے: [مَا أَسْكَرَ كَثِيْرُهُ فَقَلِيْلُهُ حَرَامٌ] هر هغه شے چه ډیر ئې نشه راولی نو لږ ئې هم حرام دی). (ابوداود: ٣٦٨٣) والترمذی: ١٨٦٥) وغیرهما بسند صحیح)

امام رازیؒ لیکلی دی چه دا آیت د نص په طریقه صریح دلالت کوی چه نشه پیدا کونکی څیزونه حرام دی، ځکه چه الله تعالیٰ د شرابو د حراموالی سبب هغه دنیوی او دینی نقصانات خودلی دی کوم چه په شرابو کې موندلے شی. او دا نقصانات د هغے د نشے د وجه نه وی کومه چه په شرابو کې وی، پدے وجه دا خبره په قطعی توګه ثابته شوه چه هر نشه راوستونکے شے حرام دے او بیا ئې دغه حدیث د ابن عمرؓ ذکر کړیدے.

نو ددے وجه نه نسوار او بهنګ وغیره چه نشه راوستونکی څیزونه دی حرام دی. لکه

پوډر، چرس نور مخدرات، الکحول شو ددے په دوایانو کی استعمال هم جائز نهٔ دے۔
زمونږ په زمانه کی اکثرے دوایانی د نشو دی، د مسلمان دپاره دا جائز نهٔ دی ددے نه ځان ساتل ضروری دی۔

**فائده** : شریعت د نفس، مال، عزت او عقل او دین حفاظت دپاره همیشه کوشش کوی، پدے آیت کی د عقل، دین او عزت حفاظت دے بلکه د مال هم دے فتدبر۔

**وَالْمَيْسِرُ** : د جواریٔ ډیر انواع دی (۱) یو دا چه په شریکه ډیر کسان مال واچوی او بیا په آسانیٔ بانده یو ته یو شے ملاؤ شی او نور خلك محرومه شی، نو یا سو چه گټه یا سو چه تاوان وشی، نو انسان د گټے او د خطرے سره مخامخ وی او په بیع کی دا خطره نهٔ وی۔

ددے یو صورت د لاټریٔ هم دے، او د لډو او شطرنج او نرد شیر، بیلډگیم لوبی هم پکی داخلیږی۔

د مجاهد او طاووس رحمهما الله نه روایت شویدے چه ماشومان چه په غوزانو لوبی کوی، او د یو بل نه د گټلو شرطونه لگوی دا هم جواری ده۔ راشد بن سعدؒ او حمزه بن حبیبؒ وائی : اندے جنگول او بیا هغه د یو بل نه گټل هم جواری ده۔

سعید بن المسیبؒ وائی : د جاهلیت په زمانه کی به جواری داسے کیدله چه د یوے چیلیٔ یا د دوه چیلو غوبنه به د شرط په طور خرڅولے شوه۔

زهریؒ وائی : چه جواری به داسے وه چه په مالونو او میوه جاتو به غشی وروبشتلے کیدل او بیا به د جواریٔ په ذریعه هغه قبضه کیدل۔ (ابن کثیرؒ)

په دے دور کی د جواریٔ ډیر صورتونه دی مسلمان له ترے ځان ساتل پکار دی لکه بیمه انشورنس، یا تکافل تعاونی نظام شو دا هم جوار ده، تفصیل ئے په الدین الخالص (۱۰) جلد کی وگوره۔ دارنگه سوالونه حل کولو ذپاره د تولو نه پیسے جمع کول او یو ته انعام ورکول لکه دا کار اُوس په موبائیل سستم کی شروع دے دا هم سود او جواری ده۔ دارنگه حوافز تجاریه بعض صورتونه فتاوی الدین الخالص باب القمار (۱۰) جلد کی وگوره۔

**وَالْأَنْصَابُ** : جمع د نصب ده ۱ – كُلُّ مَا نُصِبَ وَعُبِدَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ حَجَرٍ وَشَجَرٍ وَقَبْرٍ) هر هغه شے چه ودرولے شی او د الله نه سویٔ د هغے بندگی وکړے شی، کاڼړے وی که ونه او که قبر۔

(۲) [مَا يُنْصَبُ لِلتَّقَرُّبِ بِهٖ إِلَى اللّٰهِ أَوْ لِلتَّبَرُّكِ بِهٖ أَوْ لِتَعْظِيْمِهٖ كَتَمَاثِيْلِ الرُّؤَسَاءِ وَالزُّعَمَاءِ فِي

الْعَهْدِ الْحَاضِرِ]

(هر هغه شے چه ددے دپاره ودرولے (مقرر) شی چه الله ته پرے ځان نزدے کوی، یا د هغے په وجه برکت حاصلوی لکه دیوال قبر وغیره، یا د هغه د تعظیم دپاره ودرولے شوی (دیوال ته زوړند شوی) وی لکه پدے زمانه کی د تنظیمونو او د ملکونو مشرانو او بادشاهانو تصاویر شو (لکه پدے ملك کی په هر سرکاری دفتر کی دا لازم وی چه د جناح تصویر به دیوال ته د هغه د تعظیم دپاره زوړندوی)۔ (ایسر التفاسیر لابی بکر الجزائری ۳۷٤/۱)

۳- او مشرکانو د کعبے په خوا کی گتے ودرولے چه په هغے به ئے ذبح کولے او پدے سره به ئے ځان خپلو بتانو او باطل معبودانو ته نزدے کولو۔ لکه ددے تشریح د سورت په ابتداء کی وکوره۔

وَالْاَزْلَامُ : ددے دوه مصداقه دی (۱) په غشو باندے تقسیم کول۔

(۲) او خپل قسمت معلومول۔ لکه تشریح ئے مخکی ذکر شویده۔

رِجْسٌ : په نیز د جمهورو پدے څیزونو کی رجس (پلیتی) معنوی ده، نو شراب هم معنوی پلیت دی چه څکل ئے حرام دی او ظاهراً پاك دی که په جامه باندے ولگیدل نو وینځل ئے ضروری نهٔ دی، او یو دلیل ئے دلالة الاقتران دے چه دلته ئے د میسر او انصاب او ازلام سره یو ځای ذکر کړیدی او هغه خو ظاهراً پلیت نهٔ دی نو دغه شان شراب هم شو۔

نو ددے نه دا هم معلومه شوه چه الکحل وغیره چه د شرابو یو قسم دے چه دا په دوایانو او په عطرونو او سپرے گانو کی یو ځای کولے شی نو دا اگرکه پلیت نهٔ دی لیکن ددے استعمال هم صحیح نهٔ دے ځکه چه دلته الله تعالیٰ (فَاجْتَنِبُوهُ) امر کړیدے په اجتناب باندے نو ددے نه هم ځان ساتل ضروری دی۔ البته که نسبت د کحولو په عطر یا سپرے یا دوائی کی کم وی لکه په سلو کی پنځه فیصده وی نو بیا باك نشته ځکه چه په دغه وخت کی دا نهٔ وئیلے کیږی چه دا پنځه فیصده مُسْکِر (نشه راوستونکی) دی، او پدے کی د آیت علت هم نشی راتلے (چه دشمنی او بغضاء راپیدا کیدل او د الله د ذکر نه مشغوله کیدل) لیکن بیا هم احتیاط دا دے چه ځان ترے وساتی۔

او د مفتی الدیار السعودیة ابن باز" نه تپوس وشو چه کله کحول ویلی شوی وی او د زهرو د قبیلے نه گرځیدلی وی، آیا په هغے باندے تطیّب جائز دے ؟ (یعنی که هغه په عطرو او سپرے کی ملاؤ شی او بیا ئے د خوشبوئی په ځای استعمال کړی؟) نو هغه وویل : چه پدے باندے تطیّب جائز دے او پدے کی هیڅ مانع نهٔ ښکاره کیږی۔

(فتاوى الاسلام سؤال وجواب، سوال رقم: ۳٤٦٧)

ليكن زمونږ په نيز دغه فتوىٰ په محل د نظر كې ده ځكه چه د (فاجتنبوه) خلاف راځي، دويم تعاون علي الاثم والعدوان دے كه بل چا اچولي وي او ته د هغے بيع شراء او سپلائي كوې۔

لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُوۡنَ : كاميابي به ځكه راځي چه په ايمان سره د مؤمن زړه صفا شو او د شراب او جوارئ وغيره نه د هغه ظاهر د ګندونو نه صفا شو نو ظاهراً او باطنا صفا شو او دغه كاميابي ده۔ بلكه د انجام د ښه كيدو ذريعه ده۔

**فائده** : مُهايميؒ په تفسير ((تبصير الرحمن)) كې ليكلي دي چه په شرابو څكلو كې د عقل بربادي ده او په جوارئ كې د مال بربادي ده (ګټه پكې كله كله وي) او په انصاب كې د انسان د عزت بربادي ده چه مخلوق ته تذلل او عبادت كوي۔ او په ازلام كې د علم بربادي ده او كثرتِ جهل دے۔ (احسن الكلام) او مخكې فائده كې تير شو چه اسلام هميشه ددے څيزونو د حفاظت كوشش كوي۔

| اِنَّمَا يُرِيۡدُ الشَّيۡطٰنُ اَنۡ يُّوۡقِعَ بَيۡنَكُمُ الۡعَدَاوَةَ وَالۡبَغۡضَآءَ |
|---|
| يقيناً غواړي شيطان چه واقع كړي په مينځ ستاسو كې دشمني او كينه |
| فِي الۡخَمۡرِ وَالۡمَيۡسِرِ وَيَصُدَّكُمۡ عَنۡ ذِكۡرِ اللّٰهِ |
| په څكلو د شرابو سره او كولو د جوارئ كې او منع كړي تاسو د ذكر د الله تعالىٰ نه |
| وَعَنِ الصَّلٰوةِ ج فَهَلۡ اَنۡتُمۡ مُّنۡتَهُوۡنَ ﴿۹۱﴾ |
| او د مانځه نه نو آيا تاسو منع كيدونكي يئ ؟ |

**تفسير** : يعني په شراب او جوارئ كې نقصانات شته چه خباثت په بنده كې راپيدا كوي،

اِنَّمَا يُرِيۡدُ الشَّيۡطٰنُ : په آيت كې د شراب او جوارئ ديني او دنياوي مفاسد هم بيان كړے شويدي، چه دا دواړه څيزونه د مسلمانانو ترمينځ دشمني پيدا كوي او د مانځه او ذكر الهي نه منع كوي۔

الۡعَدَاوَةَ : (كنځل وهل او قتال كول) ځكه چه څوك شراب وڅكي نو بيا رد بد او كنځل كوي نو د خلكو ورسره دشمني او بغض پيدا شي او په جوارئ كې د مال بيللو په

وجه يو بل سره جګړے پيدا شي، او ډير کرته يو بل قتل کړي چه په هغے سره شيطان ته ښه موقعه ملاؤ شي۔

فِي الْخَمْرِ : ١–أَيْ فِي اسْتِعْمَالِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ۔ يعني د شرابو او د جوارئ په استعمالولو کې۔ ٢– يا في اجليه ده۔ يعني د وجه د شرابو او د جوارئ نه۔

وَيَصُدَّكُمْ : دغه خو ظاهري نقصانات وو، او باطني نقصان دا دے چه پدے خيزونو کې چه کله بنده مشغول شي نو د الله د ياد او د هغه د عبادت نه بيخي غافل کيږي، لکه د شطرنج لوبے والو حال وګورئ مونځ څه چه د خپل کور او کار نه هم خبر نهٔ وي۔

هر کله چه په دے خيزونو کې دومره ظاهري او باطني نقصانات دي نو آيا يو مسلمان چه کله دا واوري، بيا به هم نهٔ منع کيږي۔ او د شطرنج (ازمري) لوبې ته امام شافعيؒ مکروه او نورو علماؤ حرام وئيلې دي۔ (ابن کثيرؒ)

او ددے نه دا معلومه شوه چه هر هغه لوبه چه بنده د مانځه نه او د عبادتونو نه غافله کوي هغه به حرامه وي او که يو بنده ورسره فرض مونځ په خپل وخت کولے شي نو بيا نهٔ ده حرامه۔

**فائده** : کرکټ ملکي سطح باندے کيږي، خلك د مانځه نه څه چه د کارونو نه هم وباسي، نو هيڅ بعيده نهٔ ده چه د هغے په تحريم باندے هم فتوىٰ ورکړے شي۔ نيټ، فيس بك د خلکو دين، عمر او مال تباه کړو، دغه خبائث سره د زيادت نه په هغے کې هم موجود دي نو حتى الوسع ځان ترے ساتل پکار دي او د هغے فضول استعمالول چه نهٔ په کې د دين فائده وي او نهٔ د دنيا، د مسلمان آخرت تباه کول دي۔

وَعَنِ الصَّلٰوةِ : دا تخصيص بعد التعميم دے، مونځ په ذکر کې داخل دے ليکن د اهتمام د وجه نه ئے جدا ذکر کړو۔

((فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُوْنَ)) يعني اُوس به تاسو ددے د استعمال نه بند شئ او که نهٔ د بل کوم حکم انتظار کوئ؟۔ نو عمر فاروق ﷺ او نورو صحابه کرامو اُووئيل چه اے الله! مونږ بند شو۔ (مسند احمدؒ)۔

او دا استفهام دے په معنیٰ د امر سره (يعني اِنْتَهُوْا) منع شئ، او پدے استفهام کې تاکيد زيات وي د امر نه۔

وَأَطِيْعُوا اللّٰهَ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاحْذَرُوْا ج

| او تابعداری کوئ د الله تعالیٰ او تابعداری کوئ د رسول (ﷺ) او ویریږئ (د خلاف د دواړو نه) |
|---|
| فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَا عَلٰى رَسُوْلِنَا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۹۲﴾ |
| نو که وګرځیدئ تاسو نو پوهه شئ چه بیشکه په رسول زمونږ رسول دی ښکاره۔ |

**تفسیر**: یعنی که د یو شی په منافعو او ضررونو خبر نشوئ بیا هم د الله او د رسول د احکامو تابعداری وکړئ او د هغه د قانون د مخالفت نه بچ شئ، او که بچ نشوئ نو ستاسو عذر زائل دے، زما رسول به صرف تاسو ته د الله احکام بیانوی نور ستاسو او د الله معامله ده۔

وَاحْذَرُوْا : د اطاعت سره ئے د حذر قید ځکه ولګولو چه هیڅ عبادت او اطاعت په غیر د حذر نه نشی کیدے، عبادت هله قبلیږی چه په حذر سره وی یعنی دا احتیاط به کوی چه چرته د الله حکم رانه مات نشی، او که بی باکه وی نو ډیرے بندګیانی به ترے پاتی وی۔ یا حذر اشاره ده ګناهونو پریخودو ته او طاعت عبادت دے او دا کمال دے۔

وَاحْذَرُوْا اَىْ مِنْ مُخَالَفَتِهِمَا۔ یعنی د دوی د مخالفت نه ویریږئ او بچاؤ اختیار کړئ۔

فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ : ددے جزاء پټه ده یعنی که تاسو واوړیدئ د الله او د رسول د اطاعت نه نو تاسو مستحق د عذاب یئ او ستاسو عذر ختم دے، او په رسول باندے به هیڅ ملامتیا نۀ وی۔ یا جزاء داسے ده: ثَبَتَتِ الْحُجَّةُ عَلَيْكُمْ۔ په تاسو باندے حجت قائم شو۔

| لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ |
|---|
| نشته په هغه کسانو چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړی نیک هیڅ ګناه |
| فِيْمَا طَعِمُوْٓا اِذَا مَا اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا |
| په هغه څه کی چه خوړلی دی دوی په هغه وخت چه ځان بچ کوی (د شرك نه) او ایمان لری |
| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا ثُمَّ اتَّقَوْا |
| او عمل کوی نیك بیا ځان ساتی د حرامو نه او ایمان همیشه لری بیا ځان بچ ساتی (د شبهاتو نه) |
| وَّاَحْسَنُوْا ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۹۳﴾ |
| او ښائسته عمل کوی او الله تعالیٰ مینه کوی د ښائسته عمل کونکو سره۔ |

**تفسیر**: شان نزول

دا جواب د سوال دے کله چه الله شراب حرام کړل نو بعض مسلمانانو ته دا شك راپیښ شو چه مخکې چه مونږ څکل آیا زمونږ عبادتونه به برباد وی او مونږ به ګناه کړی وی؟ او ځینې مسلمانان شهیدان شویدی او شراب د هغوی په ځیټو کې وو نو آیا دوی به د ګناه په حالت کې تللی وی؟ لکه د انس بن مالك ﷺ روایت وګوره هغه فرمائی :

ما د ابو طلحهؓ په کور کې خلقو ته شراب ورکول (په هغه وخت کې شراب د کجورو نه جوړیدل) چه رسول الله ﷺ دا اعلان اُوکړو چه شراب حرام شو. نو ابو طلحه ﷺ ما ته اُووئیل چه لاړ شه دا بهر واروه، نو زهٔ بهر لاړم هغه مے واړول. او هغه د مدینے په کوڅو کې اُوبهیدل. بعض خلقو اُووئیل چه څه کسان پدے حال کې مړهٔ شویدی چه شراب د هغوی په ځیټو کې وو؟ (لکه په اُحد کې بعض شهیدان شو نو آیا هغوی د جرم په حالت کې لاړل؟) نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو. (بخاریؔ وترمذیؔ).

او دا سوال په هره زمانه کې یو نوی حق پرست ته راپیښیږی چه مخکې مونږ د بدعت په طریقه عملونه کړیدی، اُوس راته صحیح د سنت لاره ملاؤ شوه، نو آیا زمونږ هغه زاړه عملونه به برباد وی؟ نو دلته د هغے ښائسته جواب موجود دے.

چه مخکنی عملونه که انسان په غلطه طریقه کړی وی مګر د الله د یرے د وجه نهٔ ئے کړی وی یا ئے د حراموالی نه مخکې شراب څکلی وی، جواری ئے کړی وی او په هغه زمانه کې هم د الله نه یریدونکے وی، ایمان او عمل صالح کونکې وی، نو د هغه دپاره د اباحت په وخت کې د یو مباح شی په استعمالولو کې هیڅ حرج نشته خاصکر کله چه هغه خلك په عام حالاتو کې په تقویٰ او ایمان سره متصف وی او بیا د ایمان او د تقویٰ او د عمل صالح په وجه ئے ترقی کړی وی، او د احسان اعلیٰ مقام ته رسیدلی وی چه هلته بنده ورسی نو الله تعالیٰ ورسره خصوصی محبت ساتی نو کوم پاك صحابه کرامؓ چه په ایمان او تقویٰ کې ئے ټول عمر تیر کړیدے او احسان درجے ته رسیدلو سره دَ الله په لاره کې شهیدان هم شو نو د هغوی په باره کې داسے قسم شکونه او شبهاتو پیدا کولو هیڅ ګنجائش نشته چه هغوی د یو داسے شی د استعمالولو سره د دنیا نه رخصت شویدی چه په هغه وخت کې حرام نهٔ وو او روستو حرام شو.

نو پدے کې د جواب سره سره یوه لطیفه اشاره ده د دغه صحابه کرامؓ فضیلت ته هم چه دوی په ایمان او تقویٰ او عمل صالح او د احسان په اعلیٰ درجه باندے متصف وو.

او دا شان نزول بعض صحابه کرامؓ ته (لکه عمرو بن معدیکرب او قدامه بن مظعون

رضی الله عنهما) ته نهٔ وو معلوم پدے وجه هغوی به دا ویل چه د ایمان او تقویٰ والو دپاره شراب حرام نهٔ دی، لیکن کله چه ورسره صحابه کرامؓ (ابن عباس، عمر فاروق او علی رضی الله عنهم) مناقشه وکړه او هغوی ته ئے شان نزول بیان کړو چه دا آیت د هغه چا په باره کی نازل وو چه هغوی مخکی د حراموالی نه شراب څکلی وو او بیا مړه شوی وو نو د خلکو گمان راغلے وو چه دوی به گناهګار وی او عمرؓ قدامهؓ ته وویل : (چه دائے اُوښے هم وو) چه که تا د الله نه تقویٰ کړے وے نو تا به شراب نهٔ څکلے، مطلب ئے دا وو چه تا د آیت تاویل او تفسیر خطا کړیدے۔ (القرطبی۲۹۸/٦)

لکه اُوس یو تن حق قبول کړی نو خلك ورته ووائی چه اُوسه پورے تا کوم مونځونه کړی وو، هغه غلط وو نو د هغے جواب هم دا دے چه الله تا په هغے باندے نهٔ گناهګاروی، مثلًا تا رفع الیدین نهٔ کول، د نامه نه دِے لاندے لاس کیخودل یا دِے زوړ ند ساتل او د سنت طریقو نه د بعض ملیانو یا د رواج په وجه محروم وے، نو هغه مونځونه هم ستا قبول دی ځکه چه هغه هم تا د الله او د رسول د تابعدارئ په وجه کړیدی او تا خو قرآن او حدیث سره ضد نهٔ کولو لیکن کله چه تا ته سنت طریقے راورسیدے او بیا هم پرے عمل نهٔ کوے نو تهٔ د خپل ځان خیرخواه نهٔ یی، او چه ضد کوے نو مونځ نهٔ قبلیدل لا څه چه د ایمان د ختمیدو خطره ده (فلا وربك لا یؤمنون) کی داخل نشے۔

طَعِمُوٓا : أَیْ مِنَ الْخَمْرِ وَأَكَلُوْا مِنَ الْمَیْسِرِ۔

یعني شراب ئے څکلی دی او د جوارئ مال ئے خوړلے دے۔

وَّآمَنُوْا : دلته درے ځل تقویٰ او ایمان ذکر شویدے یا خو تاکید غرض دے چه مؤمن به بار ایمان او تقویٰ تازه کوی۔ او دے کی جدا جدا مصداقات هم مفسرینو لیکلی دی :

١ - اول (آمنوا) د کفر او شرك نه ایمان راوړل دی او دویم ایمان په تحریم د خمر باندے دے او دریم ایمان (بِجَمِیْعِ مَا جَاءَ بِهِ النَّبِیُّ ﷺ) یعنی رسول الله ﷺ چه څه راوړی وی په هغے ټولو ایمان لری، یا استقامت او ثبات علی الایمان مراد دے۔ ظاهر دا ده چه تاکید غرض دے او د ایمان بار بار تازه کول پکار دی ځکه چه ایمان زر خرابیږی۔

او وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ هم دوه کرته ذکر شو یا خو تاکید غرض دے، یا دا چه اول صالحات فرض او مستحب دواړو ته شامل دے، او دویم صالحات په اداء د فرائضو مراد دے۔

او تقویٰ هم درے کرته ذکر ده دے کی هم (١) یا تاکید غرض دے چه په هر وخت کی تقویٰ پکار ده۔ (٢) یا دا چه اوله تقویٰ د شرك نه ده، او دویمه تقویٰ د کبائرو نه ده، او دریمه

تقویٰ د صغائرو نه ده، او ددے نه روستو بنده د احسان درجے ته رسیږی نو ځکه ئے وریسے (واحسنوا) احسان ذکر کړیدے۔ (۲) اوله تقویٰ مطلق ده یا د شرك او کفر نه ده، او دویمه تقویٰ د حرامو او کبائرو نه ده، او دریمه تقویٰ د شبهاتو او صغائرو نه ده۔

(۳) یا – اِتَّقُوا الشِّرْكَ یعنی د شرك نه ئے تقویٰ کړیده او دویمه تقویٰ د شرابو څکلو نه ده او دریمه تقویٰ (مِنَ الْعَوْدِ اِلَى الْخَمْرِ) شرابو ته د بیرته واپسئ نه ده۔ یا د مباحاتو نه ده چه کله د هغې په استعمال سره بنده ذلیله کیږی۔

وَّاَحْسَنُوْا : دائے د تقویٰ سره ولے ملگرے کړو؟ نو دے کی حکمة دا دے چه ډیر کرته بنده عملونه کوی بغیر د توجه د الله نه او عمل چه بی توجه وی، نو د هغے اثر نهٔ وی نو الله ورسره احسان یو ځای کړو چه تقویٰ به کوی په طریقه د احسان سره (ان تعبد الله کأنك تراه) د الله به داسے بندگی کوی لکه چه الله ته گوری او داسے بندگان د الله خوښ وی۔

یا احسان کی اشاره ده اتباع د سنت ته۔

| |
|---|
| يَـاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ |
| اے ایمان والو! خامخا امتحان کوی په تاسو الله تعالیٰ په څه شی د ښکار نه |
| تَنَالُهٗٓ اَيْدِيْكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ |
| چه رسیږی هغے ته لاسونه ستاسو او نیزے ستاسو دے دپاره چه ښکاره کړی |
| اللّٰهُ مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدٰى |
| الله تعالیٰ هغه څوك چه یریږی د هغه نه په غائب والی کی نو چا چه زیاتے وکړو |
| بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۹۴﴾ |
| پس ددے نه نو هغه دپاره عذاب دردناك دے۔ |

**تفسیر** : دلته موقت محرمات بیانوی یعنی چه د یو وخت یا مکان پورے خاص وی لکه په حالت د احرام یا په حرم کی ښکار کول، او پدے کی مقصد امتحان دے په بندگانو چه څوك د هغه نه غائبانه یره کوی۔ او بل مقصد پکی د بنده د حرامو نه په ځان ساتلو باندے عادت کول، نو دا ترینګ دے، دے دپاره چه بنده په آینده ژوند کی احتیاط کوی۔

پدے آیتِ کریمه کی الله تعالیٰ خپلو مؤمنانو بندگانو ته خطاب کولو سره اُوفرمایل چه

الله تعالیٰ په دوی باندې امتحان کوی دې دپاره چه فرمانبردار او غیر فرمانبردار دواړه معلوم شی، پدې وجه الله تعالیٰ په دوی باندې د احرام په حالت کې ښکار کول حرام اُوکړځول او بیا ئې حالت داسې کړو چه وړوکې او غټ ښکارئې د دوی ښې او کس طرف ته راوستل دې دپاره چه الله وینی چه څوك د هغه د حکم په منلو سره دې له کوتې نهٔ ورورې او څوك د هغه نافرمانی کوی۔

ابن حبانؒ لیکلی دی چه دا آیت د عُمره حدیبیه په باره کې نازل شوې وو کله چه ځنګلی حیوانات، مارغان او د ښکار نور حیوانات د دوی د خیمو خوا ته ډیر راتلل چه دوی داسې هیڅ کله هم نهٔ وو لیدلی نو الله تعالیٰ د امتحان په توګه په حالت د احرام کې د هغې د وژلو نه منع کړل۔

او دلته د ښکار متعلق احکام بیان شو، وجه دا ده چه دا د عربو د ژوند یوه اهمه ذریعه وه او په عامو خلکو کې مشهور وو او زیات به ملاویدو۔

## مسائل او علوم

د مُحرم (احرام والا) دپاره ښکار ذبح کول دوه قسمه دی یو اهلی (کورنی) حیوانات دی نو دا په اتفاق د علماؤ سره د محرم دپاره ذبح کول جائز دی، لکه ګډه، بزه، چرګه وغیره ذبح کولے شی۔ دویم غیر اهلی دا په دوه قسمه دی یو د دریاب دی، نو دا هم د محرم دپاره قرآن کریم جائز کړیدی (أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ) کی به راشی۔

او دویم بری (دشتی، صحرائی) حیوانات دی نو دا بیا دوه قسمه دی یو مُوذِیٌ (ضرر ورکونکی) دی نو ددې وژل ورله جائز دی کله چه پرې حمله کوی لکه شرمخ، ګیدړ او زمرې وغیره او که حمله نکوی نو وژل ئې جائز نهٔ دی۔

او پدې کې پنځه ځیزونه نور رسول الله ﷺ خودلی دی چه هغه ضرر ورکونکی دی لکه چه په صحیحینو کې د عائشې رضی الله عنها نه روایت شویدې چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: ((پنځه قسمه حیوانات بد کاره دی، دوی به په حدودو د حرم کې هم قتلولے شی: کارغه، ټپوس، لړم، مږه او چیچونکے سپے))۔ (صحیح بخاری: ۳۳۱٤) مسلم (۱۱۹۸)

زید بن اسلمؒ او ابن عُیینهؒ وائی چه ((چیچونکے سپے)) تمام خطرناکو حیواناتو ته شامل دې۔ او ددې تائید ددې نه هم کیږی چه نبی کریم ﷺ چه کله عتبه بن ابولهب ته ښیرې اُوکړې نو وې وئیل چه اے الله! ته په دهٔ باندې سپے مسلط کړه نو په زرقاء مقام کی

ځنګلي ځناورو هغه څیري کولو سره ختم کړو)).
او په یو روایت کې د لړم په ځای مار هم راغلی دی. بلکه د ترمذي په روایت کې دي: یقتل المحرم السبع العادی) (الترمذی: ۸۳۸ حسنه الترمذی وضعفه الالبانی) محرم سړی حمله کونکي درنده قتلولی شي. نو پدې سره ښه وضاحت وشو.
او بل غیر مؤذي حیوان دی نو د هغې وژل، هغې ته اشاره کول، هغه ښکار کونکي ته خودل، یا ورسره په ښکار کولو کې مدد کول، دا ټول ناروا دي. که دا ئې وکړل نو یو به توبه وباسي، او بل به د هغې کفاره ورکړي، او کفاره ئې دا ده چه د هغې مثل به ورکړي او که مثل نهٔ ملاویدو نو د هغې قیمت به ولګوي او په هغې باندې به طعام واخلي او مسکینانو ته به ئې ورکړي، او که قیمت ورسره نهٔ وو نو بیا به د هغې موافق روژې ونیسي لکه تفصیل ئې روستو راځي.
او دا ښکار په حرم کې هم ناروا دی او په حالت د احرام کې هم.
**لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ** : د الله د امتحان یوه طریقه دا ده چه کله به یو حرام شے رادیر کړي لکه په حالت د احرام کې به ښکار ستا مخې ته تیریږي راتیریږي خو په تا به امتحان وي، او ته به ښه محتاج هم ئې.
**تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ** : یعنې ستاسو لاسونه به ورته رسیږي لکه د حیواناتو اګۍ یا واړه بچي راخستل چه منډه نشي وهلے، او بعض په نیزه وهلے شي لکه اُوسۍ او سوۍ وغیره شو.
**لِيَعْلَمَ اللَّهُ** : یعنې الله راښکاره کوي خلکو ته چه څوك د هغه نه په غیبو کې یریږي.
**مَنْ يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ**: لکه صحراء ده او هیڅوك نشته او ښکار ستا خوا ته خوا ته کیږي او ته وائې چه الله راته ګوري نو دا ستا د ایمان نښه ده، په امتحان کې کامیاب شوے.
**فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ** : یعنې چا چه ددې تحریم نه روستو زیاتے وکړو او ښکار ئې په حالت د احرام او حرم کې وکړو نو د هغه دپاره دردناك عذاب دے.

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ۚ وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ |
|---|
| اے ایمان والو ! مهٔ وژنئ ښکار چه تاسو په احرام کې یئ او چا چه ووژلو ښکار ستاسو نه |
| مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ |
| په قصد سره نو (دهٔ باندې) بدله ده په شان د هغې چه دهٔ وژلے دے د خارو نه فیصله به کوي |

| بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًا بٰلِغَ الْكَعْبَةِ اَوْ كَفَّارَةٌ |
|---|
| پدے سره دوه انصاف والا ستاسو نه هدیه به وی رسیدونکے کعبے ته یا به کفاره وی |
| طَعَامُ مَسٰكِيْنَ اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ ؕ |
| خوراك د مسکینانو یا برابر ددے روژے نیول دی دا ددے دپاره چه وڅکی سزا د کار خپل |
| عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ ؕ وَمَنْ عَادَ |
| معافی کریده الله تعالیٰ د هغے نه چه مخکی څه شویدی او څوك چه راواپس شو (حلال گنړلو |
| فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۹۵﴾ |
| ددے ښکار ته) نو بدله به واخلی الله تعالیٰ د هغه نه او الله غالبه بدله اخستونکے دے۔ |

**تفسیر** : پدے کی د ښکار کولو نه منع ده په حالت د احرام او حرم کی، او که یو شخص د احرام په حالت کی یو حیوان یا ښکار قتل کری، نو په هغه به څه حکم مرتب کیږی؟، نو هغه دلته بیان شویدے۔

**لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ** : رسول الله ﷺ د قتل سره اشاره کول او خودنه کول هم حرام گرځولی دی، ځکه هغه مقدمات د قتل دی۔

**مُتَعَمِّدًا** : د قصد صورت دا دے چه دا ورته یاد وی چه زهٔ په احرام کی یم او د حرم په حدودو کی دننه یم۔

### آیا په سهوه سره په ښکار وژلو کی کفاره شته؟

(۱) ابن عباسؓ، امام احمدؒ او داود ظاهریؒ وغیرهم د آیت نه دلیل نیولو سره وئیلی دی چه په غلطئ سره یا په هیره سره یو ښکار یا حیوان قتلولو باندے هیڅ کفاره واجب نهٔ ده او همدا قول حق دے۔

(۲) د ابن عمرؓ، حسنؒ، نخعیؒ، زهریؒ، ابوحنیفهؒ، مالك او شافعیؒ وغیرهم (رحمهم الله) رایه دا ده چه کفاره په هر حالت کی واجبیږی، او په آیت کی د (مُتَعَمِّداً) لفظ د عام حالت د بیانولو دپاره راغلے دے، شرط نهٔ دے۔ د ابن عباسؓ یو دویم روایت دے چه کفاره په هغه شخص واجبیږی چه حالت د احرام ترے هیر وی او قصداً ښکار کوی۔ یعنی په یره سره هم کفاره شته او دا قول د مجاهدؒ هم دے۔ (القرطبیؒ)

او امام زهریؒ وائی : [مَضَتِ السُّنَّةُ أَنَّ الْخَطَأَ فِیْ هٰذَا مِثْلَ الْعَمَدِ]
سنت طریقه دا ده چه خطاء پدے باب کی د قصد په شان ده. نو ددے روایت څو یو سند نشته. او د رسول الله ﷺ نه ددے په باره کی هیڅ سنت نهٔ دے نقل.
بلـه دا چه دغه روایت د زهریؒ یو ددے آیت خلاف دے چه (مُتَعَمِّدًا) قید ئے لګولے دے او بل د حدیث خلاف دے چه دے امت ته خطاء او نسیان معاف دی. او قیاسونو ته ضرورت نشته. نو ځکه اول قول د امام احمد، داود او ابن حزم صحیح دے ځکه چه دلیل ورسره د قرآن کریم نص دے.
مِّثْلُ مَا قَتَلَ : د امام ابو حنیفهؒ په نیز په قیمت کی مماثلت مراد دے چه دے ته مثل معنوی وائی، او د مالک، شافعیؒ، احمدؒ او جمهورو فقهاؤ په نیز په خِلقت کی مماثلت مراد دے یعنی مثل صوری. شوکانیؒ ددویم قول تائید کړیدے ځکه چه د ((مِنَ النَّعَمِ)) یعنی د اُوښ، غوا، او چیلۍ صراحت او بل دلیل ((هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ)) دے یعنی هغه فدیه به حیوان وی او کعبے ته به رسولے شی).
د امام ابو حنیفهؒ دا هم قول دے چه د مماثل حیوان د موجودیدو سره قیمت ورکول جائز دی، او محرم ته اختیار دے. مګر دا د آیت د ظاهر خلاف دی. او د صحابه کرامؓ د عمل مخالف دے.
مِنَ النَّعَمِ : دا بیان دے د (مِثْل) دپاره یعنی بدله ده د چارپیانو نه په مثل د هغے حیوان چه دهٔ وژلے دے.
ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ : ددے نه مراد صحابه کرامؓ دی چه هغوی عادلان دی، او هغوی په خپلو زمانو کی د حیواناتو مثل خودلی دی، او په احادیثو کی ذکر دی لکه د شتر مرغ، اُوښ مشابه دے او د ځنګلی غوا کورنۍ غوا مشابه ده، او د اُوسۍ چیلۍ مشابه ده، نو بس په هغوی به فیصله وی، او که په کوم یو حیوان کی هغوی نه څه نقل نهٔ وی، نو بیا به دوه مسلمانان چه په عدالت مشهور وی هغه ددے اندازه لګوی چه دا حیوان ددے حیوان برابر دے.
هَدْيًا بٰلِغَ الْكَعْبَةِ : یعنی کوم څاروی باندے چه دوه عادلانو فیصله وکړه نو هغه به د هدی په حکم کی وی چه اشعار به ئے کولے شی او قلاده به ورته اچولے شی.
بٰلِغَ الْكَعْبَةِ : د کعبے نه مراد ټول حرم دے یعنی دا هدی به په حرم کی ذبح کولے شی او په مسکینانو به خوړلے شی او دے ته دم جنایت، او دم د قتل الصید وائی.

اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ : ددې صورت دا دې چه يو تن سُوئ وژلې ده نو ددې په بدله كې يو ګډ پړې راغې نو اُوس به د ګډ قيمت ولګولې شي مثلاً د هغه زمانې مطابق ګډ په لسو روپو دې او په دغه لسو روپو باندې پنځه صاعه طعام (غنم) كيږي نو دې به نيم صاع هر مسكين ته وركړي. او نيم صاع څه دپاسه يوه كيلو ده.

اَوْعَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا : د بعض علماؤ اهل ظاهرو په نيز (ذٰلِكَ) اشاره ده حيوان ته يعنې په حيوان باندې چه څومره كسان مړيږي (مثلاً په ګډ باندې شل كسان مړيږي) نو دې به د هغې مطابق (شل) روژې ونيسي. ليكن دا تفسير دومره ظاهر نهٔ دې،

جمهور اهل علم وائي چه (ذٰلك) اشاره ده (طَعَامُ مَسَاكِيْن) ته يعنې مثلاً لس مسكينان په پنځه صاعو باندې مړيدل نو لس روژې به ونيسي، د هر نيمائي صاع په مقابله كې به يوه روژه ونيسي.

لِيَذُوْقَ وَبَالَ اَمْرِهٖ : يعنې دا كفاره پرې ولې راغله؟ نو وجه دا ده چه كله ورته د خپل كار سزا ملاؤ شي، پيسې ترې لاړې شي بيا به داسې نهٔ كوي، او روژې چه سړې ونيسي نو نفس ئې كمزورې شي، او وږې تږې شي نو آينده كې به داسې كار نهٔ كوي.

وبال : سزا د جرم ته وائي.

عَفَااللّٰهُ عَمَّاسَلَفَ : يعنې د جاهليت په زمانه كې كه چا داسې كړي وي نو هغه معاف دې. بعضو ددې مطلب دا بيان كړيدې چه د كفارې حكم نازليدو نه مخكې كه چا داسې كړي وي نو هغه معاف دي.

وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ : يعنې څوك چه د تحريم نه روستو ښكار كولو ته راوګرځيدو نو الله به ترې بدله اخلي، سزا به وركوي.

**فائده** : د جمهورو په نيز پدې كفارو كې په هر يو كې اختيار دې چه په كوم باندې مخكې عمل كوي. او د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت شويدې چه خوراك وركول، او روژه نيول د فديې د حيوان نهٔ ملاويدو په صورت كې جائز دي. او دا احتياطي قول دې او اول قول كې نرمي ده.

| اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ |
|---|
| حلال كړې شويدې تاسو لره ښكار د درياب او خوراك دپاره د فائدې ستاسو |

وَلِلسَّيَّارَةِ ج وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ

او د قافلے والو دپاره او حرام کړے شویدے په تاسو ښکار د وچے ترڅو پورے چه یئ تاسو

حُرُمًا ط وَاتَّقُوا اللهَ الَّذِیٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿٩٦﴾

په احرام کی او ویرېږئ د الله تعالیٰ نه هغه ذات دے چه هغه ته به ورجمع کولے شئ۔

**تفسیر** : په حالت د احرام کی د ښکار حرمت او د هغے د کفارے بیانولو نه روستو پدے آیت کی الله تعالیٰ د احسان په توګه دا وئیلی دی چه د مُحرم دپاره د دریاب ژوندی مهیانو ښکار او د هغه مړهٔ شوی مهیان خوړل هم حلال دی کوم چه چپو وهلو سره د دریاب غاړے ته راغلی وی۔

جمهورو علماؤ ددے آیت نه د دریاب مردار مهیان خوړل حلال ګرځولی دی۔ دے نه سویٰ د جابر ﷺ د هغه حدیث نه ئے هم دلیل نیولے دے چه مالك، بخاریؒ او مسلمؒ وغیرهم روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ د ابوعبیده بن الجراح ﷺ په قیادت کی د درے سوه کسانو یو لښکر د سمندر غاړے طرف ته اُولیږلو۔ د هغوی د سفر توخه ختمه شوه نو د دریاب غاړے ته هغوی ته یو ډیر غټ مړ ماهی ملاؤ شو چه د هغے غوښه دوی اتلسو ورځو پورے خوړله۔ په بعض روایاتو کی دی چه صحابه کرامؓ د هغے څه حصه مدینے ته هم راوړه، او رسول الله ﷺ هم د هغے نه خوراك اُوکړو۔

دغه شان د ابو هریره ﷺ د روایت نه ئے دلیل نیولے دے چه یو سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوکړو چه اے د الله رسوله! مونږ په دریاب کی سفر کوو، مونږ سره اُوبه کمے وی، که په هغے سره اودس کوو نو تږی کیږو، آیا مونږ به د دریاب په اُوبو باندے اودس کوو؟ نو نبی ﷺ اُوفرمایل: ((ددے اُوبه پاکے دی، او ددے مړ شوے حیوان حلال دے))۔

(مالك، شافعی، احمد او اصحاب السنن)۔

یو بل روایت دے چه امام احمدؒ او ابن ماجهؒ د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل: ((زمونږ دپاره دوه مردارے او دوه وینے حلالے کړے شویدی: دوه مردارے یعنی ماهی او ملخ۔ او دوه وینے یعنی کلیجی او تورے))۔ (وسنده صحیح)

د همدے آیت نه دلیل نیولو سره بعض فقهاؤ وئیلی دی چه د دریاب تمام حیوانات خوړل بغیر د استثناء نه جائز دی۔ او بعض علماؤ چندخ ترے مستثنیٰ ګرځولے دے۔ څکه

د عبد الرحمن بن عثمان التيميؓ روايت دے چه امام احمدؒ او ابوداوُدؒ روايت کړيدے چه رسول الله ﷺ د چندخ د وژلو نه منع کړيده۔ (باسناد صحيح –ارناووط)

أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ : د صيد دوه معانی دی

(۱) يو معنیٰ مصدری يعنی په درياب کی ښکار کول۔

(۲) دويم مصدر په معنیٰ د مفعول سره يعنی مَصِيد۔ هغه حيوان چه ښکار کړے شوے وی په درياب کی۔

او د بحر نه مراد هر قسم اوبه دی برابره ده چه درياب وی، که نهر، او که ډنډ وی يعنی مائی حيوان ښکار کول جائز دی۔

## د صيد او طعام فرق

وَطَعَامُهُ : د صيد او طعام فرق دا دے ۱–چه طعام: مَا رَمَاهُ الْبَحْرُ۔ هغه ښکار چه درياب غاړے ته راګوزار کړے وی لکه مخکی په قصه د ابوعبيده بن الجراح رضی الله عنه کی تير شو۔ او صيد هغے ته وائی چه تا پکی ښکار کړے وی۔

۲–يا صيد هغه ته وائی چه تازه ونيولے شی او طعام هغه دے چه مالح وی يعنی د مخکی نه نيولے شوی وی او د حفاظت دپاره يو پرے مالګه کی اچولے وی نو هغه هم په حالت د احرام کی خوړل جائز دی۔ لکه خلك دا کار په سفرونو کی کوی۔ مطلب دا چه که په حالت د احرام کی نيولے وی او که د مخکی نه ئے نيولے وی دواړه جائز دی۔

وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَادُمْتُمْ حُرُمًا : په حالت د احرام کی د اُوچے حيواناتو ښکار حرام دے۔ د آيت ظاهری معنیٰ دا ده چه د مُحرم دپاره د اُوچے د ښکار غوښه خوړل حرام دی۔ اګر که ښکار کونکے بل څوك وی۔ د جمهورو علماؤ رائے دا ده چه که د محرم دپاره ښکار کړے شوی وی نو د هغه دپاره خوړل به ئے حرام وی، او که نهٔ وی نو حلال به وی۔

او بعض علماؤ وئيلی دی چه د محرم نه سوئ د بل چا ښکار کړے شوے حيوان به مطلقاً حلال وی اګر که د محرم دپاره ئے نيولے وی، ليکن راجح دا ده چه حديث کی دی:

[كُلُوا لَحْمَ الصَّيْدِ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ مَا لَمْ تَصِيدُوهُ أَوْ يُصَدْ لَكُمْ]

(مسند احمد رقم الحديث ۱۵۱۹۷) و (۱۵۲۲۲) وسنده صحيح لغيره)

د ښکار غوښه خوریٔ کله چه تاسو په حالت د احرام کی يئ ترڅو پورے چه تاسو ښکار کړی نهٔ وی يا ستاسو دپاره ښکار کړے شوی نهٔ وی۔ نو د محرم دپاره که بل چا ښکار کړے

وی نو هم جائز نهٔ ده، او پدې باندې دلیل حدیث د بخاری دے چه رسول الله ﷺ ته صعب بن جثامه صحرائی خر هدیه کړو نو هغه بیرته واپس کړو ځکه چه هغه د رسول الله ﷺ دپاره ښکار کړے وو۔ نو که یو تن ځان دپاره ښکار کړے وی او بیا ئے څه برخه تړے محرم ته ورکړه نو محرم دپاره بیخی جائز ده۔ او پدې طریقه سره د ټولو روایاتو تطبیق راځی ولله الحمد علی اتمام دینه وشرعه۔

| جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ |
|---|
| گرځولے ده الله تعالیٰ کعبه کور عزتمند سبب د ژوند د خلقو او میاشت عزتمنه او قربانی |
| وَالْقَلَآئِدَ ۚ ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا |
| او امیلونو والا ځاروی دا ددې دپاره چه تاسو پوهه شئ چه بیشکه الله تعالیٰ پوهیږی په هغه څه |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿٩٧﴾ |
| چه په آسمانونو کی دی او هغه څه چه په زمکه کی دی او بیشکه الله تعالیٰ په هر شی پوهه دے |

**تفسیر** : پدې آیت کریمه کی الله تعالیٰ د بعض محرماتو حکمت بیانوی چه الله تعالیٰ په بعض څیزونو باندې پابندیانی ولګولے او عزت ئے ورله ورکړو دا ولے ؟ نو دے کی د بندګانو نظریه او عقیده جوړول او امتحان کول او د الله کمالات پیژندل ئے حکمة دے۔

جَعَلَ اللّٰهُ : دلته جعل تشریعی او تکوینی دواړه مراد کیدے شی۔ یعنی الله په شریعت کی د کعبې د تعظیم او هلته د بندګئ حکم کړیدے او تقدیراً هم الله تعالیٰ سبب د ژوند جوړ کړیدے۔

الْكَعْبَةَ : کعبه په اصل کی اوچتوالی ته وائی لکه کعب : ګیټو ته وائی ځکه چه دا په خپه کی نیغ راوتے وی، نو کعبه اوچت ځای ته وائی۔

الْبَيْتَ الْحَرَامَ : دا عطف بیان دے او عطف بیان کله په غیر مشهور سره هم کیږی۔

قِيٰمًا : یعنی سبب د ژوند دے۔

لِّلنَّاسِ : د الناس نه مراد یا ټول انسانان دی :

۱ – نو سبب د ژوند مطلب دا چه ترڅو پورې کعبه موجوده او ولاړه وی، نو عالَم به موجود او په خپل حال به وی، او کله چه کعبه ورانه شوه نو قیامت به راځی لکه حدیث کی دی چه ذو السویقتین به راځی او کعبه به ورانوی بیا به قیامت راځی۔

او دا د قیامت د علاماتو نه لویه علامه ده۔ نو کعبه د ژوند سبب اجتماعی دے او مخکی سورة النساء کی مال ته قیام وئیل شوے وو هغه سبب انفرادی وو۔

۲- یا د قیام نه مراد دا چه [يَقُوْمُ بِهَا أَمْرُ دِيْنِهِمْ وَدُنْيَاهُمْ]۔

د کعبے په وجه به دین او دنیا ودانه وی ترڅو چه کعبه وی دین به ژوندے وی، او دارنگه د کعبے په وجه ډیرو انسانانو ته او حکومتونو ته فائدے رسیږی۔

په هغه زمانه کی به چه کعبے له کوم حجاج راتلل نو د عربو به ډیره فائده کیدله اوس هم دغه شان ده چه ډیر انسانان پرے آباد دی، ایجنسیانو والا، جهازونو والا، کرایانو والا، کاړو والا، عام تجارتونو والا ټول ددے نه مستفید کیږی او ژوند ئے برابریږی۔

ځینی مفسرینو د (الناس) نه مراد خاص د جاهلیت د زمانے عرب مراد کړیدی چه الله تعالیٰ کعبه چه بیت الحرام (عزتمند کور) دے د عربو دپاره د دنیوی او دینی فوائدو او مصالحو ډیره لویه ذریعه جوړه کړے وه، په حدودو د حرم کی داخلیدونکے به د هرے یرے نه امن کی کیدو، هلته به د کمزورو مدد کیدو، د هغوی په تجارتونو کی به فائده کیدله، او عبادت گذار به هلته د زړهٔ په آرام سره په عبادت کی لگیا وو او هر قسم میوے به د نورو ښارونو نه هلته رسیدلے۔ نو دائے خصوصی مصداق شو چه د هغه زمانے سره لگیدو او روستنو خلکو ته هم پکی اشاره شته، لیکن عموم بهتر دے۔

علماء فرمائی : ترڅو چه په دنیا کی قرآن او کعبه موجود وی نو دین به ژوندے وی او که دواړه ختم شو نو دین ختم دے، دا وجه ده چه کفار ددے دواړو د ختمولو ډیر کوشش کوی۔

د عطاء بن ابی رباحؒ نه نقل دی :[لَوْتَرَكُوْهَا عَامًا وَاحِدًا مَا أُمْهِلُوْا]

که خلك کعبه یو کال پریدی (چه بیخی څوك حج یا عمرے ته رانشی) نو خلکو ته به مهلت ورنکړے شی بلکه ټول به هلاك شی۔

ددے وجه نه د هغه خلکو خبره غلطه ده چه وائی جهاد شروع دے حجونو ته مهٔ ځئ او دغه مال په جهاد کی ورکړئ۔ نهٔ بلکه دواړه کارونو به کولے شی۔

وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ : دا خصوصی د عربو سره لگی۔

د شهر حرام (عزتمنے میاشتے) نه مراد رجب، ذی القعده، ذی الحجه او محرم څلور میاشتے دی۔ پدے میاشتو کی به عربو د خپلو دشمنانو نه د بدلے اخستو دپاره قتال نهٔ کولو۔ ددے میاشتو د حرمت خیال به ئے ساتلو۔

او دے میاشتو ته الله تعالیٰ د آسمانونو او د زمکے د پیدائش په وخت عزت ورکړے وو،

بیا د ابراهیم ﷺ په دین کی ډیرے مشهورے وے نو ځکه به عربو پدے باندے کلك عمل کولو اګرکه مشرکان وو، نو د عربو دپاره پدے کی ډیره فائده وه پدے کی به ئے په غیر د پرے نه سفرونه کول نو د هغوی ژوند پرے ودان وو.

وَالْهَدْيَ وَالْقَلَائِدَ: او د (هدی) حیوان او قلاده (امیل) اغوستولے شوی اُوبنان هم د دوی دپاره الله تعالیٰ د امن ذریعه جوړه کړے وه ځکه چه کوم شخص به د (هدی) عام حیوان یا قلاده اغوستولے شوے اُوښ ځان سره واخستو یا به خپله په خپل څټ کی قلاده اچولو سره حرم طرف ته روانیدو نو هغه به مامون (په امن کی) کیدو، په لاره کی به هیچا هغه ته تعرض نهٔ کولو.

یا دا چه په هدی او قلائد لیږلو سره په دین باندے عمل کیږی او پدے سره دین محفوظ کیږی او هغه د ژوند سبب دے. اول مطلب ئے غوره دے.

ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوٓا : ١- ذلك اشاره ده مخکی (کعبی، شهر حرام، هدی او قلائد) ته او مطلب دا دے چه الله تعالیٰ عربو ته د فائدے رسولو او د هغوی د ضرر او نقصان لرے کولو دپاره دا ټول اسباب تر هغه وخته پورے مهیا کړی وو چه د هغوی څه حکومت نهٔ وو، نهٔ څه نظم او نسق وو، هر شخص او هره قبیله بې واکو وه، نو دا ددے خبرے یقینی دلیل دے چه الله تعالیٰ د آسمان او زمکے تمام شیونه د هغے د واقع کیدو نه مخکی پیژنی او څه چه تر قیامته پورے کیږی هغه هم پیژنی. (تیسیر الرحمن)

٢- زجاج وئیلی دی چه (ذلك) کی اشاره ده ټولو احکامو ددے سورت ته، نو پدے کی حکمت بیانوی ددے تحریماتو چه دا الله ددے دپاره مقرر کړل چه ستاسو د الله په علم باندے علم راشی چه الله د زمکے او د آسمانونو په ټولو څیزونو عالِم دے او هغه پدے طریقه چه الله هغه ذات دے چه کائنات ئے پیدا کړل او بیا ئے پدے کی داسے کامل نظام مقرر کړو ځکه چه پدے سره د انسانانو ژوند تیریږی نو الله هغه ذات دے چه د بندګانو په مصلحتونو پوهیږی، او د نظام په چلولو پوهیږی، که دا احکام الله نهٔ وے مقرر کړی نو افراتفری او ګډوډی به وے، نو بنده ته به د الله علم او حکمت نهٔ معلو میدلے، نو الله تعالیٰ ددے نظام داسے ترتیب ورکړو چه بنده پو هه شی چه الله تعالیٰ څومره د لوی علم او قدرت او کمالاتو والا دے. او د بنده چه کله د الله په علم باندے علم راشی نو پدے سره د الله تعظیم په زړه کی راځی او پدے سره ایمان مضبوطیږی. او حدیث کی دی :

[أَفْضَلُ الْإِيمَانِ أَنْ تَعْلَمَ أَنَّ اللَّهَ مَعَكَ حَيْثُمَا كُنْتَ]

بهترين ايمان دا دے چه ته پدے خبره پوهه شے چه الله تعالیٰ تا سره دے کوم خاى کى چه ته يې۔ (يعنى په اعتبار د علم او قدرت سره)۔

[المعجم الاوسط رقم: ۸۷۹۶) مسند الشاميين رقم: (۵۳۵)

اِعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيۡدُ الۡعِقَابِ وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴿۹۸﴾

پوهه شئ چه بيشكه الله تعالیٰ سخت عذاب والا دے او بيشكه الله تعالیٰ بخونكے رحم كونكے دے

**تفسير** : اوس مخالفت كونكو ته تخويف او تابعدارى كونكو ته بشارت بيانوى او د الله دوه صفتونه راورى چه څوك ددے شرعى نظام مخالفت كوى نو الله به سخته سزا وركړى او كه څوك ئے اطاعت كوى نو الله به ورته بخنه وكړى۔ او دا وجه د ربط هم ده۔

مَا عَلَى الرَّسُوۡلِ اِلَّا الۡبَلٰغُ ؕ وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ مَا

نشته په رسول (ﷺ) باندے مګر رسول دى۔ او الله تعالیٰ پوهيږى په هغه څه

تُبۡدُوۡنَ وَمَا تَكۡتُمُوۡنَ ﴿۹۹﴾

چه ښكاره كوئ تاسو او په هغه څه چه پټوئ تاسو۔

**تفسير** : اُوس دا خبره بيانوى چه څوك دا نظام شرعى خرابوى نو رسول الله ﷺ به پدے ګناهګار نۀ وى بلكه د هغه ذمه وارى خو دين بيانول دى، او هغه خپله ذمه فارغه كړه او حجت ئے قائم كړو او هدايت ته راوستل او نيك عمل باندے راوستل د هغه كار نۀ دے۔ نو كه ددے نه روستو څوك اطاعت نۀ كوى نو د هغه عذر به نۀ وى پاتے۔ د امت كار منل او د نبى كار بيانول دى۔

او پدے كى داعى ته لويه تسلى وى چه هركله چه تا دعوت كولو نو د خلكو خبره منل او نۀ منل ستا كار نۀ دے، ستا ذمه فارغه ده۔

وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ : يعنى الله ته ستاسو هر عمل معلوم دے نو سزا او جزا وركول د الله كار دے، الله به درسره حساب كوى۔

قُلۡ لَّا يَسۡتَوِى الۡخَبِيۡثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوۡ اَعۡجَبَكَ كَثۡرَةُ الۡخَبِيۡثِ ۚ

ته ووايه ! نۀ دى برابر پليت او پاك، اګر كه تعجب كى اچوى تا لره ډير والے د پليت،

فَاتَّقُوا اللّٰهَ يَـٰۤاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

پس ویریږئ د الله نه اے خالص عقل والو! دے دپاره چه تاسو کامیاب شئ۔

**تفسیر** : پدے آیت کی یو غرض خو دا دے چه پدے کی الله تعالیٰ فرق په مابین د متناقضینو کی بیانوی چه د الله په قانون کی فرق بین المتماثلین او جمع بین المتناقضین نشته یعنی کوم دوه څیزونه چه یو بل سره یو شان وی، په هغے کی فرق نۀ کوی او کوم دوه څیزونه چه دیو بل مخالف او ضد وی لکه تور او سپین او طیب او خبیث او مؤمن او کافر د هغوی ترمینځ جمع والے نکوی، او دا دلیل دے د هغه په حکمة باندے۔ د آیت عنوان دا دے [اَلتَّرْغِيْبُ فِي الْخَيْرِ وَالتَّحْذِيْرُ عَنِ الشَّرِّ]

پدے کی د خیر ترغیب او د شر نه یره ورکول دی۔ بل پدے کی دا خبره بیانوی چه د عمل لږ والی او ډیر والی ته اعتبار نشته بلکه اعتبار د عمل ښائست لره دے لکه دا په نورو ځایونو کی هم د شریعت قانون دے (اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا)۔

او ددے ضرورت د مخکنو آیتونو د ځجاجو سره هم دے چه څوك حج ته ځی نو هغوی ډیروالے آهم ګنړی او ښائست لره دومره اعتبار نۀ ورکوی، ډیرے عمرے، ډیر طوافونه او ډیر مونځونه کوی لیکن ښائسته ئے نۀ کوی، په طوافونو کی خلکو له ډغرے ورکوی او جلتی کوی نو دا صحیح طریقه نۀ ده۔ کمال دا دے چه یو طواف وکړه لیکن په ډیره توجه او محبت سره او آرام سره دا د ډیرو طوافونو نه غوره دے۔

**اَلْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ** : یعنی د الله په نیز خبیث او طیب برابر نۀ دی (فَلَا بُدَّ مِنَ الْجَزَاءِ عَلَيْهِمَا) نو پدے باندے جزاء ورکول ضروری شو، په خبیث بده بدله او په طیب نیکه بدله۔

**وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ** : یعنی اګرکه تا په تعجب کی اچوی چه فلانو خلکو سره څومره مالونه دی، څومره کاری دی، څومره خلك ورسره دی؟ نو که تا په تعجب کی اچوی او خوشحالوی دِے خو بیا هم د الله په نیز دے لره هیڅ اعتبار نشته۔

## د خبیث او طیب مصداقات

خبیث او طیب اقوال، اعمال، اشخاص، اموال، حلال او حرام، صحیح او غلط مذاهب او عقیدو ته شامل دے، (نیشاپوریؒ) یو سری ډیرے خبرے وکړے لیکن خبیثے او بل لرے

وکړے لیکن طیبې، یو سړی ډیر اعمال خبیث او بل لږ عمل طیب وکړو، یو تن سره ډیره نفري ده او بل سره لږ ملګري دي، لیکن طیبین دی نو دا برابر نهٔ دي، پدے وجه ډیرو شاګردانو لره اعتبار نشته بلکه ښه او نیکانو لره اعتبار دے، یو تن سره ډیر حرام مالونه او بل سره لږ حلال دی نو دواړه برابر نهٔ دي، یو تن په صحیح مذهب روان دے او ډیر کسان په غلطه عقیده او نظریه روان وي نو دواړه برابر نهٔ دي، که ډیر والي لره اعتبار ورکړے شي نو بیا خو کفار او مجرمین په صحیح مسلمانانو ډیر زیات دي۔

نو آیت کي مونږ ته دعوت دے چه مؤمنانو لره پکار دي چه د خبیث نه پرهیز اُوکړي او طیب او صالح ته ترجیح ورکړي اګرکه کم وي۔

| |
|---|
| يَـٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْئَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ |
| اے ایمان والو! تپوسونه مهٔ کوئ په باره د څیزونو کي که ښکاره شي |
| لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ج وَإِنْ تَسْئَلُوا عَنْهَا |
| تاسو ته (جواب د هغے) خفه به کړي تاسو او که تپوس کوئ تاسو د هغے په باره کي |
| حِينَ يُنَزَّلُ الْقُرْآنُ تُبْدَ لَكُمْ ط |
| په هغه وخت چه نازلولے شي قرآن (نو) ښکاره به شي تاسو ته (جواب د هغے) |
| عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا ط وَاللّٰهُ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٠١﴾ |
| معافي کړیده الله تعالیٰ د هغے (تپوسونو) نه، او الله تعالیٰ بخونکے صبرناك دے۔ |

**تفسیر:** مناسبت: - يَنْبَغِيْ أَنْ يَسْأَلَ عَنِ الطَّيِّبِ لَا عَنِ الْقَبِيْحِ۔

مسلمان لره پکار دي چه د طیب په باره کي تپوس وکړي نهٔ د خبیث په باره کي، په غلطو خبرو که تا سره ډیر علم راشي نو څه فائده؟

په بل تعبیر: پدے آیت کي ترغیب دے اهم شي اختیارولو ته او د غیر اهم پریخوستو ته۔

**عنوان د آیت:** ۱- [اَلنَّهْيُ عَنْ سُؤَالِ الْأَشْيَاءِ الَّتِيْ لَا نَفْعَ فِيْهَا]۔

یعني پدے آیت کي د هغه څیزونو د تپوس نه منع شویده چه په هغے کي فائده نهٔ وي، ځکه دا په لا یعني (بې فائدو) خبرو کي مشغوله کیدل دي چه مؤمن به ددے نه ځان ساتي،

او بـلـه دا چـه شریـعـت او نبی ددے دپاره نهٔ دے راغلے چه د هغه نه به بی ځایه تپوسونه کیږی۔

۲- عنوان : اِرْشَادِ الْعِبَادِ اِلٰی تَعْلِیْمِ الدِّیْنِ۔ الله تعالیٰ بندګانو ته دعوت ورکوی چه صحیح دین زده کړئ ځکه چه څوك بی ځایه تپوسونه کوی نو د صحیح دین او د الله د معرفت نه محرومیږی۔ د ابوالدرداء ﷺ نه نقل دی : [اَلْعِلْمُ كَثِيْرٌ وَالْوَقْتُ قَلِيْلٌ فَعَلَيْكَ بِالْاَنْفَعِ فَالْاَنْفَعِ] وخت کم دے او علم ډیر دے نو فائده مند راواخله او غیر فائده مند پریده۔

## شان نزول

د آیت شان نزول دوه خبرے دی :

(۱) اول مشهـور حدیث چه پـه صحیحینو وغیره کی راغلی دے، حاصل ئے دا دے چه رسول الله ﷺ یوه ورځ د قیامت په باره کی ملګرو ته بیان وکړو، او د آخرت هیبت ئے بیان کـړو نو پـه رسول الله ﷺ ډیر اثر وشو او بعض ملګرو باندے دومره اثر ونشو نو هغوی داسے تپوسونه شروع کړل چه دومره فائده مند نهٔ وو نو نبی کریم ﷺ جواب ورکړو،

بیا ئے تپوس وکړو نو بیا ئے جواب ورکړو، نو پدے کی رسول الله ﷺ په غصه شو او منبر ته وختلو چه مانه تپوسونه کوئ قسم په الله زهٔ به جواب درکوم ترڅو چه زهٔ دلته یم، (دا د غـصے الـفـاظ وو) نو پدے کی ډیر مسلمانان پوهه شو او مخونه ئے پټ کړل او ژړل ئے چه مونږ رسول الله ﷺ تـه تکلیف ورکړو لیکن بعض ملګری بیا هم متوجه نشو نو پدے کی عبد الله بن حذافه السهمی ﷺ راپاځیدو او تپوس ئے وکړو :

چه زما پلار څوك دے؟ (ځکه هغه ته به خلکو بد نسبت کولو) نو ورته ئے وفرمایل : (حُذافه) بیا بل تن پاځیدو: زما پلار څوك دے، وے فرمایل : فلانے۔ بل ووئیل : زما پلار چرته دے ؟ هغه وفرمایل : په اُور کی دے۔ بل تن ووئیل : اَيْنَ مَدْخَلِیْ ؟ زهٔ به چرته ځم؟ وے فرمایل : اِلَی النَّارِ۔ اُور تـه به ځے۔ بل ووئیل : (اَیْنَ نَاقَتِیْ؟ زمـا اُوښـه چرته ده؟) نو پدے کی عمر فاروق راغلو او په ګونډو باندے کیناستو او بار بار ئے دا کلمه وئیله :

[رَضِيْنَا بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِالْاِسْلَامِ دِيْنًا وَبِمُحَمَّدٍ رَسُوْلًا]

مـونږ د الله پـه رب کیـدو بـانـدے او د اسلام په دین کیدو او د محمد ﷺ په رسول کیدو باندے راضی یو۔ نو د رسول الله ﷺ غصه ختمه شوه او دا آیتونه نازل شو۔

(صحیح البخاری کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة : (۷۲۹٤) (٤٦٢١) (٤٦٢٢) وصحیح مسلم

کتاب الفضائل : رقم : ۲۳۵۹)

چه مقصد ئے دا وو چه نبی خو دے لـه نـهٔ دے راغلے چه ستاسو د بی ځایه تپوسونو جوابونه به درکوی او ستا پلار به معلوموی او ستا جنت او جهنم به معلوموی، بلکه هغه خو د عقائدو او د نظریاتو د اصلاح او د شرعی احکامو د بیانولو دپاره راغلے دے۔ او دغه یو شخص ته ئے چه ووېل چه ته به اُورته ځے نو دغه به منافق وو۔

## ۲– شان نزول :

امام احمدؒ، ترمذیؒ وغیره د علی بن ابی طالب ﷺ نه او ابن ماجهؒ د انس بن مالك ﷺ نه روایت کړیدے چه کله ﴿ وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا ﴾ نازل شو چه په هغے کی الله تعالیٰ د حج د فرضیت اعلان کړیدے، نو بعض خلقو (اقرع بن حابس ﷺ) تپوس اُوکړو چه اے د الله رسوله ! [أَفِيْ كُلِّ عَامٍ] آیا دا حکم د هر کال دپاره دے؟ نو نبی ﷺ غلے شو، دے خلقو دوباره تپوس اُوکړو، چه آیا دا حکم د هر کال دپاره دے ؟ نو نبی ﷺ وفرمایل : [لَوْ قُلْتُ نَعَمْ لَوَجَبَتْ] نهٔ، لیکن که ما وئیلی وے آؤ، نو دا حکم به د هر کال دپاره واجب شوے وے او کله چه واجب شوے وے نو تاسو به پدے باندے عمل نهٔ وے کړے نو بیا به عذاب درکړے شوے وے۔ (صحیح ابن ماجه : ۲۸۷٦)۔

او دا ئے هم فرمایلی دی: [ذَرُوْنِيْ مَا تَرَكْتُكُمْ] ما پریدئ چه تر څو ما تاسو پریښیَ یئ (یعنی زهٔ د بیان دپاره راغلے یم، هرکله چه زهٔ بیان نکوم نو تاسو تپوسونه مهٔ کوئ) ځکه چه پخوانی خلك د ډیرو تپوسونو او د انبیاؤ سره د اختلاف کولو په وجه هلاك شویدی۔ دے نه روستو دا آیت نازل شو۔

نو ددے نه معلومه شوه چه فرضی مسائل جوړول نهٔ دی پکار، عبد الله بن مسعود ﷺ فرمایلی دی : تاسو فرضی مسائل مهٔ جوړوئ بلکه په کومه زمانه کی چه یوه مسئله واقع شی نو په هغه زمانه کی الله تعالیٰ علماؤ ته د هغے د جواب توفیق ورکوی آه،

په هره زمانه کی علماء شته چه د مسائلو حل کولے شی [لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِيْ ظَاهِرِيْنَ عَلَى الْحَقِّ] (صحیحین)

او دا په بندګانو باندے حجت وی لکه سیوطیؒ پدے باندے کتاب لیکلے دے۔

او امام شاطبیؒ د بی فائدے څیزونو په باره کی د تپوس کولو ډیر ضررونه او د منع ډیر وجوه لیکلی دی هغے ته رجوع پکار ده (الموافقات ۱/ ٥٤ المقدمة الخامسة)

۳– د سعيد بن جبيرؒ نه نقل دي چه ځيني خلكو د بحيرې او سائبې په باره كې تپوس كړې وو نو دا آيت نازل شو ليكن مخكې شان نزولونه صحيح دي او دا خبره ضعيفه ده۔

نو پدې آيت كريمه كې الله تعالىٰ خپلو مؤمنانو بندګانو ته د الله او د هغه د رسول سره د يو تشريعي ادب تعليم وركړيدې او هغوی ئې د داسې سوالاتو نه منع كړيدي چه په هغې كې په ظاهره كې هيڅ فائده نۀ وي، او خامخا د تلاش نه ئې منع كړيدي، ځكه چه ډير كرته د داسې غير ضروري سوالاتو په جواب كې داسې خبرې اوريدل مخې ته راځي چه په هغې سره انسان ته تكليف رسيږي۔

تَسُؤْكُمْ : يعني خپه به مو كړي لكه كه تا ته وويل شي چه تۀ به جهنم ته ځې نو تولو خلكو كې به وشرميږې، او د عبد الله بن حذافه ﷺ مور خپل ځوی ته په غصه شوه چه كه ما نه په جاهليت كې بدكاري شوې وې، او تا ته رسول الله ﷺ وئيلي وې چه ته د حذافه ځوی نۀ ئې نو تا به زۀ هميشه دپاره شرمولې وې۔

**فائده** : امام شاطبيؒ په الموافقات كې ليكلي دي چه لس قسمه تپوسونه كول ناروا دي ۱– سوال د هغه شي چه دين او دنيا كې فائده نۀ دركوي لكه يو تن داسې ووائي چه عيسىٰ ﷺ بره په آسمان كې روټۍ خوري او كه نۀ؟ نو دا تپوس به الله ته سپارې۔ يا تپوس د عبد الله بن حذافه ﷺ چه زما پلار څوك دې؟۔

۲– هغه سوالونه چه تعنت پكې وي يعني د عالِم بندول ئې مقصد وي، نۀ د پوهيدو دپاره۔ ۳– اغلوطات۔ هغه مسائل چه علماء پكې خطاء كولې شي۔ (او جواب ئې نۀ وي)

٤– سُؤَالُ الْاَشْيَاءِ الْوَاضِحَة ۔ سوال د هغه شيانو چه د هغې پوره بيان شوې وي، واضح وي نو تپوس ته ضرورت نشته لكه د حج په باره كې دا تپوس (أَفِيْ كُلِّ عَامٍ) آيا دا به هر كال وي؟۔

۵– سوال د هغه شي چه په هغه وخت كې ئې ضرورت نۀ وي (فرضي مسائل وي)۔

٦– د احكام شرعيه ؤ د علتونو تپوس كول چه شرع كې هغه ذكر نۀ وي۔ لكه حائضه زنانه د مانځه قضاء ولې نۀ راوړي؟۔

۷– سوال د هغه څيزونو چه تكلف پيدا كوي لكه عمرو بن العاص ﷺ د حوض مالك ته وويل چه آيا ستا حوض ته درندګان راځي؟ نو عمر فاروق ﷺ وويل : دا خبر مونږ ته مۀ راكوه دا متكلف دې۔

۸– سوال په معارضه د كتاب او سنت كې په خپله رايه سره۔

۹- سوال د متشابهاتو نه. ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ﴾ د امام مالک نه د الله د استواء د کیفیت په باره کی تپوس وشو نو هغه باندے خولے راغلے او بیا ئے جواب ورکړو چه استواء معلومه ده او سوال ددے نه بدعت دے.

۱۰- د صحابه کرامو د مشاجراتو (اختلافاتو او جګړو) په باره کی تپوسونه کول. دا تول په (لاتَسْئَلُوْا) کی داخل دی مګر بعض به د بعضو نه سخت وی او بعض به محل د اجتهاد وی.

علامه قاسمیؒ لیکی: ۱- ددے مثال دا هم دے چه تفریعات په داسے مسائلو باندے کول چه په هغے باندے د کتاب او سنت او اجماع نه دلیل نهٔ وی او د هغے وجود هم نادر وی او په هغے باندے بی ضرورته وخت ضائع کوی،

۲- او ددے نه زیات سخت د هغه غیبی امورو په باره کی تپوس کول دی چه شریعت په هغے باندے اجمالی ایمان لازم کړیدے لکه د عذاب قبر یا د الله تعالیٰ اسماء او صفات واخله چه ددے ډیر کیفیات ئے نهٔ دی بیان کړی.

۳- وَمِنْهَا مَا لَا يَكُوْنُ لَهٗ شَاهِدٌ فِيْ عَالَمِ الْحِسِّ،

او بعض هغه دی چه هغه په سترګو نهٔ ښکاره کیږی او د هغے څه مثال نهٔ وی لکه د قیامت د وخت په باره کی سوال کول یا د روح یا ددے امت د مودے په باره کی سوال کول. او دغه شان نور څیزونه چه هغه صرف په نقل معلومیږی.

٤- او ددے نه هم سخت سوال هغه دے چه د هغے نه ډیر تلاش انسان په شک او حیرانتیا کی اچوی، لکه د تقدیر په باره کی ډیر تپوسونه کول.

(محاسن التاویل للقاسمی وفتح الباری وتفسیر المنار ۱۲۶/۷)

## اشکال وجواب

وَإِنْ تَسْئَلُوْا عَنْهَا حِيْنَ يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ: پدے جمله کی اشکال راځی چه مخکی وائی تپوسونه مهٔ کوئ او دلته وائی که سوال کوئ نو ښکاره کولے به شی درته.

نو ددے څو مصداقه دی (۱) دلته الله تعالیٰ مطلقاً د تپوسونو نه منع نهٔ ده کړے بلکه ﴿إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ﴾ قید ئے لګولے دے یعنی چه د هغے ښکاره کیدل بدی ده د هغے تپوس مهٔ کوئ، او که یو شی ته ضرورت وی لکه د مانځه، اوداسه، د عقیدے وغیره تپوسونه نو هغه منع نهٔ دی لکه صحابه کرامو به داسے قسم ډیر تپوسونه کول او دا د دین

د زده کولو ذریعه ده۔
نو دلته به (عَنْهَا) ضمیر راجع وی نورو څیزونو ته لکه دا د علم بلاغت قانون دے چه صنعت استخدام کولے شی یو شے مخکی ذکر شی نو په ظاهری لفظ سره ترے یو مراد کړے شی او په ارجاع د ضمیر سره ترے بل شے مراد شی۔ لکه ﴿وَاَوْرَثْنٰهَا بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ﴾ کی نورو باغونو ته ضمیر راجع دے نۀ د مصر۔ دارنګه ﴿اِنِ امْرُؤٌا هَلَكَ...وَهُوَ یَرِثُهَآ﴾ النساء: ١٧٦)
نو دلته به معنیٰ دا وی چه که تاسو تپوسونه د فائده منو څیزونو په باره کی کوئ کله چه قرآن کریم نازلولے شی نو هغه به تاسو ته ښکاره کولے شی نو پدے کی ترغیب دے صحیح تپوسونو ته۔
٢- او حافظ ابن القیم رحمه الله ددے مطلب داسے بیان کړیدے چه که د قرآن یو آیت د نازلیدو نه روستو ستاسو په ذهنونو کی د هغے متعلق کوم سوال راځی نو زما رسول (ﷺ) به د هغے جواب درکوی، او د آیت تشریح به کوی۔ نو پدے سره هم دغه سوال زائل کیږی چه د مطلق سوال نه منع کړے شوے وه۔ (القاسمی)
یعنی که تاسو د هغه څیزونو په باره کی تپوس کوئ کوم چه په قرآن کریم کی اجمالاً نازل شوی وی او تاسو د هغے بیان طلب کول غواړئ نو تاسو ته به هغه ښکاره کولے شی ځکه چه په دغه وخت کی تاسو د هغے بیان ته محتاج یئ؛ نو پدے کی به (حِیْنَ) ظرف وی د (تَسْئَلُوْا) دپاره۔ (القاسمیؒ)
٣- تفسیر: د تپوس دوه وختونه دی یو د وحی د نزول زمانه ده او بل د هغے نه روستو۔ نو معنیٰ به دا وی ﴿وَاِنْ تَسْئَلُوْا عَنْهَا﴾ که تاسو د دغه څیزونو په باره کی تپوسونه کوئ کله چه قرآن نازلیږی، نو هغه به درته ښکاره کولے شی خو بیا به مو خفه کوی۔ او که رسول الله ﷺ وفات شو او د یو عالِم نه څوك د دغه بی فائدو څیزونو په باره کی تپوس وکړی نو ددے دومره ضرر نشته ځکه چه هغه په وحی سره خبره نۀ کوی، هغه ته الله تعالیٰ د چا جهنمی یا جنتی کیدل د وحی په ذریعه سره نۀ ښائی۔ لیکن خامخا سوالات کول په اسلام کی ښه خبره نۀ ده منلے شوے۔
په یو حدیث کی دی [مِنْ حُسْنِ اِسْلَامِ الْمَرْءِ تَرْكُهٗ مَا لَا یَعْنِیْهِ] چه د سړی د اسلام د ښه کیدو نخه دا ده چه هغه غیر ضروری خبرو نه پرهیز اُوکړی)۔ (ترمذی، ابن ماجه وسنده صحیح)۔ لیکن اول تفسیر ظاهر دے۔ ځکه چه دویم تفسیر کی مطلب دا جوړیږی چه د

عالم نه بلا ضرورته تپوس جائز دے او حال دا چه خبره خو داسے نهٔ ده۔

٤- د ابن عباسؓ نه داسے تفسير نقل دے: تاسو تپوسونه مهٔ کوئ د څيزونو په باره کی ځکه که قرآن کريم د هغے په باره کی سختی راولیږی نو تاسو به هغه خفه کړی لیکن انتظار کوئ که چرته قرآن نازلیږی او ستاسو د يو شی تپوس ته ضرورت وی نو تاسو چه د څه په باره کی تپوس کوئ نو د هغے بيان به خامخا مونده کوئ۔ (قاسمیؒ)

حافظ ابن حجرؒ په فتح البارى کی وائی: حاصل دا دے چه دا آيت نازل شويدے په سبب د ډيرو تپوسونو يا په طريقه استهزاء يا امتحان سره او يا په طريقه د تعنت سره چه که د دغه شی په باره کی تپوس ونکړے شی نو هغه به په اباحت باندے پاتے وی۔ (يعنی تعنتی سوالونه مهٔ کوئ چه په ځان باندے سختی راتهٔ ولیږ)۔ قاسمیؒ)

عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا ١- يعنی په تيره شوے زمانه کی چه څه شويدی هغه الله معاف کړيدی، آينده داسے کار نهٔ دے پکار۔ پدے کی اشاره ده چه دغسے تپوسونه ګناه ده۔

٢- ددے دويم مطلب دا هم بيان شويدے چه دا جمله صفت د هغه (اشياء) ده يعنی الله تعالیٰ چه په قرآن کريم کی څه نهٔ دی بيان کړی، (سکوت ئے ترے کړيدے ددے دپاره چه په تاسو تکليف رانشی او تاسو باندے آسانی راولی) نو د هغے په باره کی تپوسونه مهٔ کوئ، هغه الله معاف کړيدی، که الله غوختلے نو د هغے بيانونو سره به ئے په تاسو واجب کړی وے۔ دلته به (عَفَا) په معنیٰ د (سَکَتَ) سره وی۔ (قاسمیؒ) دا بعيد تفسير دے۔

په صحيحينو کی د سعد بن ابی وقاص ﷛ نه روايت شويدے

[إِنَّ أَعْظَمَ الْمُسْلِمِينَ جُرْمًا مَنْ سَأَلَ عَنْ شَيْءٍ لَمْ يُحَرَّمْ فَحُرِّمَ مِنْ أَجْلِ مَسْئَلَتِهِ]

چه په مسلمانانو کی د ټولو نه لوئی مجرم هغه دے چه هغه د يو داسے شی په باره کی تپوس اُوکړی چه هغه د مخکی نه حرام نهٔ وو او ددهٔ د سوال کولو په وجه حرام کړے شی۔

(صحيح بخاری: ٧٢٨٩)

يو بل حديث په صحيحينو کی د ابو هريره ﷛ نه روايت شويدے چه رسول الله ﷺ وفرمايل: [دَعُونِي مَا تَرَكْتُكُمْ، إِنَّمَا أَهْلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ كَثْرَةُ سُؤَالِهِمْ وَاخْتِلَافُهُمْ عَلَى أَنْبِيَائِهِمْ] ترڅو چه ما تاسو پريخی يئ نو تاسو ما هم پريدئ، ځکه چه ستاسو نه مخکنی خلق د هغوی ډيرو تپوسونو او د انبياؤ مخالفت هلاك کړی وو)۔ (صحيح بخاری: ٧٢٨٨)

غَفُورٌ حَلِيمٌ: الله بخنه کونکے دے پدے وجه ئے تاسو ته معافی وکړه او په تير شوی عملونو ئے راګير نهٔ کړئ۔

قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ثُمَّ اَصْبَحُوْا بِهَا كٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۲﴾

يقيناً تپوس كړے وو دداسے څيزونو يو قوم مخكې ستاسو نه بيا وګرځيدل په هغې باندے كافران۔

**تفسير** : دا اُوس مثال راوړي د پخوانو خلكو چه هغوی د بعض څيزونو په باره كې تپوسونه وكړل، كله چه هغه قبول شو نو بيا ئے ترے انكار وكړو ځكه چه د هغوی تپوسونه تعنتي او ضدي وو او د هدايت په نيت نهٔ وو۔ (ابن كثيرؒ)

لكه ددے مثال به روستو په مائده سره راوړي چه بني اسرائيلو مائده وغوښته كله چه هغه راغله نو بيا ئے پكې ناشكري شروع كړه نو خنزيران ترے جوړ شو۔ يا د صالح عليه السلام قوم د هغه نه د كاڼړي نه د ناقے (اُوښے) راويستلو مطالبه وكړه كله چه هغه الله راويستله نو بيا ئے ذبح كړه، نو الله پرے عذاب راوستو، او بني اسرائيلو د جهاد سوال كړے وو ﴿ اِبْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴾ كله چه فرض شو نو واوړيدل، او ددے په پخوانو اقوامو كې ډير مثالونه دي۔ نو الله فرمائي چه تاسو هم د دغه شان څيزونو په باره كې تپوسونه مهٔ كوئ،

او دا د اَقرع بن حابس ﷺ د تپوس سره ډير ښه لګي چه تاسو د حج د هر كال تپوس كوئ كه الله ووائي چه هر كال فرض، نو بيا به ئے نشئ كولے، په تكليف كې به پريوځئ او په امت كې به ترے ډير خلك انكار وكړي۔ نو د الله رسول په خپل حال پريدئ۔

رسول الله ﷺ صحابه كرامؓ ته درے ورځے تراويح وكړے بيا راونهٔ وتلو ځكه چه د صحابه كرامو ډير شوق وو، رسول الله ﷺ ويريدو چه چرته فرض نشي۔

سَاَلَهَا : كې ضمير دغه اشياء ته راجع دے او مراد ترے نه د هغے مثل دے، يعني لكه څنګه چه د هغوی تپوسونه ممنوع وو او وبال ثابتونكي وو نو ستاسو تپوسونه هم دغه شان دي۔ او په مثل باندے ئے تصريح ونكړه پدے كې مبالغه ده په تحذير (يره وركولو) كې۔ (قاسميؒ)

اَصْبَحُوْا بِهَا : يعني د هغے په سبب، ځكه چه د كوم څيز جواب به وركړے شو نو هغے باندے به ئے عمل نكولو، لكه بني اسرائيلو به د خپلو انبياؤ نه د څه څيزونو په باره كې تپوسونه وكړل نو كله چه به هغوی ته په هغے باندے حكم وشو نو هغوی به پريخودل نو د هغے په وجه هلاك شول نو معنیٰ دا چه تاسو د هغوی مشابهت مهٔ كوئ۔ (قاسميؒ)

| مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ |
|---|
| نۀ دے مقرر کړے الله تعالیٰ غوږ پریکړے شوے حیوان او نۀ آزاده پریخودلے شوے |
| وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ ۙ وَّلٰكِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| او نۀ پیوسته کړے شوے او نۀ ملا ساتونکے لیکن هغه کسان چه کافران دی |
| يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ وَاَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۲﴾ |
| جوړوی په الله تعالیٰ باندے دروغ، او ډیر د دوی عقل نۀ لری۔ |

**تفسیر** : دا بیان د نذرونو او تحریماتو د غیر الله دے چه یو تن راولګی د غیر الله په نوم نذر او منبسته وکړی او هغه حرام وګرځوی نو هغه بیانوی بیا پرے رد کوی۔

ربط او مناسبت :

په تیر شوی آیتونو کی الله تعالیٰ د حلال او پاك څیزونو د حرامولو نه منع اُوکړه او حکم ئے اُوکړو چه الله چه کوم حلال او پاکه روزی درکړیده نو هغه خوری، دے نه روستو د خوراك څکاك د څیزونو د اُوچے، او دریابی ښکار، د هدی حیوان او د قلادے اغوستولے شوی هغه اُوبنانو ذکر اُوشو چه د الله په نوم باندے حرم طرف ته لیږلے کیږی۔

او په حدودو د حرم کی هغه د الله د رضا دپاره ذبح کیږی۔

پدے مناسبت سره اُوس هغه حیوانات ذکر کیږی چه هغه عربو د الله په ځای د بتانو په نوم پریخودی وو او د هغے خوراك ئے ځان دپاره حرام ګرځولے وو۔

په عربو کی دوه قسمه شرکونه موجود وو (۱) شرك فی الالوهیة۔ د الله سره په عبادت کی برخه داران جوړول، مخلوق ته عاجزی، سجدے لګول او په هغوی کی کمالات ګنړل۔

(۲) شرك فی التحلیل والتحریم۔ د ځان نه حلال حرام جوړول، او د خپلو معبودانو د نزدیکت دپاره ئے ډیر څیزونه د ځان نه حرام کړی وو لکه بچی به ئے نذر کول او د هغوی دپاره به ئے وژل۔

حلال حیوانات ئے په ځان باندے منع کړی وو ځکه چه شرك یوداسے مصیبت دے چه په انسان باندے ډیره سختنه راولی چه هغه سختنه په اسلام کی نشته،

بحیره او سائبه د ځان نه اول عربو ته عمرو بن لُحی الخزاعی راوړے وے،

په صحیحینو کې د ابو هریره ﷺ نه روایت دے چه نبي کریم ﷺ اُوفرمایل :

[رَأَيْتُ عَمْرَو بْنَ عَامِرِ بْنِ لُحَيٍّ الْخُزَاعِيَّ يَجُرُّ قُصْبَهُ فِي النَّارِ ، كَانَ أَوَّلَ مَنْ سَيَّبَ السَّوَائِبَ]

((ما عمرو بن عامر خزاعي اُولیدو چه هغه په جهنم کې خپلے کولمے راخکلے، ځکه چه دا اولنے هغه شخص وو چه بحیره او سائبه حیوانات ئے پریخي وو، او د اسماعیل ﷺ دین ئے بدل کړے وو))۔ (بخاري: ٤٦٢٢) مسلم (٢١٢٩)

په مسند احمدؒ کې د عبد الله بن مسعود ﷺ نه روایت شویدے چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : ((ابو خزاعه عمرو بن عامر اولنے هغه شخص وو چه هغه بحیره او سائبه حیوانات پریخي وو، او ما هغه اُولیدو چه په جهنم کې ئے خپلے کولمے راخکلے))۔ (احمد : ٤٢٥٨ مسند ابن مسعود ورقم: ٧٦٩٦ مسند ابي هريرة)

دا د رسول الله ﷺ نه مخکې د جاهلیت په دور کې تیر شویدے، او دا د خلکو مشر وو او هغوی کې بزرګ وو او دے شام ته تلے وو هلته ئے عَمالقه قوم ولیدو چه د بتانو عبادت ئے کولو، دا څه کوئ؟ هغوی وویل : ددے په وجه بارانونه کیږي او برکات نازلیږي، نو دهٔ ورته ووېل : ما له هم یو بت راکړئ، نو دهٔ هغه راوړو او عرب ئے بت پرست جوړ کړل،

او بیا ئے ددے بتانو په نوم باندے دغه حیوانات هم حرام کړل، حال دا چه د ابراهیم ﷺ په دین کې دا څیزونه جائز وو۔ بیا شیطان پکې ژاله واچوله نو ددے په باره کې ئے په عربو باندے ښے لوبې وکړے۔

او دلته الله تعالیٰ د څلورو څیزونو نومونه اخستي دي مګر دا قسم شرکونه په دنیا کې په مختلفو نومونو او مختلفو طریقو باندے موجود دي، خوراکونه، لباسونه، حیوانات، غوړي، ماسته شو ملے ئے د ځان نه حرام کړي او نذر کریدی لکه مشرکان د قبرونو او د اولیاؤ د مزاراتو دپاره غواګانے میخے نذر کوي او هغے ته هیڅوك ضرر نشي ورکولے لکه د پاکستان په اسلام آباد کې د ((بري امام)) په خوا کې حیواناتو ته وګورئ چه په سړکونو ګرځي څوك ورته هارن هم نهٔ وهي، ددے نه خطره محسوس کوي،

زمونږ دا امت هم د تولو شرکیاتو نه تیریږي، په هر قوم کې داسے شرکي کارونه شته چه جاهلیت والو ته به سلام وکړي۔

مَاجَعَلَ اللّٰهُ : دلته جعل تشریعي مراد دے أَيْ مَا شَرَعَهُ اللّٰهُ۔ یعني دا څیزونه الله تعالیٰ مشروع (مقرر) کړي نهٔ دي، یعني د الله په دین کې ددے حرمت نشته بلکه دا جائز حیوانات دي او خلکو په ځان باندے حرام کړیدي نو ددے حراموِل غلط دي مګر که چا دا

نـذر د غیـر الله جـوړ کـړل نو بیا به ئے مسلمان نهٔ خوري؛ البته که څوك د جهاد په طریقه دا ونیـــسي نـو بیـا غنیمت طریقے سره خوړل ئے حلال دي. یا دا چه چا بحیره، سائبه د ځان نه حرام کـړے او د بـابا یا بت دپاره ئے نذر کړے نو که هغه توبه وېستله بیرته به دا حیوانات حلال شي. ددے دوه شرطونو نه علاوه ددے استعمال جائز نهٔ دے.

((بحیره)) لغت کي مَشْقُوْقَةُ الْأُذُن. غوږ پریکړے شوے حیوان ته وئیلے شي.

۱– دا هغه اُوښے ته وئیلے شي چه هغے پنځه ځله بچے راوړے وي او آخري ځل ئے نر بچے راوړے وي نو د هغے غوږ به ئے پریکړو او آزاده به ئے کړه، نهٔ به په هغے بانـدے سوریدل او نهٔ به ئے ذبح کوله، او نهٔ به ئے هغه حامله کیدو ته ورکوله او هغه به ئے د اُوبو د ځاي او چراګاه نه نـهٔ بـنـدولـه او کـه یو مانده ستړي، بے سورلئ انسان به هم هغه لیدله نو په هغے به نهٔ سوریدلو. ۲– یا بحیره بنت السائبه ده لکه روستو تعریف کي معلومیږي.

((سائبه)) په لغت کي آزاده پریخودلے شوے ته وئیلے شي. ۱– کومے اُوښے چه به لس ځله ښځـه بـچے اُوزیږولواو پـه هغے کي به نر بچے نهٔ وو نو هغه به ئے پریخودله نهٔ به په هغے بـانـدے سوریدل او نهٔ به ئے د هغے وېښته پریکول، او نهٔ به د کومے ګیاه نه منع کولے شوه او نـهٔ بـه ئے سوئ د هـغے د بچي او میلمه نه او منجورانو نه چا ددے پيئ ځکل، دا به ئے ډیره مبارکـه ګـنـړلـه. او ددے نـه روستو به دے چه کوم بچے راوړو نو هغے ته به ئے بحیره وئیله غـوږ بـه ئے ورله پریکړو او هغه به ئے د خپلے مور سره یو ځاي پریخودو او هیچا به ورته څه نـهٔ وئـیـل او صـرف مـنـجـورانـو بـه ترے فائده اخستله. نو بناء پدے تفسیر باندے بحیره د سائبے لور ده.

۲–ددے یـوه بـلـه مـعـنـیٰ هـم بیـان شویده چه دا به ئے هغه اُوښے ته وئیله چه هغه به په زمـانـه د جاهلیت کي د نذرانے په توګه یا د بتانو په نوم باندے پریخودلے شوه، نهٔ به په هغے بـانـدے سـوریدل او نهٔ به ئے د هغے نه د بار وړلو کار اخستو. یعني داسے نذر به ئے کولو که زمـا مریض ته شفا ملاؤ شوه نو زهٔ د فلاني بت په نوم یو حیوان سائبه کوم، نو کله چه به مریـض تـه شـفـاء ملاو شوه نو دوي به حیوان سائبه کړو او هغه به ئے سَدَنَه (منجورانو) ته ورکـړو چه د هغوي څه خوښه وه هغه به ئے پرے کول. او که چا به هغے ته څه تعرض وکړو نو هغه ته به ئے دنیا کي سزا ورکوله. (قاله ابوروق – والسديّ، ذکره ابن کثیرؒ)

۳– یوه دریمه معنیٰ دا هم بیان شویده چه کله به یو تن د لرے سفر نه راتللو یا به یو بیمار روغ شو یا بـه د هغے چارپایه د یو مشکل یا جنګ نه بچ کیدو نو وئیل به ئے چه زما اُوښه

آزاده ده۔

((وصیله)) د وَصْل نه ده یو ځای والی ته وائي، یعنې یو ځای کړے شوے حیوان۔

۱- دا به ئے هغه چیلئ یا ګډے ته وئیله چه شپږ ځله به ئے دوه ښځه بچي راوړل او اُووم ځل به ئے یوه ښځه او یو نر بچے راوړو نو خلقو به وئیل چه ښځے خپل ورور یو ځای کړو پدے وجه نر به ئے د خپلو معبودانو دپاره ذبح کولو۔

۲- محمد بن اسحاقؒ وائي: وصیله په ګډو بزو کې دا وه چه کله به یوے ګډے لس ښځے ګډے په پنځه خیټو کې غبرګوني وزیږولے، نو هغے ته به ئے وصیله وئیله او هغه به ئے پریخودله، نو که ددے لسو نه روستو به ئے نر یا ماده وزیږوله نو هغه به صرف سړو خوړله او ښځو باندے حرامه وه او که مرداره به شوه نو بیا به پکې ټول شریك وو۔ (ابن کثیرؒ)

((حام)) د حمایت نه دے، ساتنے او حفاظت ته وائي، یعنې هغه اُوښ چه خپله شا ئے بچه ساتلے ده۔ ۱- دا به ئے هغه اُوښ ته وئیلو، چه د هغه په ښځه اُوښه باندے به د ختلو تعداد مقرر کیدو، دے نه روستو د هغه په بدن باندے به ئے د شترمرغ وزر تړلو او هغه به ئے د بتانو دپاره پریخودلو۔

۲- د بعضو په نیز ((حام)) [كَانَ الرَّجُلُ إِذَا لَقِحَ فَحْلُهُ عَشْرًا، قِيلَ حَامٌ، فَتَرَكُوهُ]
(ابن عباسؓ- ابن کثیرؒ)

هغه اُوښ ته وئیلے کیږي چه د هغه د شا نه لس ځله اُوښے بچي راوړي وي، بیا به ئے هغه پریخودلو۔

دے څلورو قسمه حیواناتو په تشریح کې نور هم ډیر اقوال راغلي دي۔ لیکن د هغوی ترمینځ هیڅ منافات نشته، ځکه چه د جاهلیت والو ګمراهیانے قسما قسم وے چه هغه الله نۀ وے مشروع کړے بلکه مشرکانو د خپلو طرفونو نه ایجاد کړے وے۔ (تفصیل دپاره زاد المسیر ۲/۲۷٤)، القرطبي، ابن کثیر، الرحیق المختوم، سیرة ابن هشام ته رجوع پکار ده)۔

كَفَرُوا يَفْتَرُونَ : یعنې دا څیزونه الله تعالیٰ نۀ مشروع کړي او نۀ د هغه په نیز د قربت او ثواب ذریعه ده بلکه دا مشرکانو د خپل ځان نه دروغ جوړ کړیدي او دا ئے خپلو ځانونو دپاره شریعت جوړ کړیدے ددے په ذریعه الله ته ځان نزدے کول غواړي لیکن دا ورته هیڅرے نۀ حاصلیږي بلکه پدے باندے به رانیولے کیږي۔ (المنار)

وَأَكْثَرُهُمْ : د (الذین یفترون) نه مراد اَلسَّادَةُ وَالْكُبَرَاءُ (سرداران او مشران) دي او د

(وَاَکْثَرُهُم) نـه د هغوی تابعدار مراد دی۔ نو دا اشکال نهٔ کیږی چه لږ پکی عقلمند دی او اکثر بی عقله دی حال دا چه مشرکان ټول بی عقله دی،

نو دلته دا اشکال ختم شو ځکه چه دغه کم ئے مشران دی او اکثر چه کشران دی هغوی بی عقله دی پدے نهٔ پوهیږی چه دا خو افتراء (د ځان نه جوړه شوے طریقه) ده۔

(التسهیل وزاد المسیر عن الشعبیؒ)

۲- لَا يَعْقِلُوْنَ : اَنَّ هٰذَا التَّحْرِيْمَ مِنَ الشَّيْطَانِ۔ (قتادة- زاد)

اکثر د دوی دا عقل نکوی (فکر نکوی) چه دا تحریم د شیطان د طرفنه دے۔

| وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ |
|---|
| او کله چه ووئیلے شی دوی ته راشئ هغه څه ته چه نازل کړیدے الله تعالیٰ |
| وَاِلَى الرَّسُوْلِ قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ |
| او رسول ته، وائی دوی کافی ده مونږ لره هغه لار چه موندلی دی مونږ په هغے |
| اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْئًا |
| پلاران خپل، آیا اګرکه وو پلاران د دوی چه نهٔ پوهیدل په هیڅ شی |
| وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۴﴾ |
| او نهٔ لاره موندونکی وو۔ (بیا ئے هم دوی تابعداری کوی)۔ |

**تفسیر** : نو اُوس د قرآن او د حدیث په مقابله کی د مشرکانو دلیل چه هغه د پلار نیکه ړنده تابعداری ده۔ (یعنی تقلید)

د مشرکانو څلور دلیلونه مونږ په سورة البقره کی ویلی وو چه اتباع الآباء، اتباع الظن، اتباع الخرص او اتباع الاکثرية دی۔

یعنی کوم مشرکان چه په مختلفو شرکی اعمالو کی اخته وو، هغوی ته به چه کله ونیلے شو چه تاسو د خپلو پلارانو نیکونو تقلید پریدئ کومو چه د الله په باره کی دروغ جوړ کړی وو، او الله او د هغه رسول چه څه وائی په هغے عمل اُوکړئ نو دوی فوراً وائی چه مونږ خو د خپلو پلارانو نیکونو تقلید کوو۔ الله تعالیٰ ددے جواب ورکړو چه آیا پلاران نیکونه د تقلید د دوی دپاره کافی کیږی اګرکه د دوی پلارانو نیکونو حق نهٔ پیژندلو۔

او لـو كان : دے ته بيان الواقع وائي او ددے مفهوم نۀ وي مراد چه كه د چا پلار پوهيږي نو خير دے د هغه پسے به د قرآن او حديث په خلاف روانيدل جائز وي، نۀ بلكه على كل حال د هغه پسے ورتلل حرام دي، خو قيد واقعي د زيات قباحت دپاره بيانيږي چه د دوي پلاران نيكونه د دين په هيڅ شي نۀ پوهيدل او دوي ورپسے ورروانيږي نو دا ډيره لويه بې وقوفي ده، دوي د هغوي نه هم ډير ګمراه او لوي جاهلان دي۔ (ابن كثيرؒ)

وَّلَا يَهۡتَدُوۡنَ : اَیۡ اِلَی الۡحَقِّ۔ يعنې حق ته نۀ وو رسيدونكي۔

**فائده :** كه څوك د يو عالِم پسے ورځي او د كتاب او سنت په خلاف د هغه تقليد كوي هغه هم پدے آيت كي داخليږي څكه چه هغه هم پدغه خاص مسئله كي لا يعلمون او لا يهتدون الى الحق دے، په دغه مسئله نۀ دے پوهه شوے او حق ته نۀ دے رسيدلے۔

او كـه د هغه خبره د قرآن او سنت موافق وه نو بيا خو تۀ د عالِم پسے روان نۀ يې بلكه تۀ د دليـل پسے روان شوے، عـالِم ستا دپاره صرف رهنمائي وكړله او دا هغه خبره ده چه د ډيرو مقلدينو دماغ پرے نۀ كولاويږي۔ (والله يهدى من يشاء الى صراط مستقيم)۔

| يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا عَلَيۡكُمۡ اَنۡفُسَكُمۡ‌ۚ لَا يَضُرُّكُمۡ |
|---|
| اے ايمان والو ! لازم ده په تاسو ذمه واري د ځانونو ستاسو ضرر نۀ دركوي تاسو ته |
| مَّنۡ ضَلَّ اِذَا اهۡتَدَيۡتُمۡ‌ؕ اِلَى اللّٰهِ |
| هغه څوك چه ګمراه شي كله چه هدايت وموندلو تاسو خاص الله تعالىٰ ته |
| مَرۡجِعُكُمۡ جَمِيۡعًا فَيُنَبِّئُكُمۡ بِمَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۱۰۵﴾ |
| واپس كيدل دي ستاسو ټولو نو خبر به دركړي تاسو ته په هغه عملونو چه تاسو ئے كوئ۔ |

**تفسير :** ١- مـقـصد پدے آيت كي اَلۡاَمۡرُ بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَالنهى عن المنكر يا اَلۡاَمۡرُ بِالدَّعۡوَةِ اِلَى اللّٰهِ دے يعني پدے كي حكم كوي چه الله طرفته دعوت وكړئ۔

٢- پـه آيت كـي امر دے په حِفۡظُ النُّفُوۡسِ بِدِيۡنِ اللّٰهِ بـانـدے چـه د الله په دين باندے خپل نفسونه محفوظ وساتئ۔

## ربط او مناسبت

(١) قـرطبيؒ د جابر بن زيدؒ نه نقل كړيدي چه هركله به يو كس اسلام راوړو نو كافرانو به

ورته ویل چه تا خپل مشران کم عقل او گمراه وګڼل ځکه که زمونږ مشران بې علمه بې هدایته وو نو ستا مشران هم دغسې تیر شویدي، نو پدې آیت کې ددې جواب ذکر کوي چه د پلار او نیکه په غلطه لاره تلل بچي لره هیڅ ضرر نهٔ دې کله چه بچې په هدایت او صحیح لاره روان وي.

(۲)- مخکې رونـد تقلید او د هلاکونکي بدعت خطره بیان شوه نو اُوس ایمان والو ته نصیحت اُوکړې شو چه دوي د قرآن او د سنت په اتباع سره د خپل ځان د اصلاح په فکر کې شي، او دوي ته اطمینان هم ورکړې شو چه انسان که د هدایت په لاره روان شي او امر بالمعروف او نهي عن المنکر فریضه د خپل وسع مطابق ادا کوي، نو د بل چا د گمراهۍ وبال به ددهٔ په سر نهٔ راځي ځکه چه د قیامت په ورځ به هیڅوك د بل چا د سر نه بوج نهٔ پورته کوي، او هر شخص ته به د هغه د کړو بدله ملاویږي. د بل چا گناه به د هغه په سر نهٔ اچولې کیږي. پدې آیتِ کریمه کې همدا مطلب واضحه شویدې، لیکن ددې دا مطلب هیچرې نهٔ دې چه په مسلمان باندې امر بالمعروف او نهي عن المنکر واجب نهٔ دې.

بلکه عبد الله بن المبارك رحمه الله وائي :

[هٰذِهٖ أَوْكَدُ آيَةٍ فِيْ وُجُوْبِ الْأَمْرِ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْيِ عَنِ الْمُنْكَرِ]

دا آیت په باره د وجوب د امر بالمعروف او نهي عن المنکر کې ډیر تاکید کونکې دې. (نقله الرازيّ- القاسميّ والقرطبيّ).

اصحاب السنن روایت کړیدې چه ابوبکر ﷺ د حمد او ثنا نه روستو اُووئیل :

[يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّكُمْ تَقْرَؤُوْنَ هٰذِهِ الْآيَةَ (لَا يَضُرُّكُمْ) وَتَضَعُوْنَهَا فِيْ غَيْرِ مَوْضِعِهَا وَلَا تَدْرُوْنَ مَا هِيَ، وَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ : إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوْا مُنْكَرًا فَلَمْ يُغَيِّرُوْهُ يُوْشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللّٰهُ بِعِقَابِهٖ] (ابو داود في الملاحم: ٤٣٤٠، والترمذي واحمد (١/٥٧) وابن ماجه (٤٠٠٥) وفي صحيح الترغيب و الترهيب رقم: ٢٣١٧) و سنده صحيح)

اې خلقو! تاسو دا آیت لولئ او ددې غلط مطلب اخلئ، ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلي دي چه کله خلق بدي وینی او هغه نهٔ بدلوي نو نزدې ده چه د الله عذاب به دا ټول راګیروي.

د ابوبکر صدیق ﷺ مطلب دا دې چه ددې آیت تفسیر او فهم به د رسول الله ﷺ په فهم باندې اخستې شي او هغه ددې نه امر بالمعروف او نهي عن المنکر اخستې دې، نهٔ ددې پریخودل. قاله ابوعبیدؒ- البغوي ۲/۱۰۹)

## ددے آیت مصداقات

۱- د عبد الله بن مسعود ﷺ نه ددے آیت په باره کی داسے نقل دی چه ددے آیت زمانه لا نه ده راغلے بلکه پدے به په روستو زمانه کی عمل کیږی. دا به هغه زمانه وی چه کله امر بالمعروف او نهی عن المنکر فائده نهٔ ورکوی. هغه وفرمایل:

[مُرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ مَا قُبِلَ مِنْكُمْ فَإِنْ رُدَّ عَلَيْكُمْ فَعَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ]

امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوئ ترڅو چه ستاسو نه قبلیدے شی او که په تاسو باندے رد شی نو بیا د خپل ځان غم کوئ. (بغوی)

او دلیل پدے باندے د ابوثعلبه خُشنی ﷺ روایت دے (چه ترمذیؒ روایت کړیدے)

ابوامیة الشعبانیؒ وائی: زهٔ ابوثعلبه خشنی ﷺ ته راغلم او ورته مے وویل چه ددے آیت سره به څه کوے؟ هغه وویل: کوم؟ ما وویل: ﴿عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ﴾ هغه وویل: قسم په الله تا خو د ډیر خبردار نه تپوس وکړو؟

ما ددے په باره کی د رسول الله ﷺ نه تپوس وکړو نو هغه وفرمایل:

[بَلِ ائْتَمِرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنَاهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ حَتّٰى إِذَا رَأَيْتَ شُحًّا مُطَاعًا وَهَوًى مُتَّبَعًا وَدُنْيَا مُؤْثَرَةً، وَإِعْجَابَ كُلِّ ذِيْ رَأْيٍ بِرَأْيِهِ وَرَأَيْتَ أَمْرًا لَا بُدَّ لَكَ مِنْهُ فَعَلَيْكَ بِنَفْسِكَ وَدَعْ أَمْرَ الْعَامَّةِ]

اے خلکو! امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوئ تردے چه (تاسو داسے زمانه وینئ چه په هغے کی دا کاروته شروع شی) چه هر شخص د بخل پسے روان شی، د خپل خواهش بنده شی، دنیا لره په دین ترجیح ورکوی، او هر سړے خپلے رائے باندے خوشحاله وی. رسول الله ﷺ د هغه زمانے مسلمانانو ته دا نصیحت کړیدے چه کله داسے زمانه راشی نو عوام خلق پریده او د خپل ځان په فکر کی لګیا شه.

(ترمذی: ۳۰۵۸ ابوداود: ۴۳۴۳ وسنده حسن بالفاظ متقاربة -زبیر علیزیؒ)

او سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما ته چا وویل چه که ته پدے ورځو کی کینئ او امر بالمعروف او نهی عن المنکر ونکړے نو ښه به وی ځکه چه الله داسے فرمایلی دی، نو ابن عمرؓ وفرمایل: دا آیت زما او زما ملګرو دپاره نهٔ دے، مونږ ته رسول الله ﷺ فرمایلی وو، حاضر شخص دے غائب ته ورسوی" نو مونږ حاضر یو او تاسو د غائبانو په حکم کی یئ.

دا آیت د هغه خلکو په باره کی دے چه زمونږ نه روستو به راځی، که هغوی ته څه وویل شی نو نهٔ به ئے قبلوی. (الطبری ۱۴۳/۱۱) وابن کثیر (۲۱۴/۳)

او دا زمانه تقریباً ډیره رانږدې ده، بلکه رارسیدلې ده که څوك ایماني بصیرت لري.

(۲) مصداق: چه دا آیت زمونږ او د رسول الله ﷺ ټولو زمانو ته شامل دے او مطلب د آیت د ربط نه معلوم شو چه [لَايَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ اَیْ مِنْ آبَاءِ كُمْ اِذَا اهْتَدَيْتُمْ].

یعني که ستاسو د پلارانو نه څوك پخوا گمراه شویدے د هغوی په تاسو هیڅ ذمه واري نشته بلکه د خپل ځان غم وکړئ ددے رسول تابعداري وکړئ او حق قبول کړئ. لکه دا اعتراض د گمراهانو په هر وخت کې وی نو دغه جواب به ورته کولے شي.

(۳) د اَنْفُسَكُمْ نه مراد همجنس دی ځکه چه امت په منزله د یو جسد دے نو مطلب دا دے چه د خپلو همجنسو په دعوت سره ساتنه وکړئ که بیا هم څوك حق ته نهٔ راځي او د گناهونو نه منع کیږي، نو په تاسو باندے ئے هیڅ نقصان نشته کله چه تاسو خپله په هدایت کلك روان یئ او هغه گناهونو کې نهٔ شریك کیږئ ځکه چه په هغوی باندے حجت قائم شو او خبره ورته ورسیده. نو پدے کې امر بالمعروف ته دعوت شو.

(٤) – ددے نه زیات غوره مصداق دا دے چه دلته الله تعالیٰ (اِذَا اهْتَدَيْتُمْ) لفظ وئیلے دے او هدایت یو کامل شے دے چه ټول دین ته شامل دے، او انسان به هله هدایت والا گرځي چه د دعوت کار وکړي نو څوك چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر نهٔ کوی نو هغه مُهتدی (حق والا) نهٔ دے بلکه گمراه دے.

نو پدے کې د امر بالمعروف او نهی عن المنکر معنیٰ خپله پرته ده.

معنیٰ دا ده: د خپل ځان غم وکړئ، تاسو ته ضرر نهٔ درکوی هغه څوك چه گمراه کیږي کله چه تاسو خپله په کامل هدایت روان یئ او کامل هدایت دا دے چه خپله نیك عمل کوئ او بل ته دعوت ورکوئ نو که ددے نه روستو څوك گمراه کیږي په تاسو ئے هیڅ ضرر نشته. لکه ددے تفسیر او وضاحت بل آیت کوی، الله تعالیٰ فرمائي: ﴿وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِنْ شَيْءٍ وَلٰكِنْ ذِكْرٰى لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ﴾ (الانعام: ٦٩) د دواړو مقصد یو دے.

فَيُنَبِّئُكُمْ: د انسان ټول عملونه به د ویډیو په شکل راروان وی چه د ټول عالَم مخلوقات به ورته گوری نو څومره به شرمیږي؟! پدے وجه دا د لوی عذابونو مرادفه سزا ده او ډیره سخته یره پکې پرته ده.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ

اے ایمان والو! گواهي په مینځ ستاسو کې کله چه نږدے راشي یو تن ستاسو ته مرگ

| حِيْنَ الْوَصِيَّةِ اثْنٰنِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ اَوْاٰخَرٰنِ |
|---|
| په وخت د وصیت کولو کې دوه کسان عادلان دی ستاسو نه یا نور دوه دی |
| مِنْ غَيْرِكُمْ اِنْ اَنْتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْاَرْضِ |
| د سِویٰ ستاسو نه (یعنی کافرانو نه) که تاسو سفر کوئ په زمکه کې |
| فَاَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةُ الْمَوْتِ ؕ تَحْبِسُوْنَهُمَا مِنْۢ بَعْدِ الصَّلٰوةِ |
| نو ورسی تاسو ته مصیبت د مرګ را ایسار به کړئ تاسو دے دواړو لره روستو د مانځه |
| فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ اِنِ ارْتَبْتُمْ |
| (د مازیګر) نه نو قسم به وکړی دواړه په الله تعالیٰ که شك کوئ تاسو (وائی به) |
| لَا نَشْتَرِيْ بِهٖ ثَمَنًا وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ۙ |
| نۀ اخلو مونږه پدے سره بدله (مال) اګرکه وی دا (چاله چه قسم خوړلے شی) خپلوان |
| وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللّٰهِ اِنَّاۤ اِذًا لَّمِنَ الْاٰثِمِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ |
| او نۀ پټوو مونږه ګواهی د الله تعالیٰ یقیناً مونږ به په دغه وخت خامخا د ګناهګارو نه یو۔ |

**تفسیر** : د حلال حرام مسائل شروع دی نو ددے په مناسبت بله مسئله د حلال او حرامو راوړی۔ او پدے کې بل عقد ذکر دے۔ نو دا مناسبت شو د مضمون د سورت سره۔

جزوی مناسبتونه دا دی (۱) مخکې حفظ النفوس وو، دلته حفظ الاموال دے۔

۲– قسم د الله په نوم پکار دے۔

عنوان د آیت : شَهَادَةُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْكَافِرِيْنَ فِي الْوَصِيَّةِ مَقْبُوْلَةٌ]۔

په باب د وصیت کې د مؤمنانو او کافرانو دواړو ګواهی قبوله ده۔

یا [مَسْئَلَةُ الْوَصِيَّةِ فِي السَّفَرِ وَتَحْلِيْفُ الشُّهَدَاءِ] په سفر کې د وصیت مسئله او ګواهانو ته قسم ورکول۔ په شریعت کې ګواهانو ته قسم ورکول کله نا کله شته۔

مکی بن ابی طالبؒ وائی : ددے آیتونو په باره کې اهل معانی وئیلی دی چه دا آیتونه په قرآن کریم کې د اِعراب، حُکم، معنی او مصداق په اعتبار سره ډیر مشکل دی۔

قاضی ابو محمد ابن عطیةؒ وائی : هٰذَا كَلَامُ مَنْ لَّمْ يَقَعْ لَهُ الثَّلْجُ فِيْ تَفْسِيْرِهَا]

یعنی دا خبره د هغه چا ده چه د آیت په تفسیر باندې ئې سینه یخه شوې نهٔ وي (او سم پرې پوهه شوې نهٔ وي) (المحرر الوجيز ٣٥٩/٢ والقرطبي ٣٤٦/٦)
او همدا واقعي خبره ده چه هیڅ اشکال پکې نشته۔

## شان نزول

ددې آیت شان نزول امام بخاريؒ په کتاب الوصايا او ترمذيؒ په کتاب التفسير کې او دارقطنيؒ وغیره ذکر کړیدې، په بعضو کې الفاظ کم او په بعضو کې زیات دي، چه حاصل ئې دا دې: دوه کسان (تَمِيْم داري، او عَدِي بن بَدّاء) دواړه بهر ملکیان وو او دواړه نصرانیان وو، دوی به مدینې او مکې او شام ته د تجارتونو دپاره تلل راتلل نو پدې کې یو مسلمان سړې (بُدَيل بن وَرْقاء السهمي ﷺ) هم ددې کسانو سره شام ته د تجارت دپاره ملګرې شو، په شام کې دهٔ تجارتونه وکړل او ډیر مال ئې پیدا کړو په هغې کې د سپینو زرو جام ئې واخستو چه (مُخَوَّص بِالذَّهَب) وو یعني سرهٔ زر ترې تاو کړې شوي وو، چه په هغه زمانه کې ئې د زرو درهمو قیمت لرلو۔
اراده ئې دا وه چه دا به د هغه ځای بادشاه (نجاشي) ته هدیه کړي او ددې په بدله کې به ورته څه ورکړي (لکه عرب به دغه شان د بادشاهانو ملاقات ته تلل) نو پدې کې بدیل بن ورقاء بیمار شو په ځان پوهه شو چه زهٔ مرم، نو یو ئې خط ولیکلو او په هغې کې ئې خپل ټول سامان ولیکلو او پټ ئې په سامان کې کیخودو او دویم ئې دغه دوه ملګرو (چه نصارئ وو) ته وصیت وکړو زما دا مال به مکې مکرمې ته ویسئ او زما خپلوان چه د عمرو بن العاص کورنئ ده هغوی ته به ئې ورکړئ۔
بیا دې وفات شو نو هغوی خښ کړو او مال ئې راواخستو وې کتلو نو په هغې کې قیمتي قیمتي څیزونه ئې ترې پټ کړل چه یو پکې دا جام وو دا پکې ډیر قیمتي وو، کله چه دوی راغلل په مکه کې ئې دغه باقي مال عمرو بن العاص او د هغوی خپلوانو ته ورکړو او دا ئې ورته ووېل چه ستاسو سړې مړ شو او مونږ دفن کړو او دغه ئې مال دې، نو هغوی ورله شکریه وکړه، پدې کې چه دوی سامان وکتلو نو خط پکې راووتو، په هغې کې ئې د سپینو زرو جام لیکلې وو او په سامان کې هغه نهٔ وو نو دوی په دغه دوه کسانو دعوه وکړه چه تاسو دا جام پټ کړیدې۔ هغوی انکار وکړو، او قسم ئې وکړو چه مونږ نهٔ دې پټ کړې (دوی منکرین وو څکه ئې ورته قسم وکړو) پدې کې دا فیصله رسول الله ﷺ ته راوړې

شوه نو هغه دے منکرینو له د مازیگر مانځه نه روستو قسمونه ورکړل، نو دوی په قسم سره بری (خلاص) شو۔

دیو څو ورځو تیریدو نه روستو دغه جام په مکه کی د یو دکاندار سره ښکاره شو، تحقیق وشو، معلومه شوه چه دکاندار د تمیم داری او عدی نه په پیسو اخستے دے، نو پدے صورت کی بیا لانجه راپیدا شوه چه دغه کسانو دروغجن قسم کړیدے نو پدے صورت کی عمرو بن العاص او د هغه خپلوانو دعوه وکړه چه تاسو دروغ وئیلی دی او قسمونه مو په دروغو کړیدی نو پدے کی دے دواړو وویل چه صحیح دا ده چه دا جام ستاسو د مړی وو لیکن (زمونږ دعوه دا ده چه) دا ترے مونږ په پیسو اخستے وو او خپل مال مو خرڅ کړیدے نو پدے صورت کی دوی مدعیان شو، او عمرو بن العاص دوی ترے انکار وکړو چه تاسو نهٔ دے اخستے نو دوباره لانجه راواپس شوه، نو رسول الله ﷺ قسمونه عمرو بن العاصؓ او د هغه خپلوانو ته ورکړل نو هغوی قسمونه وکړل چه قسم په الله تاسو دا جام نهٔ دے اخستے۔

(دوی په قرائنو باندے قسم وکړو چه یو خط وو او بل د جام پیدا کیدل وو او په قرائنو هم قسم جائز دے)

نو پدے کی په دغه دوه کسانو باندے تاوان راغے لیکن بیا هم هغوی انکار کولو، نو پدے کی څه ورځے روستو تمیم داری ایمان راوړو نو هغه اقرار وکړو چه آؤ مونږ خرڅ کړیدے او پنځه سوه درهمه ما اخستی او پنځه سوه عدی بن بداء نو ده خپل پنځه سوه درهمه ورکړل او خلك لاړل په عدی باندے جمع شو نو د هغه نه ئے په زوره پنځه سوه درهمه واخستل۔

نو دا آیتونه الله تعالیٰ د هغوی په باره کی نازل کړل او داسے واقعه د ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنه په دورِ امارت کی راغلے وه، یو مسلمان د کوفے نه مدینے ته روان وو د اهل ذمه ؤ کلی ته په رسیدو کی پرے وفات راغے نو دوه ذمیانو کافرو ته ئے وصیت وکړو چه زما دا مال فلانی ځای ته ورسوئ، پدے کی خلکو شك وکړو چه ذمیانو ددے مال نه غلا کړیده نو لانجه چه ابو موسیٰ اشعری ؓ ته راغله هغه وویل چه دا مسئله د رسول الله ﷺ په زمانه کی هم راغلے وه، بیا ئے هغوی ته قسم ورکړو۔

د آیت **مطلب** دا دے چه اے مسلمانانو! کله چه تاسو د سفر په حالت کی یئ او ستاسو د مرګ آثار راښکاره شی او تاسو سره مال او سامان وی، نو د الله حکم دا دے چه د

مسلمانانو يا غير مسلمونه دوه د عدل او رشتيا والا په هغې باندے گواه جوړ کړئ، كه د دغه دوارو گواهانو په باره کې د مړي د وارثانو شك راشي چه كيدے شي دوى به خيانت کړے وی او د مړی څه مال به ئے پټ کړے وی، نو هغوى به د مازيگر مانځه نه روستو د قسم كولو دپاره بند كړے شي، بيا به هغوى په الله باندے قسم اُوكړى او وائى به چه مونږ د مال په وجه په الله باندے په دروغه قسم نۀ خورو، اگركه د چا دپاره چه مونږ قسم خورو هغه خپلوان ولے نۀ وی، او د كومے گواهى حكم چه الله وركړيدے د هغے په پټولو سره مونږ ځان نۀ گناهگاره وو، او كه د هغه دوارو د قسم خوړلو نه روستو پته ولگى چه هغوى خيانت کړيدے نو د مړى د خپلوانو نه به دوه نزدے خپلوان رامخے ته شى او قسم به وكړى چه زمونږ د دوارو گواهى د دوى دوارو د گواهى نه زياته قابل قبوله ده چه دوى خيانت کړيدے او د دروغو نه ئے كار اخستے دے، او دا چه مونږ په دوى باندے كوم د خيانت تهمت لگولے دے نو پدے كى مونږ په دوى باندے زياتے نۀ دے كړے. كه مونږ زياتے كړے وى نو د ظالمانو نه به شو او د الله د ناراضگئ او د هغه د عذاب مستحق به شو.

دے نه روستو الله تعالىٰ پداسے طريقے سره د قسم كولو حكمت او مصلحت بيان كړيدے چه ددے فائده به دا وى چه گواهان به د آخرت د عذاب نه په يره سره، د واقعے په كار كى بغير د څه تبديلى راوستو نه گواهى وركوى. او د خيانت د شك كيدو په صورت كى د دوه نزدے خپلوانو نه د قسم اخستو حكمت دا دے چه د سفر د حالت گواهان به يريږى چه كه مونږ دروغ اُووئيل نو زمونږ قسم به رد كيږى او نزدے خپلوان به قسم خورى او زمونږ دروغ به خلقو ته ښكاره كيږى.

شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ : يعنى گواه مقررول. او گواه كول.

اثْنٰنِ دا خبر دے د (شَهَادَةُ) يعنى گواهان مقررول په مينځ ستاسو كى دوه كسان دى.

يعنى چه كله مړ كيږى او وصيت كوى نو پدے وخت كى به دوه كسان مقرروى.

اَوْاٰخَرٰنِ : يعنى كه مؤمنان عادلان نۀ ملاويږى نو ستاسو نه غير كافران هم مقررولے شئ. د كافرانو گواهى په عامو ځايونو كى نۀ ده منظوره مگر په بعض سختو حالاتو كى منظوره ده او دا د شريعت استثناءات دى.

مِنْ غَيْرِكُمْ : ددے نه مراد كافران دى. او كوم خلك چه د (غَيْرِكُمْ) نه مراد د قبيلے نه علاوه نور خلك اخلى نو هغه صحيح نۀ ده ځكه چه مسلمان كه هر څومره وړاندے قبيلے والا وى ټول وروړنه ورونه دى.

اِرْتَبْتُمْ : دا قسم به په هغه وخت کی ورکولے شی چه ستاسو شك وو چه دا کسان به دروغجن وی۔

لَا نَشْتَرِىْ : یعنی هغه قسم کونکی به په قسم کی داسے وائی چه مونږ نهٔ اخلو پدے قسم کولو سره دنیا۔

وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى : ددے قرینه معنیٰ دا ده چه اګرکه وی دا مَقسم لَهٗ (چا دپاره چه قسم خوړلے شی) خپلوان یعنی زهٔ دا قسم د خپلوان دپاره نهٔ کوم پاتے لا دا چه زهٔ ئے د پیسو دپاره وکړم۔ لکه په محاوره کی دا وئیلے کیږی چه زهٔ د پلار دپاره قسم نهٔ کوم نو د پیسو دپاره به ئے څنګه وکړم؟۔ نو دا په محاوره بناء دے۔

۲- بعید تفسیر دا دے چه کَانَ کی ضمیر (مال) ته راجع دے یعنی اګرکه دا مال زما زړه ته ډیر قریب او محبوب دے لیکن قسم پرے نهٔ کوم۔ اوله معنیٰ ظاهر د قرآن دے۔

| |
|---|
| فَاِنْ عُثِرَ عَلٰٓى اَنَّهُمَا اسْتَحَقَّآ اِثْمًا |
| پس که خبریدل وشو پدے چه یقیناً دا دواړه مستحق شوی د ګناه دی (په دروغه قسم کولو سره) |
| فَاٰخَرٰنِ يَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ |
| نو نور دوه کسان به ودریږی په ځای ددے دواړو د هغه کسانو نه چه ثابت شویدے حق د هغوی دپاره |
| الْاَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَآ |
| چه نږدے دی دواړه مړی ته نو قسمونه به وکړی دواړه په الله تعالیٰ چه خامخا ګواهی زمونږ |
| اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَمَا اعْتَدَيْنَآ ۖ |
| ډیره رشتینے (یا لائقه) ده د ګواهئ د هغه (مخکنو) دواړو نه او زیاتے نهٔ دے کړے مونږه |
| اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۰۷﴾ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا |
| یقیناً مونږ به په دغه وخت د ظالمانو نه یو۔ دا کار ډیر نږدے دے دیته چه راتلل به کوی دوی |
| بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجْهِهَآ اَوْ يَخَافُوْٓا اَنْ تُرَدَّ اَيْمَانٌ |
| په ګواهئ په طریقه د هغے (د وجے د یرے د الله نه) یا به یریږی چه واپس به شی قسمونه (د دوی) |
| بَعْدَ اَيْمَانِهِمْ ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا ۗ وَاللّٰهُ |

| پس د قسمونو د دوی نه او یره وکړئ د الله نه او واورئ (دا خبره) او الله تعالیٰ |
|---|
| لَا یَهۡدِی الۡقَوۡمَ الۡفٰسِقِیۡنَ ﴿۱۰۸﴾ |
| هدایت نهٔ کوی قوم نافرمانو ته. |

**تفسیر** : فَاِنۡ عُثِرَ : یعنی په دغه ځای خو لانجه ختمه شوه لیکن که ددے نه روستو بله لانجه راپیدا شوه نو د هغې حکم واورئ.

عثر : ای اُطّلِعَ. یعنی معلومه شوه او اطلاع ملاؤ شوه.

اسۡتَحَقَّاۤ اِثۡمًا : دا دواړه د ګناه حقدار شویدی یعنی ګناه ئے کړیده چه په دروغه ئے قسم کړیدے. حاصل معنی ئے ده : فَعَلَا اِثۡمًا. کړے ئے ده ګناه.

مِنَ الَّذِیۡنَ : دا نور دوه کسان به څوك وی؟ د هغې بیان کوی چه دا د هغه کسانو نه دی.

اسۡتَحَقَّ عَلَیۡهِمُ : چه په دوی باندے حق ثابت شوے وو څکه چه د دوی دعوه ئے په قسمونو سره ضائع کړے وه، او دغه جام ئے د خپل ځان دپاره حق کرځولے وو. نو اُوس به دوی نه دوه کسان راپاڅیږی.

الۡاَوۡلَیٰنِ : چه دا دواړه کسان مړی ته نزدے دی. اولیٰ په معنیٰ د اَقۡرَب سره دے. مړی ته چه څوك نزدے وو مخکی په دوی باندے حق ثابت شو نو اُوس به دوی راپاڅیږی او قسمونه به وکړی څکه چه په دے وخت کی دوی منکر دی او هغه جام اخستونکی دعویدار دی چه دا مونږ په پیسو اخستے دے.او قسم منکر له وی نو څکه به دوی قسم کوی.

لَشَهَادَتُنَاۤ : پدے ځای کی د شهادت نه مراد قسم دے او د شهادت او قسم خپل مینځ کی مناسبت دے. څکه چه د یو بل په معنیٰ راځی.

اَحَقُّ مِنۡ شَهَادَتِهِمَا : احق په معنیٰ د اَصۡدَقُ (ډیر رشتینی) سره دے. یعنی زمونږ ګواهی او قسم ډیر رشتینی دے د هغوی د قسمونو نه څکه چه مونږ سره قرائن دی مثلاً د واقعے مطابق یوه قرینه دا ده چه دوی اول وئیلی وو چه مونږ جام نهٔ دے لیدلے، اُوس وائی چه مونږ اخستے دے، او بله قرینه لیکل دی، دریمه قرینه د مکے دکاندار وائی چه مونږ د تمیم او عدی نه اخستے دے.

اِنَّاۤ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِیۡنَ : یعنی مونږ به ظالمان یو که په دوی باندے دروغ وایو.

ذٰلِكَ اَدۡنٰی : (ذلك) اشاره ده دویم قسم کولو ته یعنی دا روستنی کسان چه قسم وکړی

نو دا ډیره نژدې ده چه خلك به آینده کې په خپله صحیح طریقه ګواهي ادا کوي.
عَلٰى وَجْهِهَآ : اَیِ الصَّحِیْحِ. یعنی په خپله صحیح طریقه.
اَوْ یَخَافُوْٓا اَنْ تُرَدَّ : او دا ګواهي به ولې په صحیح طریقه ادا کوي؟ اِمَّا لِخَوْفِ اللّٰهِ. یا خو به د الله نه یریږي اَوْ لِخَوْفِ رَدِّ الْاَیْمَانِ. یا د یرې ددې نه چه د دوی قسمونه به رد کړې شي لکه څنګه چه د مخکنو خلکو قسمونه رد کړې شو.
اَیْمَانٌ : کې تنوین عوضي دې اَیْ اَیْمَانُ الْاَوَّلِیْنَ. یعنی د مخکنو کسانو قسمونه.
بَعْدَ اَیْمَانِهِمْ : روستو د قسمونو د روستنو نه. لکه په دغه واقعه کې د مخکنو قسم رد شو او د روستنو قسم ثابت شو.
مطلب دا شو چه یا به هغوی وائي چه دروغ نشو وئیلې ځکه چه د الله نه یریږو، او یا به وائي چه که چرته صبا پته ولګی نو دا کسان به راپسې قسم وکړي او زمونږ قسم به غلط کړي نو ویه هم شرمیږو او قسم به مو هم لاړ شي او سامان به هم رانه واخلي نو ددې قانون د وجه نه به هغوی د الله صحیح حکم ادا کوي.
وَاللّٰهُ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الْفٰسِقِیْنَ : اَیْ حَالَ اخْتِیَارِهِمُ الْفِسْقَ. یعنی کله چه په فسق کې مشغول وي نو الله ورته هدایت نهٔ کوي ځکه چه هدایت د فسق منافي شے دې، ځکه هدایت د الله په هر حکم باندې عمل کول دي او فسق د الله حکم ماتولو ته وائي. او کله چه فسق پریدي او انابت پکې پیدا شي نو بیا ورته الله هدایت کوي.
آیت په احسن طریقه حل شو والحمد لله.
**فوائد الآیة :** (۱) په اسلام کې د مال حفاظت ډیر اهم شے خودلے شویدے.
(۲) د ضرورت په وخت کې د کافر ګواهي هم قبلیږي.
(۳) مرګ یو لوې مصیبت دې. الله تعالیٰ مونږ دې طرفته متوجه کوي.
(٤) د قسمونو او ګواهۍ دپاره افضل وخت اختیارول پکار دي.
(٥) د شك په وخت ګواهانو له قسمونه ورکول جائز دي.
(٦) اوله فیصله ماتیدل په دلیل سره صحیح دي، البته په اجتهاد سره به نشي ماتولے لکه بخاري کې دي، طاووس او ابراهیم او شریح رحمهم الله وائي : [اَلْبَیِّنَةُ الْعَادِلَةُ اَحَقُّ مِنَ الْیَمِیْنِ الْفَاجِرَةِ] تحت رقم (۲٦٧٩)
عادل ګواه د دروغجن قسم نه ډیر حقدار دې. یعنی یو تن په دروغه قسم وکړي بیا د فیصلې نه روستو، دغه مقابل شخص ګواه راولي نو معلومیږي چه ددې قسم خوړونکې

قسم دروغجن وو نو فیصله به د گواه والا دپاره کیږي. لکه دغسې فیصله عمر فاروق د یهودي دپاره وکړه د مسلمان په خلاف او دغه قول ئې ذکر کړو. (فتح الباري وشرح ابن بطال۵ ۱/۷۲)

او ځینو ئې مطلب دا بیان کړیدې چه یو تن په قسم کونکي باندې گواهي وکړي چه دهٔ چه په کوم شي قسم کړې نو د هغې په خلاف ئې اقرار کړې نو پدې گواه سره ښکاره شوه چه د قسم کونکي قسم په دروغه وو نو اوس به د هغه په خلاف فیصله کیږي. (ځکه چه دلیل د هغه په خلاف قائم شو). دا مطلب ابوعبیدؒ بیان کړیدې. (بتصرف یسیر) (فتح الباري۵ /۲۸۸)

(۷) د قرائنو په وجه گواهي او قسم کول جائز دي.

(۸) د جگړه مارو د یو بل بدي ذکر کول د ضرورت په وخت کې جائز دي.

(۹) د الله تعالیٰ احکام ټول د حکمتونو او بهترو مقصدونو نه ډك دي.

(۱۰) د خلکو مالونه په غلا، یا دروغو، یا دروغجنه گواهئ سره فسق دې او دا سبب دې ددې چه بنده د الله تعالیٰ د هدایت نه محروم شي نو ددې نه سخت پرهیز پکار دې.

| يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوْلُ مَاذَآ |
|---|
| یاد کړه هغه ورځ چه راجمع به کړي الله تعالیٰ رسولان نو اُوبه وائی څهٔ |
| اُجِبْتُمْ ۚ قَالُوْا لَا عِلْمَ لَنَا ۚ اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ﴿۱۰۹﴾ |
| قبول والے شوې وو ستاسو دوي به وائي هيڅ علم نشته مونږ ته یقیناً تهٔ ښه پوهه ئې په پټو خبرو. |

**تفسیر**: پدې آخري دوه رکوع گانو کې بیا د بني اسرائیلو واقعات بیانوي.

## مناسبت

۱- د مضمون د سورت سره مناسبت دا دې چه [هٰذِهِ الْعُقُوْدُ الَّتِيْ بَيَّنَهَا لَكُمْ رَسُوْلُنَا فِيْ هٰذِهِ السُّوْرَةِ تُسْئَلُوْنَ عَنْهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ] - دا عقود چه تاسو ته زمونږ رسول بیان کړل تاسو نه به د قیامت په ورځ ددې په باره کې تپوس کیږي. نو دا تخویف اخروي دپاره د تاکید مخکنو احکامو دې، او دا داسې دې لکه د خاتمې په شان چه یو تن تقریر وکړي او آخر کې ووائي چه دا ضروري خبرې دي ددې په باره کې به حساب کیږي. نو د ټولو پیغمبرانو نه

به الله تپوس کوی او پدې سره به د هغوی امتونه راګیروی چه دوی د پیغمبرانو څومره تابعداری کړیده، نو اې مؤمنانو! تاسو نه به هم تپوس کیږی.
۲- ابن عاشورؒ لیکی چه دا متعلق دې د مخکی واقعاتو د نصاراؤ سره، اول د حلال حرامو مسئلې بیان شوې بیا په یهودیانو او نصاراؤ رد وشو بیا د حلال او حرامو مسئلې بیان شوې نو اُوس بیرته خپلې خبرې ته واپسی وشوه لکه دا د قرآن او د تقریر طریقه ده چه بیرته خپلې خبرې ته واپسی کولې شی، نو دلته وائی چه د ټولو پیغمبرانو د امتونو نه به د قیامت په ورځ تپوس کیږی او خصوصاً اې نصاراؤ تاسو نه به د عیسیٰ ؑ په باره کی تپوس کیږی چه دوی ورته د الله څوی ونیلې دې او د هغه په باره کی سخت کافران شویدی او ډیر لوی امت پرې ګمراه شویدې، دا وجه ده چه دلته ئې د عیسیٰ ؑ څلور ځل نوم اخستې دې او په هر ځل ئې (ابن مریم) ورته ونیلې دې، دپاره ددې چه په نصاراؤ باندې پوره رد وشی چه دا ابن الله نهٔ دې بلکه د مریم څوی دې. نو اې نصاراؤ! د عیسیٰ ؑ په باره کی عقیده صحیح کړئ او د الله توحید مهٔ پریدئ. (التحریر والتنویر۵/۲۵۸)
نو حاصل ددې دواړو ربطونو دا شو چه اې امت محمد! تاسو نه به د رسول الله ﷺ په باره کی او ددې احکامو په باره کی او اې نصاراؤ تاسو نه به د عیسیٰ ؑ په باره کی تپوسونه کیږی، تاسو د هغې دپاره څه جواب تیار کړیدې؟
۳- ابن عاشورؒ دا هم وائی: مخکی د مخلوق په وصیت باندې شهادت ذکر وو، نو اُوس دلته د خالق په وصایاؤ باندې د رسولانو شهادت ذکر کوی څکه چه دینونه د الله تعالیٰ د طرفنه وصیتونه دی چه بندګانو ته ئې ورکړیدی.
او دا ربط چه بعض مفسرینو بیان کړیدې چه دا د (لایهدی الفاسقین) سره متعلق دې یعنی الله هدایت فاسقانو ته نکوی د قیامت په ورځ، نو دا ربط صحیح نهٔ دې څکه چه په قیامت کی د هدایت نفی کیدلو هیڅ فائده نشته. (التحریر والتنویر۵/۲۵۸)
او که د هدایت نه جنت ته رسول مراد شی نو هم د سیاق د آیتونو سره پوره سمون نهٔ خوری نو بس غوره دغه مخکنی مناسبتونه دی.

## تشریح الالفاظ والکلمات

**يَوْمَ يَجْمَعُ**: دا یوم ظرف دې د (اُذْكُرْ) راياد کړه هغه ورځ. یا (اِحْذَرُوْا) (وَاتَّقُوْا) ویریږئ پورې متعلق دې. یا یوم ظرف دې د روستو پټ فعل دپاره یعنی يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ

يَكُوْنُ فِيْهِ مِنَ الْأَهْوَالِ مَا لَايَفِيْ بِبَيَانِهِ مَقَالٌ] (المنار)

په کومه ورځ چه الله رسولان راجمع کړي او د هغوي نه تپوس ونه وکړي نو په دغه ورځ به داسے لوي هيبتونه وي چه د هغے بيان نشي کيدے. اول تقدير واضح دے او د قرآن کريم د نورو مواضعو موافق دے.

فَيَقُوْلُ : ماذا اجبتم : پدے تپوس کي امتونه راګيرول مقصود دي، چه تاسو دين بيان کړو نو امتونو تاسو له څه جواب درکړو؟ آيا ايمان او اقرار ئے وکړو او که کفر او استکبار؟ (المنار)

او تپوس مقصود نۀ دے ځکه چه د انبياؤ نه تپوس په باره کي نور آيتونه په قرآن کريم کي راغلي دي. کله چه دا تپوس کيږي نو ټول امتونه به ولاړ وي او داسے سخت هيبت کي به وي چه ريږدي به او په زنګنونو به پر مخے پراته وي ﴿وَتَرٰى كُلَّ أُمَّةٍ جَاثِيَةً﴾ (الجاثية:٢٨)

دغه هيبتي حالت ته الله تعالىٰ دلته اشاره غوندے ورکړيده چه نور قرآن کي د هغے تفصيلات راغلي دي، نو چا چه د پيغمبر خلاف کړے وي او په هغه ئے کفر کړے وي او د هغه سنت ئے رد کړي وي نو د هغه به څه حالت وي؟

دے کي ډيرے هر عاقل سوچ او فکر وکړي او په خپل ايماني سترګو ورته دے ته وګوري نو ډير عبرت به واخلي، دے ته د عرصات شرم وائي.

مَاذَآ اُجِبْتُمْ : آيا ستاسو ټولے خبرے ئے منلي او که بعض او که ټولے ئے رد کړيدي؟.

علماؤ ليکلي دي چه (مَاذَآ اُجِبْتُمْ) مجهول صيغه استعمال شويده يعني تاسو ته څه جواب درکړے شويدے؟. الله تعالىٰ دا ونۀ وئيل چه هغه قومونو تاسو ته کوم جواب درکړو. پدے کي دے طرف ته اشاره ده چه په هغه ورځ به الله تعالىٰ انتهائي درجه په غضب وي. د صحيح بخاري روايت دے چه زما رب به په هغه ورځ دومره په غضب وي چه د هغے نه مخکي به هم کله دومره نۀ وي په غضب شوے او نۀ د هغے نه روستو.

قَالُوْا : په ماضي سره ئے تعبير وکړو دپاره د تحقق الوقوع يعني دا سوال او جواب به په قيامت کي داسے يقيني کيږي لکه چه مخکي واقع شوے وي.

## سوال وجواب

لَا عِلْمَ لَنَا : سوال دا دے چه انبياء څنګه وائي چه مونږ ته علم نشته حال دا چه دوي نه

خو دا معلومه وه چه چا خبره منلے او چا نهٔ ده؟

جواب دا دے چه دلته د لاعلم لنا یو څو مصداقات دی :

(۱) لَا عِلْمَ لَنَا اَیْ بِجَمِیْعِ اَفْعَالِهِمْ۔

یعنی د هغوی ټولو کارونو باندے زمونږ هیڅ علم نشته۔ (المنار)

(۲) لَا عِلْمَ لَنَا بَعْدَ وَفَاتِنَا ۔ زمونږ د وفات نه روستو مونږ ته علم نهٔ وو چه دوی څه کول۔ (ابن الانباریؒ- التحریر والتنویر)

دے نه معلومه شوه چه ټول پیغمبران (په شمول د رسول الله ﷺ) د مرګ نه روستو د امت په هیڅ احوالو نهٔ پوهیږی مګر دا چه الله تعالیٰ خبر ورکړی چه ستا امت دا کارونه کوی۔

(۳) لَا عِلْمَ لَنَا بِمَا اَحْدَثُوْا بَعْدَنَا ۔ مونږ ته هیڅ علم نشته په هغه څه چه دوی زمونږ نه روستو کومه بی دینی پیدا کړیده۔ (ابن جُرَیْجؒ- ذکره البغویؒ)

٤- لَا عِلْمَ لَنَا بِبَوَاطِنِهِمْ ۔ مونږ ته هیڅ علم نشته د دوی په باطن باندے او په ظاهر باندے چه مونږ ته کوم علم وو هغه تا نه پټ نهٔ دے۔

(٥) ظاهر دا ده چه دلته پدے جمله کی تفویض مقصد دے، یعنی تهٔ علام الغیوب ئے (په هر غیب تهٔ پوهیږے) او ددے تفصیلات تا ته معلوم دی، او لږلږ کوم معلومات چه دوی ته وو نو د هغے بیان ئے هم نهٔ دے کړے ادباً وتفویضاً۔ ځکه چه دوی ته معلومه ده چه د الله مقصد دا نهٔ دے چه تاسو مونږ ته ددے امتونو عملونه بیان کړئ ځکه چه په هغے باندے خو الله تعالیٰ د دوی نه زیات پوهه دے، نو ځکه ئے تفویض وکړو چه ته د دوی په حال باندے عالِم ئے نو تهٔ ورسره پوهه شه لکه روستو راځی ﴿ اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَاِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ﴾ تهٔ پوهه شه او ستا بندګان پوهه شه، زمونږ پکی څه کار نشته خو مونږ ستا دین مکمل بیان کړیدے۔ اګرکه په نورو مواقعو کی به په امتونو باندے د هغوی د اعمالو ګواهی ورکوی لیکن دلته دا مقصد نهٔ وو۔

(القاسمی والمنار ۷/۲۰۲ والتحریر)

ځینی وائی د ډیر هیبت د وجه نه ئے سکوت کړیدے لیکن دا خبره ضعیفه ده ځکه چه انبیاء علیهم السلام په قیامت کی په امن باندے وی۔

عَلَّامُ الْغُیُوْبِ: او هغه ذات چه په پټو څیزونو پوهیږی نو ښکاره څیزونه به د هغه نه څه پټ پاتی شی۔

ابن عاشورؒ وائی : رسولانو چه دا تفویض وکړو نو پدے کښ ډیرو خبرو ته اشاره شوه :
(۱) په کافرانو باندے گواهی ده چه الله تعالیٰ د دوی سره کومه معامله وکړه نو هغه حقه ده۔
(۲) د کافرانو بی وقوفتیا ښکاره کول مقصد دے چه که دوی اُوس انکار کوی نو دا به ورته فائده نهٔ ورکوی۔
(۳) امتونو ته هغه خبرے رایادول چه هغوی پرے د رسولانو سره کومه معامله کړے وه ځکه پدے قول کښ چه ﴿اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ﴾ دے، تعمیم دے چه امتونو ته د هغوی تکذیب او ضد او عناد رایادوی لکه په محاوراتو کښ خلك چه د یو شی په باره کښ تپوس وکړی نو جواب کونکے ورته وائی : زهٔ تا ته پدے باندے زیات علم نهٔ درکوم۔ یا داچه ته پرے ښه پوهه یې۔ (التحریر والتنویر ۲۵۹/۵ لابن عاشور)

| اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِيْ عَلَيْكَ وَعَلٰى |
|---|
| کله چه وبه وائی الله تعالیٰ اے عیسیٰ ځوی د مریم رایاد کړه نعمتونه زما په تا باندے او په |
| وَالِدَتِكَ م اِذْ اَيَّدْتُّكَ بِرُوْحِ الْقُدُسِ قف تُكَلِّمُ النَّاسَ |
| مور ستا باندے په هغه وخت چه مضبوط کړے ما تهٔ په روح پاك سره خبرے ډے کولے |
| فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا ج وَاِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ |
| د خلقو سره د مور په غیږه کښ او په پوخ عمر کښ او کله چه تعلیم درکړو ما تاته د کتاب |
| وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ج وَاِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ |
| او سنت او د تورات او انجیل او کله چه جوړول تا د ختے نه په شان د شکل د مرغۍ |
| بِاِذْنِيْ فَتَنْفُخُ فِيْهَا فَتَكُوْنُ طَيْرًا بِاِذْنِيْ ج وَتُبْرِئُ |
| په حکم ځما پس پوکے به وکړو تا په هغے کښ نو شوه به مرغۍ په حکم ځما او روغول به تا |
| الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ بِاِذْنِيْ وَاِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى |
| مورزادی ړوند او برگی مرض والا په حکم ځما او کله چه راویستل به تا مړی (د زمکے نه) |
| بِاِذْنِيْ وَاِذْ كَفَفْتُ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَنْكَ اِذْ جِئْتَهُمْ |
| په حکم ځما او کله چه بند کړل ما بنی اسرائیل ستا (د وژلو) نه کله چه راوړل تا دوی ته |

بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ اِنْ هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۱۰﴾

ښکاره معجزات نو وویل کافرانو د دوی نه، نهٔ دے دا مګر جادو دے ښکاره۔

**تفسیر:**

په میدان محشر کې به چه کله ټول انسانان د الله مخے ته سر خکته وی په هغه وخت به الله تعالیٰ عیسیٰ ابن مریم سره بالخصوص خبرے شروع کړی ځکه چه د دنیا دوه لوئی امتونه د هغه په باره کې په ګمراهئ کې اخته شویدی۔ یهودیانو اُووئیل چه عیسیٰ جادوګر او ولدِ زنا وو، او نصرانیانو دعویٰ اُوکړه چه هغه الله او ابن الله وو۔

الله تعالیٰ به هغه سره مخاطِب وی او د میدان محشر خلق به ئے اوری، دے دپاره چه د مجرمین یهودو او نصاراؤ په افسوس او پښیمانتیا کې زیادت اُوشی، او هغوی ته د خپل کبر او غرور او ګمراهئ یقین اُوشی، نو دلته به الله تعالیٰ د هغه احتیاج بیانوی په پنځه ځیزونو کې،

اول په نعمتونو کې۔ دویم احتیاج په تصرفاتو (معجزاتو) کې، دریم په حفاظت کې د شر د بنی اسرائیلو نه او څلورم د ملګرو په پیدا کولو کې، او پنځم په معجزه د مائده کې

نو پدے کې رد دے په نصاراؤ چه هرکله هغه دومره محتاج بنده دے نو اله او ابن الله به څنګه جوړ شی؟ او دے خلکو باندے تعریض دے چه تاسو د داسے کمزوری او محتاج بنده عبادت کریدے؟! نو هغوی به خر شی۔

اذْكُرْ نِعْمَتِىْ عَلَيْكَ وَعَلٰى وَالِدَتِكَ : په عیسیٰ عليه السلام باندے خو د الله بی شماره دینی او دنیاوی احسانات وو او د عیسیٰ عليه السلام په مور مریم بنت عمران علیها السلام باندے د الله احسان دا وو چه الله هغے لره پاکیزه ګرځولے وه او د ټول جهان د ښځو نه ئے چانړ کړے وه۔

اِذْ اَيَّدْتُّكَ : دلته الله تعالیٰ داسے څیزونه ذکر کوی چه په هغے سره د عیسیٰ عليه السلام کمزوری او عبدیت ثابتیږی او الوهیت ئے نفی کیږی دپاره د رد په نصاراؤ، او دارنګه په یهودو باندے چه هغه ته ولدِ زنا وائی۔(العیاذ بالله) نو اول دا چه عیسیٰ عليه السلام تائید ته محتاج دے۔

تُكَلِّمُ النَّاسَ فِى الْمَهْدِ : ماشوم خبرے نشی کولے لیکن الله تعالیٰ د هغه نه دا خبرے راویستلے نو پدے کې هم الله ته محتاج وو۔ او دے ته اِرْهَاصات د انبیاؤ وائی یعنی د نبوت نه مخکی خبرے۔او دا هم د تائید یو صورت دے۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکلی دي : د آیت مطلب دا دے چه ما تا لره د ورکوالی او ځواني په دواړو حالتونو کی الله طرف ته رابلونکے نبي جوړ کړے وو، ما تا لره په ورکوالي کی کله چه ته د مور په غیږه کي وے د خبرو قوت درکړے وو، نو تا د خپلے مور د هر عیب نه د پاکئ ګواهی ورکړه، او زما دپاره د خپل عبدیت اقرار دِے وکړو، او خلقو ته دِے خبر ورکړو چه ما تهٔ رسول جوړ کړے ئے او خلقو ته دِے زما د عبادت دعوت ورکړو۔

وَاِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ : د کتاب نه مراد خط او کتابت او ظاهری علم دے چه لیکلے کیږی، او د حکمة نه مراد فهم او ادراك او هغه باطني علم دے چه نهٔ لیکلے کیږی۔

یا د کتاب نه مراد قرآن کریم او د حکمة نه مراد سنت د نبی کریم ﷺ دے، او دا احسان په عیسیٰ علیه السلام باندے به د هغه د نزول نه روستو وی۔

وَتُبْرِئُ الْاَكْمَهَ : مورزادی ړوند چه د هغے د علاج نه طبیبان او ډاکټران عاجز دی۔

بِاِذْنِيْ : الله تعالیٰ عیسیٰ علیه السلام ته څلور معجزات ورکړی وو چه هغه دلته ذکر شوی دی، او د هرے معجزے سره د ((بِاِذْنِيْ)) کلمه راغلے ده یعنی د عیسیٰ علیه السلام په لاس باندے د هغه معجزے ښکاره کیدل د الله په حکم سره او د هغه په قدرت سره کیدل، په هغے کی د عیسیٰ علیه السلام د ذاتی قدرت هیڅ دخل نهٔ وو۔ او دا دلیل دے ددے خبرے چه د انبیاء علیهم السلام او غیر انبیاء (د هیچا) په اختیار کی هیڅ نشته۔

وَاِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى بِاِذْنِيْ : لکه عیسیٰ علیه السلام به د مړی راژوندی کولو په وخت داسے وئیل (قُمْ بِاِذْنِ اللهِ) د الله په اذن (توفیق) راپاڅیږه۔

وَاِذْ كَفَفْتُ بَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ : بنی اسرائیلو عیسیٰ علیه السلام لره وژلو نو الله ترے هغوی واړول او ددهٔ حفاظت ئے وکړو، او ددے وجه نه عیسیٰ علیه السلام دوه ځله هجرت د بنی اسرائیلو نه کړیدے۔

اِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ : دا ورسره ددے دپاره وائی چه بنی اسرائیلو به څکه وژلو چه ددهٔ دعوه به غلطه وه، نو الله فرمائی : چه تا بینات پیش کړی وو لیکن دے ظالمانو هغه نهٔ منل نو پدے کی په اشاراتو کی یهودیان راګیرول مقصد دے، نو په دغه وخت کی به په یهودیانو ظالمانو باندے رپ ربی ولګی چه دا خو مونږ یادوی۔

وَاِذْ اَوْحَيْتُ اِلَى الْحَوَارِيّٖنَ اَنْ اٰمِنُوْا بِيْ

او کله چه الهام وکړو ما (یعنی په زړونو کی مے واچولو) حوارینو ته چه ایمان راوړئ په ما

وَبِرَسُوْلِيْ ج قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۱۱﴾

او په رسول ځما ووېل دوی ايمان راوړے دے مونږه او ګواه شه چه يقيناً مونږه منونکی يو۔

**تفسير** : دا د عيسىٰ ﷺ سره خبرے شروع دی او په مينځ کی د هغه مخالفينو ته زورنے بيانيږی او منونکو ته زيری۔ او پدے کی په عيسىٰ ﷺ باندے دا نعمت دے چه الله د هغه دپاره نيکان او ښه ملګری پيدا کړل او دا لوی نعمت دے ځکه چه د انسان ښه ملګری نهٔ وی نو دا لوی عذاب دے۔

وَاِذْ اَوْحَيْتُ اِلَى : وحی نه مراد الهام دے چه د هغوی په زړونو کی دا خبره راغله چه په الله او په رسولانو ايمان راوړل پکار دی۔

يا د وحی نه مراد په ژبه د عيسىٰ ﷺ وحی ده يعنی عيسىٰ ﷺ ته الله وحی وکړه چه اے عيسىٰ! تهٔ دے خلکو ته ووايه چه په الله او په رسولانو ايمان راوړئ نو الله هغوی ته د ايمان توفيق ورکړو۔

الْحَوَارِيّنَ : د عيسىٰ ﷺ خاص مُخلص ملګرو ته وائی۔

اِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ اَنْ يُّنَزِّلَ

کله چه ووېل حوارينو اے عيسىٰ ځوی د مريم! يقيناً طاقت لری رب ستا چه نازل کړی

عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ ط قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۱۲﴾

په مونږ باندے ډك دسترخوان د آسمان نه ووېل عيسىٰ ﷺ ويريږئ د الله نه که تاسو مؤمنان يئ۔

**تفسير** : پدے کی بل احسان ذکر کوی چه ما ستا دعاګانے هم قبولے کړيدی او د هغے په نتيجه کی تاسو ته مائده نازله شويده چه دا د عيسىٰ ﷺ په نبوت او رشتينوالی باندے يو قطعی دليل وو۔

او دا واقعه ددے دپاره راوړی چه تاسو بی ځايه او تعنتی سوالونه مهٔ کوئ لکه حوارينو دغه شان سوال د مائدے وکړو نو بيا پکی پيل شو نو دا به د (لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ) سره متعلق وی۔ لکه دا د قرآن طريقه ده چه په اشاراتو کی دعوت کوی۔

بعض علماؤ ليکلی دی چه دا واقعه په انجيل کی نهٔ ده ذکر شوے او نصاراؤ د مسلمانانو په ذريعه پيژندلے وه۔

د واقعے نوعیت دا وو چه د عیسیٰ علیه السلام حوارینو د اسلام په ابتدائی زمانه کی د هغه نه مطالبه اُوکړه چه الله د هغوی دپاره د آسمان نه د قسماقسم خوراکونو یو دسترخوان نازل کړی دے دپاره چه دوی ئے اُوخوری او د دوی زړونو ته زیات اطمینان او یقین حاصل شی۔
یا عیسیٰ : حوارینو عیسیٰ علیه السلام ته په نوم آواز اُوکړو او د هغه نسبت ئے مور طرف ته اُوکړو، دے دپاره چه څوك دا شك اُونکړی چه دا خلق د عیسیٰ علیه السلام د اُلوهیت یا ولدیت معتقد وو۔ (القاسمیؒ)
صاحب د تفسیر التسهیل (ابن جزیؒ) لیکلی دی چه پدے خلکو کی زمونږ د نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو نه ادب کم وو ځکه ئے ورته په نوم آواز وکړو او زمونږ صحابه کرامو هیڅکله په نوم آواز نهٔ دے کړے بلکه یا رسول الله او یا نبی الله به ئے وئیلو۔ (بلکه په نوم باندے آواز کول قرآن کریم منع کړیدی)۔ (التسهیل لعلوم التنزیل ۱/۳۹۲)
هَلۡ یَسۡتَطِیۡعُ : ((آیا ستا رب زمونږ دپاره د آسمان نه دسترخوان نازلولے شی؟))
ددے په باره کی علماؤ وئیلی دی چه دا لفظ ددوی غلط نهٔ وو پدے وجه عیسیٰ علیه السلام ددے نه منع نکړل، او مخکی د حوارینو صفت الله تعالیٰ وکړو چه دا مؤمنان خلك وو، نو بیا دوی دا لفظ ولے استعمال کړیدے؟ آیا د دوی د الله تعالیٰ په قدرت کی شك وو ؟
نو مفسرینو ددے یو څو توجیهات لیکلی دی :
(۱) هَلۡ په معنیٰ د (قَدۡ) سره دے یعنی یقیناً ستا رب ددے طاقت لری۔ لکه ﴿هَلۡ اَتٰىكَ حَدِیۡثُ الۡغَاشِیَةِ﴾ ﴿هَلۡ اَتٰی عَلَی الۡاِنۡسَانِ حِیۡنٌ مِّنَ الدَّهۡرِ﴾
(۲) استطاعت کی معنیٰ د خوشحالئ پرته ده اَیۡ هَلۡ یَرۡضٰی رَبُّكَ۔ آیا په خوشحالئ به ستا رب مائده نازله کړی چه ناراضه پرے نشی۔ نو دا به بیا د اَدب سوال وی۔
(۳) یا دا په ظاهر باندے بناء ده، او دوی دا سوال د ناپوهئ د وجه نه کړیدے، او پدے باندے د جهالت د وجه نه نهٔ دی کافر شوی، ځکه چه جهالت عذر دے ځکه که یو تن د جهالت په وجه یوه خبره وکړی، او بیا د پوهے نه پس منع شی نو پدے باندے نهٔ گنهگاریږی لکه بعض صحابه کرامو رسول الله ﷺ ته د حنین غزا ته د تللو په موقعه د هغوی د نوی مسلمانیدو په وخت کی وویل :
[اِجۡعَلۡ لَنَا ذَاتَ اَنۡوَاطٍ كَمَا لَهُمۡ ذَاتُ اَنۡوَاطٍ]
زمونږ دپاره هم داسے ونه مقرر کړه لکه څنگه چه دے خلکو لره مقرر ده چه توریے ورته زوړندہ وو او برکت پکی راخی۔

(دا شركي كلمه وه ليكن په ناپوهئ باندے وشوه، نوی مسلمانان وو)
لکه څنګه چه په بني اسرائيلو کی يو سړی (چه کفن کش وو) بچو ته په وصيت کولو کی وويل چه ما به د مرګ نه روستو په اُور باندے وسيزئ، او بيا به ايرے په هوا کی والوزوئ [لَئِنْ قَدَرَ اللّٰهُ عَلَيَّ] که چرته الله تعالیٰ په ما باندے قادر شو نو سخته سزا به راکړی چه هيڅ چا ته ئے نۀ ده ورکړے. نو الله تعالیٰ راپورته کړو ورته ئے وويل : داسے دِے ولے وکړل؟ هغه وويل : ستا د يرے د وجه نه، نو الله ورته بخنه وکړه. (نو دا خبره دده په ناپوهئ وه څکه الله تعالیٰ معاف کړو) (صحيح بخاری: ٣٤٨١،٣٤٧٩) (٧٥٠٦)
بعض علماء وائی چه دا د اسلام په ابتدائی زمانه باندے محمول دے چه د حوارينو په زړونو کی لا اسلام پوره ځای نۀ وو نيولے، او د الله د مقام نه لا تر اُوسه پورے پوره خبر نۀ وو.
(٤) غوره توجيه علامه ابن عاشورؒ ليکلے ده چه دا قول د عربيت مطابق دے چه هغوی په عرض (درخواست) او دعاء کی داسے الفاظ استعمالوی، هغوی يو تن ته چه د يو کار طاقت لری داسے وائی [هَلْ تَسْتَطِيْعُ كَذَا] آيا تۀ ددے طاقت لرے؟ ددے معنیٰ دا وی چه که چرته هغه شخص ستا مطلوب پوره نکړی نو تا به د هغه دپاره عذر طلب کړے وی.
دارنګه دا ترکيب په هغه وخت کی استعماليږی چه سائل دا نۀ خوښوی چه مسئول په هغه شی باندے مکلف کړی چه هغه ته ګران وی، او سائل ته دا معلومه وی چه دا به په مسؤول باندے ګرانه نۀ وی لکه په حديث د يحيی المازنی کی دی چه يو سړی عبد الله بن زيدؓ ته وويل : [أَتَسْتَطِيْعُ أَنْ تُرِيَنِيْ كَيْفَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَتَوَضَّأُ] آيا ته طاقت لرے چه ما ته وښائے چه رسول الله ﷺ به څنګه اودس کولو. نو دلته سائل پوهه وو چه په عبد الله بن زيد باندے به ددے جواب ګران نۀ وی. نو د حوارينو دا قول دلالت کوی په تلطف او تأدب باندے په سوال کی لکه دا د خالصو مؤمنانو سره مناسبه ده، او دا شك نۀ دے د الله په قدرت کی، ليکن دوی دا سوال ددے دپاره کولو چه په زړونو کی ئے ايمان نور هم مضبوط شی، او پدے سره د دليل عقلی نه دليل محسوس ته نقل شی. لکه ابراهيمؑ وئيلی وو ﴿رَبِّ أَرِنِيْ كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتٰى﴾ هلته هم شك نۀ وو. (التحرير والتنوير٥/٢٦٤).
مَآئِدَةً : د مَادَ يَمِيْدُ نه دے په معنیٰ د مائله کولو سره، او دا په معنیٰ د فاعل يا د مفعول سره دے، نو مائدے ته مائده ځکه وائی چه د خوراك والو لاسونه ځان ته مائل کوی يا د خوراك والو لاسونه هغے ته مائل کيږی.

## د مائده، سُفره او خِوَان فرق

سُفره هغه دسترخوان دے چه د څرمنے نه جوړوی او خلك ئے په زمکه د روټئ د خوراك دپاره اچوی، خِوان : ټیبل او میز ته وائی چه رسول الله ﷺ پدے باندے هیڅکله روټئ نهٔ ده خوړلے ځکه چه دا د جبابره ؤ متکبرانو طریقه ده۔ او مائده هغه دسترخوان ته وائی چه په هغے باندے فی الحال طعام پروت وی۔

اتَّقُوا اللّٰهَ : عیسیٰ ؑ ورته ووئیل : د الله نه یره وکړئ او دا سوالونه مهٔ کوئ کیدے شی چه دا ستاسو دپاره فتنه (ازمائش) وګرځی، او د رزق په طلب کولو کی په الله باندے توکل وکړئ که تاسو مؤمنان یئ۔

| قَالُوۡا نُرِيۡدُ اَنۡ نَّاۡكُلَ مِنۡهَا وَتَطۡمَئِنَّ قُلُوۡبُنَا وَنَعۡلَمَ |
|---|
| ووئیل دوی : غواړو مونږ چه خوراك وکړو ددے نه او مضبوط شی زړونه زمونږ او پوهه شو مونږه |
| اَنۡ قَدۡ صَدَقۡتَنَا وَنَكُوۡنَ عَلَيۡهَا مِنَ الشّٰهِدِيۡنَ ﴿۱۱۳﴾ |
| چه یقیناً رشتیا وئیلی دی تا مونږ ته او شو مونږه په هغے باندے د ګواهی کونکو نه۔ |

**تفسیر** : نُرِيۡدُ اَنۡ نَّاۡكُلَ مِنۡهَا : حواریینو د مائدے د طلب کولو سبب دا اُوخودلو چه مونږ ددے نه خوراك اُوکړو (او دا ځکه چه دوی یوه میاشت روژه نیولے وه نو وږی وو، خوراك ته محتاج وو) او زمونږ زړونو ته اطمینان او یقین حاصل شی، او مونږ ته معلومه شی چه ته په دعویٰ د نبوت کی او پدے دعویٰ کی رشتینے ئے چه الله به مونږ ته په جنت کی نعمتونه راکوی، او بنی اسرائیل چه کوم موجود نهٔ دی مونږ به د هغوی په مخکی د مائدے د نازلیدو ګواهی ورکوو، دے دپاره چه د هغوی ایمان هم زیات شی، او د هغوی نه چه لاتر اُوسه چا ایمان نهٔ دے راوړے چه هغوی هم ایمان راوړی۔

نو یو دلوړے زائل کول او بل د یقین ډیرول ئے مقصد وو چه دا د هر مؤمن طریقه ده چه یقین ډیرولو کوشش کوی او بل ته دعوت ورکول ئے مقصد وو۔

نَّاۡكُلَ مِنۡهَا : دلته قرطبیؒ د ماوردیؒ نه نقل کړیدی چه دلته د خوراك نه مراد برکت حاصلول دی د هغے نه۔ [اَیۡ نَاۡكُلَ مِنۡهَا لِنَنَالَ بَرَكَتَهَا] ۔ مونږ د هغے نه ددے دپاره خوراك وکړو چه د هغے برکت حاصل کړو۔ او ابن کثیرؒ د بعضو نه نقل کړیدی چه دا خوراك دوی

د فقر او د حاجت د وجه نه غوښتو، دے دپاره چه دوی ترے هره ورځ خوراك کوی او د هغے په وجه د الله په بندګئ باندے قوی کیږی۔ (ابن کثیرؒ)

وَتَطْمَئِنَّ قُلُوبُنَا : یعنی زمونږ زړونو ته اطمینان او یقین زیات شی په قدرت د الله تعالیٰ باندے ځکه چه د علم استدلالی سره چه مشاهده یو ځای شی نو یقین زیاتیږی۔

| |
|---|
| قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللَّهُمَّ رَبَّنَآ أَنْزِلْ عَلَيْنَامَآئِدَةً مِّنَ |
| ووئیل عیسیٰ ځوی د مریم اے الله ! ربه زمونږ نازل کړه په مونږ باندے درسترخوان د |
| السَّمَآءِ تَكُونُ لَنَا عِيدًا لِّأَوَّلِنَا وَاٰخِرِنَا وَاٰيَةً مِّنْكَ ج |
| آسمان نه چه شی زمونږ دپاره اختر د اولنو زمونږ او روستنو زمونږ او نخه به شی ستا د طرف نه |
| وَارْزُقْنَا وَأَنْتَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿١١٤﴾ قَالَ اللّٰهُ إِنِّيْ |
| او رزق راکړه مونږ ته او ته ئے غوره د رزق ورکونکو نه۔ ووئیل الله تعالیٰ یقیناً زهٔ |
| مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ج فَمَنْ يَّكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ فَإِنِّيْٓ |
| نازلونکے ددے یم په تاسو نو چا چه کفر وکړو روستو ددے نه ستاسو نه نو یقیناً زهٔ به |
| أُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ أُعَذِّبُهٗٓ أَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١١٥﴾ |
| عذاب ورکوم هغه ته داسے عذاب چه عذاب به نهٔ ورکوم داسے عذاب هیچا ته د مخلوقاتو نه۔ |

**تفسیر** : قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ : کله چه عیسیٰ علیه السلام ته معلومه شوه چه د دوی مقصد صحیح دے او په خپل سوال کلك ولاړ دی، نو عیسیٰ علیه السلام اُودس وکړو او مونځ ئے وکړو او بیا په انتهائی خشوع او خضوع سره ئے د الله نه دعا اُوکړه چه اے الله ! زمونږ دپاره د آسمان نه یو دسترخوان نازل کړه چه په هغے کی د هغه جنت نعمتونه وی چه د هغے تا مونږ سره وعده کړیده او هغه ورځ زمونږ دپاره او زمونږ نه روستو راتلونکی نسلونو دپاره د عید (اختر) ورځ شی، او ستا د کامل قدرت او د رشتینے وعدے او ستا د طرف نه زما د نبوت د تصدیق نخه شی۔ اے الله ! مونږ چه تا نه کوم سوال کړیدے دا پوره کړه۔ الله تعالیٰ اُوفرمایل چه زهٔ به دا نازلوم لیکن دے نه روستو چه د دوی نه چا کفر اُوکړو نو هغه ته به زهٔ د تمام جهان والو نه لوئی عذاب ورکوم۔

عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما فرمائی : درے قسمه کسانو ته به الله تعالیٰ

د قيامت په ورځ سخت عذاب ورکوی (۱) آل فرعون۔ ﴿ أَدْخِلُوٓا آلَ فِرْعَوْنَ أَشَدَّ الْعَذَابِ﴾
(۲) ددې امت منافقانو ته۔ ﴿إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ﴾
(۳) چا چه د اَصحاب المائده نه ناشکری کړې وه۔ ﴿ أُعَذِّبُهُ عَذَابًا لَّآ أُعَذِّبُهُ أَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ﴾ - (ابن جرير الطبری ۲۳۳/۱۱) ابن کثير ۲۲۶/۳)

اَللّٰهُمَّ رَبَّنَآ : اُلوهيت او ربوبيت دواړه ئې په دعا کې يو ځای کړل، پدې کې ډيرې عاجزئ ته اشاره ده۔ او اشاره ده چه عيسىٰ عليه السلام رب او اله نهٔ دې بلکه د اله او رب نه سوالونه کوی۔

تَكُوْنُ لَنَا : چه شی دا مائده يعنی ورځ د نزول ددې۔

عِيْدًا : دا د عَوْد نه دې، بار بار راواپس کيدو ته وائی، دلته يا لغوی معنىٰ مراد ده بار بار خوشحالی۔ يا عرفی اختر مراد دې۔

وَاٰيَةً مِّنْكَ : يعنی ستا د توحيد او زما د نبوت رشتينی دليل به وی۔

وَارْزُقْنَا : او مونږله پدې مائدې سره خوراك راکړه۔

وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ : نور مخلوق هم رازقان دی، ليکن د هغوی رزق مجازی دې، الله تعالىٰ ته بهتر رزق ورکونکې ځکه وائی چه الله رزقونه پيدا کوی، بيا ئې په ټول مخلوق کې تقسيموی، او دا کار مخلوق نشی کولې او د الله رزقونه هر قسمه دی، ظاهری، معنوی، د هر رګ، د هرې سترګې، د هر اندام رزق ورکونکې دې۔

فَمَنْ يَّكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ فَاِنِّيْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ : پدې جمله کې اشارات دی يو دې امت ته اشاره ده چه بې ځايه سوالونه مهٔ کوئ لکه اصحاب المائده سوالونه وکړل الله تعالیٰ قبول کړو مګر ناشکری ئې وکړه نو هغوی ته الله تعالیٰ ناشنا عذابونه ورکړل۔

ددې نه دا معلومه شوه چه کرامتونه غوښتل نهٔ دی پکار ځکه چه دا قانون دې چه څوك يو کرامت وغواړی نو بيا به د هغې مطابق پابند ژوند تيروی، که پابندی ئې ونکړه نو الله ئې هلاکوی، لکه يو تن داسې ووائی چه اې الله ! ما له داسې کرامت راکړه چه زهٔ ددې ځای نه کورته په هواء والوزم نو الله پدې قادر دې چه هغه ته دا توفيق ورکړی ليکن د الله دا قانون دې چه دا راتلونکې زندګی به ورنه په پابندئ کې غواړی، که پابندی ئې ونکړه په دنيا کې سخت عذاب ورکوی۔ او که کرامتونه ئې نهٔ غوختل بلکه عام مؤمن وی کله ورنه ګناه کيدله او توبه ئې ويستله او کله نيکی نو الله ئې په هغې هم بخښی۔

نو د دوی کرامت ښکاره شو چه دسترخوان نازل شو ليکن دوی پابندی ونکړه او

گناهونه به ئې کول نو الله سخت راونیول چه خنزیران ئې ترې جوړ کړل۔

## آیا مائده نازله شوې وه؟

د اهل علمو اختلاف دے چه د آسمان نه مائده نازله شوې وه او که نهٔ ؟۔

(۱) د حسن بصریؒ او مجاهدؒ رائے ده چه مائده نهٔ وه نازله شوې۔ حسنؒ به وئیل چه کله الله ﴿ فَمَن يَكْفُرْ بَعْدُ مِنكُمْ ﴾ الخ اُووئیل نو دے خلقو اُووئیل چه بیا زمونږ ددے ضرورت نشته دے، نو مائده نازله نشوه۔ مجاهدؒ وائی چه دا یو مثال وو چه الله تعالیٰ ددے دپاره بیان کړے وو چه انبیاء کرامو نه دِے د هغوی قومونه د نخو مطالبه اُونکړی۔

حافظ ابن کثیر رحمه الله وائی چه دے رائے ته تقویت پدے سره هم ملاویږی چه نصاریٰ دا نهٔ پیژنی، او د دوی په کتابونو کی ددے ذکر نهٔ دے راغلے۔ که داسے شوی وے نو دے خلقو به هغه بیان کړی وے، او د دوی په کتابونو کی به موجود وے۔

(۲) لیکن د جمهورو رائے دا ده چه مائده نازله شوې وه او دا ځلوینبت ورځو پورے وه ځکه چه الله تعالیٰ ﴿ إِنِّي مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ﴾ وئیلی دی او د الله وعده حقه وی، او ضرور پوره کیږی۔ او د سلفو د اخبارو او آثارو نه هم ددے تائید کیږی۔

ترمذیؒ د عمار بن یاسر رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ((د آسمان نه مائده نازله شوه چه په هغے کی روټئ او غوښه وه او هغوی ته حکم اُوشو چه نهٔ به خیانت کوی او نهٔ به ئې صبا دپاره جمع کوئ۔ لیکن دوی خیانت اُوکړو (پټول ئې شروع کړل) او جمع ئې کړه، صبا دپاره ئې کیخودہ نو په بیزوګانو او خنزیرانو سره بدل شو))۔ (ترمذی: ۳۰۶۱ وسنده ضعیف– البانی، فیه عنعنة سعید بن ابی عروبة وعنعنة قتادة وهما مدلسان)

ابن ابی حاتمؒ د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت نقل کړیدے چه کله عیسیٰ ابن مریم علیه السلام دعا اُوکړه نو ملائک د آسمان نه مائدے سره نازل شو۔ او مخکی د عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما روایت هم ذکر شو۔

حافظ ابن کثیرؒ او ابن جریرؒ همدے رائے ته ترجیح ورکړیده چه واقعی د آسمان نه مائده نازله شوې وه۔ او هرچه دوی په کتابونو کی نهٔ ده ذکر نو وجه دا ده چه دوی د خپلو کتابونو نه ویستلے ده، پدے وجه چه پدے کی د دوی مسخ ذکر شویده او دا د دوی دپاره د شرم خبره وه لکه څنګه چه دوی به د سبت (خالی ورځے) واقعه پټه ساتله۔

او تاریخی روایاتو کې دي چه دا دسترخوان چه کله نازل شو نو د بنی اسرائیلو مالدار، غریب، وړوکے او غټ، مریض او روغ ټول د خوراك دپاره حاضر شو چه په یو بل باندې راپریوتل، نو عیسیٰ علیه السلام د دوی نمبر مقرر کړو چه یوه ورځ به چا وخوړله نو په دویمه ورځ به هغه نۀ راتللو، په مینځ کې به ئې یوه ورځ پریخودله، پدې طریقه څلویښت ورځې تیرې شوې، بیا دا مائده د الله په حکم سره آسمان طرفته پورته شوه چه د هغې سورې په زمکه باندې پروت ښکاره کیدو، الله تعالیٰ خپل نبی عیسیٰ علیه السلام ته وحی وکړه چه پدې مائده کې زما رزق صرف د فقیرانو، یتیمانانو او مریضانو دپاره دے، صحتمند او مالدارو دپاره نۀ دے، نو مالداره پدې خبره په حسد کې شو نو خبرې ئې شروع کړلے او خپله هم په شك کې پریوتل او نور خلك ئې هم په شك کې اچول او غلطې خبرې ئې خورول شروع کړل، شیطان په دوی باندې قبضه وکړه، او د نیکانو خلکو په زړونو کې ئې هم وسوسے واچولے او دغه شان فسادونه پکې راغلل او فسق او فجور پکې پیدا شو، (ابن کثیرؒ وغیره)

نو عیسیٰ علیه السلام دوی ته ښیرے وکړے چه اے الله ! خنزیران ترے جوړ کړه نو خنزیران ترے جوړ شو، او لږ وخت پورے وو او آخر هلاك شو۔

دا خلك مؤمنان وو لیکن د ګناهونو او د الله د امر ماتولو په وجه پرے دغسے دنیاوی عذاب راغلو۔

او دا د الله تعالیٰ ددے امت سره ډیر لوی رحم او فضل دے چه دوی باندے داسے قسم عذابونه نۀ راولی ګنے تا به ډیر خلك لیدلے چه خنزیران او شادوګان به ترے جوړیدلے او په لارو کوڅو کې به ئې منډے ترړے وهلے، مګر د دوی دپاره ئې سزا آخرت ته ساتلے ده۔ کوم چه کفار دي او د مؤمنانو سزا په دنیا کې فتنے او زلازل او پریشانی ده لکه رسول الله ﷺ فرمائی : ((زما امت مرحوم امت دے په دوی باندے په آخرت کې عذاب نشته، ددوی عذاب په دنیا کې فتنے، زلزلے، او قتلونه دي))۔ (ابوداود : ۴۲۸۰ وسنده صحیح)

| وَاِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ |
|---|
| او کله چه ووئیل الله تعالیٰ اے عیسیٰ ځوی د مریم ! آیا تا وئیلی دي خلقو ته |
| اتَّخِذُوْنِيْ وَاُمِّيَ اِلٰهَيْنِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ قَالَ |
| چه ونیسئ ما او مور ځما دوه حقدار د بندګئ سویٰ د الله تعالیٰ نه وبه وائی عیسیٰ |

سُبۡحٰنَكَ مَا يَكُوۡنُ لِيۡۤ اَنۡ اَقُوۡلَ مَا لَيۡسَ لِيۡ بِحَقٍّ ط اِنۡ كُنۡتُ

پاك ئے ته، نهٔ دی جائز ما لره چهووایم زهٔ هغه څه چه نهٔ وی زما دپاره لائق، که چرے

قُلۡتُهٗ فَقَدۡ عَلِمۡتَهٗ ط تَعۡلَمُ مَا فِيۡ نَفۡسِيۡ

ما دا ویلی وی نو یقیناً پو هه ئے ته په هغے، پو هیږے ته په هغه څه چه څما په زړهٔ کی دی

وَلَاۤ اَعۡلَمُ مَا فِيۡ نَفۡسِكَ ط اِنَّكَ اَنۡتَ عَلَّامُ الۡغُيُوۡبِ ﴿۱۱۶﴾

او نهٔ پو هیږم زهٔ په هغه څه چه په نفس ستا کی دی یقیناً ته ښه پو هه ئے په پټو خبرو۔

**تفسیر** : دا اعاده ئے بُعۡدِ عَهۡد ده۔ خبرے مینځ کی ډیرے وشوے نو بیرته ئے خبره سرته بو تله۔

مناسبت :

فَرَّطُوۡا فِيۡ حَقِّ الۡمَائِدَةِ وَحَقِّ اللّٰهِ ۔ بنی اسرائیلو د مائدے په باره کی هم تفریط (کوتاهی) کړیده چه ناشکری ئے کړیده او د الله په حق کی هم، چه د الله حق ئے عیسیٰ علیه السلام ته ورکړو۔

ءَ اَنۡتَ قُلۡتَ : دا خو الله تعالیٰ ته بهتره معلومه ده چه عیسیٰ علیه السلام دا خبره نهٔ ده کړے لیکن پدے کی د هغه اُمت راگیرول دی چه هغوی په عیسیٰ علیه السلام باندے دروغ جوړ کړی وو چه مونږ ته هغه او د هغه مور دا حکم کړیدے چه مونږ ئے اله جوړ کړئ۔

دویم پدے کی عیسیٰ علیه السلام ته دا خودل دی چه ستا نه روستو نصاراؤ ستا دین بدل کړیدے۔ دریمه فائده دا ده چه خلکو ته دا خبره ښکاره کول مقصد دے چه عیسیٰ علیه السلام د وفات نه روستو د اُمت د حال نه خبر نهٔ دے۔

او په حدیث د ترمذیؒ کی راغلی دی چه پدے کی مقصد عیسیٰ علیه السلام ته حجت خودل دی چه تهٔ داسے ووایه۔ او دا سوال چه کله په عیسیٰ علیه السلام باندے وشی نو په هغه باندے به سخت هیبت راشی ځکه چه د الله خبرے ډیر رعب لری۔

سُبۡحٰنَكَ : یعنی تهٔ د شریکانو او هر عیب نه پاك ئے۔

مَا يَكُوۡنُ لِيۡ : یعنی دا په معنیٰ د [مَا يُمۡكِنُ وَمَا يَنۡبَغِيۡ وَمَا يُتَصَوَّرُ] سره دے یعنی دا زما دپاره مُمکن او مناسب نهٔ ده چه زهٔ داسے خبرے وکړم۔

مَا لَيۡسَ لِيۡ بِحَقٍّ : یعنی خپل اُلوهیت ته دعوت ورکول زما په هیڅ طریقه سره حق نهٔ دے۔

اِنۡ كُنۡتُ قُلۡتُهٗ فَقَدۡ عَلِمۡتَهٗ : یعنی که ما دا خبره کړې وی نو ته به پرې پو هه ئې ځکه چه په تا باندې هیڅ شے پټ نهٔ دے، معلومه شوه چه ما نهٔ ده کړې۔ ابوالسعودؒ وائی : صدور ددے قول د عیسیٰ علیه السلام نه مستلزم دے علم د الله تعالیٰ لره قطعاً، او انتفاء د علم د الله تعالیٰ په صدور ددے قول د عیسیٰ علیه السلام نه دا مستلزم دے انتفاء د صدور ددے قول د عیسیٰ علیه السلام نه ځکه چه انتفاء د لازم مستلزم ده انتفاء د ملزوم لره۔ مطلب دا چه که ماویلی وی نو ته به پرې پوهه یې او هر کله چه تا ته نهٔ ده معلومه، نو معلومه شوه چه ما نهٔ ده وئیلې۔
(تفسیر ابی السعود۲/۳۲۱)

تَعۡلَمُ مَا فِیۡ نَفۡسِیۡ : یعنی که ما چرته په زړه کی پټه ساتلې وی او اُوس انکار کوم نو تهٔ زما په زړه باندې هم عالِم یې۔

وَلَاۤ اَعۡلَمُ مَا فِیۡ نَفۡسِكَ : انبیاء علیهم السلام د الله تعالیٰ ډیر معرفت لری لیکن د الله د ذات حقیقت او د هغه په نفس کی چه کوم عِلمونه دی هغه پوره نشی معلومولے، ﴿وَلَا يُحِيۡطُوۡنَ بِهٖ عِلۡمًا﴾ (طه: ۱۱۰)

نفس د الله د صفاتو نه دے، د الله نفس شته ځنګه چه د هغه د شان سره لائق وی، او پدے کی دا تاویل کول چه [لَا أَعۡلَمُ مَا فِیۡ سِرِّكَ وَمَا فِیۡ غَيۡبِكَ]
(زهٔ نهٔ پوهیږم په هغه څه چه ستا په راز او ستا په غیبو کی دی) دا د الله د صفت نه انکار دے او د سلف صالحینو د منهج نه خلاف دی۔

اِنَّكَ اَنۡتَ عَلَّامُ الۡغُيُوۡبِ : پدے کی ددے خبرے اقرار او اعلان دے چه د غیبو خبرے د الله نه سِوا هیڅوك نهٔ پیژنی، پدے کی انبیاء او غیر انبیاء ټول برابر دی۔ انبیاؤ ته هم د غیبو هغه خبرے معلومیږی چه په وحی سره هغوی ته خودلے کیږی۔

| مَا قُلۡتُ لَهُمۡ اِلَّا مَاۤ اَمَرۡتَنِیۡ بِهٖۤ |
|---|
| نهٔ دی ویلی ما دوی ته مګر هغه خبره چه حکم کړے تا ما ته په هغې سره |
| اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ رَبِّیۡ وَرَبَّكُمۡ ۚ وَكُنۡتُ عَلَيۡهِمۡ شَهِيۡدًا |
| دا چه بندګی کوئ د الله چه رب زما دے او رب ستاسو دے او وم زهٔ په دوی باندے ګواه |
| مَّا دُمۡتُ فِيۡهِمۡ ۚ فَلَمَّا تَوَفَّيۡتَنِیۡ كُنۡتَ اَنۡتَ الرَّقِيۡبَ |
| ترڅو چه وم په دوی کی نو هر کله چه پوره واخستم تا زهٔ نو خاص تهٔ نظر ساتونکے ئے |

| عَلَيۡهِمۡ ۚ وَاَنۡتَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ ﴿۱۱۷﴾ |
|---|
| په دوی باندے او ته په هر شی باندے حاضر ناظر ئے۔ |

**تفسیر** : سوال پیدا شو چه بیا تاسو څه دپاره بنی اسرائیلو ته ورغلی وئ؟ نو جواب وشو په طریقه د ادب سره چه ما خو بنی اسرائیلو ته نور هیڅ خبره نهٔ ده کړے سوئ د هغے نه چه تا پرے ما ته حکم کړیدے او تا ما ته دا حکم کړیدے چه (اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ) نو (اُعۡبُدُوا اللّٰهَ) بیان دے د (مَا اَمَرۡتَنِیۡ بِهٖ)۔ نو معلومه شوه چه ما دوی ته د خپل اُلوهیت په باره کی هیڅ نهٔ دے ویلی، دا د دوی دروغ دی چه ما پورے ئے تړلی دی۔

**وَكُنۡتُ عَلَيۡهِمۡ شَهِيۡدًا** : یعنی کله چه زهٔ په دوی کی موجود وم نو ما ته معلومه وه چه دوی ستا بندگی او اطاعت کولو نو دوی ښه خلك وو۔

**فَلَمَّا تَوَفَّيۡتَنِىۡ** : یعنی هرکله چه تا زهٔ پوره واخستم، بره آسمان ته دے وخیژولم او د مرگ معنیٰ ئے هم صحیح ده ځکه چه دا خبره به په قیامت کی کوی۔ نو بیا ته زما د امت په حال باندے خبردار وے چه دوی زما نه روستو څه کارونه کړیدی۔

**كُنۡتَ اَنۡتَ الرَّقِيۡبَ عَلَيۡهِمۡ** : دے آیت نه دا هم معلومه شوه چه انبیاء کرام علیهم السلام چه کله خپل دنیاوی عمر پوره کړی او عالَم برزخ ته منتقل شی نو هغوی ته د خپلو امتونو د احوالو او اعمالو پته نهٔ لگی۔ امام بخاریؒ په کتاب (الصحیح) کی په ډیرو بابونو کی د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیدے چه نبی کریم ﷺ خطبه اُووئیله او وے فرمایل چه د قیامت په ورځ به د امت څه کسان راوستے شی چه هغوی به په گس طرف روان کړے شی، نو زهٔ به وایم:

[يَا رَبِّ! اُصَيۡحَابِىۡ، فَيُقَالُ : اِنَّكَ لَاتَدۡرِىۡ مَا اَحۡدَثُوۡا بَعۡدَكَ فَاَقُوۡلُ كَمَا قَالَ الۡعَبۡدُ الصَّالِحُ، ﴿وَكُنۡتُ عَلَيۡهِمۡ شَهِيۡدًا مَا دُمۡتُ فِيۡهِمۡ فَلَمَّا تَوَفَّيۡتَنِىۡ كُنۡتَ اَنۡتَ الرَّقِيۡبَ عَلَيۡهِمۡ، فَيُقَالُ : هٰؤُلَاءِ لَمۡ يَزَالُوۡا مُرۡتَدِّيۡنَ عَلٰى اَعۡقَابِهِمۡ مُنۡذُ فَارَقۡتَهُمۡ ﴾

اے ربه ! دا خلق خو زما ملگری دی، نو هغه ته به اُووئیلے شی : ته نهٔ پوهیږے چه دوی ستا نه روستو په دین کی څه څه نوے خبرے پیدا کړے وے۔ نو زهٔ به د الله د نیك بنده (عیسیٰ) په شان وایم : ﴿وَكُنۡتُ عَلَيۡهِمۡ شَهِيۡدًا مَا دُمۡتُ فِيۡهِمۡ فَلَمَّا تَوَفَّيۡتَنِىۡ كُنۡتَ اَنۡتَ الرَّقِيۡبَ عَلَيۡهِمۡ﴾ نو هغه ته به بیا وئیلے کیږی چه دا خلك ستا د دنیا نه د رخصتیدو نه پس همیشه روستو پاتے شوی وو او په خپلو پوندو اوړیدلی وو۔ (محاسن التاویل)

وَاَنْتَ عَلٰی كُلِّ شَیْ ءٍ شَهِیْدٌ : شهید د شهادت نه دے په معنیٰ د علم سره یعنی په هر شی عالِم یې۔

اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ ج وَاِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ

که عذاب ورکوے ته دوی ته نو یقیناً دوی بندګان دی ستا او که ته بخنه کوے دوی ته

فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ ﴿۱۱۸﴾

نو یقیناً ته غالبه حکمتونو والا ئے۔

**تفسیر** : اِنْ تُعَذِّبْهُمْ : د عیسیٰ علیه السلام په بیان سره نصاریٰ او یهود راګیر شول نو پدے کی عیسیٰ علیه السلام الله تعالیٰ ته د هغوی د معاملے تفویض (سپاربښتنه) کوی ځکه چه عیسیٰ علیه السلام ډیر نرم دل پیغمبر وو، چه اے الله ! ستا خوښه ده که دوی ته عذاب ورکوے هم ستا بندګان دی او د بل چا بندګی ئے کړیده نو دوی مستحق د عذاب دی او که ته ورته بخنه کوے هم پدے باندے ته قادر ئے۔

اِنْ تُعَذِّبْهُمْ : ددے جزاء پټه ده [أَیْ فَلَا اِعْتِرَاضَ عَلَیْكَ لِأَنَّهُمْ عَبَدُوْا غَیْرَكَ] یعنی که ته دوی ته عذاب ورکوے په تا به هیڅ اعتراض نۀ وی ځکه چه دوی ستا نه علاوه د بل چا بندګی کړیده او ستا حق ئے برباد کړیدے. ددے نه غوره دا ده چه [اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ مُسْتَحِقُّوْنَ لِذٰلِكَ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَعَبَدُوْا غَیْرَكَ] که ته دوی ته عذاب ورکوے نو دوی ددے مستحق دی ځکه چه ستا بندګان دی او عبادت ئے د بل چا کړیدے۔

وَاِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ : [فَاِنَّكَ قَادِرٌ عَلٰی ذٰلِكَ] یعنی که ته ورته بخنه کوے نو پدے باندے قادر یې۔ سوال کافر ته خو مغفرت نۀ کیږی نو څرنګ وائی ان تغفر لهم ؟ جواب دا دے چه دلته یو د الله قانون دے او یو ئے قدرت دے، د الله قانون دا دے چه مشرك ته بخنه نکوی، او قادر دے چه ټول مشرکان معاف کړی او جنت ته ئے بوځی۔

او دے ته بعض متکلمین اخلاف الوعید وائی۔

لکه د عربو په نیز به خلاف الوعد (د وعدے خلاف) عیب ګڼړلے کیدو او اخلاف الوعید به ښه صفت وو په بعض اوقاتو کی، ددے وجه نه الله تعالیٰ د ډیرو ګناهګارو دپاره د ګناه سزا بیان کړی وی لیکن د هغے سره سره ئے معاف کړی، (سویٰ د شرك نه) دا بیا د الله احسان دے اخوا د قانون د هغه نه۔

رسول الله ﷺ به په تهجدو کې دا آیت بار بار لوستلو او رکوع او سجده به ئې کوله، پدې کې د هغه امت ته هم اشاره ده۔

قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ ؕ لَهُمْ

ووئیل الله دا ورځ ده چه فائده به ورکوي رښتینو ته رښتیا وینا د هغوی، د هغوی دپاره

جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ؕ

جنتونه دي چه بهیږي به لاندې د هغې نه نهرونه، همیشه به وي په هغې کې همیشه،

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ؕ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۱۹﴾ لِلّٰهِ

راضي دې الله تعالىٰ د دوی نه او راضي دي دوی هغه نه، دا کامیابي ده لويه۔ خاص د الله دپاره

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا فِيْهِنَّ ؕ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۲۰﴾

بادشاهي د آسمانونو او زمکې ده او د هغه څه چه پدې کې دي او هغه په هر شي قادر دې۔

**تفسیر** : هرکله چه مخکې د عیسیٰ علیه السلام جوابونه ذکر شو نو اُوس د نفس شوق پیدا شو چه په دغه ورځ به الله تعالىٰ بندګانو ته څه وائي، نو هغه بیانوي۔

کله چه هغه د ملحدینو نصاراؤ نه براءت ښکاره کړو نو الله تعالىٰ د هغه د رښتینوالي ګواهي ورکړه او هغه ئې په صادقینو کې شمار کړو او وې وئیل چه د قیامت ورځ به هغه ورځ وي چه رښتینو ته به د هغوی رښتیا فائده ورکوي او دوی ته به داسې جنتونه ملاویږي چه د هغې نه لاندې به نهرونه روان وي چه دوی به په هغې کې همیشه وي او الله به د دوی نه راضي وي او دوی به د الله نه راضي وي او همدا به لويه کامیابي وي۔

**صِدْقُهُمْ** : د صدق دلته درې مصداقات دي۔ (۱) صدق في العقيدة۔ رښتیني عقیده، چه هغې ته مطابقة الخبر للواقع وائي یعنې ته دا خبر ورکوې چه الله شته او بره دې او محمد رسول الله ﷺ د الله حق رسولے دې، نو دا د واقع مطابق دي نو ته رښتیني عقیدې والا شوې۔ او که د چا په عقیده کې صدق نۀ وي لکه داسې وائي چه الله هر ځای کې دې، د هغه د صفتونو نه انکار کوي، او محمد رسول الله ﷺ صرف د عربو پیغمبر ګنړي نو دا د واقع سره برابره نۀ ده، نو دا رښتیني عقیده نشوه۔ او عیسیان چه وائي عیسیٰ علیه السلام عین الله یا ابن الله دې، او یهود وائي عزیر ابن الله دې نو دوی صادقان نشو۔ ځکه د واقع سره ئې

برابره خبره ونکړه۔
(۲) صدق فِی الْقَوْل : هره خبره رشتیا کول۔
(۳) صدق فِی الْعَمَل۔ چه عمل کی رشتینی وی،
داسی نۀ لکه زمونږ د زمانی ډیر خلك چه په خوله باندے د دین، او د دین د اعمالو صفت کوی چه مونځ او زکاۃ او حج او صدقه ښه شے دے لیکن عمل پرے نۀ کوی نو دا رشتینی نۀ دے۔ ددۀ په عمل کی تېګی ده لکه منافقان ﴿يُخَادِعُونَ اللهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا﴾ والا دی۔ نو دا درے قسمه رشتینوالے چه په چا کی راغلو نو دا کامیاب دے۔
علامه رشید رضاؔ داسے جامع تعبیر کوی :
[يَنْفَعُ الصَّادِقِيْنَ صِدْقُهُمْ فِي إِيْمَانِهِمْ وَشَهَادَاتِهِمْ وَسَائِرِ أَقْوَالِهِمْ وَأَحْوَالِهِمْ]
یعنی هغه رشتینو ته به د هغوی رشتیا فائده ورکوی چه په ایمان او ګواهیانو او په ټولو اقوالو او احوالو کی رشتینی وی۔ (المنار۷/۲۲۸)
نو پدے آیت کی دعوت دے صدق ته په ټولو څیزونو کی، او پدے باندے ئے کامیابی بنده کړیده۔
او بیا دا خبره یاد ساتل پکار دی چه هغه رشتیا ویل په آخرت کی فائده ورکوی چه انسان په دنیا کی رشتینی وی، ورنه په آخرت کی به کافران هم د خپل کفر اقرار کوی او ابلیس به د خپل کفر او انکار اقرار کوی لیکن هلته رشتیا فائده نۀ ورکوی ځکه چه دا رشتیا د دنیا د عمل سره موافق نۀ ده۔
فائده : آیت دلیل دے په فضیلت د صدق باندے په ټولو احوالو کی او په حٌدیث کی دی: الصدق ینجی والکذب یهلك۔ رشتیا خلاصول کوی او دروغ هلاکول کوی۔ او په یو بل حدیث کی ارشاد دے [إِنَّ الصِّدْقَ يَهْدِيْ إِلَى الْبِرِّ وَإِنَّ الْبِرَّ يَهْدِيْ إِلَى الْجَنَّةِ وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَصْدُقُ حَتّٰى يُكْتَبَ صِدِّيْقًا وَإِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِيْ إِلَى الْفُجُوْرِ وَإِنَّ الْفُجُوْرَ يَهْدِيْ إِلَى النَّارِ وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَكْذِبُ حَتّٰى يُكْتَبَ عِنْدَ اللهِ كَذَّابًا] (بخاری: ٦٠٦٤) مسلم (٦٨٠٣)
یقیناً رشتیا نیکی: ته رسول کوی او نیکی جنت ته رسول کوی، او یو تن به همیشه رشتیا وائی تردے چه د الله په نیز به رشتینی ولیکلے شی او یقیناً دروغ بدکاری ته رسول کوی او بدکاری اُور ته رسول کوی، او یقیناً یو سړے به خامخا د دروغو کوشش کوی تردے چه هغه به د الله په نیز دروغجن ولیکلے شی۔
لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ : په آخره کی د الله تعالیٰ د کامل تصرف او مالکیت او ملوکیت

بیان دے چه د تول سورت سره متعلق دے۔

## مناسبت

۱- د نزدے آیت سره مناسبت دا دے چه هر کله بادشاهی د الله ده نو پدے وجه صادقین جنت ته داخلوی۔ ۲- یا د عیسیٰ علیه السلام د واقعے سره لګی چه عیسیٰ علیه السلام او د هغه مور الــه نشی کیدے ځکه چه هغه مخلوق او مملوك دے او د آسمان او د زمکے ترمینځ رابند دے او په هغه کی د الله تصرف چلیږی، او الله تعالیٰ د کائناتو مالك دے، نو د هغه سره څوك شریك نشی کیدے، هغه په هر شی قادر دے نو هغه صرف د بندګئ حقدار او لائق دے۔

۳- د مضمون د سورت سره هم متعلق دے چه د حلال او حرام واك به د الله وی ځکه چه کائنات او انسانان د هغه دی نو حکم به هم د هغه وی۔

## امتیازات او خصوصیات

۱- دا سورت په بیان د کثرتِ حلال او حرام کی د نورو سورتونه ممتاز دے۔

۲-شپاړس کرته پکی (یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوْا) آواز راغلے دے چه داسے په نورو سورتونو کی نشته۔

۳- د دفع د موالات دپاره ډیر علتونه پدے سورت کی بیان شو۔

٤- پنځه اسباب د دفع د ارتداد پکی بیان شو۔

٥- د مائدے واقعه او د بحیره او سائبه او وصیله او حام ذکر په همدے سورت کی شویدے۔

٦- آیة د وصیت او شهادت پکی ناشنا دے۔

د الله په توفیق سره ختم شو تفسیر د سورة المائده په تاریخ : عاشر رمضان ١٤٣٥ ھ الموافق : ١٠/جولائی ٢٠١٤ اسریت - کالام روډ سوات۔

وکتبه : ابوزهیر فی خیمة الاخ المخلص الفاضل خیر الرحمن السواتی۔

تاریخ الاخراج: صفر المظفر (٢٧) ١٤٣٥ ھ مواقق : ١٨/١٢/٢٠١٤

❁❁❁❁❁❁❁

# فهرست تفسیر حکمة القرآن جلد (٤)